د افغانستان د خپلواکۍ د بېرته ګټلو
د اتيايمې کاليزې په وياړ

# پښتانه

( پٹھانز )

ليکوال
سر اولف کارو

ژباړن
الحاج شبر محمد کريمي

د افغانستان د خپلواکۍ د بېرته ګټلو
د اتيايمې کاليزې په وياړ

# پښتانه

## ( پټانز )

ليکوال
سر اولف کارو

ژباړن
الحاج شير محمد کريمي

# پښتانه

## ( پټهانز )

سراولف کارو

ژباړن

الحاج شیرمحمد کریمي

۱۳۷۸ کال

بسم الله الرحمن الرحیم

# نیولیک

| عنوان | مخ |
|---|---|

## ضميمې

### لومړۍ ضميمه



### دويمه ضميمه



### دريمه ضميمه



### څلورمه ضميمه



### پينځمه ضميمه

# دژباړن یادښت

گرانو لوستونکو !

هیله کوم چې زما ژباړه په خپل پراخ زړه او سړسینه ولولئ او زما نیمگړتیاوې په خپلې لویې سره وبښئ. د پښتنو د پېړیو پېړیو ژوندانه په هکله اثار لږدي او په دې هکله هره پاڼه دا ارزښت لري چې ځوانو پښتنو ته په لاس ورکړ شي، او له خپل تاریخ څخه خبر شي .

دا کتاب ما کټ مټ ژباړلی دی، کموالی او زیاتوالی مې پکې نه دی راوستی .

دژباړې متن که نیمگړتیا لري او یا یې له متن سره په تاریخي، سیاسي او جغرافیایي لحاظ دچا مخالفت وي، نو ژباړونکی به نه ملامتوي . دکتاب متن دښاغلي سر اولاف کارونظر دی. د تاریخي پېښو او سیاسي مفکورې کریدت او ډیسکریدت ده ته متوجه دی . دژباړې مسئولیت زما په غاړه دی دژباړې دکیفیت او ستایل په باب سالم انتقاد منم .

دکتاب دمتن حوادث تر ۱۹۵۷ کال پورې دي چې زیاتره دکوزې پښتونخوا پېښې څېړي . البته تر هغې وروسته تولې پېښې په هغه سیمه کې ځانگړې څېړنې غواړي . تولې پېښې چې دوخت په حساب یادې شوې دي له ۱۹۵۷ کال نه دمخه دې محاسبه شي.

زه ژباړونکی له ډېر محترم لوی استاد پوهاند عبدالشکور رشاد صاحب څخه مننه کوم چې ددې کتاب او « ښویا زموږ افغاني سرحد » دژباړې توصیه او لارښوونه یې راته کړې وه او بیا له ډېر محترم پوهنیار اسمعیل یون او محترم ښر محقق زلمي هیواد مل صاحب څخه دزړه له کومې مننه کوم، اول دا چې زه یې دکتاب ژباړې ته وهڅولم . دویم دا چې زما ژباړه یې په ډېر زغم سره ولوستله او له هغې څخه یې ژباړه جوړه کړه .

دافغانستان داسلامي امارت دعلومو اکاډیمۍ دپښتو څېړنو مرکز څخه زیاته مننه کوم چې دنوموړي مرکز پوهانو او څېړونکو دژباړې لپاره زیات تشویق کړم .

په جرمني کې دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې او دهغې له محترم مشر ښاغلي زرین انځور او نورو نه هم ډېره مننه کوم چې ددې کتاب دخپریدو زمینه یې برابره کړه .

په درناوي

الحاج شیر محمد کریمي

# دخپرندویې ټولنې یادونه

(دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې) لپاره ددېرې خوښۍ ځای دی چې دخپلو علمي او فرهنګي خدمتونو په لړکې داخل د سر او لاف کارو تاریخي کتاب (پښتانه) خپروي. داکتاب دهغو کتابونو په لړ کې خورامهم کتاب دی چې دبهرنیو لیکوالو له خوا دافغانانو (پښتنو) په باب لیکل شوي دي.

دا کتاب په ټولیزډول دافغانانو (پښتنو) اصل ونسب، قبیلوي، قومي جوړښت، لېږد، سیاسي، طبیعي، ټولنیزو او نورو پېښو ته ځانګړی شوی دی. په کتاب کې له میلاد څخه (۵۵۰) کاله دمخه بیا تر هغه ۱۹۵۷ م کال پورې پېښې څېړل شوې دي. او لاف کارو د«سرحد صوبې» وروستی انګریز ګورنر و چې عملاً له پښتنو سره په جګړو او نورو چال چلند کې لویه ونډه لرلې او هغوی سره یې ټولنیز سیاسي اړیکې ساتلي دي. ده له پښتنو سره دنږدې تماس له کبله د پښتنو د دود، دستور، ژبې او کلتور او دژوند دنورو خواوو په باب زیات فکر کړی او ډیر مواد یې را ټول کړي دي. له دې کبله دده کتاب له ډېرو زیاتو ان له متضادو او داسې معلوماتو ډک دی چې کېدی شي ځینې

برخې د تأمل او ان د نيو کې ور وګڼل شي . د ساري په توګه په دې کتاب پر دې نظريه ټينګار کېږي چې افغانان ( پښتانه ) د اسرائيلو له لسو ورکو قبيلو څخه يوه ورکه قبيله ده چې له مهاجرت وروسته دلته مېشته شوې دي . خو په بل ځای کې پښتو ژبه دارياني ( ايراني ) ژبو د کورنۍ د ختيزې څانګې يوه ژبه ګڼي ، نو که دلته سړی دليکوال په فکر په فرضي ډول پښتانه اسرائيل وبولي نو ژبه يې څنګه ارياني شوه ؟ ايا هغه خلک کوم وو او څه شول چې له اسرائيلو نه له دې رابېلې شوې قبيلې د مخه يې پښتو ژبه ويله او کله چې دوی راغلل نو دوی هم دا ژبه زده کړه او په هغې کې حل شول ؟

نو که کله چې يوه ژبه شتوالی ولري نو طبيعي ده چې د هغی اصلي ويونکي هم بايد شتوالی ولري . بله مسئله دجنټيک ده ؛ داخبره به امکان ولري چې يو قوم يا يوه قبيله که چېرې له يوه ځايه بل ځای ته ولېږدي په هغه بله ټولنه کې دوخت په تېرېدو سره خپله ژبه او کلتور له لاسه ورکړي خو دجنټيک له پلوه له امکانه لرې بريښي چې يو نسل دې په بل کې محوه شي او خپلې ټولې فزيکي ځانګړنې دې له لاسه ورکړي . غوره بېلګه به يې دافغانستان دهزاره قوم وګڼو چې تاريخ ليکونکي يې دچنګيزخان پاتې شوني ګڼيء سره له دې چې هغوی خپله آره ژبه له لاسه ورکړې خو له جنټيک پلوه د سونو کلونو په ترڅ کې دهغوی پر فزيکي ژغښت او جوړښت کې هيڅ چورلټ بدلون نه دی رامنځته شوی . پښتانه دخپل فزيکي جوړښت له پلوه نورو اريايي قومو سره ډېر ورتوالی لري . څنګه کېدای شي چې د يوې بلې ژبې او نژاد خلک دې دلته راشي او له ځايي خلکو سره يې هرڅه يو شان شي ؟ دغه راز مولف غوريان د کتاب په يوه جدول کې تاجکان ګڼلي دي .

دغــوریانو ددورې لـه لاســه راغلو اثارو او ادبي ليکنو څــخــه داپه ډاگــه ښکاري چې غوريان پښتانه او ژبه يې پښتو وه . ددې خبرې داثبات لپاره دايو دليل هم کفايت کوي : « کله چې سلطان محمود غزنوي پرغور يرغل کاوه له ځان سره يې ترجمانان هم بوتلل چې دغور دخلکو پـه ژبه پوه شي . »

څـرنگه چې سلطان محمود غزنوي دمولف دليک له مخې دنژاد له پلوه ترک گڼل کيږي نو کېداى شي ترکي ژبه يې هم زده وي او فارسي خو يې ددربار ژبـه وه ، نو ايا پـه غــور کــې بله کـومـه ژبه وه چې دى دژباړونکو اړتيا پرې لوېدلې وه ؟

دغلجيو او يا خلجيو پـه باب هم دده ليکلې روايت له واقعيت سره سمون نه خوري ، اصلي خبره داده چې غلجي يا خلجي ديوه واحد مفهوم لپاره دوه ژبني جوړښتونه دي او داخلجي د ترک له خلج سره يوه لفظي ورته والى ذى نور دا غلجي يا خلجي د ترک له خلـج سره تړاو نه لري .

همـــدا راز دلودي يا لوديانو پـه باب هم دمــولف نظر پر يوه روايت ډډه لگوي. دشېر شاه سوري دشخصيت دستاينې تر څنگ دهغـه داداري ځواک او صلاحيت دنشتوالي خبره هم ديوه شخص پـه بـاب دليکوال دمتضاد نظر څرگندونه کوي ، دغـه رازد غـازي محمد اکبر خان دجگړه ييز مهارت او تر بريالۍ جگړې وروســتــه پر هغــه دلوټ او تاوان تور پورې کــول دمــولف دانگريز والې روحيې څرکونه را څرگندوي .

پـه کتـاب کې نورې زياتې مسالې يادې شوي چې دغـور وړ دي . دابه يا هغه وخت دموادو دکمښت له کبله وي يا هم دليکوال دذهني اغېزاو يا هم کېداى شي له رواياتو نه دتاريخ دپخو موادو پـه توگه دليکوال گټه اخيستنه

وي . ځو ځایه داسې متن هم کارول شوی چې د سپکاوي بڼه لري . لکه د بابر او اویې بې مبارکې کیسه او یا هم دغلزو د پیدایښت کیسه . خو د دې کتاب له ځینو نیمګړتیاوو سره سره دا کتاب د پښتنو د تاریخ ، ټولنیز ژوند او نورو اړیکو په باب یوه غوره اخځ ګڼل کیږي.

لوستونکو ته په کار ده چې دا کتاب په غور سره وګوري ، پر ټولو څېړل شویو مسایلو یې باور و نه کړي ، بلکې پښې پخپله هم وارزوي.

دافغانستان کلتوري ودې ټولنې دعلمي او تاریخي امانت ساتلو د آر له مخې د کتاب متن په خپل آره بڼه خپور کړ او په هغه کې یې څه بدلون نه راوست . یوازې په کتاب کې راغلې جغرافیایي نقشې د تخنیکي ستونزو له کبله په پښتو متن کې نه دي راوړل شوي . د کتاب د آر متن له خپراوي څخه موخه داده چې :

موږ غواړو ځان ته د نورو له هنداري هم ګورو چې نور زموږ په باب څه فکر کوي ، موږ څومره ،څنګه او څه ډول ګڼي او ارزوي ؟ هغوی چې زموږ په باب ربښتیني او مثبت فکر کوي له هغو نه هم باید خبر شو او هغوی چې منفي فکر او غلط تعبیر کوي له هغو نه هم باید خبر شو او د نورو د ذهنونو دروښانتیا په مقصد باید د پښتو دربښتینې بیان لپاره لارې چارې ولټوو.

داولاف کارو دا تاریخ (پښتانه ) هم داسې یو اثر دی چې پورتني دواړه تعبیرونه او فکرونه په کې شته . څرنګه چې دا کتاب د داسې یو چا له خوا لیکل شوی چې عملاً په هغو شپو ورځو کې له پښتنو سره په ډېرو مسلو او ان په جګړو کې ښکېل و نو طبیعي ده چې دلیکوال رواني تاثر او دانګریزولۍ فکر په یوه نه یو ډول د کتاب په علمي او ناپېیلې فضا دیو ډول ذهني

ناانډولي پرازيت خوروي ، خو دا هم پدې مانا نه ده چې هر اثر په يوه ځانګړي تاريخي پېر کې د پښتنو د سياسي مخالفينو له خوا ليکل شوی وي هغه دې ټول د پښتنو له ريښتيني بيان نه تش وي. که د پښتنو نولي او انګريزولي دولولو له څرګندولو پرته په ارام فکر دې کتاب ته نظر واچول شي نو سړی قضاوت کولای شي چې د دې کتاب ځينې برخې د نيوکې او سمون وړ دي او ځينې برخې يې دقيقې ، پوره او کره دي چې د ليکوال د زيات درانه کار او زيار ثمره ده . په دې وجه نو لوستونکي بايد د احتياط په قيد سره دا اثر ولولي او له هغه څخه ګټه پورته کړي ، د دې کتاب د ځينو اړخونو د کره کتنې لپاره په کار وه چې يوه اوږده ليکنه پرې وشي . خو د وخت د لنډون له کبله دا کار اوس ممکن نه شو ، خو بيا هم د هېواد پياوړي ليکوال سر محقق زلمي هېوادمل په لنډ وخت کې په دې کتاب کې د تأمل وړ ځينو ټکو باندې يوه ګټوره ليکنه کړې چې د لته له دې کتاب سره يوځای خپرېږي ، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه له ښاغلي هېوادمل او د کتاب له ژباړن ښاغلي جنرال الحاج شير محمد کريمي نه مننه څرګندوي .

د دې کتاب د چاپ د لګښت زياته برخه ښاغليو اکبر بري ، استاد محب ، زرين انځور او فارق شاه ورکړې او د غه راز يوه برخه يې د ټولنې د اثارو د خرڅلاو له لارې برابره شوې ده .

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه له د غو ښاغليو مننه کوي . د غه راز ټولنه د خپل فعال ليکوال ګران پوهنيار محمد اسمعيل يون څخه مننه څرګندوي چې د دې کتاب د چاپ ا و ايډيټ کارېې په پوره همت تر سره کړ .

په درناوی

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه - جرمني

# د دې کتاب په اړه څو څرګندونې

د نولسمې پېړۍ له اوايلو او د شلمې هغې تر پايه په اروپايي ژبو د افغانستان، افغانانو، د دوی د ژبې او ادبياتو په باب ډېر کتابونه ليکل شوي او په عام ډول په غرب کې چاپ شوي دي (ځينې يې په پخوانی هند کې هم چاپ دي).

د دغو کتابونو په ليکلو کې د حرفه يي ختيځپوهانو تر څنګه د بريتانوي هند د حکومت د ملکي او نظامي کارکوونکيو ونډه زياته ده.

د دغو نظامي او ملکي مامورانو ځينو ذوقمنو او له ختيځ فرهنګ سره علاقمندو يا د خپل ځاني ذوق يا وظيفه يي مسووليت پر اساس زموږ د هېواد زموږ د خلکو او زموږ د ادبياتو په اړه مقالې، رسالې او کتابونه کښلي دي.

که څه هم پدې کتابونو کې تېروتنې ډېرې دي، تحليلونه او استنتاجونه يې هم سم نه دي او کله نا کله ځينو دغو کسانو د خپلو سياسي او حکومتي ملحوظاتو پر بنا پيښې هم سمې نه دي ضبطه کړې. خو د دغو ټولو کمبوتيو سره سره د ختيځپوهانو او په تيره د بريتانوي هند د ملکي او نظامي مامورانو

کارونه غربي لوستونکیو ته زموږ د ټولنې ، خلکو او هیواد یو انځور وړاندې کوي او غربیان د ختیځ دیوه لرغوني ولس له فرهنګ سره آشنا کوي .

له دې ښیګنې سربیره که سړی له حقه سترګې پټې نه کړي او د ختیځپوهانو ، د ختیځپوهنې له دایرې د وتلیو غربي لیکوالو کارونه له نظره تیر کړي او د یو بیطرفانه قضاوت په رڼا کې یې وڅیړي نو دا به ورته ښکاره شي ، چې په دې کارونو کې ځینې داسې علمي کارونه هم شته چې لر او بر افغانانو خپله تر اوسه نه دي کړي .

تر کومه ځایه چې ماته د معاصرو څېړنو له مطالعې ښکاره ده ، دافغانستان ( په تاریخي مفهوم ) او د دغه هېواد داوسېدونکیو د پیژندنې ، د دوی د سیاسي ، اجتماعي ، تاریخ او د ځینو فرهنګي خواوو په اړه چې غربیانو کوم کتابونه کښلي دي ، په دې کتابونو کې د دریو هغو نوم ډیر عمده او په ارزښتمنو کتابونو کې یادیږي ، لکه :

(۱) د مونټ ستیوارت الفنستن ( ۱۷۷۹-۱۸۵۹م) An account of the kingdom of Caubul چې لومړی ځل په ۱۸۱۵م او بیا په ۱۸۱۸م کال چاپ شوی دی (۱) وروستي چاپونه یې خورا ډیر دي .

د مونټ ستوارټ الفنستن دا کتاب په پښتو ژباړل شوی او په دوو ټوکو کې چاپ دی .

د پښتو ژباړې په لومړي ټوک کې یې دوه کتابه راغلي دي . لومړی کتاب شپږ څپرکي لري او دافغانستان دجغرافیه بیان ته وقف شوی دی . دویم کتاب یې چې نه (۹) څپرکي لري . سرعنوان یې دی : دافغانستان داوسیدونکیو عمومي بیان . دا ټوک پوهاند دوکتور محمد حسن کاکړ او

سرمحقق نصرالله سریمن په ګډه ژباړلی دی. ۳۲٤ مخه په ۱۳۵۹ش / ۱۹۸۰م کال د پښتو څیړنو دبین المللی مرکز له خوا دکابل په دولتی مطبعه کې چاپ شوی دی.

دپښتو ژباړې دویم ټوک کې یې دریم کتاب (دافغانستان قومونه) شپږ څپرکي، څلورم کتاب (دافغانستان ولایتونه) اووه څپرکی؛ پنځم کتاب (دکابل پاچاهی حکومت) اووه څپرکی او درې ضمیمې راغلې دي.

لومړۍ ضمیمه (دکابل سلطنت تاریخ ددرانیو د پاچهي راهیسې) دویمه ضمیمه (دښاغلي دوری بیان) او دریمه ضمیمه (دځینو ګاونډیو ملکونو بیان).

دکابل سلطنت بیان دویم ټوک یوازې پوهاند دوکتور محمد حسن کاکړ ژباړلی دی او په ۱۳٦۱ هـ ش کال ٤۱۵ مخه دکابل په ګوندی (بیا آریانا) مطبعه کې دپښتو څیړنو دبین المللي مرکز له خوا چاپ شوی دی. داخبره هم باید هیره نه کړو چې دالفنسټن دغه ارزښتمن اثر زموږ یو هراتی هیوادوال دافغانستان دعلومو اکادمی پخوانی غړی ښاغلی محمد آصف فکرت په دری ژبه اړولی او په ۱۹۹۷ م کال په مشهد کې چاپ شوی دی.

دالفنسټن دکابل سلطنت بیان دپوهاند دوکتور کاکړ په وینا ... لومړنی اثر دی چې افغانستان یې لویدیځې نړۍ ته پیژندلی دی .... په افغانستان باندې زښت ډیر کتابونه او رپوټونه تهیه شوی دي ... (خو) ددغو ټولو لیکنو په مقابل کې ذالفنسټن کتاب دیو کلاسیک اثر په شان دهندوکش دغره په څېر دروند دریدلی دی. (۲)

(۲) دورتن ګریګورین لیکلی اثر (د معاصر افغانستان ظهور) چې د

The Emergence of Modern Afghanistan په نامــه په ۱۹۶۸م کال کې چاپ دی .

دگویگورین دکتـاب ښـېګڼې دغـسې بيانـيږي . لکه دالفنستن او کرو دکتابو هغې . زمونږ استـاد پوهاند دوکتور حبيب الله تږي دخپل گرانبيه اثر پښتانه په مقدمه کې ددغه کتاب ليکوال گريگورين دمعاصر افغـانستـان دتاريخ پياوړی ليکوال بللی دی او دده ليکلی دمعاصر افغـانستـان ظهور يې بې سارې اثر بللی دی (۳)

دگريگورين دکتـاب ترجمه تر اوسيه نه ده چاپ شوې . د ۱۹۹۸م کال دجـولای په اوايلو کـې چې اسـتـــاد تږی پيـښـور تـه راغی ، يوه شپـه يې دگـريگورين دکـتـــاب په باب ډيرې خـبـرې راته وکـړې . مـا سـمـلاسي ترې وغوښتل چې داکـتاب پر پښتـو راوژباړي. اسـتـاد داغوښتنه په مينه ومنله . وروسته چې مې هر ځل په تلفون کې له استـاد سره خبرې کړې دي. نومې دگريگورين دکتاب دترجمې خبره تکرار کړې ده او استاد داهم راته ويلي دي چې دترجمې کار يې شروع کړی دی.

(۳) ددې لړۍ دريم کتاب دسر اولاف کرو The Pathans دی .

داکتاب لومړی ځل په ۱۹۵۸م کې چاپ شو خو زما دا معلوماتو له مخې په ۱۹۶۵م ، ۱۹۷۵ م؛ ۱۹۸۳م او ۱۹۹۶م کلونو کې بيا چاپ شوی دی ، ښايي نور چاپونه هم ولري چې ما نه دي ليدلي .

د ۱۹۸۳ م کال له چاپ سره دسر اولاف کرو- د ۱۹۸۰ م کال په سپتمبر کې کښلې - نوې مقدمه هم مله ده . داول چاپ مقدمه ده د ۱۹۵۷ م کال په مئ کـې کـښلې وه. له همـدې د ۱۹۸۳ م کـال چاپ سره يې په پای کـې يوه

موخره هم مله کړې ده چې بې عنوان دی- EPILOGUE ON RUS-SIA دا برخه د کتاب په ۵۲۳-۵۳۳ مخونو کې چاپ شوې ده او مطالب یې دافغانستان په وروستیو پیښو ( دغوایي داوومې کودتا او د پخوانی شوروی تجاوز) پورې اړه لري.

سر اولاف کرو کابو دیرش کاله د پښتنو په منځ کې تېر کړي وو او د پښتونخوا په ډېرو سیمو کې یې ماموریتونه درلودل. دی دهند د نیمې وچې تر آزادۍ کابو کال دمخه د پښتونخوا ( اوسنی صوبه سرحد ) وروستی انګریز ګورنر و ( ۱۹۴۶-۱۹۴۷م ) .

له پښتنو سره د همدې اوږدې او سېدنې له امله یې دا کتاب ( پښتانه ) لیکلی دی.

په دې کتاب کې یې په خپل زعم له ۵۵۰ ق م نه تر ۱۹۵۷م کال پورې د پښتنو تاریخ بیان کړی دی.

دنړۍ د زیاترو هیوادونو په علمی او فرهنګی حلقو کې د سر اولاف کرو ( پښتانه ) نومي کتاب د پښتنو پر تاریخ دیو ډېر مهم او ارزښتناک اثر حیثیت غوره کړ او د ښاغلی اشرف غنی په وینا : « ډېرو خلکو پر دې کتاب ( پښتانه ) تبصرې کړې دي او ځینو ورته دافغانستان پېژندنې دیو کلاسیک او یا ډېر مهم اثر ارزښت هم ورکړی دی ».

دا کتاب نه یوازې په غربی نړۍ کې ډېر مشهور و ، بلکه د نیمې وچې او د پښتونخوا دانګریزي دانو پښتنو تر مینځ یې ډېر لوستونکي درلودل او اوس یې هم لري . زموږ په هیواد کې هم زیاتره فرهنګیان او څېړونکی له دې کتاب سره آشنا وو.

یوولسم

دشلمې پیړۍ په وروستیو شلورو لسیزو کې چې دافغانستان او پښتنو په باب لرو برو افغانانو او بهرنیو افغان پېژندونکیو څه لیکلي دي ، زیاترو دکرو له ( پښتانه ) استفاده کړې ده.

دکرو له ( پښتانه ) څخه داستفادې دایره هغه وخت نوره هم پراخه شوه ، چې تر لومړي چاپ کابو اته ،نه کاله وروسته دا کتاب په اردو ترجمه شو او په ۱۹۶۷م کال ۷۲۸ مخه دپېښور دپښتو اکادمۍ له خوا دپېښور په خیبر میل پریس کې دارواښاد عظیم شاه خیال بخاري په اهتمام چاپ شو او دخلکو دغوښتنو له مخې یې په ۱۹۸۸ م کال کې بیا چاپ کړ .

اوس چې دا کتاب پر پښتو ژباړل شوی او دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې په همت چاپېږي . دافغانستان په اوسېدونکیو اولرو افغانانو کې هغو کسانو ته چې ، په اردو او انګریزي نه پوهېږي ،ددې کتاب دلوستو او استفادې زمینه برابره شي .

دیادولو وړ ده . چې داولاف کرو پښتانه دخپلې ارزښتمنۍ تر څنګه ځینې تېروتنې ،کمبودۍ او دتحلیلونو په نتایجو کې نه بریالیتوب هم لري.

زموږ مشرانو پوهانو او لیکوالو - لر او بر -کله کله په مستقیم او غیر مستقیم ډول د ( پښتانه ) پر ځینو ناسمونیو کې کړې دي . خو ددې کتاب بشپړه مطالعه سړی ته دا راښیي ، چې له دې کتابه دسالمې استفادې لپاره لاهم دنور کار اړتیا شته . لازمه ایسېدله چې له دې پښتو ترجمې سره یوه اوږده علمي او تحقیقي سریزه هم مله شوې وای چې دکتاب ټولو کمبودیو او تېروتنو ته ګوته پکې نیول شوې وای نو په دې توګه به پښتو ترجمه له یوې بډایې مقدمې سره لوستونکیو ترلاسه کړې وای او دا ددې لپاره چې

لوستونکی د کتاب په متن کې راغلی خبرې ټولې له مسلماتوونه گڼي .

د همدغسې يوې انديښنې په درلودلو سره چې کله شپېږ او وه مياشتې د مخه پوهنيار يون راته وويل چې د سر اولاف کرو The Pathans جنرال شير محمد کريمي په پښتو ژباړلی او ښاغلی انځور صاحب يې د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې له لوري چاپوي . نوما سملاسي ښاغلی يون ته وويل چې پردې ترجمه بايد يوه غټه او تحقيقي مقدمه وليکل شي او دا کار بايد زموږ استاد اکادميسين پوهاند عبدالشکور رشاد ته وسپارل شي. ما ته ښکاره وه چې استاد رشاد پردې موضوع پخواڅه کار کړی و.

ديادولو وړ ده چې په ۱۳۶۹ - ۱۳۷۰ هـ ش کلونو کې د افغانستان د پوځ يو منصبدار ښاغلي عالمي د سر اولاف کرو همدا کتاب په پښتو ژباړلی و او د پښتو څېړنو بين المللي مرکز د امنلې وه ، چې د ښاغلي عالمي له خوا د The pathans دا ترجمه چاپ کاندي او ورسره يې له استاد رشاد څخه غوښتې وو چې يوه علمي څېړنه هم ورسره پدې نيامت مله کړی چې د کتاب په متن کې راغلي اشتباهات او تېروتنې پکې سم شوې وي .

له بده مرغه چې د ۱۳۷۱ هـ ش کال په اړو دوړ کې د دولتي مطابعو له چور او سرزيدلو سره د ډېرو نورو علمي او ادبي آثارو په څېر د کرو د کتاب پښتو ترجمه هم ورکه شوه .

ښاغلی پوهنيار يون په کابل کې له استاد رشاد سره کتلی وو او د کرو د کتاب پردې بلې ترجمې يې د مقدمې غوښتنه ترې کړې وه .

استاد ورته ويلي وو ، چې زه به خپل کاغذونه وگورم نو بيا به احوال درکړم . د ترجمې د چاپ چارې زياتې پر مختللې وې چې ښاغلی يون بيا

استاد ته مراجعه وکړه . داځل استاد رشاد ښاغلي يون ته ويلي وو ، چې زما کاغذونه پيدا نشول او زه اوس له سره پردې موضوع کار نشم کولای ، خو ددې لپاره چې دا ترجمه لا ګټه وره شي نو به تاسي دحسن خان سوز او اروا ښاد دوست محمد خان کامل نقدونه هم له ترجمې سره مله کړئ.

ښاغلي يون چې له کابله راستون شو ماته يې دا استاد رشاد تجويز واوراوه . ما ورته وويل : که استاد دا مقدمه ليکلې وای نو به ددې ترجمې ارزښت څو چنده زيات شوی وای . اوس دا بل تجويز هم ښه دی.

ښاغلي يون ددې نقدونو د نه پيدا کېدو عذر وړاندې کړ او له ما يې وغوښتل چې زه بايد دا کار وکړم .

ما ورته وويل چې زه به له خپلو دومره مصروفيتونو سره سره څنګه وکولای شم يوه تحقيقي مقدمه وليکم . بيا به هم زه وګورم چې دا کار کيدای شي او که يه ؟

ددې کار لپاره ما د پښتو ترجمې د پروفونو او اصل څه پاڼې او اردو چاپ ترجمه مخې ته کښېښودل . ما ددې کتاب له اردو ترجمې څو کاله دمخه دخپل کتاب ( په هند کې د پښتو ژبې او ادبياتو د ايجاد او ودې پړاوونه ) په ليکلو کې استفاده کړې وه او بيا مې نه وکتلی.

ما چې د پښتو ترجمې پاڼې او اردو ترجمه دواړه وکتل . زما په ناقص فکر ددې کتاب پر تېروتنو او د تبصرې وړ برخو باندې ډير کار ته اړتيا وه .

تر ټولو لومړی پکار وو ، چې ټول هغه ځانګړي نقدونه چې پر دې کتاب شوي وو را پيدا او ولولوستل شي . له دې سربيره نورو ډيرو ماخذونو ته هم اړتيا وه ، چې دهغو پر استناد د کتاب په باب خبرې وشي.

دې لومړنۍ سروې ماته دا وښووله چې دخپلو مصروفيتونو په پام کې نيولو سره ښايي په دوو مياشتو کې زه پدې بريالى شم چې له خپلې وسې سره سم يوه نسبي مقدمه ګۍ پر وليکلاى شم.

ما دا خبره له ښاغلي يون سره شريکه کړه او دامې ورته وويل که مقدمه غواړې، نو لږ ترلږه دوې مياشتې ورته پکار دي.

ښاغلي يون راته وويل چې داکتاب بايد دزمري دمياشتې تر اته ويشتمې دمخه جرمنى ته رسيدلى وي، لږ تر لږه موږ بايد داکتاب دزمري تر پنځلسمې له چاپه راوباسو او سملاسي يې جرمني ته واستوو.

ما بيا ورته وويل: زما هم معذرت ومنه او زه دا کارنشم کولاى. ليدل مې چې پرښاغلي يون زما ځواب دروند پريووت او دايې راته وويل چې که دا کتاب بې له يوې توضيح چاپ شي نو به دا ښه نه وي او پدې لاس په لستونې وخت کې به موږ څه وکړاى شو؟

ما ديو بل دوست نوم ورواخيست او ومې ويل له هغوى نه غوښتنه وکړه چې دامقدمه وليکي، دې کار ته يې هم زړه ښه نه کړ. بالاخره موږ دواړو فيصله وکړه ،چې ديوې سريزې په ترڅ کې بايد دټولو هغو آثارو او ليکنو يو فهرست وړاندې کړو، چې زموږ مشرانو فرهنګيانو د سراولاف کرو دليکنو او نظريو په ځواب کې او يايې دتيروتنو په سمون کې ليکلې دي.

دمخه تردې چې زه د کرو پرکتاب او دده پرنظرياتو دشويو اوړدو، لنډو ضمنى او اساسى کره کتنو لړ دروړاندې کړم، بايد ووايم چې دکرو دکتاب له لوستنه سړى لاندې نتيجې ته رسيږي:

(۱) پدې کتاب کې راغلي زياتره سنې دکره کتنې وړ دي او پردغو سنو

دلوستونکیو سل په سلو کې ویسانه ده پکار .

په کتاب کې دراغلیو ناسمو سنو سمون ځانته جلا بحث غواړي . کیدای شي ، زموږ دمشرانو ( چې یې دکرو دپښتانه سنې نقد کړې دی ) په کره کتنو کې - چې زه یې وروسته معرفي کوم - هم دکتاب دغه کمبوت ته اشارې شوې وي .

ددې کتاب دناسمو سنویو مثال زه تاسې ته راوړم ( څنګه چې یې ماته دپښتو ترجمې ددې برخې پروفونه راکړي دي او داپروفونه مخونه نه لري نوځکه زه دانګریزی متن اواردو ترجمې مخونه ښیم ) .

د The pathans دانګریزي متن په ۲۰۰ مخ او داردو ترجمې په ۲۸۰ مخ کې دروښانی غورځنګ دباني بایزیدروښان دزوکړې سنه ۱۵۲۵ م کال ؛ دانګریزی متن په ۲۰۳ مخ او داردو ترجمې په ۲۸٤ مخ کې یې دده دمړینې کال ۱۵۸۵ م ښوولی دی . ( دمړینې دسنې په باب یې کرو هم شک ښکاره کړی دی او ویلي یې دی کیدای شي دمخه مړ وي ) .

داسنی دهجری قمری سنو له ۹۳۲ هـ ق او ۹۹۳ هـ ق سره برابرې خیژي. دا دواړې سنې ناسمې دي . دبایزید روښان دزوکړې او مړینې کابو سمې سنې دادي : ۹۲٦ هـ ق زوکړه : ۹۸۵ هـ ق مړینه .

(۲) دپښتنو داصل او نسب او دپښتو ژبې د موقعیت په باب چې فقید کرو کوم بیانونه راوړي دي ، دا بیانونه هم په ډیرو ځایونو کې له واقعیتونو دژبپوهانو او ټولنپوهانو له اوسنیو نظریو سره سم نه دي.

په دې برخه کې هم زه یو مثال وړاندې کوم:

دپښتو ترجمې په ۲۰٦ مخ کې لولو: « ... زه په لنډیز سره دا خبره پای

ته رسوم چې خلجی ننني غلجی دي، دا قبيلې دفزيکي علايمو او ځينو دودونو له مخې ښايي ترکي ختـه ولري او د خلج اولادونه چې د سپينو هونيانو يا يفتليانو يوه څانگه ده چې په پنځمه پیړۍ کې دافغانانو منطقو ته راغلي او ځای پر ځای شوي وو . تر پيړيو پيړيو پورې د پښتنو په څنگ کې واوسيدل او د هغوی ژبه او دودونه يې خپل کړل . خو سره له دې څه تو پيرونه لاشته » له دې اقتباسه زما غرض داوو . چې د غسې مجهول او بې بنياده بيانونه په ډيرو تاريخي آثارو کې راغلي او ځينو کسانو بيا له ځانه نورې قياس آرايۍ پسې کړې دي.

پوهاند دوکتور حبيب الله تږي د خپل درانه اثر پښتانه په ۸۱-۸٤ مخونو کې د دې مسالې ټولې ريښې راسپړلي او هغه تضاد ته يې گوته نيولې پر غلجيانو د خلجيانو داوښتو دمفکورې د پالونکيو له خپلو بيانونو راوزي.

پوهاند دوکتور مجاور احمد زيار هم په خپله يوه مقاله کې همدا مسأله داتنولوجي او ژبپوهنی په رڼا کې څيړلې ده او پر غلجيانو دخلجيانو او ښتون يې يوه داسې افسانه بللی ده ، چې علمي موازين يې نه مني. (٤)

(۳) د پښتنو دقبيله يي جوړښتونو او د پښتنو دنسبي ريښو په باب هم دفقيد کرو نظريې په ځينو برخو کې دتامل وړ دي . د پښتانه نومي کتاب ددې برخې په تامل وړ برخو کې هم زه څه مثالونه وړاندې کول غواړم :

الف : د پښتو ترجمې په ۳۰ مخ کې يوه شجره داسې راغلې چې دقيس عبدالرشيد تر نامه لاندې يې څلور نومه راوړي : سړبن ، غرغښت ، بيټن او کرلانی. دکرو دکتاب په انگريزي متن او اردو ترجمه کې ما داسې

ځانګړی لښتلیک (جدول) ونه موند ، چې دقیس عبدالرشیدتر نامه لاندې دې څلور خطه کښل شوي وي او ترې لاندې دې داڅلور نومـه راغلي وي ، البته په همدغه ځای کې کرو دکرلانیو په باب څه دغسې خبرې کړې دي.

به هرصورت دقیس عبدالرشید په زامنو کې راساً دکرلانی داخلول دخوشحال بابا (۱۰۲۲-۱۱۰۰ هـ ق) له دې لاندې رباعی سره سمون نه خوري :

پښتونپه اصل کې سړبني دی * یاغرغښتی دی یا بیټني دی

لودی ، غلجی دی دبیټني له لوره * په سړبن پورې بیا کرلانی دی

ب : که چېرې دپښتنو د بیلابیلو قبیلو چاپ شوې شجرې سړی له نظره تیرې کړي دځینو قبیلو په راوروسته پښو او خیلونو کې ګډوډي خوراډیرې دي ، له دې سربیره په ډیرو نسبي شجرو کې یوه قبیله یوځای په یوه پلار پورې نښلول شوي ده او بل ځای په بل پلار پورې .

دغه راز دځینو قبیلو د پښو ،خیلونواو ښاخونو دنومونو والي ډیرې ستونزې راپیښې کړې دي. ځینې ښاغلي دنومونو همدغسې یو والو خطا ایستې دي او په یوه نامه دڅو بیلا بیلو قبیلو خیلو نه یې سره یوګنلي دي.

دسراولاف کرو د ( پښتانه ) په شجرو کې هم سړی ځینې ګډوډۍویني . زه په دې برخه کې هم یو مثال راوړم .

دپښتانه دپښتو ترجمې په ۳۱ مخ کې یی د ( ترین) ترنامه لاندې پښې : سپین، تور او ابدال راوړې دي .

پدې ځای کې زما په پوهه دسپین او تور ترین تر څنګه دابدال راوړل سم نه دي. دجنوبی پښتونخوا تر ینان د ترینو په پښو کې تور ترین ، بور ترین ،

سپین ترین او سور ترین یادوي او دراني پښتانه په بور ترینه پوري نښلوي.

تر دغې عنعنه یي شجرې که تېر شو ، میجر آر ، تی ، آیی رجوی په خپل لیکلي اثر PATHAN کې د ترین پښې داسې ښوولې دي: بور ترین ، تور ترین ، سپین ترین او ژړ ترین . رجوی د سور پرځای ژړ راوړی دی خو دراني یا ابدالي قبایل ده هم ، لکه د خلکو عنعنه یي شجرې له بور ترین سره نښلولې دي ( ٥ )

ج : د همدغو شجرو په لړ کې ، د پښتو ترجمې ٤٢ مخ داردو ترجمې ٤٥ مخ او د انګریزي متن ٢١ مخ کې چې د کرلانیو د شجرو کوم لښتلیک خپور شوی دی ، هلته د دلزاک ترنامه لاندې په مطلق ډول د دلزاکو د نشتوالي حکم زما په پوهه سم نه دی ،ددې قبیلې ډیرې کورنۍ اوس هم دلغمان مرکز ته مربوط ، دامان او مریم کلیو کې شته . دلغمان د مرکز دعلي خیلو د کلي سر ته یوه ستره غونډۍ د دلزاکو غونډۍ نومیږي.

د کوهاټ ضلعې په لاچي کې له پخوا نه د دلزاکو کورنۍ وې . د پښتو لرغوني ناظم شمس الدین دلزاک د همدغې لاچۍ و . شمس الدین دلزاک د یوولسمې پیړۍ په وروستۍ لسیزه کې د شمس الباصرین یا ناصرین په نامه په میراث کې یوه پښتو رساله لیکلې ده . لاچۍ اوس د ختکو سیمه ګڼل کیږي. ښایي د دلزاکو کورنۍ هم اوس په ختکو کې مدغم شوې وي.

له دې سربیره د مجر آر ، تی ، آی رجوی د پټهان داردو ترجمې په ١٦١ مخ راغلي دي، چې د دلزاک زیاتې کورنۍ د جهانګیر ( ١٠١٤- ١٠٣٦ هـ ق) د پاچاهۍ په کلونو کې هندوستان او دکن ته ولیږدول شوې او هلته د دلازي

په مقام کې میشتې دي : د ۱۹۰۱ م کال د سرشمیرنی له مخې په هزاره ضلع کې د دلزاکو شمیر ۱۱۸۹ تنه ښودل شوی دی .

د : شجرو د بیان په ترڅ کې یې چې د پښتنو قبایلو داوسیدو کوم ځایونه ښوولی دي ، دا هم زیاتره سم نه دي . له دغه ډول ناسمو به هم زه دوه مثاله راوړم.

داردو ترجمې په ۳۷ مخ او د پښتو ترجمې په ۳۵ مخ کې د دوتانیو پښتنو او سیدنځای یوازې جنوبي وزیرستان ښوول شوی دی.

. باید داخبره وکړو . چې ډیر دوتانی ډیره ء اسمعیل خان ته مربوط په درازین نومي ځای کې آباد دي .هغه موټر چې له دیره اسمعیل خان نه ژوب ته ځي زیاتره د همدغو دوتانیو په سیمو کې تیریږي او بیا پرژوب ورګډیږي .

له درازین سربیره دافغانستان په غزنی ولایت کې هم د دوتانیو ډیرې کورنۍ آبادې دي.

د پښتو ترجمې په ٤٠ مخ او داردو ترجمې په ٤٢ مخ کې یې د کاکړو اوسیدنځای یوازې شمالی بلوچستان بللی دی . حال دا چې د کاکړ قبیلې ډیر خلک دافغانستان په بیلا بیلو سیمو کې آباد دی، لکه : کندهار ، زابل ، هرات ، غزنی ،دکابل دکوهدامن قره باغ ، دلغمان مرکز دډیوې کلی او نور .

داوې څو نمونه یې تېروتنې یا کمبودی چې ما په دې مقدمه کې په لنډیز راوړې. اوس به نو زه هغه معلومې لیکنې یادې کړم چې دفقید کرو پر پښتانه نیو کې لري .

(۱) زما د معلوماتو له مخې حسن خان سوز لومړنی پښتون دی چې پردې کتاب یې په نسبی ډول یو اوږد نقد لیکلی او له مردان نه دخپریدونکي

اوه ورځني رهبر په لسو ګڼو کې خپور شوی دی .

ما د پېښور په ځینو کتابخانو کې د رهبر د هغو ګڼو لټون وکړ چې دا نقدپکې خپور شوی دی . له ډېر تلاښ سره سره مې د دې نقد دوه قسطه پیدا کړل . یو یې اتم قسط و ، چې د رهبر د ۱۹۶۰ م کال د ۳۰ جولای په ګڼه یا ۲٤ مه ګڼه کې خپور شوی او بل یې نهم قسط چې په ۲۵ مه ګڼه د ۱۹۶۰ م کال داګست ۸ کې خپور شوی دی . د همدې قسط په پای کې یې لیکلي دي (نوربیا) وروسته بله ګڼه (۲٦ مه) په کلکسیون کې نشته او دا هغه ګڼه ده چې داګست په دویمه لسیزه کې باید راوتې وي او د سوز صاحب د نقد لسمه برخه باید پکې نشر وي . پر له پسې ۲۷ مه ګڼه د ۱۹۶۰ م کال داګست ۲۸ مه په کلکسیون کې شته خو دانقدپکې نه دی چاپ شوی . داسې ښکاري چې پر (پښتانه) د سوز د لیکلي نقد خپریدل به د رهبر د ۱۹۶۰ کال په ۱۷ مه ګڼه کې پیل شوي وي .

د سوز د نقد عنوان دی (دي پټهانز باندې یوه تبصره) د رهبر په هره ګڼه کې دانقد تر همدې عنوان لاندې چاپ شوی دی.

د دې نقد کومې برخې چې ما وکتې دا راته ښکاره شوه ، چې سوز صاحب د کرو په پښتانه کې په خپل نظر د تامل وړ خبرې نقد کړې دي .

(۲) پر پښتانه بله خپره شوې تبصره د میاضیاء الدین کاکا خیل ده ، چې د پېښور د پښتو اکادمی خپرنی ارګان پښتو (٦) مجلې خپره کړې ده . د دې نقد ډوله مقالې عنوان دی (د سراولف کیرو په کتاب دي پټهان یو سرسری نظر) په دې لیکنه کې دافغان ، پټهان او پښتون په باب د کرو پر نظر یې نقد شوی دی .

(۳) اروانباد عقاب ختک (۱۹۱۱-۱۹۸۵م) په خپلو ډیرو آثارو کې له پښتانه داستفادې ترڅنګه خبرې اوانتقادي لیکنې هم پرې کړې دي.

زما دمطالعې په اساس اروانباد عقاب دریم پښتون دی، چې دغه کتاب ته یې په انتقادی نظر کتلي دی. اروانباد عقاب په خپل اردوتاریخ ختک کې پردغه کتاب یوځانګړی نقد کړی دی. (۷)

اروانباد دعقاب ویلي دي چې کرو سول افسر خو و، مګر مورخ ترې جوړنشو، په همدې اساس ده افسانه او تاریخ سره ګډ کړي دي او کومه معقوله نتیجه یې ترې نه ده را ایستلې. او دخپل نقد په پای کې لیکي:

«لنډه دا چې په (دي پټهانز) کې له (ناآشنا) نظریو سربیره دپیښو اسقاط هم پکې ډیر دي».

همدغه عقاب (دخوشحال اور اورنګزیب) په نامه یو بل کتاب هم په اردو ژبه لیکلی و چې لنډیز یې ۱۱۲ مخه په ۱۹۷۵م کال په پیښور کې چاپ دی. په کابل کې ما دا لنډیز درلود او دومره راته یاد دي چې دکرو دهمدغه کتاب په باب یادونې پکې وې، خو دلته په پیښور کې مې دا رساله پیدا نه کړای شوه.

(٤) کله چې په ۱۹٦۷م کال دپیښور پښتو اکادمی د (پښتانه) اردو ترجمه خپروله، نو د اکادمي مشراروانباد مولانا عبدالقادر (۱۹۰۵-۱۹٦۹م) پردې ترجمه یوه اوږده مقدمه وکښله چې داردو ترجمې په لومړنیو ٤٤ مخونو کې چاپ شوې ده.

اروانباد دمولانا په خپله دغه اوږده مقدمه کې دکرو دکار ډیرې ستاینې ترڅنګه یونیم ځای دده له ځینو نظریو سره اختلاف هم ښکاره کړی

دی.

دمثال په ډول اروابناد مولانا یو ځای لیکي:

«.... دډیورنډ لاین دواړو غاړو ته پښتانه قبایل پراته دي او د اسې هم شوي دي چې دهمدې حد بندۍ پر اساس دیوې قبیلې لږ برخه دې خوا او زیاته یې هغه خوا ته پاتې شوې ده او کله هم برعکس ،نو دا څنګه کیدای شي چې دکرښې هغې خواته دې دهماغې واحدې قبیلې خلک افغانوي او دې بلې خواته دې پټان» (۸) یو ځای نیم بل هم په دې مقدمه کې ځینې توضیحی نکات شته.

(۵) دپښتو حقدار لیکوال د پښتنو عالم او نوميالی خوشحال پیژندونکی اروابناد استاد دوست محمد خان کامل مومند (۱۹۱۵-۱۹۸۱م) یوازینی سړی دی، چې په یوه خاصه برخه کې یې دسر اولاف کرو دکتاب (پښتانه) نظریات په یوه ځانګړی کتاب کې نقد کړل.

داستاد کامل دغه کتاب: دخوشحال په باب دخارجیانو لیکنو ته کتنه نومیږي. په انګریزي ژبه لیکل شوی او انګریزي نوم یې دی:

ON AFOREIGN APPRAOCH TO KHUSHHAL

دا کتاب یوه مقدمه، او وه فصله او په پای کې غنی نوټونه، دمآخذو فهرست او داعلامو فهرست لري. ټول مخونه یې ۱۵۷ دي او په ۱۹۶۵ م کال دپیښور د مکتبهٔ شاهین له خوا چاپ شوی دی.

داکتاب په لوی سرکې د (پښتانه) دکتاب دپنځلسم فصل کره کتنه ده. دپښتانه دا فصل (خوشحال او اورنګزیب) نومیږي. دپښتانه له دې فصله سربیره استاد دپښتانه دکتاب دځینو نورو برخو ناسموته هم ضمنی اشارې

کړې دي او دخورلسم فصل (اکبر او قبایل) ځینې بحثونه یې هم پکې نقد کړي دي.

داستاد کامل په دې کتاب کې د پښتانه د مطالبو له نقده سربیره د لاندې کتاب:

The Poems Of Khushhaal Khan Khatak by Sir Evelyn Howell and Sir Olaf Caroe.

نقد هم راغلی دی او په ضمني ډول یې د خوشحال په باب د هانري جارج راورټي (۱۸۲۵-۱۹۰۶م) او د اُلف کارونو ته هم انتقادي اشارې لري.

زما په پوهه د کرو د پښتانه د ځینو برخو په کره کتنه کې د استاد کامل دا کتاب ډیر گټه‌ور ،علمي دڅیړنې او کره کتنې له اصولو سره برابر دی.

باید وو وایو چې دا روانښاد استاد دوست محمد خان کامل د غه ارزښتمن کتاب جنرال شیر محمد کریمي په پښتو ژباړلی او د امیر کروړ سوري د دولس سوه پنځوسم تلین په مناسبت په ۱٤٠٤ هـ ق= ۱۳٦۳ هـ ش کال کې د پښتو ټولنې له خوا په کابل کې چاپ شوی دی.

دا پښتو ترجمه لومړی، برخې برخې په کابل مجله کې خپره شوه (۹) او بیا دا ټولې برخې په یوه کتاب کې تنظیم شوې، پردې پښتو ترجمه دا میر کروړ سوري د بین المللي سیمینار د منشي په توگه ما یوه سریزه هم لیکلې ده او په دې سریزه کې مې د استاد کامل د خوشحال پوهنې په ارتباط کړي کارونه معرفي کړي دي. دا سریزه (۱۲) مخه ده او امیر کروړ سوري د بین المللي سیمینار د علمي سکرتریت په امضا چاپ شوې ده.

(٦) د ۱۳٥٤ هـ ش-۱۹۷٥ م کال په مني کې پښتو ټولنې په کابل کې

دپښتـو ځـيـړنو دبين المللي مـركز دپرانيـستلو پـه مناسبت يو بين المللي سيـمـينار جوړ كړى و ، چې علمي غـونډې يې دكـابل پوهنتـون دكتابـخانې دسيدجمال الدين افغان په تالار كې دايريدې .

په دې سيمينار كې دپښتنو دفرهنگ دبيلابيلو اړخونو په باب گټورې مقالې او بيانيې وړاندې شوې ، د افغانستان له فرهنگي شخصيتونو سربيره ډيرو خاوجي پښتو پوهانو او افغان پيژندونكيو هم پكې برخه اخيستې وه دپښتـو پوهنې ختيځپوهانو دوروستى نسل استاد قـقيد مورگن ستيرن (١٩٧٨م مړ) هم ورته راغلى و .

ددې سيمينار په مقالو كې يوه مقاله دكابل پوهنتون داجتماعي علومو د استاد ښاغلي اشرف غني وه . دده دمقالې عنوان و : ( دسرا (و) لف كايرو دنظرياتو كره كتنه ) . دامقالة په هماغه كـال وړمې مجلې هم خپره كړه ( ١٠ ) او دوه كـاله وروسته چې دهماغه سيمينار دمقالو مجموعه پښتو ټولنې چاپ او خپروله، په دې مجموعه كې هم راغله ( ١١ ).

دا مقاله په ( پښتانه ) كې دسر او لاف دنظريو كره كتنې ته وقف شوې ده. هغـه لوستـونكې چې يو ځل ( پښـتـانه ) ولولي ، نو ددې مقـالى له لوستـه وروسته بيا دسر او لاف پر نظر يو ښه قضاوت كولاى شي.

دښاغلي ا شرف غني په عـقـيده دكرو ( پښتـانه ) دري مهمې نظريې وړاندې كوي او ټول دلايل يې دهمدغو نظريو ثبوت لپاره وړاندې كړى دي .

ښاغلي غني دخپلې مقالې په لومړيو كرښو كې داهم ويلي دي چې ځينو كسانو دسر او لاف دې كتاب ته درافغانستان پيژندنې ديو كلاسيك او ډير مهم اثر ارزښت وركړى دى . خو زموږ په نظر خبره داسې نه ده ، بلكه زموږ

په نظر سراولاف پدې نه دی بریالی شوی چې یوه افاقی شننه وړاندې کړي او پردې سربیره د ده نظر له ځانګړیو اړخونو نه رنګ اخیستی دی.

د سراولاف کرو د پښتانه په باب د پښتنو مشخصې کره کتنې ما دروښوولې او س د ځينو هغو آثارو یادونه هم کوم چې په ضمنی ډول یې د کرو ځينې خبرې او نظریې نه دي منلې.

(۱) پښتانه د تاريخ په رڼا کې: لوستونکي پدې پوهیږي چې دا تاريخ دافغانانو یو مفصل او پنډ تاريخ دی چې په پښتو کښلی شوی او ۱۹۶٤ م کال را پدې خوا څو ځله د پېښور د یونیورستي بک ایجنسی له خوا چاپ او خپور شوی دی. په دې کتاب کې هم ځای ځای د کرو له پښتانه استفاده شوې ده. خو یو نیم ځای یې مولف ښاغلی بهادر شاه ظفر کاکاخیل، د کرو له نظر سره اختلاف هم ښکاره کړی دی. (۱۲)

(۲) د ۱۳۵٤ هـ ش - ۱۹۷۵ م د مني په پیل کې د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشری علومو پوهنځي د افغان - هند د کلتوری اړیکو سیمینار دایر کړ. دغه سیمینار ته پوهاند عبدالشکور رشاد د پښتانه، پټهان په باب یوه اوږده تحقیقی مقاله وړاندې کړې وه او په مقاله کې یې د پټان د نامه د څیړنې په ترڅ کې د ځینو نورو انګریزانو د نظریو درد تر څنګه د سراولاف کرو دا نظریې چې په پښتانه یې پر افغان او پټهان سره بیل کړي او بیا یې یو ځای په صراحت ویلی دي چې «پټان او افغان له یوه نسله نه دي» په علمی دلایلو رد کړې دي (۱۳). دا باید ووایو چې د کرو د کتاب د ټولو یا زیاترو نقادانو په کره کتنو کې د افغان او پټهان د بیلوالی نظریه رد شوې ده. ارواښاد مولانا عبدالقادر ورته د ډیورنډ د کرښې دواړو غاړو ته پرتو واحدو قبیلو

عملي مثالونه ورکړي دي ، خو زموږ استاد دا مساله ډېره جدي او عملي څېړلې ده .

(۳) اروانښاد سرمحقق دوست شینواري ( ۱۳۷۲ هـ ش مړ ) هم د پښتانه څرک دی ؟ په نامه یوه رساله لري . په دې رساله کې چې د پټېهان دنامه په ارتباط دسراولاف دنظریې کوم تردید شوی دی . داهم د استاد رشاد له لوري يادې شوې مقالې نه په استفاده شوی دی ( ۱٤ )

(٤) پروفیسور پریشان خټک په خپل اردو ژبه کښلي تحقیقي اثر : پشتون کون ؟ کې د کرو د پښتانه ځینو برخو ته کره کتنه کړې ، چې یوه خبره خو یکې همدا پر پټهان او افغان د پښتنو دویشلو خبره ده . بل دوی داخبره کړې ده چې ګړو د پښتو نولۍ دروح په پوهېدنه کې هم نه دی بریالی شوی ، له دې سربېره پروفیسور پریشان خټک داهم ویلي دي ، چې پښتو پر دوو لهجو ویشل هم سمه خبره نه ده او بله مهمه یې لا دا چې پروفیسور پریشان وایي چې کرو دځینو قبایلو په پېژندنه کې دهغوی بې عزتي کړې ده . ( ۱۵ )

پروفیسور خټک پدې بحث کې داخبره هم زیاته کړې ده ؛ چې کرو موږ ته لاربښوونه نشي کولی ، ده زیاتره دپخوانیو انګریزانو خبرې اخیستې دي څه چې ده پرې اضافه کړي دي . ددغو اضافو اندازه سړی دپشتون او افغان دبیلوالی له نظریې لګولای شي.

(٥) پوهاند دوکتور حبیب الله تږی هم د ( پښتانه ) په نامه یو ارزښتمن کتاب لیکلی دی . داکتاب په همدې روان ۱۹۹۹ م کال د پښتنې فرهنګ دودې او پراختیا ټولنې ( جرمنی ) له خوا په پیښور کې چاپ او خپور شو . په دې کتاب کې ډېر ځایه دکرو له ( پښتانه ) استفاده شوې خو

ددریم فصل په پای کې یې دکرو هغه نظریه رد کړې چې ویلې یې دی دابدالي یادراني پښتنو هویت په تیاره کې دی . داستاد تړی دلیکلي پښتانه لوست دکرو د ( پښتانه ) د لوست مرستندوی واقع کیږي اودکرو پر ځینو بابیزه خبرو ~~پو~~ سوری هیدلای شي.

ښایي ځینې لوستونکي داسې وانګیرې چې دکرو پر پښتانه دومره نقدونه شوي او یادومره زیاتې ناسمې لري . نو ددې کتاب چاپ ته څه اړه وه ؟

که احیاناً څوک داډول وانګیري زه هغوی ته ډیر په احترام لیکم : پرهر کتاب چې زیات نقدونه لیکل کیږي هومره یې دارزښتمنۍ ښکارندویي کوي.

مانا دا چې کتاب ته خلکو ارزښت ورکړی دی ، کتاب یې لوستی دی او پردې ارزی چې نقد پروکړي او دښېګڼو تر څنګه یې بدګڼې هم خلکو ته وښایي.

دغو نقادانو په واقعیت کې دپښتانه له لوستونکیو سره مرسته کړې ده ناسمې بې ورښوولي دي .

دپښتانه په باب دا بحث دارواښاد استاد دوست محمد خان کامل مومند پردې لاندې خبروپای ته رسوم : « ... سره له دې نیمګړتیاوو چې دهغه د کتاب ( پښتانه ) په پنځلسم فصل او نورو برخو کې لیدل کیږي . پښتانه ددوی ( سر اولاف کرو ) زیار ته په درنه سترګه ګوري که څه هم دپښتانه کتاب ژوره څیړنه او پلټنه غواړي ».

دکرو دکتاب دځینو نقادانو دلړله وړاندې کولو وروسته زه اړیم چې پر

حاضره ترجمه او مترجم هم څه خبري وکړم .

ددې اثر مترجم تورن جنرال شیرمحمد کریمی دلوړو او تخصصي زده کړو خاوند منصبدار دی، په هندوستان ، مصر او انګلستان کې یې زده کړې ، کړې دي. انګریزي ژبه یې په ډیره لوړه سویه زده ده او زموږ په پخوانی پوځ کې بنایي ډیر لږ کسان دده په سویه په انګریزي پوهیدل.

سره له دې چې دی پوځي سړی دی . مګر له تاریخ او ادبیاتو سره مینه لري او دمطالعې ساحه یې پراخه ده .

دانګریزۍ له زده کړې یی دخپلې ژبې او فرهنګ دغنا لپاره ډیره ګټه اخیستې ده .

دده په وروسیتو دوو لسیزو کې له انګریزي ډیر آثار پښتو کړي دي چې څو عمده یې دادي :

(۱) دیو آس نکل : دلیونو لستوی یو منځنی داستان دی ، چې جنرال کریمی له انګریزي پښتو کړی دی او دزیری کالنۍ د ۱۳۶۰ هـ ش کال په ګڼه کې - چې په ۱۳۶۳ هـ ش کال کې چاپ او توزیع شوې ده - چاپ دی .

(۲) بنو یا زموږ افغانی سرحد : داس ، اس تاربرن اثر ، چې په ۱۳۶۰ هـ ش کال کې یې ترجمه بشپړه شوې ده . په ۱۳۷۷ هـ ش کال دپښتنی فرهنګ دودې ټولنې له خوا چاپ شو.

(۳) دخوشحال په باب دخارجیانو نظریو ته کتنه : داستاد دوست محمد خان کامل اثر چې په ۱۳۶۳ هـ ش کال کې یې ترجمه بشپړه شوه . په کابل مجله کې تر چاپ وروسته په کتابي شکل دپښتو ټولنې له خوا چاپ شوی دی .

(٤) همدا دپښتانه کتاب، چې اوس ستاسو په لاسو کې دی.

دجنرال شیر محمد کریمی دانگریزۍ جاج اخیستل زما غوندې یو عاجز لپاره ناممکنه خبره ده، خو تر کومه ځایه چې ما ته معلومه ده د دوی ترجمې ټولې روانی او ساده گي لري او سړی نه ستړی کوي. دپښتانه ددغې ترجمې ژبه هم ساده ده، روانې پکښې شته او دده دنورو ترجمو په څیر یې سړی په لوست نه ستړی کیږي.

په دې ترجمه کې دروانۍ، رسایۍ او نورو ښیگڼو تر څنگه جغرافی او قبیله یي نومونه چې له انگریزی ترجمه شوی دی. ددغو نومونو اصلی بڼې نه راښیي.

زما په پوهه ددغسې ناسمویو علت دادی، چې زموږ زیاتره پښتانه چې له انگریزۍ برجمې کوي، د D,T گرافیمونه ټ، ډ او n کله کله پر (ڼ) ژباړي. دغه اصل په رڼا کې دنومونو ترجمه کله کله سړی خطا باسي.

دافغانستان دعلومو اکادمي یو علمی غړي، چې خورا زیات آثاریې پښتو کړي دي. دهمدغه اصل په بنا په یوه ترجمه هرځای چې رتن سنگهـ یا رتن ناتهـ نوم راغلی و، دا نوم یې رټڼ ناتهـ او رټڼ سنگهـ اړولی و.

دپښتانه په دې حاضره ترجمه کې دا لاندې نومونه سم نه دي:

- دقنوج نوم په ترجمه کې کنوج راغلی چې سم نه دی، قنوج دگنگاه دسیند پرشرقی غاړه اله آباد ته مقابل لږلاندې واقع دی. (داستاد رشاد په مننه)

دبندیل کهند نوم بندل کند راغلی دی، بندیل کهند دگنگاه دسیند پر جنوبی غاړه واقع دئ او په منځني هندوستان یا مدهیه پردیش پورې اړه لري.

- قاصور یه (کاسوریه) دانوم په دواړو بڼو سم نه دی. سم یې

(قصوری) راځی چې د پنجاب قصور ته منسوب دی. قصور لاهور ته نږدې یو ښار ګوټی او ولسوالي ده. چې خیشکی پښتانه پکې آباد دی، د پښتو لرغونې شاعر ارزانی خیشکی (۱۰۱۰ هـ ق) د همدې قصور دی.

- رازار: سمه بڼه یې رځړ دی. د پښتنو یو قبیله ده، په چارسده کې اوس هم درځړو سیمه شته.

- بیړا: سم یې بهیرړ.

- ګا ډون: سم یې ګدون دی، د پښتنو یو قبیله ده چې نور پښتانه ورته هیڅ ښکاری، دوی وایي:

چې پیدا دې ګدانه کړه . نور دې ولې پښتانه کړه

د هندی سبک پیرو شاعر محمد بیاض ګدون (په دکن کې اوسیدلی) ددې قبیلې لرغوني او ښه شاعر دی.

- شتک: سم یې شیتک دی، د پښتنو له کرلانی قبایلو حسابیږي. بنوڅي، دوړاوتنی نسب پوهان په شیتکو کې شماري.

- ککی، کاکی، کاکی خیل، دا ښې سمې نه دي، سم یې (خښی) د پښتنو یو ستره اجتماعي ډله ده، چې د یرې قبیلې پرې پورې نښتې دي، لکه منډړ، ګګیانی او ترکلانی، په دې ترجمه کاکی خیل هماغه خښی خیل دی، چې د The Pathans په اردو ترجمه (۲۴۳ مخ) کې دخخی خیل ترعنوان لاندې معرفي شوی دي.

- دوسره - ایلام: دواړه سم نه دي، سم یې الم او دوه سري. په شمالي پښتونخوا کې دغرونو نومونه.

- برنیس: دانوم په افغانانو کې په برنس مشهور دی او اصل یې برنز دی.

- پانی : سم شکل یې پنی دی ، چې په غور غشتي قبایلو کې یوه قبیله ده.
دپني پلار داني نومیږي او داني بیا دغورغښت زوی دی .
- کنیگرام : کانیگرام دی . دملي مبارزو اوستر افغان صوفي بایزید
روښان دکورنی پلرنی تاټوبی .
- کتلانگ : سم یې کاتلنگ دځای نوم دی.
- لنډ خوړ : لنډ خوړونه : دواړه سم نه دي ، سم شکل یې (لوندخوړ )
دکلي نوم دی.
- دیلازاک : سم شکل یې دلزاک دی ، په کرلانی کې شامله لرغونی
قبیله ده .
- داوړ : سم شکل یې دوړ په شیتکو کې شامله کرلانۍ قبیله ده.
ما داځو نومونه دنمونې په ډول راوړل ، کاش چې دانومونه تر چاپ دمخه
لیدل شوي وای او حتی که - دتهیې په آخره مرحله کې هم لیدل شوي وای -
کیدای شول ، چې په متن کې سم شي او دې لوړبحث ته به هیڅ ضرورت نه و.
ددې ناسمو پره زما په پوهه پر ښاغلي مترجم نه ده ،که دجنرال صاحب
په موقعیت کې بل هر چا دا ترجمه کړې وای ، همداسې او حتی تر دې به یې
لابدتر ترجمه کړې وای او نومونه به قول غلط دوه اوسنی ترجمه ډیره بریالۍ ده .
زما په پوهه دا ډول تاریخي کتابونه چې زیات ، جغرافي او نسبي نومونه
پکې راځي باید له چاپه پخوا وکتل شي.
ددې یادونو په پای کې زه ددغه ارزښتمن او ورسره پنډ کتاب دچاپ
مبارکي دکتاب دژباړن تورن جنرال شیر محمد کریمي ، دافغانستان
دکلتوري ودې ټولنې منسوبینو او په زیاته دټولنې مشر ښاغلي انځور او

دکتاب دچاپ دچارو سمبالوونکي زيار کښ پوهنيار يون ته ورکوم. الله تعالی (ج) دې دغو تړولو ته ډېر نور زيات توفيقونه ورنصيب کا چې نور دغسې فرهنگي کارونه سرته ورسوي او دژبې په فرهنگي غتاکې عملي برخه واخلي. همدارنګ زما بله يادونه داده چې که دافغانستان دکلتوري ودې تولنې له خوا ښاغلي استاد صميم ته دا وظيفه وسپارلی شي. چې دکرو پر پښتانه شوي تول پښتو - اردو او يا پښتو شوي نقدونه سره راتول کا مکررات دې ځينې حذف کا (اردو نقدونه دې پښتو وژباړل شي) او همدغه تولنه دې ديوې ځانگړې رسالې په توگه چاپ کړي.

ومن الله التوفيق

سرمحقق زلمی هيوادمل

**يادښتونه:**

(۱) کاکړ، پوهاند دوکتور محمد حسن: دکابل سلطنت بيان لومړی توک (دمترجم مقدمه) دپښتو څېړنو بين المللي مرکز، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳۵۹ هـ ش، ط مخ.

(۲) دپوهاند کاکړ يادشوې مقدمه، ط مخ.

(۳) تړی، پوهاند دوکتور حبيب الله: پښتانه، دپښتنی فرهنگ دودې تولنه (جرمني) دپښتو چاپ، ۱۳۷۷ هـ ش، يو مخ.

(٤) زيار، پوهاند دوکتور مجاور احمد: نگرش گذاری اتنولنگوستيک... شمشاد د ۱۳۷۷ هـ ش کال، ۱-۲ گنه، ۱۱-۲۰ مخونه.

(۵) میجر آر، تی، آی رجوی، پټهان، د پروفیسور محمد انور رومان اردو ژباړه، کوټه، بینظیر انټر پرایزز، ۱۹۸۷ م، ۳۶۰-۳۶۴ مخونه.

(٦) کاکاخیل، میاضیاءالدین: (دسراولف کیرو په کتاب دی پټهان یو سرسري نظر). پښتو مجله د ۱۹٦۲-۱۹٦۳ ګڼه، ۱-٤ پښتو اکادمی پیښور ۱۱-۱٤ مخونه.

(۷) خټک سرفراز خان عقاب: تاریخ خټک، پیښور، ۱۹٦۵م کال، ۷۳-۸٤ مخونه.

(۸) مولانا عبدالقادر: پر پټهان کښلی مقدمه پښتو اکادمی، پیښور خیبر میل پریس، ۱۹٦۷ م ۸ مخ.

(۹) داستاد کامل دکتاب دپښتو ترجمې (دخوشحال په باب دخارجي پوهانو لیکنو ته ژوره کتنه) خپریدل په ۱۳٦۲ ش کال په کابل مجله کې پیل شول. دکابل مجله: د ۱۳٦۲ هـ ش کال ۲ ګڼه ٦۷-۸۰ مخونه، تردې وروسته په متفرق دول ددې مجلې په بیلابیلو ګڼو کې یې بیلابیلې برخې خپرې شوې اود کابل مجلې د ۱۳٦۳ هـ ش کال په ٦ ګڼه کې یې خپریدل بشپړ شول. په همدې ۹ مه ګڼه کې پردې کتاب لیکل شوې دکابل مجلې د مدیر ښاغلی نورمحمد سهیم او زما او همداراز داستاد کامل دمقدمې پښتو ژباړه نشر شوې دې. (۲۵-۵٤ مخونه).

(۱۰) ورمه (مجله) کابل پوهنتون د ۱۳۵٤ هـ ش کال ٤ ګڼه، ۱۷۷-۱۸۹ مخونه.

(۱۱) غنی، اشرف: دسر الف کایرو دنظریاتو کره کتنه، پښتو څیړنې، پښتو ټولنه، کابل، دولتی مطبعه ۱۳۵٦ هـ ش کال. ۳۰۵-۳۱۸ مخونه.

(۱۲) ظفر کاکاخیل، بهادر شاه: پښتانه د تاریخ په رڼا کې، یونیورسټی بک ایجنسی، پیښور، ۸۹۰ مخ.

(۱۳) رشاد، پوهاند عبدالشکور: پښتانه = پټهان، ورمه، کابل پوهنتون د ۱۳۵٤ هـ ش کال ۳، ګڼه ۱۹-۲۱ مخونه.

(۱٤) شینواری، سر محقق دوست: پښتانه څوک دی؟ پیښور، دانش کتابتون، ۱۳۷۷ هـ ش، ۵۸-۵۹ مخونه.

(۱۵) خټک پروفیسور پریشان: پښتون کون؟ پښتو اکادمی، پیښور، جدون پریس، ۱۹۸٤ م ۱۱۲-۱۱٤ مخونه.

# دلیکوال یادونه

ما همېشه له ځان سره سوچ کاوه چې باید د پښتانه (پټهان) په هکله څه ولیکم. دا ځکه چې ما د خپل ژوندانه نیمایي برخه د پښتنو په منځ کې تېره کړې وه. خو له ۱۹٤۷ م کال را په دېخوا د دېرو کلونو په تېرېدو سره زما یادښت یو څه کمزوری شو او ځینې شیان مې هېر شول. خو بیا هم د پاکستان د حکومت په مرسته له نهو کالو وروسته یو ځل بیا په زړو مېنو وګرځېدم او خاطرې را ژوندۍ شوې. پخواني دوستان مې ولیدل، په پخوانیو ځایونو کې راوګرځېدم او زیاتره د تېرو دېرشو کالو هېرې شوې خاطرې را په یاد شوې. کومه نتیجه چې ما ترلاسه کړې ده او د کتاب په شکل یې ترلوم هغه زما شخصي او ځانګړی برداشت دی، نو ځکه د ټولو ځانګړو او ټولنیزو نتیجه ګیریو مسئولیت پر غاړه اخلم.

د پښتنو په هکله څېړنې یو اوږد سمندري سفر دی. په دې سمندر کې بېړۍ ګرځي او راګرځي خو دېرې سیمې لا پاتې دي چې نه دي سپړل شوې. د بېلګې په توګه ما غوښتل چې له اسلام څخه د مخه د پښتنو ربنې د څو څو پېړیو په اوږدو کې ولټوم. که چېرې زما په پلټنو کې نیمګړتیا وې وبښئ نو ځواب مې دا دی چې یو مانو په ګرېښې ځان نه شي کولای چې دا لوی سمندر ویلټي. په دې سمندر کې دیوه مانو لپاره دا اسانه نه ده چې په دې برخه کې

ټول اړخونه ، ټولې اړونده ژبې چې ددې ټوک د تکمیلولو لپاره په کار دي او دده نیم زره کلونو په موده کې یې بېل بېل پړاوونه وهلي دي ، ټول سره یو ځای کړي او ویې څېړي .

تر اسلام د مخه او د اسلامي دورې دلومړیو پېړیو په هکله زه د (Dr.A.D.H.BIVAR) ډاکتر بیوار مرستې هېڅکله نه شم هېرولی. نوموړی زما پخوانی دستیار او کله هم استاد و او په وروستیو کې د اکسفورډ پوهنتون د کرایست چرچ د پوهنځي د لرغوني تاریخ استاد و . دده له همکارۍ او تشویق پرته د کتاب دا برخه نا ممکنه ښکاریده چې پوره شي . دده په مرسته ما وکولای شول چې ډېر اصلي متنونه ، یوناني ، عربي او فارسي اثار وژباړم او د موضوع په اړه ورڅخه ګټه واخلم . دلته یوځل بیا یادونه کوم چې له هرې برخې څخه نتیجه ګیري زما د ځانګړي نظر محصول دہ . ښایي نیمګړتیاوې به خامخا ډېرې وي خو زه اعتراف کوم چې ددې کار د مسلکي غړیتوب لایسنس نه لرم .

همدارنګه زما د نورو دوستانو یادونه هم لازمه ده . ایولین هاویل Evelyn Howell د وزیرستان د قبایلو په هکله زما انځور ډېر لوړ ځوړ کړی دی . رالف ګریفیت Ralph Griffith چې د پښتو او پښتنو نولۍ په مانا ښه پوه و ، او همدارنګه جورج کنیګهم George Cunningham چې لس کاله د پېښور ګورنر و زما د کتاب متن یې ولوست او په خپلو نیوکو یې لابډای کړ .

له ډېرو پښتنو نه مې ښې ښې مشورې ترلاسه کړې دي ، په ټولو کې د «ستانې» سید عبدالجبار شاه چې په ۱۹۵٦ کې مړ شو او د اکوړې محمدزمانخان چې د خوشحال خان ختک له اولادو څخه دی ، د ستاینې وړ دي.

د پېښور کمېشنر ښاغلی زبیري او راجر بیکن (Roger Bacon) او دده همکارانو نه زیاته مننه کوم چې د خوشحال خان ختک د اشعارو په هکله یې زیاته مرسته کړې ده . د پاکستان چیف کمېشنر اکرام الله په لندن کې پر ډېرو ټکو باندې رڼا اچولې ده ، له هغه نه هم زیاته مننه څرګندوم .

په یوه منفهوم د اکتاب لکه د اور کوچنی بڅر کي په څېر د انګرېزانو او پښتنو د یوې پېړۍ جګړو او دښمنیو په هکله رڼا اچوي . هیله لرم چې پښتانه لیکوال به هم د څېړنې او پلټنې په لور قدم پورته کړي او په نتیجه کې به یوه رښتیني مرام ته ورسیږي .

# سريزه

د پښتنو په منځ کې اوسيدل حيرانوونکي خوند لري . ډېر وخت دسړي زړه غواړي چې دالوړ احساس تر لاسه کړي او نورو ته يې هم ور انتقال کړي . مگر دا يو غولوونکي سحر دی . دشمال غربي سرحد صوبې يوراز بايد په هغه انځور کې ولټول شي چې پښتانه خپل ژوند په هغه کې لوبوي ؛ او دا انځور داقليم په ظالمانه تغيراتو سره په ژوندي روح بدليږي . کله کله دا بريد پر روح باندې ناوړه او کرغېړنه اغېزه کوي . د پېښور دوادۍ تودوخه ، دوړې او بوړبوکۍ ، دخيبر او وزيرستان سوليدلي غرونه، ليدونکي ته له يوې خواد طبيعت ښايست وربښي او له بلې خوا دژوندانه تش او تريخ اړخ . دا ښه او بد ، ښايسته او کرغېړن انځور دخلکو په ځان ، روح او وجود کې او بدل شوی دی . زياتره يې زيږه او ترخه اړخونه دي چې حتی په ډېرو حالاتو کې دانسان اوښکې راتويوي . رانالد شې Ranaldshay داسې ليکي :

دسرحد اوسيدونکي ډير دمشقت ژوند لري او هره ورځ دژوند او بقا لپاره منتونه گالي ، خو له بلې خواله نيمگړتيا وو سره سره حقيقت دادی چې ددې غرنۍ سيمې خلک داسې قوت لري چې په غيرعادي ډول تړول په احساساتو راولي . دسرحد دژوندانه او ماحول شرايط داسې جوړشوي دي چې له روحانيت سره مينه لري او عنعنو ته کلک وفادار دي .

خالق تعالی (ج) دائمکه ذهمدې سرسختو خلکو لپاره پيدا کړې ده . يو پردېس به چې دې سيمې ته دسفر په نيت و ، نو غوروونه او سترگې به يې ليدو او اوريدو ته پرانيستي وو او کله به چې د مارگلې غاښي څخه تېر شو او

داباسین له پاسه به داټک له پله څخه د سرحد صوبې ته او ښتو ، نو زړه به یې داندا کوله او دې ته به یې راباله چې : ای پردېسه ! دخپل کور احساس کوه دپښتانه په کور مېلمه راغلی یې . هو ! له سلو یا زیاتو کالو را په دېخوا پښتون (پټهان) دنړۍ خلکو ته او حتی پخپله دوی ته یوه زبره (معما) پاتې شوې وه . ډېر وخلکو دده او دده د کور په هکله زښت ډېر شیان لیکلي دي . خو بیا هم د پښتون دپېژندلو لپاره لږ دي او دځمکې پر مخ برسېرنې کرښې دي. دپښتون دپېژندلو لپاره ژورې یوې په کار دي چې ددوی په هکله حقایق راوسپړي .

په یوه تکي کې داسې ویلای شم چې دپښتانه (پټهان) تاریخ لا تراوسه چانه دی پرانسیتلی او تړلی پاتې دی . هلته ځانګړې قبیلوي پیښې ، کیسې او نکلونه دي . دپښتنو په تاریخ کې ددوی مېړانې ثبت دي . پښتنو پاچاهانو او پښتنو سالارانو له خپلې سیمې نه دباندې فتوحات کړي دي او تر ډهلي پورې یې امپراتوري ګانې جوړې کړي دي . هلته ددرانیانو پاچاهي ده چې یوازې دهغې دوه سوه کاله تېرسېږي ، خو کیسه یې ډېره اوږده ده که څه هم پښتانه دخراسان او دهند دنیمې وچې تر منځ کوریدور کې په پیړیو پیړیو دریدلې دي او دلته لوی لوی مدنیتونه سره مخامخ شوي او تاکل شوي دي او یرغلګرو پوځونو په وار وار له دې سیمې نه لښکر کشۍ کړي دي او تر سمندر پورې یې ځانونه رسولي او امپراتورۍ یې جوړې کړې دي . مګر پښتانه چې خپل کنډوکلک ساتلی دی دده نظر ته چا پوره نه دي کتلي او دده کیسه چاداسې نه ده اوریدلې چې دی یې وایي . په اوسني مودرن مفهوم سره دپښتنو تاریخ ددوی له خپلې خاورې سره دتړلي تاریخ په مفهوم نه پښتنو لیکلی دی او نه بل چا .

دمثال په توګه دپټهان او افغان توپیر څه دی ؟ دوی څوک دي ؟ او دوی څه

دي ؟ او د دوی مبدا او ریښه څه شی ده ؟ د دوی ټولنیز او سیاسي جوړښت د پیړیو په اوږدو کې څه شی وو او څه شی دی ؟ آیا دوی وکولای شول چې دولت جوړ کړي ؟ د دوی ژبه څه شی وه ؟ او د دوی ادبیات څه ډول دي ؟ دوی څه ډول وکولای شول چې د پېړیو په اوږدو کې دیرغلګرو قوتونو په مقابل کې ودریدل ؟ دوی پر اوضاعو او حوادثو باندې پخوا څه ډول تاثیر او تسلط درلود او را تلونکي ته په کوم نظر ګوري ؟ دا او داسې نورې ډېرې پوښتنې دي چې ځواب غواړي او تراوسه دهغې ځواب نه دی ویل شوی .

زه نه غواړم چې دلته مخکې نتیجه ګیري وکړم . تعریفونه او توپیرونه به د کیسو د سپړلو په وخت کې پخپله را پیدا شي . مګر د افغان او پټان د نومونو په هکله باید یو څه مخکې وویل شي که څه هم دا دواړه کلمې پخپله مترادفې دي خو بیا هم کله چې موږ تاسې د پښتنو مبدا څیړو ، دا به څرګنده شي چې دهوارو سیمو او غرنیو سیمو اوسیدونکي یو له بل سره پوره توپیر لري . دهوارو سیمو اوسیدونکي د مشرقي څانګې په نوم پیژندل شوي او هغوی ته دافغان په نامه خطاب کیږي او دوی هم پخپل وار سره.پر دې ډول ویشل کېږي: ( ۱ ) لویدیز افغانان (بر پښتانه ) چې تر ټولو مهم یې ابدالیان (دراني) او غلجي پښتانه دي . او ( ۲ ) ختیز افغانان (لر پښتانه ) چې په عام ډول د پېښور د شاوخوا سیمې یوسفزي او نورې اړونده قبیلې دي .

لویدیز افغانان ( بر پښتانه) زیاتره د فارس تر اغېزې لاندې راغلي او حتی د درانیو ژبه هم بدله شویده ، دوی همیشه د صفویانو د امپراتورۍ تر اغېزو لاندې وو. هرات او کندهار همېشه د دوی کلتوري مرکزونه وو . ختیز افغانان (لر پښتانه) چې الفنستون د ( بردرانیو ) په نوم یاد کړي دي د فارس له اغیز و څخه لرې پاتې شوي دي او زیاتره له مغلو سره په تماس کې وو ، چې له پېښور او کابل څخه یې د ډهلي حکمونه تطبیقول . دا ختیز او لویدیز

پښتانه ټول دافغان په نامه یادیږي او ددې کلمې استعمال ډېر لرغونی دی او ددې نښته دافغانستان د ۱۷٤۷ کال جوړ شوي دولت څخه هم دمخه ده .

دختیز و او لویدیزو افغانانو تر منځ دغرنیو سیمو او سیدونکي ژوند کوي او تریوه ځایه پورې دا لراو بر افغانان سره بېلوي . ډېر مشهور يې په سرحدي صوبه کې اوسیږي لکه اپريدي ، ختک ، اورکزي ، بنګښ ، وزير ، مسعود ، توري او داسې نور چې هر يو يې ځانګړې او بې شمېره خاطرې لري. ددوی ژبه په لهجوي لحاظ سره ورته والی لري او هره پښه په اصل کې ځان کرلاڼي بولي او ځان افغان نه بولي . دوی په عام ډول سره ټول پښتانه دي او هېڅکله د پرديو د تسلط لاندې نه دي راغلي او همېشه يې آزاد ژوند کړی دی او داخلک دي چې په قبیلوي کمربند سره یادیږي .

دلوړو سیمو پښتنو ( چې هندیان يې پټهان بولي ) همېشه د پېښور او داباسین په اوږدو کې نورو ښارونو سره راکړه ورکړه کړې ده او د کابل او غزني په لوريې ژبا ته مینه نه ده ښوولې ، نو ځکه ددوی اړیکي د پېښور دسیمې او لرې پښتو نخوا سره ټینګ دي او له درانیو یا نورو قبیلو سره دوی چندان راشه درشه نه لري او دوی بره پښتو نخوا ، خراسان بولي ، دخبرو له مخې دا دغرو قبیلې له لرو پښتنو سره ځان خپل شمېري مګر خپل غرني او قبیلوي خصوصیات هم ساتي ، په عمومي ډول لرافغانان او دلوړو سیمو پښتانه ډېر ورند کرښې ختيز ته د پاکستان په تعلقه سیمو کې اوسيږي .

زما کتاب پر اساسي ډول دلرو افغانانو او دغرنیو سیمو پښتنو په هکله دی . خو ددوی اصلي اړیکي له افغان څخه چا بېل کړي نه دي . شېر شاه سوري دشپاړسمې پیړۍ امپراتور او خوشحال خان ختک د اوه لسمې پیړۍ مبارز شاعر ، دا خلک دروه اوسیدونکي بللي شوي .

داضروري بولم چې يو مهم توپیر مو له یاده و نه وځي . ټول دسیاست زده

کوونکيْ د پختون او پښتون په کلمو سره يو څه ګيچ شوي دي . دا يو عام او ښچلی کار دی چې دلرې پښتونخواد پښتنو ژبه پښتو په نظر کې ونيسو او ددوی لهجه معتبره وبولو ، نو د پټهان او افغان دژبو معمولاً دوه شکله دي : شمال ختيزې قبيلې په پختو غږيږي او جنوب لويديزې قبيلې په پښتو خبرې کوي، ( البته ددوی په ژبه کې يوازې د «خ »او« ښ » توپير نه دی ، بلکې نور توپيرونه هم شته . ) ددغو دوو تر منځ د ، وېش کرښه نږدې له ختيځ نه لويديځ خواته تيريږي . دا کرښه له اباسين څخه په اټک کې له سهېل څخه پيل کيږي او له کوهاټ څخه تيريږي د ميران زو دره تر ټل پورې نيسي او بيا د کورمې د سيند سهېل ته تر آريوب او شترګردن غاښي پورې رسيږي . ددې کرښې شمال ختيځ ته زيږه لهجه ويل کيږي او داد پېښور دقبايلو ، دير ، سوات ، بونېر ، باجوړ ، اپريديو ، اورکزيو ، شينوارو ، بنګښو او توريو ژبه ده .

جنوب لويديز خواته پسته لهجه ويل کيږي . ټول دراني او غلجې په دې لهجه کې شامل دي . خو بيا هم دجلال آباد ، خوست ، وزيرستان ، بنو ، ديره جاتو او ځينو نورو سيمو غلجي زيږه لهجه لري . دژوب پښتنې قبيلې اودبلوچستان نورې سيمې چې کندهار ته نږدې دي په پسته لهجه خبرې کوي.

يوازې يو ه قبيله - دختکو قبيله پر دوو برخو وېشل شوې ده . زياتره يې دکوهاټ جنوب ته او سيږي او په پسته لهجه يانې پښتو خبرې کوي مګر داکوړې او مردان خلک دخوشحال خان ختک له زمانې څخه له يوسفزو سره نږدې پاتې شوي او په پختو خبرې کوي . د پښتنو دنوميالي او وتلي شاعر خوشحال خان ختک شعرونه چې په پېښور کې چاپ شوي دي په پختو ليکل شوي دي .مګر دخوشحال خان بابا اولادونه دا ادعا کوي چې دده اصلي نسخې ټولې په پښتو ليکل شوې دي . داسې ويل کيږي چې دا يو تاريخي حقيقت دی چې دخوشحال خان ختک قبيله له يوسفزو سره له مغلو څخه

مخکې نه ده ګډه شوې . موږ به دختکو خپله وینا قبوله کړو ، هغه دا چې دوی ټول پښتانه دي او همېشه په پسته لهجه غږېدل ، خو دا هم منو چې د شمالي ختک د پختو تر تاثیر لاندې راغلي او پختانه شوي دي . یانې پختو پر پښتو غالبه شوې ده .

د دې ژبې د دواړو شکلونو د جغرافیوي وېش په نتیجه کې د پېښور او شاوخوا سیمې د پختو دي او دوی د پېښور پر ځای پېخور وایي ، مګر دراني او برپښتانه پر پښتو ټینګار کوي . څه علمي دلایل شته چې دراني پښتانه پښتو په علمي څېړنو کې کلاسیک او پخوانی شکل بولي . څرنګه چې دا د پښتنو پر لرغوني تاریخ باندې یو څه اثر لري نو باید له یاده یې ونه باسو . زه په دې کتاب کې دا سې وړاندیز کوم : څرنګه چې پختو د پېښور لهجه ده که چیرې متن بل خاص مفهوم ونه لري نو په همدې نوم به ورته اشاره کوم .

پر دې سربېره یو بل توپیر قبیلوي توپیر دی چې تقریباً د پختو او پښتو تر منځ کربښه باسي او دا توپیر د غرنیو سیمو د کرلاني قبیلو ترمنځ دی . پختو ویونکي خپل ویښتان لنډوي او زیاتره ږیرې خریيي . د پښتو ویونکي ( دښار او سیدونکي او دلوست خاوندان مستثنی ) اوږده ویښتان پرېږدي ( څنې پرېږدي ) او د غوږو وشاته یې ډېر ښکلي ږمنځوي ، چې خټک مسعود او وزیر د دې ښه مثال کیدای شي . دوی څنې همېشه غوړوي او چرکه کوي او له تندي څخه یې په دوو برخو بېلوي او دلرګي کوچنۍ ږمنځې په کې ټومبي . د څنو خاوندان د پښتنو نومیالي غښتلي او دخبرو سړي ګڼل کیږي . دوی پښتو وایي . کله چې اتڼ کوي نو څنې غوړځوي او ډول ته ګډیږي .

په اتڼ کې توري او ټوپک شرنګی کوي . ختک ، مسعود او خوستوال په آتڼ کې شهرت لري . په جغرافیوي لحاظ د پښتنو وطن او سیمه په مشکل سره بیانیدای شي ، حتی که نقشه هم موجوده وي . دا سیمه دیوې اوږدې او نرې

ترانګې په شکل پرته ده چې د دوو موازي کمربندونو په څېر ده ، لومړی برخه ژوري او دويمه برخه يې لوړې لړۍ او له اباسين سره غزيدلې پرته ده چې په دې سيمه کې نږدې د جنوب او شمال پخوا امتداد لري خو لږڅه د غرب خواته ميلان لري. د جنوب خواته لوړې له دريا څخه لږڅه لرې او شاته پرتې دي ، د دې لوړو شاته د ايران لويه سنطحه پرته ده چې د سليمان له غرو څخه پرته نورې او په سمندر ته نه رسيږي.

لومړی کمربند د دريا په اوږدو کې له واديو او هوارو سيمو نه جوړ شوی دی. دويم کمربند د لومړي کمربند پر سر باندې ولاړ دی او د سليمان د غره لړۍ تشکيلوي چې د هندوکش د غره د تريچمير له څوکې نه مخ په جنوب غزيږي . په دې پرونقطو کې د اغر د اباسين خواته ګوتې او پنجې وباسي ، حتی څو ځايه د اباسين او په پرې کوي او د ګوتو تر منځ ښکلې او سمسورې وادۍ تشکيلوي چې تر ټولو لويه او سمسوره وادي د پېښور وادي ده . وړاندې جنوب خواته نورې وادۍ هم شته لکه د کوهاټ ، بنو ، مروت او ډېره جاتو چې کله دا وادۍ د دامان په نامه هم ياديږي . د پېښور شمال ته نورې هوارې نه شته مګر د سړو سطحو لوړ غرونه دي چې تر هندوکش پورې لوړ خيږي .

د سليمان زنځير تقريباً د شمال ختيځ او جنوب لويديځ په استقامت اوږديږي مګر زياتې ځانګې لري تر ټولو مهمه ځانګه د سپين غر ده چې لوړه څوکه يې سيکارام نوميږي او د کورمې شمال ته پرته ده . او ۱۵۰۰۰ فټه لوړوالی لري . دا ځانګه له ختيځ څخه د لويديځ په لوري پرته ده او يوه برخه يې د ډيورند کرښه تشکيلوي ، د سليمان د غرو دا لړۍ د هند خواته د ايران ، ختيز جغرافيوي چت جوړوي او د دې غره د پاسه زيات مداو جزر شته ، مګر په نتيجه کې ايراني څېره او ايراني اقليمي تاثيرات له ختيز حدود آخوا تر اباسين پورې پراخ شوي دي او ځينې بيا وايي چې تر لاهور پورې رسيږي . هغه څوک چې

دلاهور له خوا څخه راځي او پښتونخوا ته ننو وځي داتمسفير په بدلون اوچت پوهيږي ، لکه ماچې دمخه ويلي دي په مارگله کې ٤٠ ميله مخکې تر دې چې له اباسين څخه سرې پورې وځي ، دټکسيلا دپخواني او لرغوني ښار ـ گوټي په شاو خوا کې دهوا بدلون ليدل کيږي ، دلته سړي ته دکورني خاورې بوی ورځي. ( لکه ماڼو چې له فرانسې څخه مخ په انگلستان ځي د دووژ Dovz دکمرونو په ليدوسره ځان په انگلستان کې بولي ) . داپښتو نخوا دپښتنو خاوره ده .

کله چې سړی په اټک کې له اباسين څخه تيريږي ، داوبو څپې مستي کوي او دسړي زړه وړي . داباسين اوبه دلته نالې نالې او ځانگې ځانگې کيږي او له غرونو څخه راوځي ، دلته دپېښور وادي داسې ښکاري لکه کلا ، چې دغرونو ديوال پرې راتاو شوي وي . په رښتيا هم په نقشه کې دا غرونه ديوې دايرې په څير ښکاري ، خو يوازې داباسين خوله په کې راپرې شوې ده . دپېښور دا وادي څلور دروازې لري . يوه يې همداده چې بې له کوم کنډو څخه پېښور ته رسيږي او درې نورې يې په غرونو کې راوځي . دادرې غاښي دخيبر ، کوهاټ او ملکنډ غاښي دي ، دخيبر غاښی مخامخ دلويديځ خواته پروت دی چې دتاترې دغرونود « لکه سر » دلاندې پروت دی ، دکابل لار له همدې کنډو څخه تيريږي او ترسکو پورې رسيږي . دکوهاټ کنډو همېشه د ( درې ) او ياد (غاښي ) په نوم ياديږي او جنوب لويديځ ته موقعيت لري ، او دگوټې پر بند باندې دجنوب خواته اوړي او جنوبي ضلعو ته سړک ورڅخه تيريږي او دملکنډ غاښي شمال ته پروت دی ، په دې لار کې له لومړی لړی څخه په اوښتو سره دسوات ښکلې درې ته رسيږي او دالار دهميشنيو شنو ځنگلونو ډک دير او چترال خواته ورځي او دپامير او چين پورې رسيږي . دوه لوی دريابونه دکابل سيند او دسوات سيند په دې لوړو کې يو له بل سره تنگې نالې

جوړوي او د لارو د جوړولو لپاره خنډونه پیدا کوي ، کله چې سرې دې وادۍ ته ننوځي ګوري چې دادواړه سیندونه په پنځو کانالونو بیلیږي ، او څه لار وړاندې بیا سره یو ځای کیږي او لنډې سیند ورڅخه جوړیږي او د مرکزي آسیا اوبه یې اباسین ته ورګډیږي . د یو ځای شویو کانالونو اوبه خورا ډیرې دي تقریباً د اباسین په اندازه اوبه لري . د سوات د سیند مسیر پخپله یوه جغرافیوي پدیده ده . فقط د ملکنډ په شمال کې چې د یوې کوچنۍ لړۍ په واسطه د پښور له وادۍ څخه بیلیږي لرشرق نه غرب خوا ته بهیږي خوسمې ته نه راوځي ، بلکې ژور ځیږوبونه جوړوي او کږه وږه لاره لنډوي او تقریباً د U ( انګریزي یوتوری) شکل جوړوي . له پنجکوړې نه وروسته د لویدیځ له خوا وادۍ ته ننوځي او ختیځ خوا ته بهیږي . د لته کوم ځای کې چې طبیعت ناکام شوی دی انسان څه کړي دي ؟ ملکنډ ته یو تونل ایستل شوی دی چې د سوات اوبه وادۍ ته د کرنې او بریښنا د تر لاسه کولو لپاره په کار اچول شوي دي او د صوبې د صنایعو لپاره یې انرژي برابره کړې ده .

په داسې ځمکه کې اقلیم او منظره بدلیدونکي دي . په ژمي او پسرلي کې له لاندینۍ وادۍ او هوارو څخه به بل ښایسته او زړه وړونکی کوم ځای نه وي . د ژمي د لمر وړانګې او هغه نرۍ نسیم چې راساً له لوړو واورو ډکو غرو څخه راکوزیږي ، د ژوندانه لپاره خاص خوند لري . په دې وادۍ کې چې هسکې او ټیټې یې ډېرې او سیندونه او ویالې هرې خوا ته بهیږي دونو په منځ کې هلته او دلته کلي او کورونه ښکاري چې نیم په ونو پټ دي . د غنمو ، اوربشو او شفتالو شنه فصلونه او لوی پټي د موسم په بدلون سره ځانګړې او بېلابېلې ځېرې ښیي ، د ګنیو او جوارو موسم بېل رنګ لري او داسیا په لراوبر کې داسې ښکلې سیمه نه شته ، داسې بریښي چې څومره داسیمه ګورې ، همدومره په هروار کتو (لیدو) سره ښایسته ښکاري . شمال ته د یوسفزو سیمه پرته ده چې

يو وخت ښار او بيكاره ځمكه وه خو د كانالو په جوړيدلو سره دا سيمه سمسوره شوه او د جوار يو د ښوحاصلاتو آباده ځمكه شوه . د كانالو په څنګ كې دغونډيو لاندې څاګانې او ويالې ، دغويانو كراچۍ او ديوې غوبې او بزګري په پخواني شكل سره دوام لري .

د ختيكو غرونه جنوب ته پراته دي . لوڅې او بربنډې غونډۍ دې خو دغرونو منظره يې نړيوال ښايست لري . د پېښور وادي يې ۶۰ ميله په مخكې پرته ده او د پېښور د سيمې د بامبو ټي شكل لري او مخې ته وړاندې په لرې واټن كې دسترګو تر نظر وړاندې دسپينو و اورو غوړيدلې پرده ښكاري ، كله چې سړى دژمي په سړه هوا كې له چيرات څخه وګوري : لويه وادي چې په كانالونو او كړو وړو سيندونو ښايسته شوې ده او هلته او دلته دنقرې په شان سپينه پړكه كوي ، ښكاري ، په شمال كې يې شا په ښكلو دنګو غرونو تړل شوې ده او داسې منظره ده چې تر ډيره وخته پورې له ياده نه وځي . په لرې شمال كې د تريچمير لويه او لوړه څوكه ځليږي . په شمال ختيځ كې تقريباً ۱۲۰ ميله لرې د نانګا پربات پراخ تېتر ښكاري چې له اسمان سره ډغرې وهي . په اوړي كې چې دوا دى تيتې غونډۍ له كښت نه ډكې ښكاري جوار ، وريجې ، اوربشې او ګني مخ په پخيدو وي تودوخه دومره زياته وي چې په هيڅ ډول دزغم وړ نه وي سپېرې لارې او له اغزو ډكې سيمې داسې ښكاري چې دې سيمې ته ښيرا شوې ده ، خو كله چې د څوګريو له مزله څخه وروسته لوړو ته ځان ورسوې نو هلته اوړى داسې ښكاري لكه چې سړى په انګلستان كې دوبى تيروي .

« بل لوى توپير دادى چې زياتره غرنۍ سيمې د كال په اوږدو كې د ختلو او كوزيدلو په وخت كې دهر چا لپاره غټ خنډ وي او په غرونو كې دالارې ډيرې كږې وږې پورته كيږي او دمار په شان تاويږي . » دا څوتكي د كابل له لارې

سره د پرتلې په مقصد لیکل شوي دي . دا ډول لارې په نورو ځایونو لکه وزیرستان او ژوب کې هم شته خو چې له لویو څخه سرې راښکته شي نو سملاسي سیمه اواره او پراخیږي ، مګر او به کمې او خال خال ونې ، ځینې باغونه هلته او دلته په نظر راځي او د هر څه د کمښت احساس کیږي . د دې پیژندنې لپاره سړی مجبور دی چې د شمال له خوا د ټل له سوزونکي غونډیو څخه د کوزې کورمې خواته ولاړ شي ، څو ګړی وروسته بیا سړی داسې یوې سیمې ته رسیږي چې د جنت بوی ور څخه راځي ، دویالو په غاړه یې ولې ښکاري او سیمه تکه شنه وي او داوبو شرهاری اوریدل کیږي او دا د پاړاچنار سیمه ده .

د دغو دوو کمربندونو لویدیځ ته هغه ځمکې پرتې دي چې د سرحد آخوا ګټل کیږي او په سیاسي لحاظ د غه سیمې د ډیورنډ په کرښې سره بیلیږي ، دا غرنۍ سیمې جګې څوکې لري ،او ځینې څوکې یې له ۱۰۰۰۰ څخه تر ۱۶۰۰۰ فټو پورې لوړوالی لري او د غو هسکو او لوړو ته له هرې خوا ختل ډیر ګران دي . په ژمي کې دیخ بخر کي اوري او په اوړي کې د بټۍ په شان تاواو تودوخه لري . دغرونو تر منځ داسې ښایسته او بډایې درې پرتې دي چې د کشمیر له درو سره سیالي کوي . په دغه سیمه کې اوه مشهورې درې دي چې داشغالګرو د قوتونو او سوداګرۍ لپاره اساسي لارې تشکیلوي چې داباسین دوادۍ او د منځنۍ اسیا تر منځ پرتې دي ، دا د خیبر او ملکنډ درې دي چې مخکې یې یادونه شوې ده او پیژنو یې . دانورې درې د شمال له لوري د جنوب خواته په دې ډول دروپیژنم : ګنداب چې د مومندو تر منځ تیریږي . د بنګښو یا پیواړ دره چې د کورمې له لارې ، د ګومل او توچي لارې په وزیرستان کې او د بولان لار چې د کویټې له سیمې څخه تیریږي ، د کویټې له لارې پرته دا ټولې لارې د نړیوال ترافیک پر مخ تړلي دي مګر قبیلوي کاروانونه له هغو نه ګټه

اخلي ، دمومندو ، بنگښو او توچي لارې سرکونه هم لري چې له اوارو سيمو څخه دروته ورننوځي خو افغانستان ته نه تيرېږي . د ملکنډ لار تر چترال پورې رسيږي مگر بين المللي لويه لاره نه ده . دا لارچين يا روسيې ته د تيريدلو لپاره مساعده نه ده .

لرغونو بېلابېلو امپراتوريو ادعا کړې وه چې د سرحد سيمې يې تر اداري لاندې راوستلې وې ، خو دا سمه خبره نه ده ،يوازې يې داوار سيمو خلک او يوه يا دوه درې تر کنترول لاندې درلودې . يوازې د مغولو لويو پاچاهانو هڅه وکړه چې دغرو خلک رعيت کړي مگر بريالي نه شول . دا موضوع به وگورو ،حتی دوی ونه ي شول چې دلوړو سيمو د سړک په اوږدو کې خپل واک وساتي . د تگ راتگ په وخت کې دوی مجبور وو چې د زياتو لښکرو په بدرگه تيرېږي ، ځکه چې سړک هم د قبيلوي خلکو تر پوره کنترول لاندې و . د حقيقت په درک کولو سره پوهيدای شو چې د قبيلوي لوړو سيمو کمرښند دهېڅ پوره کنترول لپاره په واک کې نه و . د دوی دازادۍ سمبول دا هم دی چې هېڅ له دوی څخه ماليه او ټکس وانه خيستلای شو . نو دا ښه دليل کيدای شي چې دوی همېشه د ښکېلاکگرو په مقابل کې لکه سکندر مقدوني ، چنگيز خان او گوډ تيمور په گډون ، مقاومت کړی دی .

دلته د سکې بل مخ داسې ښکاري چې د غې قبيلوي آزادۍ دوی له هرچا څخه لرې ساتلي دي او د دوی تاريخ « نه ويل شوی » او « نه ليکل شوی » پاتې دی ، تر ۱۷٤۷ کال پورې د دوی ملي حکومت نه و . کومه سکه يا تاريخي سند نه شته ، يوازې د هغه چاسکې او تاريخي اسناد شته چې د دوی پر سيمو يې حکومت کړی دی. حتی تر پنځلسمې پيړۍ پورې د پښتنو ژبه د ليک ژبه نه وه . داسې پوره اسناد هم نه شته چې د پښتو ادبيات له اولسمې پيړۍ نه د مخه وښيي ، نو ځکه د پيښو او واقعاتو پوره تاريخي ريکارډ

تراوسنۍ زمانې پورې نه شته ، پښتانه ، نه یادګاري ځلي جوړوي او نه دچاکړه وړه لیکي ، نو ځکه دپښتنو په سیمو کې یادګاري اسناد نه شته . مورخین مجبور دي چې په غیر مستندو اسنادو ،نکلونو ، لیکنو او شفاهي ادبیاتو ، دحاکمو کورنیو پرسکو او نورو اثارو باندې اتکا وکړي او دهغه چا پر تاریخ باندې وڅرخیږي چې دافغان اوپټهان پر خاوره تېر شویدي او زیاتره دپټهان او افغان پر کیسو باندې ډډه ولګوي .

سناریو خو ولوستل شوه دستیج پرده هم پورته شوه ، نو زه باید لوبه ونه ځنډوم .

زه یوشې زیاتوم ، دپښتون ( پټهان ) قبیلوي دود او دستور دټینګښت له کبله په هره قدمه کې خاصه ټولنه جوړه کړې ده . په پښتنو کې له شپانه او کوچي څخه نیولې بیا تر ننني نوي قانون پوه ، انجینیر ، ډاکتر ، اداره چي او سیاست پوه پورې هره طبقه شته . له کېږدۍ او کاروان نه نیولې بیا دلویدیځ خیال او فکر پورې دژوندانه سطحه بدلیدونکې ده . نن دلرې پښتونخوا پښتانه هڅه کوي چې لوړو موخو ته ځانونه ورسوي . نن په دوی کې ټولنیز سیاسي بدلونن او پرمختګ لیدل کیږي . دپېښور دښار د ۲۰ میله شعاع په څرخ کې دپښتنو دژوندانه او پوهې بدلون پوره ښکاري او دژوندانه او انساني ټولنې اثار له ورایه ښکاري . ښاغلي جان مورلې { Mr. john Morely } لیکي : دلته د تاریخ اوږد کاروان دی چې بهیر یې له پنځمې پیړۍ نه شلمې پیړۍ ته رارسیږي . ددې لپاره چې هغه څه له ورایه ووینو چې زموږ دلویدیځ له تاثیراتو څخه نسبتاً خوندي پاتې شوي دي دا به دژوندانه ډیره هیجاني تجربه ګڼل کیږي . دادشمال لویدیز سرحد صوبې ( پښتونخوا ) دجادو یوه برخه ده .

# لومړۍ څپرکی

## ریښې او شجرې

د پښتانه (پټهان) لپاره تر هر څه نه غوره مباحثه د شجرې پلټل دي . که د کلي په هوجره کې وي که د ښار په سرای کې ، که په ښوونځي کې وي یا په پوهنتون کې ، که پر ډوډۍ ناست وي او یا پر لار روان وي نو د خلکو ، مبدا اصلیت ، ریښې ، اړیکي ، خپلوي او دوستي به څیړي . بحثونه یې دوستانه مگر جدي وي . ددوی مباحثه د دوو تاریخي زمانو په هکله : تر اسلام دمخه او هغه دوره ( ۶۲۲ م ) چې د حضرت محمد مصطفي صلی الله علیه وسلم له هجرت سره سمون خوري ، زیاتره ډېره توده وي .

له اسلام دمخه زمانې په هکله دا د حیرانتیاوړنه ده چې د بحث په وخت کې اسلامي رواجونه چې تاریخي بڼه هم لري ، زیاتنه توجه ورته کیږي ، په دې توگه مذهبي او دیني اړخ دوی ته تل ارزښت لري لکه په قرآن کریم کې هم

د یهودو په هکله یادونه شته . ځینې بې سنده کیسې یو څه تاریخي بڼه لري او څه هم خیالي دي خو یوله بل سره تړلي دي . دوی ادعا کوي چې پښتانه د داوذعلیه السلام او سلیمان علیه السلام اولاده دي . څو پېړۍ وروسته د دوی په کیسه کې د بخت النصر (Bakhtunnasar) یا (Nebuchadnezzar) نیبو چادنظار یادونه شوې ده . دوی وایي کله چې یهود خواره شول د افغانانو نیکه ګان په ختیځ کې تر ښکېلاک لاندې پاتې شول او د بیت المقدس په لوري بېرته ستانه شول . ځینې یې د غور غرونو ته (نننی هزاره جات) ته په شا شول او ځینې یې د عربو د مکې په شاوخوا کې ځای پر ځای شول . دا دواړه میشتې ډلې د بني اسرائیل یا بني افغانه په نامه یاد شوي دي . دا دودیزه خبره باید زیات تفصیل ولري ، مګر جدي لوستونکي دا یوازې یوه کیسه بولي او بس . زه باید د تلې په بله پله کې یو څه تول واچوم . دامو په یاد وي ، لومړی داچې د کابل د ځینو او سنیو لیکوالو په استثناچې هغه د هتلر تر تاثیر لاندې د Nordic (آرین نژاد) تیورۍ ته تمایل لري نور زیات شمیر پټهان او افغان لیکونکي عقیده لري چې تر اسلام پورې دازیاتې عرفي او رواجي خبرې دي چې قبیلوي شجره یې خیالي ده . الفنستون دا پخوانۍ کیسې بولي او وایي چې د پښتنو د نیکه ګانو شجره هرڅه چې ده خو مهمه داده چې قبیلوي شجرې زیات ارزښت لري او ټول ویشونه او قبیلوي داخلي حکومتونه پر همدې باندې متکي دي .حتی د اسلام دایرة المعارف (اینسایکلوپیدیا) د دغو شجرو ارزښت تائیدوي او کوم رواجونه چې د پختو او پښتو ویونکو خلکو تر منځ په اوه لسمه پیړۍ کې ثبت شوي دي فعلاً ویش او قبیلوي شجرې (کورنۍ -ریښې) باندې د هماغه پر اساس ټینګار کیدای شي اود کورنیو او قبیلو تر منځ اصلیت او مبدا چې یو له بله توپیر لري راښیي ، هغه باندني غړي چې کلونه د پښتنو په منځ کې ژوند وکړي

ورته څرګنده به شي چې د شجرو او ځينو تاريخي احتمالاتو د نږدې والي نښې به تر اسلام د مخه د مرکزي اسيا له تاريخ څخه راوباسي ، چې هغه هم له باندينيو منابعو څخه سرچينه اخلي ، بالاخره شجرې معمولاً د ننيو اختلافاتو د مشاهدې تائيد موږ ته راپه ګوته کوي.

د دغو دودونو اصلي سرچينه يو کتاب دی چې مخزن افغاني نوميږي چې د جهانګير د دربار يوه منشي نعمت الله ليکلي دی او احتمالاً پر ۱۶۱۲ م کال يې تکميل کړی دی ، دا کتاب د خارکوف پوهنتون د ختيزو مطالعاتو د پروفيسور برنارد دورن ( Bernard Dorn ) له خوا په انګريزي ژبه پر ۱۸۲۹ کال ژباړل شوی دی ، حتی نن ورځ هم د سرحد د صوبې په هکله د روسانو له خوا ليکنې شوې او کيږي . د تاشکند پوهنتون ديوه ډاکتر اثر د پښتنو په هکله د يادونې وړ دی او ده ته د پښتو توف نوم ورکړل شوی دی . د نعمت الله ليکنې وروسته په ډول ډول شکلونو اړول شوې دي . په اتلسمه پيړۍ کې د خلاصة الانساب « Geneological Abstract » په نوم اړول شوی اثر د يادونې وړ دی . دا ټولې شجرې هغو افغانانو ليکلي دي چې د مغولو په دربار کې يې نوکرۍ کولې . دوی له پختو او سرحدي سيمو سره اشنانه وو او د سرحد سيمې ته دوی د « روه » په نامه اشاره کړې ده . دوی ټولې ليکنې په پارسي ژبه کړي دي نه په پښتو .

له دې ټولو نيمګړتياوو سره سره دا ليکنې او شجرې ګټورې دي . که يو ټکی ياد کړم چې د افغان يا پټان اصطلاح له تبعيض پرته استعماليږي ضرور نه ده چې د پښتنو د مشر تير د پيژندنې لپاره ډيرې کړښې ووايو ، زه به وروسته دا پوره شرح کړم او دا ځانګه د سړبن ځانګه ده . او داسې ويل کيږي چې دا اصلي افغانان يانې اصلي بني اسرائيل دي چې له نورو ځانګو سره توپير لري.

زه دغې دو دیزې کیسې ته راګرځم . دا په عجیبه ډول دانجیل له تاریخ سره تړل کیږي . په زاړه کتاب « old tes tament » کې داسې کیسه ده چې یهود له ابراهیم علیه السلام څخه بیا ترساول پاچا ( King saul ) چې د طالوت په نامه هم یادیږي شجره لري او ددې کیسې په منځ کې دلته نور نکلونه راغلي دي . په عمومي ډول د مسلمانانو کیسه د یهودو له متن سره ډېر توپیر نه لري ، مګر د ساول ( طالوت ) له زمانې نه بیا د یهودو تر اسارت پورې نوي عناصر په دې تاریخ کې ورګډ شوي دي .

دافغان د تاریخ لیکوال ټینګار کوي چې ساول پاچا یو زوی درلود چې هغه ایرمیا « Jeremiah یا Irmia » نومیده او هغه یوزوی درلود چې افغانا نومیده ، مګر د یهود په متونو کې د هغه ذکر نه دی شوی . ایرمیا نږدې له خپل پلار ساول پاچا سره په یوه زمانه کې وفات شو . دده زوی افغانا د داود علیه السلام له خوا وروزل شو او وروسته د سلیمان علیه السلام په زمانه کې دوسله والو قواو عمومي قوماندان ټاکل شوی و . له دې څخه وروسته بیا د یهودو تر اسارت پورې څلور پیړۍ وقفه راځي او وروسته د بخت النصر یادونه کیږي . دلته اټکل کیږي چې دویم اسارت ته اشاره ده چې په ۶۰۰ ق م کې منځ ته راغلی و چې د بیت المقدس د یهودا ( Judah ) زمانه وه . او لومړی اسارت له دویم اسارت څخه نږدې شل کاله دمخه و چې د شا لمنصر (Shalmaneser) د سماریا د اسور له خوا تر سره شوی و . که چېرې دا خبره سمه وي نو دا په ډاګه کیږي چې بني اسرائیل د افغانا زامن له لسو ورکو شویو قبیلو څخه نه دي ، مګر سره له دې هم دلسو ورکو شویو قبیلو ملاتړي ډېر دي . ددې ملاتړ لومړی ځل سرویلیام جونز (Sir wiliam jones) کړی دی چې د وارین هیستینګز (Warren Hastings ) په زمانه کې لوی ختیځ پیژندونکی و ، دی وایي

چې افغانان د اسرائیلو له لسو ورکو شویو قبیلو څخه یوه قبیله ده چې د اسدراس ( Esdras ) پیغمبر په زمانه کې له اسارت څخه تښتیدلې او د اسارات « Asarath »یا ازارات » په سیمه کې یې پناه اخیستې وه ، چې دزیاتو پوهانو له خوا ( اسارات یا ازارات ) د ننني هزاره جات په نامه تائید شوي دي .هزاره جات دغور دغرنۍ سیمې ادامه ده ، مګر بخت النصر ( Nebuchad nezzar ) ته دافغانانو استشاره له دې نکل سره اړیکې نه لري . حقیقت دادی چې د اوه لسمې او اتلسمې پېړیو مسلمانو مبصرینو ته د یهودو لرغونی تاریخ پوره څرګندنه دی. دوی د اسرائیل او یهودا تر منځ توپیر نه کوي او حتی له دوو اسارتونو څخه هم خبرې نه کوي .

خدای تعالی ( ج ) ښه پوهیږي خو بیا هم ویل کیږي چې دافغانانا زامن څه دغور غرونو ته ولاړل ( ننني افغانستان ) او ځینې یې دعربو دمکې شاوخوا ګاونډیو سیمو ته ولاړل . دالفنستون نظر ته چې ځیر شوم یو څه بې ربطې په کې شته ، خو بیا هم له احتما ل څخه لرې نه ښکاري چې داسرائیلو له دولس قبیلو څخه لس هغه قبیلې دي چې په ختیځ کې پاتې شوي دي او بېرته جودیا ( Judea ) ته نه دي ستنې شوي او کیدای شي چې افغانان دهغو بقایاوي. په اسانۍ سره ویلای شو چې یوه قبیله پایته رسیدلې او پر ځای یې بله قبیله را زیږیدلې ده ، دمکې دخلکو په رابطه به دومره ووایم چې د پیغمبر (ص) په زمانه کې هم یهود هلته ډیر وو او یوه لویه څانګه یې دخیبر په نامه یادیدله ، او په افغانستان کې نن هم یوه سیمه دخیبر په نامه یادیږي خو دخیبر په نامه کومه قبیله نه شته ، مګر لیکونکی داسې زیاتوي چې ددوی دود او دستور بیخي بېل دی او یو له بل سره ورته والی نه لري ، د مثال په توګه : راځئ له یوه یهودي څخه وپوښتو : آیا یهود و خپله عقیده بدله کړې ده ؟ داسلام تر ظهور پورې دمکې یهودان یهود پاتې شوي ؟ مګر هغه یهودان چې غور ته تللي دي

بیا مسلمان شوي دي ، ددوی د یهودیت په هکله کوم سند نه شته .

الفنستون هم په دې هکله شکمن و . مګر یو شمېر نور څېړونکي چې په پښتو او مردان کې دهوجرو پر داستانونو اتکا کوي او همدارنګه د نا پښتنو څېړونکو پر لیکنو باوري دي ، په دې کې لومړی الکساندر برنیس (Alexander Burnes) دی . هغه داسې یو مبصر دی چې قضاوت یې پر تعقل او استدلال بنا نه دی ، دی وایي چې افغانان د یهودو په مقابل کې کلکه کرکه لري او دا رښتیا ده ، د دې تکي مقصد دا دی چې لااقل پښتانه ځانونه په یهودو نه ورګډوي ، اما دا چې د یهودو ځینې قبیلې رښتیا هم ختیځ ته راغلي دي نو ولې پر دې اعتراف ونه کړو چې افغانان له دغو قبیلو څخه یوه قبیله ده او دوی دلته اسلام قبول کړی دی . په انګریزانو کې د بني اسرائیلو قبیلوي عرف ته متعقد راورتي (Raverty) دی . دی د هخامنشیانو لومړی پاچا سیروس (Cyrus) ته اشاره کوي چې دلوی پاچا دا عادت و چې د ضرورت او لزوم په صورت کې به یې قبیله ټوله له یوه ځای څخه بل ځای ته ولېږدوله ، یهود ډېر کله شخ خلک وو ، نو کېدای شي چې یهودیې هم کم نفوسو ختیزو سیمو ته جبراً لیږدولي وي چې له دوی څخه څه خطر متوجه نه شي او د سیروس له حاکمانو څخه یې ځانونه ژغورلي وي. په حقیقت کې بې له دېخوا څخه بلې خوا ته د دوی د تېښتې لارهم نه وه .

د برنیس استدلال هم یوازې پر دودونو بنا دی او کوم تاریخي اساس نه لري. راورتي د پټان د فولکور خورا پوه شخصیت دی او په دې هکله د ډول ډول ځانګو په باره کې دده معلومات ډېر دقیق دي . مګر دده فکر او ماغزه ټول د ننه د پښتنو په داخلي مفکورو سره ډک دي ، له باندنیو مفکورو او نظریو څخه یې ګټه نه ده اخیستې او حتی هر څه یې رد کړي دي ، ښایي باندنیو نظریو به له ده سره لامرسته کړې وای او دده څېړنې به لا غني وای . په دې

خاص ارتباط چې يهود همېشه يهود پاتې شوي دي ده څه نه دي ليکلي او يهودي راهبانو د سيروس اداره همېشه ستايلې ده ځکه چې ددوی په گټه وه ، همدا رنگه د افغانانو کيسو د سيروس نه ، بلکې د بخت النصر يادونه کړې ده چې يهود ( بني اسرائيل ) يې غورته ليږدولي دي ، دلوی پاچا په خوښه زيروبابل (zeru bbabel) بيت المقدس ته راستون شوی و ، نو په دې صورت کې به دی وروستی سړی وي چې خپل وطنوال يې د غور غرونو ته لېږلي وي ، که په رښتيا سره ده دا کار کړی وي نو يهودي مورخين به چوپ پاتې نه وای او په دې رابطه به يې هرو مرو څه ليکلي وای .

دبابيلان له اسارت څخه بيا د حضرت محمد (ص) د ښايسته لمر تر راختلو پورې دولس سوه کاله تېر شوي او په دې موده کې مورږ بل څه نه دي اوريدلي فقط د بني اسرائيلو د تگ او د غور او شاوخوا سيمو کې ددوی د ځای پر ځای کيدو په هکله څه شته چې کابل - کندهار او غزني هم ورزيات شوي او له کفارو سره جنگيدلي او هغوی يې وژلي دي ، موږ اوريدلي دي چې د محمود غزنوي تر زمانې پورې د حضرت محمد ( ص ) له پيغمبرۍ نه وروسته ، دوی څلورپېړۍ د غور او شاوخوا غرنيو سيمو کې اوسيدلي دي . مگر په گومان سره دا قبلوو چې دوی اسلام منلی و او د افغان کيسه يې تعقيب کړې ده .

افغان حوادث ليکونکي وايي چې خالد بن وليد انصار د حضرت محمد (ص) نږدې ملگری و چې ډير فتوحات يې وکړل او هغه د مکې له اوسيدونکو څخه د افغانانا اولاده شميري . ( نور ټول مسلمانان هغه د مختوم کورنۍ د قريشو د قبيلې غړی گڼي . ) وايې چې خالد کله په اسلام مشرف شو نو سوريه او عراق يې فتح کړل او بيا يې د غور بني اسرائيلو ته يا پخپله مخه کړه او يا يې ليک ورواستاوه او هغوی يې اسلام ته راوبلل او د حضرت محمد (ص) تر بيرغ لاندې يې بيعت ور څخه وغوښت . په نتيجه کې يو شمېر

استازي دغور دافغانانو په نمایندګۍ دقیس تر مشر تابه لاندې مدینې ته ولاړل چې حضرت محمد (ص) ووینې . وایې چې دا قیس په اوه دېرشم نسل کې ساول پاچا ته رسیده او نږدې اوه لس سوه کاله موده کیږي . قیس او دده ملګرو دحضرت محمد (ص) په نامه سختې جګړې وکړې چې په دې ترتیب سره یې وړاندې کوم .

حضرت محمد صلي الله علیه والسلم پر قیس باندې ډیر شفقت وکړ او هر ډول دعاګانې یې ورته وکړې او پر هر یوه باندې یې اسلامي نوم کښېښود . څرنګه چې قیس عبراني نوم دی نو حضرت محمد (ص) ده ته د عبدالرشید نوم ورکړ او همدارنګه یې دوی ته دملک لقب هم ورکړ ځکه چې دوی دملک طالوت له اولادو څخه وو . حضرت محمد (ص) دوی ته وویل چې اله تعالی به قیس ته دومره اولادونه ورکړي چې تر هر چا څخه به دوی ډیر وي او په ایمان او عقیده کې به داسې کلک وي لکه دبېړۍ دجوړښت اساسي تمبه . دبېړۍ چلوونکي هغه تمبه پټان ( pahtan ) بولي . نو په دې حساب ښایي دوی ته دپټان لقب هم ورکړ شوی وي .

بالاخره دپټان مینه داسې شوه چې ددوی پر ضد یې کار وکړ او پیغمبر (ص) دوی ته ښېرا وکړه او ددوی ژبه یې ددوزخ ژبه کړه . حال دا چې عربي ژبه دجنت ژبه ده .

داټولې خوندورې خبرې دي ، خو ډ دغو کیسو څخه دډهلي دځراغ دټولوبوی ځي . ددربار افغانانو خپلې شجرې بیانولې او ځان ته یې کریدټ ورکاوه حال دا چې پښتو یې نه وه زده او په پارسي به غږیدل . دوی به دمغول پاچا دخوشحالۍ او خندولو لپاره هر څه ویل . دې درباریانو خپله مورنۍ ژبه پښتو هېره کړې وه . او دپټان کلمه یې دځان په هکله له سمندري اصطلاحاتو سره تړلې او دتل په شان به یې په دربار کې مسخرې جوړولې . هیڅ افغان که

پښتو وايي او که پختو ، ځان پټان نه بولي . دا کلمه هندي اصطلاح ده ، د پښتنو دوادې داوسيدونکو ژبه پختو ده او خلک يې پختانه ( پښتانه ) دي . د پټان کلمه هنديانو جوړه کړې ده . همدارنګه په اوسني پاکستان کې د ملک کلمه يوازې د پښتون لپاره نه استعماليږي ، بلکې په ټولو افغاني قبيلوُ کې د ملک کلمه په پراخ مفهوم استعماليږي او معمولاً د قبيلې او کلي مشر ته د ملک خطاب کيږي او حتی تر پنجاب پورې مروجه کلمه ده او په عربي کې ملک پاچا او شهزاده ته وايي .

اوس مورږ بېرته قيس يا عبدالرشيد يا پټان ته راګرځو ، تاريخ ويونکي د پښتون قوم دده له هغه شخصه راشميري . دده په هکله ويل کيږي کله چې حضرت محمد (ص) دی رخصت کړ نو بېرته غور ته راستون شو او داسلام په پراخوالو کې يې ډېرې بريا وې تر لاسه کړې او د هجرت پر ۴۱ م کال د ۸۷ کالو په عمر وفات شو . ده درې زامن درلودل . مشر زوی يې سړبن ، دويم يې بېټنی او دريم يې غرغښت و . دا درې واړه د پښتنو يا پختنو د بيلابيلو څانګو پلرونه دي . تاريخ ليکونکي له داسلام شخه د مخه د دوی شجره او تاريخ پای ته رسوي . اوس ددې وخت رارسيدلی دی چې د شجرو له څېړنو څخه د مخه د دوی کيسه يو څه نوره هم په غور سره وګورو .

ددې کيسې خيالي اړخ پوره څرګند شو . حتی د قيس او دده د ملګرو نکل هم د غښتو باوري اسلامي منابعو له خوا رد شوی دی ، مشهور سياح البيروني او درباري العتبي ( Alutbi ) دواړه د محمود غزنوي د يوولسمې پيړۍ د زماني خلک دي او د قيس نکل يې رد کړی دی. د دوی ليکنې ښيي چې له قيس څخه څلور پيړۍ وروسته د کابل ولايت لا مسلمان شوی نه و او کابل د غزنويانو په وخت کې په اسلام مشرف شوی و . د جيپال هندو شاهانو پاچاهي تر کابله پورې وه . محمود غزنوي د سليمان د غره کافرو افغانانو پر ضد

مجبور شو چې جګړه وکړي ، حتی تر ۱۱۹۲ م پورې کله چې د مسلمانانو او د شمالي هند د هند و شاهانو تر منځ کلکه جګړه وشوه او معزالدین محمد غوري بن سام د هند حکمران پرېتوي راج ته ماته ورکړه . افغان سپاره د پرېتوي راج تر حکم لاندې د افغانانو پر ضد جنګېدل . یانې په دې زمانه کې افغانان د دواړو خوا و په لښکرو کې موجود وو. داسې څرګندېږي چې د دولسمې پیړۍ په پای کې (٦ مه هجري پېړۍ) لاهم ټول افغانان مسلمانان نه شول نو په دې حساب د عبراني تاریخ ارتباط د افغانانو او یهودو په هکله سم نه دی ، د اسوریانو او بابلیانو د اسارت تر منځ توپیر او ساول پاچا ته زوی ورکول منطقي اړیکي نه ښیي . او سربېره پر دې دوخت په محاسبه تر زرو کالو زیات ه خالیګاه یې تر منځ پرته ده ، الفنستون له یهودو څخه د افغانانو رابېلیدل داسې بولي لکه له تروجانیانو څخه د رومیانو او یا د برتانویانو بېلیدل ، چې ورته ښه کیس دی او د برتانوي یهودو (اسرائیلیانو) له خوا جوړشوی دی .

د پورتنیو لیکنو په څنګ کې زما را یاد شول چې خپل پټان دوست سید عبدالجبار شاه د سیتهانې او سیدونکي سره مې مباحثه درلوده . دده کلی د اباسین په ښي غاړه د پر ش میله لاتیک څخه بر پروت دی . سید عبدالجبار شاه ډیر متقي او ډیر پوه سړی دی ، د پښتنو په هکله د تېرو دوو پېړیو ټولې کیسې یې په یاد دي . دی پر دې قانع و چې افغان یا پټان نژاد د سیمتیک Semitic ( بسام ابن نوح) له اصله څخه دی نه له آرین Aryan څخه. پښتو ژبه د پارسي ژبې خورده او یو شمېر عربي کلمې هم په کې ګډې دي . (لکه چې په انګریزي کې لاتیني کلمې شته . ) خو په ریښه کې آریایي ژبه ده ، مګر لکه چې ده په حقه وویل ژبه د اصلیت معیار نه دی او هغه سیمتیک نژاده خلک چې په افغانستان کې ځای پر ځای شول هلته یې د ایرانیانو ژبه

- مناسبه وګڼله او دځان لپاره يې غوره کړه .

څرنګه چې زموږ مباحثه او مناقشه وړاندې او وروسته کېدله دبني اسرائيلو کمزوري ټکي په ګوته کېدل او په هغو ټينګار کيده ، سيد عبدالجبار شاه هم پر عبراني اصل باندې ټينګار کاوه داځکه چې دده په وينا دپټهانن نيکه ګان هم ، دواحد خداي جل جلاله پيروان وو . دوی دډېرو خدايانو عبادت نه کاوه ، او پر سيمتيک تار باندې يې ټينګار ددې لپاره کاوه چې دده نيکه ګان دعربو له ستيې څخه وو . ډبت پرستی او کفر سره بدبيني او دده اړيکي دحضرت پيغمبر (ص) له کورنۍ سره داثر ګنده کړه چې دی دبني اسرائيل پر ټکي ولاړ و . که څه هم کره سند نه لرو مګر دا پوره ښه دليل دی چې داسلام دين دپيل اېلچيان دعربو دوسله والو قوتونو له خوا حمايه کيدل .

لکه چې دسامانيانو کورنۍ ته يې دايران په نهاوند کې پر۶٤۲ م کال دپای ټکی کيښود او بيا د ماوراي آمو ( Transoxiana ) سيمې داوومې پيړۍ پر پای کې دقطيبه له خوا فتح شوې . په هغه وخت کې دافغانانو خاوره ځای په ځای پاتې وه او قوتونه له يوه او بل څنګ څخه تېريدل او ډېرو پېړيو پورې له اسلام نه لرې پاتې شول ، مګر دپخوانيو روحانيونو دودونه ژوندي وو . اکثر داروحانيون عرب وو حتی ځينې يې دحضرت پيغمبر (ص) دکورنۍ غړي وو . دپښتنو ( پټهان ) په سيمو کې سيدان او قريش ادعا کوي چې دهماغه کورنۍ ته منسوب دي . دداسې شجرې په درلودلو سره دوی خامخا ادعا کوي چې په ختېه سيمتيک دي او دتوحيد دپراختيا لپاره له اسلام څخه دمخه اړيکي په عبرانيانو پورې تړلي ګڼي ، دتفسير له مخې دبني اسرائيل کيسه يو څه دحقيقت اړخ ښيي او لږترلږه کلکه عقيده شته چې دا حقيقت دی که څه هم استدلال په کې نه شته او لههغې څخه انکار کول ګران کاردی .

- ددغو ټولو خبرو په رڼا کې داعقيده دمنلو وړده او د Nordic نارديک

تیوري چې کوم وخت له کابل څخه نشرشوې ده ، رد وي .

ځرنګه چې د پښتو تاریخ د پښتنو د قهرمان قیس ( عبدالرشید ) پر سر ودرید نو اوس د دې وخت دی چې پر شجره وغیره و ، دلته دا په یادو لرو چې الفنستون او نورو د دودونو له مخې خبرې کړي خو د نومونو او اشخاصو په پام کې نیولو سره د شجرې لیکل او پېژندل حقیقت لري ، دوی هغه څه منعکسوي چې قبیلې په خپله پر هغې باندې کلک اعتقاد لري . حتی نن ورځ هماغه اړیکي ، ریښې ، ورورولي او تربګنی پالنه او د کالیو ، ژبې و رواج ، دود او دستور له مخې لر او بر پښتانه یوله بل سره اړیکي لري ، پښتنو ته شجره د ژوندانه ساه ده او نورو ته ښایي د پاڼې اړول وي . د شجرې او کورنۍ سلسلې مې حتی الامکان لنډې کړي دي ، پر دې باندې باید وپوهیږو چې د سلسلې ترکورنۍ او تېر پورې لوییدای شي ، او همدارنګه هغه څوک چې د پښتنو د تاریخ په هکله پوه دي د غو شجرو ته نور هم تفصیل ورکولای شي ، زه په دې شکمن یم چې په نړۍ کې به بل څوک هم وي چې د پښتنو غوندې خپلې ختې او کورنۍ سلسلې ته تروروستۍ ځانګې پورې دومره په ټینګه په درنه سترګه ګوري ؟ د دې شجرې تفصیل هر ملک او سپین ږیري ته ځرګندوي په تیره بیا د دوی د هریوه د خپلې کورنۍ په هکله معلومات پوره ډیر دي ، او د کورنۍ ټولو غړو نرینه او ښځینه ته یې ورزده کوي . د قبیلې له نیکه ګانو او پلرونو سره کړۍ د ګټې او تاوان ، سولې او جګړې سمبول دی ، په دې هکله به بل ځای ډیرې خبرې وشي خو اوس دلته دومره ویلای شم چې د تابلوګانو ساده لیکنه د یوه مقصد لپاره ده . د کورنۍ سلسله د دې لپاره ژوندۍ کیږي چې کورنۍ یې وپیژني او که نه یوازې په الماریو کې ساتل کیږي ، د پوهیدو په مقصد لازمه ده چې یو څه دلته فهرست شي .

پخوا مې هم ویلي وو چې قیس د رې زامن درلودل : سړبن – بټهنی او غرغښت .

په دې ترتيب د دوی د اولادو لپاره بايد درې اصلي څانګې په نظر کې ونيول شي . مګر په حقيقت کې څلور دي او هغه څلورم زوی کرلاڼی دی ، کرلاڼی د جګو سيمو مشهور نيکه دی او دی خاص اهميت لري . د نعمت اله په مخزن افغاني کې دده او لادونه له نورو دريو څخه جلا راغلي دي مګر کرلاڼی د سړبن بر کتې بولي . ځينې نور يې له غرغښت سره تړي . مګر الفنستون د څلورو زامنو په هکله په دې ترتيب غږيږي چې لومړی سړبن ، وروسته غرغښت او بيا بېټنی او وروستی کرلاڼی يادوي . په هر ترتيب چې کورنۍ سلسله ښودل کيږي د کرلاڼي موقف د نسب له مخې روښانه نه دی هغه د کينې خوا زوی بولي ، زه به ديته وروسته راوګرځم .

سړبن دوه زامن درلود ل يو يې شرخبون نوميده ( په ځينو اسنادو کې شمر کبون يا شکربون يا شرجيون نوميدلی دی ) او بل يې خرشبون نوميده ( د کرښبون په نوم هم ياد شوی دی ) . په لنډ ډول يې وو ايم چې شرخبون د لويديز و افغانانو لکه ابداليانو ( ننني درانيانو ) پلار دی . او خرشبون د ختيزو افغانانو لکه يوسفزيو ( د مندړ په ګډون ) ، مومندو ، خليلو ، داودزيو او محمد زيو او نورو د پېښور دوادۍ او شاوخوا غرونو د قبيلو پلار دی ، د سړبن د دوو زامنو شجرې په لاندې ډول دي :

قيس ( عبدالرشيد )

| کرلاڼی | بېټنی | غرغښت | سړبن |
| --- | --- | --- | --- |

## ۱- سړبني ( لویدیز افغانان)

### شرف الدین = شرخبون ( شکربون یا شرجیون )

شیراني
( له یوې کاکړو ښځې
څخه دی ، نوځکه په
غرغښت پورې تړلی
دی . دوی له کاکړو
سره بلل کیږي )
شیرانی
(د سلیمان په غروکې)

ترین

سپین
(سپین ترین )
دوکي
بلوچستان کې

تور
(تورترین)
پشین
بلوچستان

ابدال
(دراني)
افغانستان

اورمړ (لوی کړی)
اورمړی
کنیګورام
لوګر
پېښور
(نوټ:اورمړ پښتانه نه
دي )

زیرک

پوپلزي
سدوزي
(یوې ځانګې د
۱۷۴۷ - ۱۸۱۸
پورې پر
افغانستان
حکومت وکړ )

الکوزي
افغانستان

بارکزي
محمدزي
(یوې ځانګې له
۱۸۲۶ نه ترنن
پورې حکومت
وکړ )

اڅکزي
پیشین
اوتوبه

پنجپای

نورزي

علیزي

اسحاقزي

دافغانستان او دملتان پښتانه

# ۲- سړبن - ختیز افغانان

## خیرالدین : خرشبون ( کریشیون)

کند

زمند

کاسي

خویش کی محمدزیي

هشتنگر

کاسی شینواري کتراني

کویته ننگرهار دبلوڅوسرحد

او خیبر

غوریا ککي

غوریاخیل ککي خېل

خلیل داودزي مومند ثمکني

پېښور اوشاوخواسرحد

کورمه او

پیښور

مند مک ترکلاڼي

گیگیاني باجوړ

دوابه

یوسف عمر

یوسفزي منډر

دیر، سوات، منډریوسفزي

بونیر مردان - سوابی

دي ته موفکر وي چې دسړبن د دوو زامنو نومونه اسلامي نومونه نه دي.
په تیره بیا د شرخبون او کریشیون شکلونه دپاملرنې وړ دي . نو دا دحیرانتیا
وړ نه ده چې پورتني نومونه په اسلامي نومونو اړول شوي دي . شرف الدين
چې افغانان يې شرخبون او بل يې خيرالدين چې افغانان يې خرشبون بولي .
لیکوال پر دې تېنگار کوي مگر بیلیو ( Bellew ) په دې هکله بیخي بل
نظر لري: « داد راجپوت خاص نومونه دي چې بدل کړای شوي دي او دی
لیکي چې دا نومونه اصلاً سورجن او کریشن دي او همدارنگه په مخکینیو
لیکنو کې سړبن پخپله دراجپوت سوریابانز ( Surya bans ) یانې لمر یا
شاهانه نژاد او دده لمسی شیراني دهندو شیوارام ( ShiveRam ) په نوم
معرفي کوي. » دې نظر ته به وروسته راوګرځو دا له پخوانیو ټولو دودونو سره
بیخي مخالفه نظریه ده ، په پور تنیو شجرو کې نننۍ ټولې مشهورې قبیلې
ښودل شوي دي او نن چیرته دي ؟ ګورو چې دافغانستان اصلي قبیله ابدالي (
دراني ) او دپښتنور دوادی او اړوندو غرنیو سیمو اساسي قبیلې ټولې له یوې
ختېې څخه دي ، او دقیس مشر زوی سړبن ته منسوبې دي . بې شکه چې دوی
ټولې هغه قبیلې دي چې دافغانانو په ژوندانه کې خاص رول لري . همدادوی
دي چې دخپل نژاد څراغ يې بل ساتلی دی . یوازې درانیانو که په سدوزیو کې
دي او که په محمد زیو کې ، نږدې دوه سوه کاله يې دپاچاهۍ کورساتلی دی
،همدارنګه دمردان یوسفزي ، څه ناڅه خلیل ،مومند ، دپښنور محمدزي ټول
هغه خلک دي چې دافغان دژوند طریقه ، زړه ورتیا ننګ ، پښتو نواله ،
جرګه او پښتو ژبه يې په ښه شکل ساتلي دي . په زیاترو برخو کې یوسفزي او
دپښنور قبیلې درانیو ته چندان په درنه سترګه نه ګوري ځکه چې هغوی اوس
دپارسي ژبې ترکلتور لاندې راغلي دي ، نو ځکه لرپښتانه ځانونه سوچه
شمیري او ډیر خلک به دا هم تائید کړي . که چېرې له یوه یوسفزي او یا خلیل

نه و پوښتل شي چې څوک يې ؟ سملاسي به ورته ووايي چې « زه افغان يم » د دې قبيلو خلک نه وايي چې « زه پښتون يم » ، دی په پختو خبرې کوي خو خپله په خته ځان افغان معرفي کوي . ددود له مخې د درانيو نږدې خپل دي ، خو دده په خپل قياس سره د پښتوويونکي له دراني څخه ځان ښه بولي . دده دختې په هکله که ورسره ټينګ شې نو درته وبه وايي :موږ سوچه پختو وايو ، د ښو پښتنو اصلي ژبه زموږ لهجه ده ، دی ځان ارستو کرات بولي او ځان اصل افغان ګڼي ، دلوړو سيمو او سيدونکي ، ختک ، اپريدي وزير او داسې نور د دوی په نظر پخپلو کې ښه پختانه ( پښتانه ) دي خو د دوی په افغانيت کې شک کوي . درته وبه وايي چې هغوی کرلاڼي دي. غلجي که څه هم يو واريې دهلي او ايران هم ونيول خو اوس کډه په شاګرځي او د اصلي افغانيت ادعا ورڅخه پاتې شوې ده ، نو لنډه دا چې ټول هغه پښتانه چې د خرشبون په کرښه کې سرېن ته رسيږي اصلي او واقعي افغانيت بيرغ لوړ ساتي او د افغانيت کلکه ادعا کوي . په بل عبارت دا سمه نه ده چې يوازې دلويديزی غاړې (افغانستان ) اوسيدونکي افغانان وبولو ، دختيزې برخې غوريا خېل او کاکي خېل همدا ډول دعوا کوي . دخلکو په ذهن کې دختيځ اولويديځ ټکي هيڅ ځای نه لري . د موضوع اصلي ريښه دوی ته ډير ارزښت لري .

**د بيټني د کورنۍ سلسله په لاندې ډول ده :**

# ۳- بېټني (بېټ يا بېټن)

ورشپون

کجين

بي بي متو + دغورشاه حسين

بېټني

بنو او ټانک

متي قبيلې

غلزی (بې نکاح زوشوی)

دافغانستان ټولې غلجي قبيلې

ابراهيم لودي

لوديان

نياز

نيازي

( عيسى خيل او ميانوالي)

سياني

دوتان

دوتانی

جنوبي وزيرستان

پرانگی

لودی او بيلوت

( پنياله )

ددهلي لودي کهول

۱۴۵۱م - ۱۵۲۶م

اسمعيل

سور

دسوريانو کورنی

۱۵۳۹م - ۱۵۵۵م

لوهانی

مروت

دولت خيل

بابر

گنداپوري

کوندی

اونور

بنو - ټانک

دکورنۍ سلسله راښيي چې دنارينه و په خط کې يوازې بېټني په کوچنۍ ټولنه کې دوزيرو او مسعودو ختيزې غاړې ته پراته دي ، چې ددوی سيمه له غرو څخه بيا دده ره جاتو او بنو خواته اوريږي . پاتې ټول هغه څوک چې پښتو وايي او غلجي ته منسوب دي دهلې دپښتنو دوو کورنيو :« لوديان (۱۴۵۱-۱۵۲۶م ) او سوريان ( ۱۵۳۹-۱۵۵۵ ) » په شمول ، له ښځينه کرښې څخه پيدا شوي دي. غلجي له نکاح څخه مخکې پيدا شوی و او مورخ په دې ډول کيسه کوي .

« بېټنی دقيس زوی ډير متقي او پرهيزگار سړی و او دولايت درجه يې درلوده او خلکو به ده ته دشيخ بېټ خطاب کاوه ، خدای تعالی ده ته زامن او يوه لور ورکړې وه . لوريې بي بي متو نوميده او دهغې اولادونه متي نوميږي . بايد په دې پوه شئ چې دبي بي متو داولادو په هکله توپير ونه شته ، د پلټنو له مخې ددې ښځې کرښه په دې ډول ده ........... » .

مولف په دې ځای کې دتاجکو ديوې کورنۍ په هکله چې په غور کې اوسيدل ( اوسنی هزاره جات ) او دشنسباني په نامه مشهور وو او په دې وخت کې نوي مسلمان شوي وو ، يادونه کوي . دا هماغه کورنۍ ده چې څو پيړۍ وروسته په ( ۱۱۹۲ م ) کې يې شمالي هند فتح او اسلام يې خپور کړ او پريتوي راج ته يې ماته ورکړه . دوی له ضحاک zohak څخه ډير شوي دي . ددې کورنۍ يو غښتلې ځوان شاه حسين نوميده ، دخپل پلار له بدو کارو څخه شرمنده و او کورکلي يې پرېښود او ختيځ خواته ولاړ چې دتخت سليمان غره ته ورسيده او شيخ بېټني هلته اوسيده . ليکوال خپلې کيسې ته داسې ادامه ورکوي:

« ........ دحسين پرتندي دنيکبختۍ علامې ليکل شوې وې ، شيخ بېټني اجازه ورکړه چې دده په کورنۍ کې واوسيږي . هغه يې له ځان ملگری

کړ او پرده باندې يې د پلار په شان نظر کاوه حسين له دنيا وي چارو سره چندان علاقه نه درلوده ، تل يې عبادت او د قرآن شريف تلاوت کاوه ، دده په پوهه او صداقت ټول کارونه سم وو . شيخ ډيره ښائيسته لور درلوده ، تقدير ددوى تر منځ نوې پيښې رامنځته کړې شاه حسين هم ښايسته ځوان و او د شيخ له لور سره يې چې هغه هم ډيره ښايسته وه کله کله ليدل ، کتل کول ، ددې نوم متو ، دوخت په تېريدو سره ددوى اړيکې ډېر نږدې شول . ددوى تر منځ مينه ورځ په ورځ زياتيده او بې له دې چې له مور او پلار سره يې خبرې کړې وي او دهغوى رضايت يې تر لاسه کړي وي . دوى په خپله خوښه له ځيني سرحد څخه تيرى وکړ . څو موده وروسته د متو خېټه شوه او د پټولو امکان يې نه و . موريې تر ټولو د مخه پردې تکې پوه شوه که څه هم لور يې ډيره ورټله او وښکنځله خو گټه يې ونه کړه ،کار له کاره وتلى و . دا اوچته شوه چې څه لاره چاره ولټوي او د لور له بدنامۍ څخه ځان وژغوري او په نتيجه کې يې بي بي متو شاه حسين ته واده کړه ، مگر په لږ موده کې بي بي متو يو ښايسته هلک وزيږاوه . څرنگه چې له شرعي نکاح نه د مخه پيدا شوى و . نو دده نوم يې غلزى کېښيود ځکه چې دا ددوى غلا وه . »

حسين يقيناً له دواړو تړيو څخه گټه وکړه ، مگر يو يادښت شته چې مورخ يې داسې بيانوي .

« دبي بي متو بل ځل بيا زوى پيدا شو او نوم يې ابراهيم لودي و ، دده له نوم سره « لودي » وتړل شو . يو کال ډيره واوره وشوه او غرونه په واورو پټ شول . شيخ بېټني خپل کور د يخنۍ له کبله پريښود او سمې ته راښکته شو چې ژمى تود تېر کړي . کله چې دواورو او بارانو موسم تېر شو . خپلې پخوانۍ هسکې مېنې ته وخوت او خپلې ميرمنې ته يې وويل : بسم الله ووايه او له چرگۍ څخه اور راوخله . ( په چرگۍ کې څلور مياشتې اور نه ويل

شوی.) میرمن یې شکمنه وه مګر میړه ته یې کلکه عقیده او پوره اطاعت درلود ، لاس یې اوږد کړ او له چرګۍ څخه یې اور راواخیست. دا د شیخ کرامت و ، شیخ ورته وویل: چې اوږد سفر مو وکړ او کوچنیان خامخا وږي دي. ډوډۍ پخه کړه او ما ته یې راوړه چې په خپله یې وروویشم او د دوی بخت وګورم. کله چې لومړۍ ډوډۍ پخه شوه ، ابراهیم چې ډېر تکړه او هوښیار کوچنی و ډوډۍ یې په منډه نیکه ته راوړه. او ده په خواب کې ورته وویل: ها! ابراهیم لو ،دی ، ابراهیم لودي شو.»

دا کیسه به ساده ښکاري خو که ژوره وڅېړل شي نتیجې ورڅخه راوځي. اوس راځئ چې څه ژوروګورو: لومړی څرګند ټکی دا دی چې د پخوانیو دودونو له مخې غلجي دافغان له ختې څخه نه دي ، د دوی پلار نه یوازې پردی دی ، بلکې پر یوې افغانې پیغلې تیری کوونکی هم دی او د بې نکاحه زوی پلار دی. دا داسې یو جرم دی چې د پیغلې کورنۍ حق لري چې تیري کوونکي ته د مرګ سزا ورکړي. حسین تاجک او په اصل ایرانی و ، مګر نکل کوونکی دلته یو شی هېروي چې غوریان د معز الدین محمد غوري تر مشر تابه لاندې په ۱۱۹۲ کې اسلام تر شمالي هند پورې ورساوه او داسې عقیده وه چې هغه اصلاً ترک و ، ترکانو د هند خواته خپل پوځونه مارش کړي وو ، چې زیات شمیر افغانان هم په کې وو. مګر د هغوی د شجرې په هکله د افغان په نوم چا ادعا ونه کړه او د وی ټول ترکي پاچاهان بلل کیدل او غلام شاهان هم په هماغه نوم یادیدل چې د دوی په پله تر ډهلي پورې ورسیدل. نو په دې حساب حسین پخوانی ترکي شهزاده ، چې غوري وینه یې درلوده ، ګڼل کیدای شي. او بیا د افغانانو په کورنۍ ورګډ شو او د شیخ بېټني زوم شو.

اوس دا کیسه د دودله مخې د هنداري په شان ښکاره ښیي چې غلجي پردۍ ختېه لري او په جبري ځانونه پر افغانانو ورتپلي دي او په واده کولو یې ځانونه

په افغانانو ورګډ کړي دي . دوخت په تېرېدو سره يې دافغانانو ژبه ، رسم او رواج خپل کړي دي . دادختې رېښه ضرور هم نه ده چې ترکي وي . ددې عقيدې داثبات لپاره تاريخي شواهد لرم چې وروسته به يې وښيم . دلته دا مناسبه ده چې ووايم چې راورتي داتهام او غلطۍ ادعا له کبله قهرجن شو . راورتي دقيس او دقيس داولادو له کيسې سره تړل شوی دی او هغه تاريخ بولي . ده دافسانې او حقيقت تر منځ توپير نه دی ښودلی او ددې توپير دښودلو امکان هم شته - دويم دا چې کيسه پخپله حقايق تصويروي . لکه داکثر وقبيلو تر منځ دامنل شوی حقيقت دی چې لوديان عيناً دغلجيو له ختې څخه دي ، دا افسانه مور او پلار دواړو خوا وته په عين فيصدي حسابوي او دمشر زوی زېږېدنه يوازې دروغ او تهمت بولي . دکشر زوي اوسني استازي لوهاني ، مروت ، نيازي ، دوتاني او بيلوت او داسې نور يوازې ميشته غلجي بولي . زياتره غلجي کوچي دي چې په بنو او ديره اسمعيل خان کې اوسېږي . دوی پخپله ددود او پښتو ژبې دلهجې له مخې ځانونه پخپله په همدې نوم پيژني . داصلي غلجي ، لودي او لوهاني تر منځ توپير ښودل يو څر ګند علت لري . هغه مورخين چې داشجره يې کښلې ده د ډهلي او اګرې په دربار کې اوسيدل . دايې په ګټه وه چې ووايي : دلوديانو او سوريانو پلرونه او نيکونه غلجې وو چې پر شمالي هند يې حکومت کړی دی . په زياتو برخو کې يې له نورو غلجيو سره فرق درلود . نعمت الله او نورو ليکوالو دپښتنو په هکله دميرويس نيکه تر قوماندې لاندې غلجيو دکندهار دفتحې او دايرانيانو ترشړلو دمخه او دميرويس نيکه دزوی او ورارہ چې ايران يې فتح کړی و لا دمخه ليکنې کولې . دنعمت الله لپاره داواقعې دتاريخ په ګېډه کې وې . ده دا نه غوښتل چې دغلجيو ستاينه وکړي ، بلکې دا په ګوته کړې چې دغلجيو هغه نسل چې پر هندوستان باندې يې يوه پېړۍ پاچاهي وکړه له اصلي غلجيو

څخه يې يو څه توپير درلود . دلته د علاقې بله نقطه هم راپورته کيږي . دراورتي له ليکنې سره سره لودي او سوري يوازيني غلجي تبر نه دي چې په هند کې يې حکومت کړی دی . په تاريخ کې يو بل تبر هم شته چې پر هند يې حکومت کړی دی او هغه خلجيان دي ( ۱۲۹۰ م - ۱۳۲۱م ) . او تر ټولو مشهور يې علاوالدين خلجي دی چې د ډهلي په قطب منار کې يې تيره شته . د دې پيژندنې په هکله توپيرونه رامنځته شوي دي او وروسته به دې بحث ته راستون شم خو دومره ويلای شم چې دا حقيقت اوس ټولو پښتنو ته د منلو وړ دی او خوشال خان ختک درې سوه کاله پخوا په دې هکله شعرونه ويلي دي.

غلجي تر ټولو پښتني قبيلو څخه د شمير له مخې زيات دي او زړه ورا و جنګيالي دي ، او د شمال غرب سرحد په سيمه کې تر درانيو ډېر دي . له ډېر پخوا څخه يې د ژمي موسم هميشه په پاکستان کې تير کړی او حتی تر کلکتې پورې رسيدلي دي او ځينې استراليا ته هم رسيدلی دي . دا به بيا تکرار شي .

د قيس د دريم زوی د غر غښت د کورنۍ سلسله يو څه لنډه او په دې ډول ده:

## ٤ - غرغښت

- داني
  - کاکړ (شمالي بلوچستان کې خواره دي)
  - پاني
    - پانی (سيبي)
    - ګادون (جادون) (مردان او هزاره)
    - موسی خيل (دبلوڅوسرحد)
    - ساپی (پيښور او باجوړسرحد)
  - داوی
- بابی
- مندو
  - مندوخيل (ژوب)

په بلوچستان کې دژوب ، لورالي او دسيبي دځينو برخو کاکړ خورا ډير دي مګر سيمه يې خورا غريبه او خواره ده او پردوی باندې چنداني حساب نه کيږي . نه دسولې دي او نه دجګړې دي، څرنګه چې دبلوڅو ګاونډي دي دبلوڅو دخانانو دود پالي او له ډيرو پښتنو څخه دوی لږ څه شاته پاتې شوي او دپښتنو په انارشۍ پسې نه ځي .

ګادون دشمېر له مخې ډير لږ دي . دا چې پښتو يې زده ده او که نه هم معلومه نه ده . دوی د مهايان دغرونو په لمنو کې سيتانې او توپې ته نږدې اوسيږي . دهزاره په علاقه کې د اباسين په چپه غاړه کې دهمدې قبيلې يو لوی ګروپ او سېږي او د « جادون » په نوم يې يادوي او د «راش » په آوارو کې ايبټ آباد ته نږدې او شاوخوا غونډيو کې اوسېږي . دوی هم خپله ژبه هېره کړې او دود ، دستوريې پرې ايښي دی . دهزاره دسيمې په لهجه په پنجابي ژبه خبرې کوي .

ساپيان دباجوړ درې په شاوخوا کې دغرنيو مومندو او دباجوړ د ترکلانيو په منځ کې اوسېږي . دوی معمولاً هغه افغانان دي چې تر ټولو يې وروسته اسلام منلی دی او په همدې دليل تر ټولو ډير پراسلام کلک ولاړ او دټينګې عقيدې خاوندان دي .

ځينې دتخت سليمان اوسيدونکي دشيراني قبيله هم په غرغښت پورې تړي ، ځکه چې شيراني ( ت - ۱ ) سړيني پر يښودل او يوه کاکړۍ ښځه يې واده کړه . دادپټان له دود څخه وتلې خبره ده چې له پردۍ ښځې سره واده وکړي او يا يې پر ديو ته ورکړي . که چيرې چا له خپلې قبيلې څخه دباندې واده وکړ نو له قبيلې څخه شړل کيږي او معمولاً دښځې قبيلې ته ورځي ، نو ځکه شيرانيو همداسې وکړل ځکه چې دکاکړو په څنګ کې اوسيدل .

په دې توګه دقيس د درې زامنو شجره تاسې ته وړاندې شوه او ددوی په هکله دکورنۍ سلسله پرهمدې ځای پای ته رسوم ، مګر ځينې مشهورې

قبیلې لکه اپریدي ، خټک ،اورکزي او ځینې نورې چې د پټان کلمه د پردیو له خولو څخه دوی ته نسبت کیږي ، تر ټولو پورته باید ووایم چې بنګښ څه شول ؟ همدارنګه مسعود او وزیر چیرته دي ؟ د خیبر ! کوهاټ او وزیرستان خټک اتڼ کوونکي چې څنې غور ځوي او توري پړکوي ،چیرته دي ؟ آیا دا ټول هېر شویدي ؟

ځواب دادی چې په شجرو کې ، ښایي دا مشهور نومونه په وروستۍ مرحله کې ورنه ایستل شوي وي د دوی عام نوم کرلاني دی ، دډهلي لیکوالو د دوی په هکله ډېر معلومات نه درلودل ، یوازې یې دوی د روه غرني او غښتلي سوار کاران بلل او د دوی یې چندان ښه نوم نه اخیستلو او دلست په پای کې راغلي دي . د نعمت الله په شمول ځینې یې کیراني بولي مګر دهغو د شرحې لپاره څه نه لري او نورو برخو ته یې منسوب بولي ځنې نورې یې غرغښت ته منسوبوي په دې هکله چې دوی وایي چې غرغښت بل زوی درلود او هغه پرهان نومیده او هغه د کرلاڼ یا کرلاني پلارو ، مګر تر ټولو د احترام وړ اصلي خبره د کرلاني په هکله په دې ډول ده :

« داورمړ د قبیلې دوه ورونه صحرا ته وتلي وو او یوه ځای ته ورسیدل چې هلته یوځ اړولي وو او شپه یې تیره کړې وه . یوه ورور یې هیڅ زامن نه درلودل یو داوسپنې تبرېې وموند ( ځینې وایي چې دیګی یې وموند ) او هغه بل یو نوی زیږیدلی کوچنی هلک وموند . هغه چې تبر یا (دیګی ) موندلی وخپل ورور ته په زاریو وویل : وروره ! ته خو وینې چې زه زوی نه لرم دا کوچنی ما ته راکړه زه به یې لوی کړم او زما نوم به ژوندی پاتی شي او زه به تل ستا منت او احسان نه هېروم . دا تبر یا ( دیګی ) ته واخله او هلک ما ته راکړه . ورور یې غوښتنه ومنله . لوښي ته ځینې پښتانه کړیي وایي او د کوچني نوم کرلاني شو . کله چې لوی شو ده روزونکي پلار خپله لور ده ته په نکاح کړه . په دې کار ټول خوشحاله وو . د دوی دواده په نتیجه کې زیات شمیر اولادونه پیدا شول . او د دوی د کورنۍ سلسله په دې ډول ده :

# ۵ - کرلاڼي (پلار يې معلوم نه دی)

- کودی
  - لومړۍ ښځه
    - اتمان — اتمان خیل (پېښور سرحد)
    - دیلازاک — دیلازاک (نه شته)
    - اورک — اورکزي (جنوبي تيرا)
  - دویمه ښځه
    - خوګی — خوګياڼي، توري، ځاځي (کورمې سرحد)
    - منګل — منګل، مقبل، ځدراڼ (خوست)
    - لقمان — خټک (کوهاټ، پېښور، مردان)
    - ماني — فریدون، اپریدی (شمالي تيرا، بازار، خيبر - کوهاټ غاښې)
- ککی
  - شیتک — داوړ، بنوڅي (توچي - بنو)
  - سلیمان
    - ملک میر — بنګښ (کوهاټ، کورمه)
    - وزیر
      - موسی درویش
        - اتمان — اتمانزي وزير (شمالي وزيرستان)
        - احمد — احمدزي وزير (جنوبي وزيرستان)
      - مبارک — ګربز (خوست)
      - محمود — مسعود (مرکزي وزيرستان)

دلته مو پورتني شجرې څه نا څه تر سیوري لاندې ومونډلې او یو شمیر قبیلې مو رسم کړې چې یو سل او پنځوس کاله به کیږي چې دبرتانیې په ادبیاتو کې دهغوې یادونه کیږي . ددوی نومونه دتورې دشرنګ ، جګړې ، میړانی - غیرت او ننګ سره یو ځای یادیږي ، دپښتنو دقبیلو ( دخرشبون اولادونه ، ت ۲ ) او میشته شوي غلجي ( ت ۳ ) څخه پرته دشمال غرب سرحد خواره واره پښتانه دکرلاڼي زامن دي چې تل په کیسو کې یادیږي . په دوی کې یوازې دشیتک ځانګه ( داوړ او بنوڅي ) په خړوبه او آباده ځمکه کې اوسیږي . نوریې ټول دهسکو غرنیو سیمو اوسیدونکي دي . ځینې کم یې لکه منګل ، مقبل ، ځدراڼ او ځاځي دډیورنډ آخوا په خوست او آریوب کې دافغانستان دننه اوسیږي . مګر سره له دې هم کورمې ته یې کربنه رسیږي . نور یې ټول ، په پاکستان کې اوسیږي .له ( ۱۹٤۷ ) څخه مخکې دانګریزانو تابع او ۱۹٤۷ څخه وروسته دپاکستان تابع شول .

په عمومي توګه داسمه ده چې ووایو د کودي زامن په شمال کې او په سخته لهجه ( پختو ) خبرې کوي او دککي زامن په جنوب کې په پسته لهجه ( پښتو ) خبرې کوي . دکودي زامن ویښتان لنډوي او دککي زامن څڼې لري. دلته یوه استثنا بله هم شته هغه دا چې دکوهاټ ختک که څه هم چې دکودي زامن دي په پسته لهجه ( پښتو ) خبرې کوي او څڼې لري .

ټول هغه څوک چې له قبیلوي مینې څخه ، وړاندې ګوري نو ځان ته دپښتو ن ( پختون ) خطاب کوي او دافغان کلمه دومره نه وایي ، دوزیرستان او اپریدیو په منځ کې قبیلوي اړیکي کلک او قبیلوي وفاداري زیاته ده . معمولاً په سیاسي قبیلوي اړیکو کې میژ وزیر ( موږ وزیر ) میژمسیت ( موږ مسعود ) او مونګ اپریدي ( موږ اپریدي ) وایي . یو دلیل یې هم دادی چې ددوی قبیلې تر اوسه دټولو حکومتونو له ادارې څخه ژغورل شوي دي. دوی د یو والي په نتیجه کې دایران ،مغل ، ترک ،افغان ،سک ،اوانګریز تر ادارې

لاندې هېڅچېرې هم نه وو راغلي ، هر یوه ته داڅرگنده شوې وه چې له دوی سره په پسته ژبه او ښه وضعیت کولای شي اړیکې وساتي .

دکرلاني کورنۍ کرښه که په ځیر سره وګورو داسې نتیجه اخلو چې : ټولې مشهورې قبیلې په کرلاني پورې تړلي دي چې دامپراتوریو څخه ژغورل شوي او ازادي پاتې شوي دي . داوطلب او اجیرو سپاهیانو یې تاریخي شهرت تر لاسه کړی او دافغان په نوم یادیدل . اورمړ ددوی نیکه په شجره کې داسې بیان شوی دی چې لوی کړای شوی دی اودوی دافغانیت ادعا نه لري ، داورمړ دقبیلو څخه یوه قبیله یې داسې وایي چې دغرو کرلاني له قیس سره اړیکي نه لري . داورمړ مشهور اولادونه فخر کوي او وایي چې پر درې ګروپونو ویشل شوي دي ، لومړۍ ډله دوزیرستان دغرونو په زړه کانیګورام کې اوسېږي . دویمه ډله په افغانستان کې دننه ، کابل ته نږدې دلوګر په وادۍ کې اوسېږي او درېیمه ډله یې په دریو لویو کلیو کې چې له پېښور څخه لس میله لرې دي ، اوسیږي . کلي یې داورمړ بالا ، اورمړ میانه او اورمړ پایان په نومونو یادیږي : دکانیګورام اوسیدونکي اورمړ په دوو ژبو خبرې کوي ، کله چې دمسعود و او غیر اورمړ سره مخامخ شي نو په پښتو ژبه ورسره خبرې کوي او کله چې په خپل منځ کې او په کورو کې خبرې کوي نو په اورمړي ژبه غږیږي. دادختیز ایراني ژبو یوه څانګه ده چې دځانګړې ژبې په نوم درجه بندي شوې ده او محلي لهجه نه ده . دوی دلوګر او پېښور ترېرونه په پښتو غږیږي او خپله اصلي او رمړي ژبه یې هېره کړې ده . د پېښور شاوخوا نږدې اورمړ او سیدونکي له ګاونډیو پټانانو سره ګډ شوي دي . یانې د باړې مومندو او ختکو سره په اکوړه کې ګډ شوي دي او یوازې په پختو خبرې کوي ، مګر په دې هم پوه دي چې دوی له ځانګړې ختې څخه دي او ترټولو لرغوني دي .

په کانیګورام کې ۴۰۰ کوره اورمړ اوسیږي او شمیر یې ۳۰۰۰ ته رسیږي ، ددوی تر منځ زیات شمیر سیدان اوسیږي او په اورمړي ژبه خبرې

کوي که څه هم دساداتو ادعا لري خو داورمړو لوی تیر شمیرل کیږي . داورمړو داګروپ خپل ځانګړی کلتور ساتي او سودا ګري یې عمده کسب دی . دوی له نورو یاد شوو ګروپو سره خپلې اړیکي مني او هغوی هم دوی خپل بولي .

کانیګورام دصوبه سرحد په لوړو کې تر ټولو ګرانه برخه ده او هلته ورتګ ډېر مشکل دی . داورمړ داکوچنی ګروپ د مسعودو او وزیرو په منځ کې اوسیږي او دا ډیره مهمه ده چې موقف یې ساتلی دی . داهم باید ووایم چې ددریو برخو : لوګر ، پېښور او وزیرستان اورمړ ګروپونه په یوه وخت کې له خاص اهمیت څخه برخمن وو . دنسب دادعا له مخې اورمړ ځانته دا ویاړ بولي چې کرلاڼي یې لوی کړی او دپښتنو دیوه لوی تیر پلار شو . دود دا په ګوته کوي چې کرلاڼي له ناپښتون محلي تیر څخه راپورته شوی او دپښتو او پختو ویونکو تر منځ را لوی شوی او پښتو ژبه یې زده کړې ده . څه ناڅه دومره معلومیږي چې کرلاڼي ، افغانان نه دي . اوښايي چې تر افغانانو لا پخواني وي.

دا به ښايي رښتیا وي خو دکرلاڼي قبیلو نننی وزیر ، بنوڅي ، ختک ، بنګښ ، اورکزي ، اپریدي او نور په پوره افتخار سره ځانونه پښتانه بولي او پښتونواله په کلکله سره نمانځي ، ښايي همدا دلیل به وي چې دوی دیوسفزیو برخلاف ځان پټهان بولي او نه افغان ، دلته د دود له مخې افغان او پټهان چې دعین ژبې په بیلابېلو لهجو غږیږي یو له بل سره ګډوډ شوي دي مګر دژوندانه بیل بېل اړخونه لري . افغانان اکثراً دکندهار ، هرات ، کابل او پېښور په حاصل خیزو سیمو کې اوسیږي .

او ددریم اړخ له مخې بل غلجي دي چې غیر ایراني خاطرې لري او نسل پیژندنه دارا ته وایي . موږ مجبور یو داوڅېړو چې پورتنۍ نتیجې تر کومه حده پورې دهغو لیکوالو له ثبت شوي تاریخ سره مقایسه کړو چې دشمال غرب دروازو څخه داباسین کاسې ته ننوتلي دي .

# دویم څپرکی

# یوناني تاریخ پوهان

تردې ځای پورې داسلام دمخه موده کې مود افغان یا پټهان په هکله یوازې هغه منابع ولټول چې د دود ، رسم او عرف له مخې په فارسي ژبه دمغولو په دربار کې ډ اوه لسمې پیړۍ په شاوخوا کې لیکل شوي دي . دغې آزموینې په زغرده راوښودله چې لااقل داخلک له درو ډېلا بېلو پلرونو څخه پیدا شوي ، بیا سره یوځای شوي او دعین ژبې په بیلو بیلو لهجو باندې خبرې کوي . مګر ثرنګه چې دوی په ګوښې ګوښې سیمو کې ځای پر ځای شوي دي ، ځانګړې قبیلوي مشخصات او دودونه یې غوره کړي او ساتلي دي او یوله بل سره یې ودونه ، نه دي کړي . همدارنګه داثرګنده شوه چې دقبیلو دننه قبیلوي اړیکې ډېر غښتلي دي او خلک په خپله پردې باندې ښه پوه دي .

مګر داصلي ریښې او اصلیت په هکله یو څه مشکلات شته چې سړی دې داکیسې او نکلونه پاخه قبول کړي . رښتیا هم چې افغانان یا پټهان دومره تیت

او خواره واره دي چې دا د منلو وړ نه بریښي چې دوی دې ټول د بابلیانو د زمانې دیوې واحدې عبراني سرچینې پورې مربوط وي . له بلې خوا دا هم ټولو ته څرګنده ده چې اوسنی افغانستان او د پاکستان صوبه سرحد هغه سیمې دي چې په ټوله نړۍ کې زیات خارجي قوتونه دلته راغلي او پر دې سیمه یې تیري کړي دي . هره ډله چې له دې سیمې څخه تیره شوې هرو مرو یې څه نښې نښانې له ځانه پرې ایښې دي او د ژوندانه یوه پانه پرېلې وراوښتې ده ، یو بل ټکی هم د یادونې وړ دی ، د ډیرو زمانو په اوږدو کې اباسین او د غرونو لړۍ همېشه د امپراتوریو او پاچا هیو ترمنځ ثابت سرحد نه دی پاتې شوی او د سیمو خلکو په ناچارۍ سره ډول ډول تمدنونه زغملي دي ، زموږ وروستۍ دنده داده چې باندني مورخین او ارکیالوژیستان ( لرغونپوهان ) د هغې سیمې او خاورې په هکله چې هلته پښتانه اوسیدلي دي او یا اوسیږي څه وایي ؟ باید وپلټو چې اړیکې یې سره ورته والی لري او که نه ؟

په سرحدي سیمه کې پښتنو ( پټهان ) پخپله کوم معاصر ادبیات له ځان څخه نه دي پرې ایښي ، پښتانه یادګاري ځلي نه جوړوي . هغه سکې او مروجه پیسې چې په دې ساحه کې استعمال شوې دي باید له ګاونډیو سیمو څخه راوسپړو او مجبور یو چې د هغو له مخې ورته سکې په نورو برخو کې ولټوو .

افغان دود له شپږمې ق م پیړۍ څخه د مخه د بابل له سقوط او اسارت سره پیل کیږي ، راځي چې له هماغه وخت څخه یې راپیل کړو چې د فارس د هخامنشیانو امپراتوري دلوی سیروس په واسطه په ۵۵۹ ق م کې په پښو ودریده ، پر دغه کال سیروس پاچا شو خو تر ۵۵۰ ق م پورې ده پر میدیا یې استایاژو ( Astyages of media ) باندې برې نه و موندلی . چې دا د هخامنشیانو د قدرت پیل ګڼل کیږي ؛ چې بیا تر ۳۳۱ ق م پورې یې دوام

ومونداو دسکندر له خوا یې ماتي وخوړه . په دې موده کې چې نږدې دوه پېړۍ کېږي افغانستان ، صوبه سرحد تر اباسین پورې او له داریوش نه وروسته حتی پنجاب هم دهمخامنشیانو په امپراتورۍ کې شامل و.

کله چې سړی ، په اصطلاح په ایرانۍ نړۍ کې ګرځي ، ماته داسې ښکارېږي چې ایراني تاثیرات نسبت نورو ټولو ته زیات قوي دي . په تیره بیا تراسلام وروسته ایرانیانو دشیعه طریقې لپاره زیات کار کړی دی. په پښتنو کې دشیعه مسلمانانو په مقابل کې زیات تضاد شته او سرحدي پښتانه ټول کلک سني مذهبه دي چې دامام ابو حنیفه ( رح ) پیروان دي ، خو سره له دې هم ایراني اړیکي نه دي مات شوي دا ځکه چې ډیرې پخوانۍ ریښې لري . ایران له عربستان سره په دې هکله توپیر لري .داسې څرګندېږي چې په اسیا کې لوړه سیمه له دجلې څخه تر اباسین پورې ( Tigris Indus ) یو هیواد معلومېږي ، او دایران روح په کې پوکړل شوی دی او یو ډول پس منظر ورڅخه ښکاري ، یو ډول کلتور لري او یو ډول روحیه لري چې په کوټه او پېښور دواړو کې پوره معلومېږي .هر چاچې داروحیه جذب کړې ده ، هر ډول کنجکاوۍ ته یې مخه کړې او هېڅکله به یې هېرهم نه کړي .

هرسړی چې له پنجاب څخه پېښور یا بنو ته ورسیږي او یا غرنیو سیمو ته ورهسک شي نوده ته به څرګنده شي چې هر څه توپیر لري او دنړۍ له یوې سیمې نه بلې سیمې ته چې بیخي فرق لري وررسیږي او دا څرګندېږي چې دایران وادۍ ته رسیدلی دی . لیدونکي ته غرونه ، بوټي او شینلي بل ډول ښکاره کیږي ، دلته فصلونه ګرځي ،ناجواو نښتر بریښي ، سیند ونه خورا روښانه او ژوندي معلومیږي .

الوتونکي داسې سندرې وایي چې لویدیځ در یادوي ، لمر او بادهم داخوا خونداو اغیزه لري . خلک یې دمرکزي اسیا خلک دي او دهندنیمې وچې خلک

نه دي . له دې څـــه مـور ته د پروفـــيــسور گــريشـمن (Professor Ghrishman) هغه پيغام رايادېږي چې تر اسلام دمخه ايران په هکله يې ليکلی دی . نوموړی دا ثابتوي چې په دې سيمه کې تر اسلام دمخه دايران تاثير ډېر زيات و چې نښې يې اوس هم ښکاري . هغه د هخانشيانو تسلط او تاثيرات په لرې پرتو ولا ياتو کې ښه ارزيابي کوي ، په تېره بيا په گندهارا ( پښښور وادي ) او په سايتيانو کې (Seythians) دهخانشيانو آرت او مهندسي حتی په هند کې د موريا کورنۍ ( ۱۹۰ ق م - ۳۲۳ م ) هم تر تاثير لاندې راوستلې او په خپلو ماڼيو کې يې د پرسيپوليس ښار ( Persepolis ) دجنوبي ايران دهخامنشيانو دزمانې مشهور ښارو . ) دايران سبک په پام کې نيولی و . خروشتی حرفونه چې په هند کې استعماليدل ، په حقيقت کې د پارس دايالت له رسمي آراميک Aramaic څخه اخيستل شوي وو . دايران ژبې او داباسين دوادۍ گاونډيو خلکو له ژبو څخه دفاتحانو او فتح شو يو خلکو د تفاهم او راکړې ورکړې لپاره يو ډول گډه ژبه رامنځته شـــوه چې داردو ژبې يو ډيالکت Dialect ( خاصه لهجه ) بلل کيږي .

حقيقت خو دادی چې ماورای آمو ، افغانستان او پاکستان داباسين غرب ته حتی نن ورځ هم خراساني کلتور لري ، داکلتور تر اسلام څخه دمخه دی چې هخامنشيانو ، پارتيانو او ساسانيانو راوړی دی او له ايران څخه راوړل شوی دی . دايران ددغو تاثيراتو په جمله کې تر ټولو مهم ، عمده او مخکې دسيروس او لوی داريوش زمانه ده ، دهغې زمانې په هکله زموږ ريکارد که څه هم پوره معاصر نه دی ديوناني مورخ هيرو دوتس ( هرودوت ) اثار ، د داريوش يادگاري لوحې په سوسه ( Sosa ) او بهيستان ( بستون ) «Behistan » او دده دقبر د تختې ليکنې په نقش رستم کې دفارس د ايالت

په لرغونو کنډوالو کې شته .

دا مناسبه وه چې ترهر څه د مخه د داریوش لیکونو ته چې پر کمرو او په جوړو شویو ډبرینو تا بلو ګانو ( تبیو ) باندې کښل شوي دي نظر واچوو . دلته څو مصرعې ( میسرۍ ) لیکل شوي دي چې خپل افتخارات ، شان او شوکت په کې منعکسوي او نن ورځ په مشکل سره لوستل کیږي . په دې کې دده دامپراتورۍ د مختلفو حکمرانیو ( صوبو ) نومونه لیکل شوي دي ،ختیزې صوبې ( حکمرانۍ ) په دې ډول راغلي دي : آریا ( هرات ) ، باکتریا ( بلخ ) ، کورازمیه ( خوارزم یا خیوا ) ستاګیدیا ( نامعلوم ) سوګدیانا = سوغدیانا ( د آمو او سیحون تر منځ ) اراکوزیا ( کندهار ) ګندهارا ( د پېښور وادي ) او هند . په زړه پاړسي کې د دریو صوبو لپاره دوی کوم نومونه چې استعمال کړي زموږ له څېړنو سره سمون خوري او هغه ستاګوش (ستاګیدیا ) ، ګدارا ( ګندهارا ) او هندوش ( هند ) څخه عبارت دي ، دهند حکمراني د بیسیتون ( بهستان ) په کرښو کې نه وه یاده شوې چې د داریوش د پاچاهۍ په لومړنیو کې کښل شوې وې او د داریوش فتوحات رانښیي ، مګر د نقش رستم او د پخواني قصر په کنډوالو کې د داریوش پر قبر باندې راغلي چې دهند صوبه د داریوش په پاچاهۍ کې نیول شوې وه ، دګندهارا ( پېښور وادۍ ) صوبه په درې واړو لیکنو کې شته ، دلته باید یادونه وکړم چې د مناقشې ضرورت نه شته چې ( ګندهارا ) د ( پېښور وادۍ ) په مفهوم ومنو . دا په ټولو موریاني ، ګریکو باکترین ( یونان باختري) ، کوشانیانو د زمانې حتی دالبیروني تر لیکنو پورې چې د محمود غزنوي دیوولسمې پیړۍ د دورې لیکنې دي ، په همدې ډول ثبت کړي دي . اوس په نړیواله سطحه دا منل شوې ده ، او همدارنګه وروسته به د هغې تائــــید په هیرودوت ( هیرودوتس Herodotus ) کې هم وګورو .

امکان لري چې گندهارا تر اباسین پورې پخوا د سیروس هخامنشي په زمانه کې فتح شوې وي او د امپراتورۍ برخه گڼل شوې وي . که چیرې دا سمه نه وي نو د هغې شمولیت په امپراتورۍ کې د داریوش له خوا بیخي ثابت دی . کمبیز ( Cambyses ) هغه لوی پاچا و چې د سیروس او داریوش تر منځ یې اوه کاله پاچاهي وکړه مگر ختیځ ته رانه غی ، دی د مصر له صوبې سره بیخي مصروف و ، حبشې ته له قوت سره ولاړ مگر بیا هم ناکام شو . پر کار تاڅاندې یې یرغل پلان کړ مگر هېڅکله عملي نه شو ، موږ په دې هم پوهېږو چې د هند له فتحې څخه د داریوش مرام احتمالاً د دوآب منطقه ده چې د اباسین او جهلم تر منځ پرته ده او تر هغې زمانې پورې چاور ته مخه کړې نه وه . تر هغه چې د یونان سایلکس Scylax (یونانی سیندگرځی) له گندهارا څخه د اباسین ښکته سیمو ته واستول شو چې د سیمې جغرافیه وڅېړي . دا کار یوازې داسې امکان لري چې هغه سیمه هم په گندهارا کې شامله وي . راځئ وگورو چې هیرودوتس په دې هکله څه وایي :

دانگریزي ژبې په مختلفو لیکنو کې ډول ډول متنونه شته چې د شمال غرب سرحد د سیمې د تاریخ په هکله یو څه لري . دا د ښاغلي بیلیو (Bellew) له غیر انتقادي لیکنو څخه چې ، په یوناني ژبه نه پوهیده ، نیولې بیا تر تکړه محقق او ناقد راورتي (Raverty) پورې چې د هیرودوتس او هندوانو په دې هکله لیکنې ردوي ډیرو وروستیو پوهانو لکه سر جورج گرسن (sir George Grierson) سر اوریل ستاین (sir Aurel stnn) او پروفیسور مورگن سترن (Prof. Morgen-steirne) هم خپلې نظریې په دې هکله وړاندې کړې دي چې هغوته به هم اشاره وشي . زه ادعا کولای شم چې زما تحلیل او ارزیابي د ټولو هرودوتسي متنونو په هکله په ځای او منطقي ده او د موجودو ډیرینو تبیو

دلیکنو پر اساس ده. زه دهیرودوتس متونونه په دې هکله، دخپلې ارزیابۍ له مخې دموضوع داهمیت او ارتباط په هکله په لاندې ډول وړاندې کوم:

(۱) هیرودوتس ـــــ ٤کتاب، ٤٤ مخ:

(دآسیا دزیاترو برخو کشف کوونکی داریوش و. ده غوښتل چې دا معلومه کړي چې اباسین - دایوازینی سیند چې نهنگونه ساتي چېرته توئیږي؟ ده داعتماد وړ بې شمیره سړي واستول چې دهغو په ډله کې دکاروندا سکولاس (Skulax of Karunda) هم شامل و چې په دې سیند کې بیړۍ وگرځوي، دوی خپل دغه دریایي سفر د پاکتیوک (Paktiuke) هیواد دکاسپاتورس «Kaspaturos» له ښار څخه پیل کړ، چې ختیځ ته دلمر خاته پخوا سمندر ته ورسیږي. دلته دوی غرب خواته مخه کړه او دېرش میاشتې یې سمندری سفرو کړ او هغه ځای ته ورسیدل چې دمصر پاچا فنیقیان استولي وو چې دلیبوا «Libua» (افریقا Africca) سمندري لار پیدا کړي، کله چې سفر پوره شو داریوش هندوان فتح کړل او په هغه سیمه کې یې له سمندر څخه گټه واخیسته.»

(۲) هیرودوتس، ۳ کتاب، ۱۰۲ مخ:

(سربیره پردې نور هندیان هم شته چې دپاکتیوک Paktiuke هېواد دکاسپاتورس Kaspaturos له ښار سره سرحد لري دوی شمال ته اوسېږي او دشمال باد ته مخامخ دي. له نورو هندیانو سره که مقایسه شي نو ددوی ژوند دباکتریانو (باختریانو) په څېر دی. دوی ډېر جنگیالي خلک دي.....)

(۳) هیرودوتس، ۳کتاب، ۹۱ مخ

(په دې او په ورپسې دوو متونو کې مورخ دهخانشیانو حکومتونه او دهغوی خلک ښیي)، ساتا گوداي (Sattagudai) گانداریوي

(Gandarioi) ، داديکای ( Dadikai ) او اپاروتای ( Aparutai ) ټول يو ځای پيژندل شوي دي . دوی ۱۷۰ تالنت ماليه تاديه کوله اودا اوومه صوبه وه .

( ٤ )هيرودوتس ،۳ کتاب ، ۹۳مخ:

له پاکتيوک او ارمنيانو ...... څخه ٤۰۰ تالنت نغدي اخيستل شوي او دادیارلسمه صوبه وه .

( ٥ ) هيرودوتس ۳کتاب ۹٤ مخ:

( هنديان چې په شمير تر ټولو نورو زيات دي او تر ټولو يې زياتې پيسې تاديه کړي دي، دوی دسروزرو ۳٦۰ سکې ورکړي چې « له ٤٦۸۰ عادي تالنتوسره مساوي دي » دا شلمه صوبه وه.

(٦) هيرودوتس ۷کتاب ٦٦-٦۷ مخ:

( زرکزيس xerxes ٥١٩-٤٦٥ ق م دپوځ لست وربښيي . )

دگانداريوی Gandarioi او داديکای Dadekai دباختريانو تجهيزات درلودل ...... دپاکتيوک Paktiuke خلکو دپوستکي چپنې اغوستې او دخپل هيواد ليندۍ او چاړې يې له ځان سره درلودې .

(۷) هيرودوتس ۱ کتاب ، ۱۲٥ مخ :

ساگارتيوی ( Sagartioi ) چې هغه کوچيان وو .....

(۸) هيرودوتس ۷ کتاب ۸٥ مخ :

کوچۍ قبيله چې ساگارتيوی ( Sagartioi ) نوميږي ، ايرانيان دي او په پارسي خبرې کوي او په لباس کې نيم پارسي او نيم پکتوان (Paktuan) دي . هغوی پوځ ته ۸۰۰۰ اسان ورکړي دي .

داډېره په زړه پورې ده چې مؤلف دخپل کتاب په دوو لومړيو متنونو کې دوه جلاجلا ځايونه چې يو له بل سره هيڅ اړيکي نه لري يو ځای ښيي او

دکاسپاتوراس (Kaspaturos) ښار یادوي چې د تلفظ له مخې فشار باید
پر دویم سیلاب راشي او همدارنګه د Paktiuke هېواد ښیي او دواړه یو له
بل سره تړلې بولي. مـــــګر پخوانې پـــــوهان د ګریرسن Grierson په
ګـــــډون چې د لینګـویستـــیـــــک ســـــروې آف انډیا
(Linguistic survey of India) د هند دژبو سروې په نامه کتاب یې
لیکلی دی داسې عقیده لري چـــې پاکتیوس Paktues او پاکتیوک
Paktuike چې په هیرودوتس کې راغلي د پښتـو ن Pakhtun له کلمې
سره یو ډول کلمه ده . داهم باید وویل شي چې وروستي پوهان لکه پروفیسور
مورګن سترن (له ناروې څخه) او بیلي Bailey د کمبریج پروفیسر او ځینې
نور دادهیرودوتس د معادلې په کلکه مخالفت کوي . زه به هڅه وکړم چې
مـوضـوع په هغـه ډول روښـانه کړم چې زه یې وینم ، تر یوې لحظې پورې به دا
مـوضـوع هېره کـړو چې پاکـــــتـیـو ک Paktuike چیـــرته دی ؟ او
کاسپاتورس (Kaspaturos) چیرته او څه شی دی ؟

پنځوس کاله پخوا ( د کتاب تر چاپ د مخه) هیڅ کوم یوه پوهاند په دې
هکله نظر نه دی وړاندې کړی ، دا منل شوې ده چې سایلکس ( Scylax ) هم
دانګریزي کاپیتان کوک Captain cook په شان ماجرا غوښتنه کړې او
دختیځ خواته یې په سیند کې بېړۍ چلولې ده . که دارښتیا وي خو مانا یې
داده چې د کابل سیند ( د پېښور په وادۍ کې یې لنډی سیند بولي ) په مسیر
تللی دی . داسیند تقریباً ختیځ ته بهیږي ، له جلال آباد څخه تیریږي بیا د خیبر
په لوړو کې څو میله د خیبر شمال تـه خپل مسیر تـه دوام ورکوي او بیا د پېښور
وادۍ ته ننوځي او د سوات له دریاب سره ګډیږي او اټک تـه نږدې اباسین ته
ورتوییږي او لږ څه د جنوب په استقامت ځي او په پای کې سمندر ته ورتوییږي.
کوم استقامت چې په اټک کې بدلون مومي احتمالاً هیرودوتس ته دهغه پته

نه وه . حتی نن ورځ هم که په دې مسیر ځو ک ښکته تللي وي دا موضوع به ورته څرګنده وي . احتمالاً سایلکس Scylax ته هم دا خبره جوته وه . مهم ټکی دا دی چې داسمندري سفر دده په قول دلمر خاته خوا ته پیل شوی دی . مګر کاسپاتورس (Kaspaturos) چیرته پروت و ؟ دا خونه شي کیدای چې دده مقصد له کاسپاتورس څخه کابل وي . ځکه چې د کابل په برخه کې دریا دبیړۍ چلولو وړنه ده .

داضرور ده چې د محلي معلوماتو پر اساس د کابل د دریاب مسیر وڅېړو او وګورو چې بیړۍ په کې چلیدلای شي او که نه ؟ د کابل دریاب تر هغه پورې چې د کونړ له سیند سره ګډیږي د هیڅ ډول بېړیو د چلولو لپاره مساعد نه دی . له هغه نه وروسته بیا هم له لالپورې څخه تر وړک پورې د خیبر غونډیو په منځ کې د زیات تیزوالي له کبله بېړیو چلولو ته مساعد نه دی . په دې سیمه کې جالې استعمالیږي . مګر اصلي بیړۍ چلول د پېښور په وادۍ کې له ورسک او میچنۍ وروسته پیل کیږي . په دې ځای کې نن ورځ او به پر دریو برخو ویشل شوي دي او د شمال له خوا : د سردریاب ، نګومان او شاه عالم په نومونو سره یادیږي . دلته څلورم ښاخ هم شته چې بدنۍ نومیږي ، پورتنۍ درې څانګې له چارسدې څخه لاندې په نیسته نومي ځای کې بیا سره ګډیږي . د شمال خوا ته څانګه یې د سوات سیند جوړوي ، او بدنۍ له شاه عالم سره په دیلازاک کې یو ځای کیږي . سوات څخه لاندې سیند د لنډي په نوم یادیږي .

له پېښور څخه تر نیسته پورې تر ټولو نږدې نقطې ته شپاړس میله واټن دی او د شاه عالم نږدې نقطې ته اوه میله (چې تر ټولو جنوبي خواته دی) او د بدنۍ کانال ته یوازې یو میل واټن دی . ټولو ته څرګنده ده چې حتی په اوسینو وختو کې د دې کانالونو مسیر تغیر موندلی دی . د مغولو په زمانه کې احتمالاً دوه کانالونه وو . پېښور د سیند پر غاړه نه دی پروت . مګر پېښوریان

لنډی سیند خپل سیندبولي او ډیر په کې بیړی چلوي . یو تکی څرګندی چې سایلکس Scylax به هیڅکله دلنډي سیند په اوږدو کې د پښور په پورتني ګاونډ کې نه وي پلی شوی ، نو ځکه موږ باید کاسپاتورس (Kaspaturos) په دې شاوخوا کې ولټو .

آیا ددې نوم بل ځای هم ذکر شوی دی ؟ هو ! دمایلتوس «Miletus» د ۵۰۰ ق م نامتو جغرافیه پوه او تاریخ پوه هیکاتایوس (Hecataeus of Miletus) حتی له هیرودوتس څخه دمخه دا ځای یادوي خو فورم یې څه توپیر لري او د کاسپاپورس Kaspapuros (Κασπάπυρος) په شکل یې لیکلی دی ، سربېره پردې هیکاتایوس ، کاسپاپورس په ګاندهارا کې ښيي . حال داچې هیرودوتس کاسپاتورس په پاکتیوک کې ښيي ، نودا په زړه پورې نښه ده چې د پاکتیوک او ګندهارا په هکله د پیژندګلوی لپاره لاسته راځي او زه دې موضوع ته بیا وروسته راځم ، له دې نقطې څخه دوو پوهانو چې له یوبل سره همیشه توافق هم نه لري دلته دادلیک غلطي بولي او وايي چې کاسپاپورس سم نه دی بلکې پاسکاپورس (Paskapuros) باید وي . او پاسکاپورس پښور دی ، داهم لکه د چینایي سیاح هیون تسانګ (Hiuen Tsang) دسانسکرت پور شاپوره (Puarshapura) چې ده د پولو شا پولو (po-lu-sha-po-lu) په شکل لیکلی او همدارنګه دلرغوني اسلامي لیکنو او دالبیروني په لیکنو کې پور شاپور Purshapur دپوشابور pusha bur په نوم ذکر شوی دی . داتوپیر چې دهیرودوتس په کاسپاتورس او دهیکاتایوس په کاسپاپورس کې لیدل کیږي ، دومره لوی او عمده توپیر نه ګڼل کیږي ، او که یوه تکی نه وای نو بیخي مې نه یاد اوه ، او هغه تکی دادی :

دالبیروني Albiruni په لیکنو کې یو متن شته او هغه وايي چې اصلاً

ملتان د کاسیاپاپوره Kasyapapura په نامـــه یادیده ، نو ځکه دوه مستشرقین هرزفیلد Herzfeld او فوشر Foucher داسې نتیجه ګیري کوي چې ملتان ښایي همدا کاسپاپورس وي چې سایلکس saylax له هغه ځای څخه په اباسین کې بیړۍ چلولې او سمندر ته وتلی وي ، مګر هیرودوتس او حتی سایلکس Scylax به پخپله داسې فکر نه وي کړی چې بیړۍ چلول له ملتان څخه شرق خواته دي ، سربیره پردې هیکاتایوس دا موقعیت بل ځای ښیي او وایي چې کاسپاپورس په ګندهارا کې دی او هرودوتس هغه په پاکتیوک کې ښیي . له نیکه مرغه سربیره پردې د سایلکس داصلي لیکنې یو اصلي متن چې په ۲۰۰ م کې اتینیوس Athe-naeus ساتلی دی په هـــغه کې سایلکس Scylax لیکي چې : « زما دادریایي سفر دیوه غره په امتداد کې و چې داسیند یې په لمن کې بهیده او ځای پر ځای شنه ځنګلونه بریښیدل او اغزن بوټي ډیر وو . » دا پاراګراف د دوو بلجیمې پوهانو له خوا ښایي څیړل شوی وي ، هانګمان Honigman او ماریک Maricq له اټک څخه لاندې د شاد یپورا او کالا باغ څخه تر بیلوټ Bilot پورې په عین شکل بیانوي ، نو داهم عملي نه ده چې سفر دې په ملتان کې چې د پنجاب هواره سیمه ده پیل شوی وي نو ځکه د ملتان ها-یپوتیسیس باید (فرضیه) له بحث څخه وغورځول شي.

داسې اپیګرافیک شواهد شته چې پېښور Papkpuros = peshawar ښیي . په نقش رستم کې د داریوش د قبر ډېره امریکایي ارکیالوجستانو چې د شیکاګو د ختیځ پیژندنې انستیتوت (Chicago Oriental Institute) پورې تړلي دي په دې وروستیو کې تر مطالعې لاندې نیولې او داسې کشف یې کړی چې په دوو ژبو لیکنې شوي دي او په ( لومړي شاپور ) پورې چې د ساسانیانو دویم امپراتورو ارتباط لري.

هغه دروم امپراتور ( valerian والیریان ) ته د ( Edessa ) ایدسیه په جګړه کې په ۲۶۰ م کې ماتې ورکړه . په ډېر ـ ینه لیکنه کې چې په پارت او یونانيې ژبو لیـــــکل شوې د یوه ځـای نوم هم رابښيي چې دا / Pshkbur paskiboura ( پاسکیبـورا ) پـه ختـــــــــیځ کـې دسـاسـانیـانو ذامپراتورۍ آخـــــیرینه نقطه وه . ددې ځـای نومونو : دهـــیرودوتس ros Paskap ، د سانسکرت پوروشاپورا او ننني پېښور یقیناً دومره ورته والی لري چې پر تصادف او فیلالوژیکي اشتباه باندې خط راکاږي . سربېره پردې دساسانیانو په زمانه کې ددې نوم تکرار یدل چې دادوره دهیرودوتس او البیروني تر منځ تقریباً نیمايي واټن دی دارتباط اصلي کړۍ راڅرګندوي .

له پورتني استـدلال څـخه داسې نتـیجـه اخلو چې دهیـرودوتس ، کاسپاتورس Kaspaturos ننني پېښور دی او مونږ ته څرګـــــــندیږي چې دسایلکس Scylax په هکله دده کیسه او دهغه سفر پوره ثابتیږي چې له پېښور څخه پیل شوی دی . پېښور هغه ښار دی چې له دریا څخه یوازې څو میله لرې دی او کیدای شي چې دسایلکس Scylax دریايي سفر دلته پیل او سـمندر ته رسیـدلی وي . دابله نظریه هم دلتـه تطبـقیــږي هغــه دا چې: « داهندیان چې د کاسپـاتورس شمـال ته اوسیږي ډیر جنګیـالي او زړه ور خلک دي . » داضروري نه ده چې په دې هکله ددې سیـمې ننڼیو خلکو ته اشاره وکړو . نن که وګورو دهیرودوتس تحلیل سکندر مقدوني ته اشاره کوي لکه چې ده یوه نیمه پیړۍ له هیرودوتس څخه وروسته داسیمې ونیولې .

اوس به راشو دیته چې پاکتیوک paktuike تثبیت کړو او موقعیت یې روښانه کړو .لکه چې ماویلي دي هیرودوتس کـــــــاسپاتورس -Kas paturos څوواره له پاکتیوک Paktuike سره تړلی دی .ددې مانا داده چې پاکتیوک Paktuike هغـه هیـواد دی چې کـاســــــپاتورس

Kaspaturos يې يو ښار دی او هغه له نننۍ پېښور څخه عبارت دی ، او په هغه کې د موقعيت له کبله حتماً بايد پاکتيوک گندهارا Gandhara وي ځکه مخکې مووښېږله او گندهارا کې پروت او په دې هکله ذکر راغی ، نوما بعد خبره په نتيجه کې / گندهارا / paktuike ، او د پېښور وادي ټول يو دي .

راځئ چې اوس دريم متن ته پاملرنه وکړو ، چې هيرودوتس په خپل متن کې د داريوش داووم ولايت ذکر کوي خو نوم يې نه ښيي او ليکي چې په دې ولايت ( صوبه ) کې څلور قبيلې : ساتاگوداى Sattagudai، گنداريوي The Gandarioi ، داديکايي The Dadikai ، او اپاروتاى The Aparutai او سيدلې . دحيرانتيا وړنه ده که مونږ گنداريوي Gandarioi په دې قبيلو کې وينو ، نو واضحاً چې دا اووم ولايت گندهارا Gandhara دی . دداريوش په ليکنو کې د Gadara ذکر شوی او دهيرودوتس پاکتيوک Paktuike همداځای دی . سملاسي به دادنورو دريو قبيلو پيژندنه پوځای پرېږدو او څلورم متن چې هيرودوتس ذکر کړی دی دموضوع په ارتباط داهميت له کبله په نظر کې نيسو .

په هغه متن کې هيرودوتس دبل پاکتيوک paktuike ذکر کړی او دحيرانتيا وړده چې دا پاکتيوک يې له ارمينيا Arminia سره تړلی دی او وايي چې داديارلسم ولايت و . مونږ تخمين کوو چې دا پاکتيوک له هماغه بل پاکتيوک سره چې سايلکس Scylax له هغه ځای څخه بيړۍ چلولې ده توپير لري . داڅپاره ماته يقيناً ناسمه ښکاري . دهخامنشيانو ليکنې او کرښې له ارمينيا سره کوم بل ځای نه گډوي او نه يې يادونه کوي ، او ارمينيا يې هميشه ځانته ولايت معرفي کړی دی . داسې معلوميږي چې د داريوش منشي يا مورخ سهواً د پاکتيوک نوم بل ځای کښلی دی او بايد دااووم ولايت

يې چيـرته چې گنداريوي Gandarioi وسيـدل ، ښودلی وای . نه داچې په ديارلسم ولايت کې يې يادکړی دی . دافرضيه پورتني طرح دهيرودوتس نورو دوولیکنو سره په يوه خط کې راولي چيرته چې پاکتيوک دکابل دريا پر غاړه په گندهارا کې ښودل شوی دی . هغه پاکتيوک چې Scylax له هغه ځای نه خپل دريايي سفر پيل کړی دی يوازې دوه مخه وروسته په تاريخ کې ذکر شوی دی ( ۱۰۲ مخ ، ۳ م کتاب ) . کـه چـېرې د هخامنشيـانو په امپراطورۍ کې دوه ځايونه په عين نامه درست وي ، نو متاسفانه چې هيرودوتس دهغو ذکر او طرح له ياده ايستلې ده . زه داسې نتيجه گيري کوم چې داووم ولايت نوم چې گانداريوی Gandarioi او درې نورې قبيلې په کې اوسيدلې پاکتيوک يا گندهارا سم بلل کيږي .

پنځم متن يوازې د گندهارا او هند دبيلوالي په هکله دی چې دواړه جلاجلا ولايتونه وو او واقعاً چې دهخـانشيـانو دډبرو ليکنې داثابتوي . لکه چې له لومړي متن څخه څرگنده ده هندبيخي نه وفتح شوی او هند هغه وخت فتح شو چې سايلکس« Scylax » له گندهارا څخه دريايي سفر پای ته ورساوه او گندهارا لاپخوا د امپراتورۍ جزو او بياوروسته له هغې څخه هند فتح شو .

د داريوش هندي ختيز سرحد روښانه نه دی خو دسکندر مقدوني له جگړو څخه معلوميږي چې دهغه سرحد دجهلم سيند و . او اخېرينه نقطه يې داوسني شرقي او غربي پنجاب سيمه ده او له هغې څخه وړاندې نه و اوړدشوی . دعلاقې وړخبره خو داده چې دهيرودوتس « هند » او همدارنگه دسکندر ، يونانيانو او روميانو هند په عمومي توگه هغه سيمې وې چې نن دپنجاب اوسند په نومونو ياديږي . داداباسين وادي ده چې په جغرافيوي لحاظ ډنني غربي پاکستان سره له صوبه سرحد پر ته مقايسه کيدای شي . دلرغوني تاريخ له مخې پاکستان حق لري چې دهند دعوا وکړي او دپارتيسن دزماني بهارت

له ورځو ( ۱۹٤۷ ) څخه وروسته د پاکستان لپاره دا پر ځای وه چې پر ځان یې دهند نوم ایښی وای . داریوش ، هیرودوتس ، سکندر ، پومپی pompey، هورس ( Horace ) او تروجان (Trajan ) یقیناً په جغرافیوي لحاظ نني غربي پاکستان ته هند ویلو .

په شپږم متن کې د پاکتیوس ذکر شوی چې د پاکتیوک او سیدونکي دی او دزیرسوس xerxes د اردو سرتیري وو چې په لیندو او پیشقبضو مسلح وو . دا دیادونې وړده چې د پتهاقی توپک له اختراع څخه دمخه لښده او غشي د پښتنو قبیلو وسله وه او پیشقبضې تر ل خو لا اوس په پښتنو کې رواج لري په تیره بیا دغرنیو سیمو پښتانه پیشقبضې گرځوي ، اپریدي او وزیر دساتوې (مخصوصه پیشقبضه ) په گرځولو ویاړ کوي او دا یوه ملي اومعنوي وسله بولي ، داموومنله چې کاسپا تورس همدغه پښور دی او پاکتیوک دهغه هیواد نوم شو چې د پښور په شاوخوا کې خور شوی دی ، اوس د پاکتیوک ، پاکتیوس او نني پښتون کلمو تر منځ څه اړیکې شته ، څیړونکی گریرسن Grierson داورته والی قبول کړی دی مگر ډیر نني او معاصر پوهان په دې هکله خبرې اترې کوي . ددغو مستشرقینو ځینې عمده پوهان لکه پروفیسور بیلې ( Bailey ) له کمبریج څخه او مورگن سترن Morgenstierne له ( اوسلو څخه ) د پورتنی موضوع په هکله څیړنې کړي دي . مورگن سترن په دې هکله ډیرې تجربې لري او دده نتیجه گیری ته باید په پوره دروندوالي وکتل شي . راځئ چې وگورو پر کوموتکو باندې دوی داورته والی نه مني .

پروفیسور بیلې Bailey خپل دلایل د کوسانیکا (Kusanica) ترعنوان لاندې په یوه مضمون کې چې په (Journal of the British school of Oriental دبرتانیې

دختیزو او افریقایي څیړنو ژورنال (and African studies کـې یې پر ۱۹۵۲ کـال نشـر کـړی دی ، وړاندې کـوي . دده اعـتـراض دادی چې په فیلالوژیکي دلایلو سره موږ Pactues له پښتون کلمې سره همرنـګ نه شو بللای ، دی وایي چې دپختون ( پښتـون ) کلمه چې کلکه ویل کیږي یو نوی بدلون ، او لهجوي بدلون دی . اوتر دې وروسته په عین مضمون کې لیکي چې یونانیان kTدا یرانیانو Kht لپاره استعمالوي لکه : ( باکترا - پاړسي باختریس Bakta=Bakhtris ) . دده استدلال او اعتراض دپختون دتلفظ پر ســـــــر باندې دی اودی حتی وایي چې Paktues پکتیوس په شمالي چترال کې له patu سره چې دیوه ځای نوم دی اړیکي لري .

دپروفیسر مورګن سترن نظریه بیخي نوې ده او داسلام دایرة المعارف Encyclopedia of Islam دڅلورم نوي چاپ لپاره د « افغان » ترنامه لاندې نشر شوې ده ،دی پښتون کلاسیک شکل بولي او پختون (پښتون) دشمال شرقي سیمو داوسیدونکو دمحلي ګړیدو لهجه ده . دی هم د « بیلې » په شان تائید کوي چې Kht ( خت ) وروستـی دیالکتیي شکل دی او Sht (شت ) احتمالاً هم دیونان KT نه دی منل شوی او په همدې دلیل ددغو آوازو مشابهت او یووالی ردوي . دی په خپل مضمون کې نوي تکي زیاتوي او پښتون دپتوللی پارستي Ptolmey,s parsy etae په حواله یوه قبیله بولي چې په پاراپامیزاد ( Paropamisus ) کې اوسیدل . زما غبرګون په دې هکله دادی چې Parsyetae هماغه پخوانی شکل دی چې پارسوا ته ورته ویل کـــــیږي او دپـــــــــــارس یا فـــــــــارس خلکو ( Persians=Farsiwan ) ته خطاب دی چې حتی پښتانه نن هم دوی ته د پارسیوان خطاب کوي . پارسیوان یا فارسیوان نن هم دفارسیانو یا ایرانیانو دیادونو یو شکل دی چې عامیانه مفهوم لري او معمولاً د تاجکو او

فارسي ژبو لپاره استعماليږي .

مورگن سترن نه دي ويلي چې له پاکتيوس (Paktues) څخه څه جوړشول؟

پورتني دواړه پوهان دژبې داساس پيژندونکي په حيث ټينګار کوي چې د (ش) sh پر ځای (ښ) kh معاصر ډيالکتي بدلون دی . ماداليدلي دي چې په کاستيلي هسپانوي کې هم د ش sh پر ځای ښ kh په اوسنيو بدلونو کې يو بدلون دی . داهم رښتيا ده چې د کابل حکومت څو څو واره په تاکيد سره ويلي دي چې د کندهار پسته پښتو چې ش (sh) وايي اصلي او دژبې کلاسيک شکل دی . په ډېر احترام سره زه ددې مخالف يم . دااحتمالي ده چې د پشتو / پشتون لپاره خامخا د کابل له خوا نشرات کيږي او دا ددرانيانو ټينګار دی ، د هيرودودتس ، پکتيوس د کندهار په شاوخوا کې نه اوسيدل ، بلکې د پېښور په وادۍ کې اوسيدل . زه به قانع کوونکی ثبوت درکړم چې په دې موافقه وشي چې سخت او دروند تلفظ د پېښور په شاوخوا کې نوی او اوسنی دی . پر دې سربيره دويلو نور څه هم شته . هغه څوک چې له پښتنو (پټهان) سره ډير کلونه اوسيدلې وي درته وبه وايي چې ښ (kh) په ش (sh) کې دوخت په تيريدو سره ورک کيږي او داتلفظ معمولاً دويونکي د حروفو د اداکولو په قابليت او استعداد پورې اړه لري . داچې سخت او دروند تلفظ د پېښور په سيمه کې د خلکو د نظريو او مفکورو له مخې نوی شی دی . دوی وايي چې د مردان ، سوابۍ د يوسفزو پښتو ترټولو ښه او سمه ده ، د ښ kh د لرغونتوب په هکله بل سند هم شتــه . ۲۳ ، (۵) Arrian-Anabasis د يواسپله (Euaspla) سيند په هکله چې احتمالاً د کونړ سيند دی خبرې کوي او وايي چې د لته لوی سکندر له اسپايي Aspaii سره ليدنه وکړه . ارسطو -Aris totfe ، سترابو strabo او کونتيس کرتيوس

Quintus curtius داسیند Khoaspes ( خواسپس ) یا Choaspes چواسپس په نامه یادوي. څرنګه چې (Eth) په یوناني ژبه کښې دښه مانا ورکوي نو Kho (خو. ښه) احتمالاً یوناني کلمه ده چې د Aspaii په ژبه کې هم دښه مانا ورکوي او په هر حال دایرانیانو هخانشیانو په امپرتورۍ کې داکلمه ډېره استعمال شوې او کیږي. ددغه دریا کلي مانا د « ښه آس » ده.

د (پختو) پښتو کلمه چې دښه مانا ورکوي عیناً ده - خه ، خو او په پښتو کې ښه ، ښو . دا هم رښتیا ده چې دهیرودوتس په ۱۸۸ ، او ۵۲ ، ۴۹ کې دکارون (Karun) سیند ذکر شوی او دسوسا (susa) ښار یې پر غاړه پروت و . همدارنګه په یوناني رسم الخط کې د Khoaspes خواسپس په شکل راغلی دی ، نو په دې کې سوال نه شته او کیدای شي چې د پختو (پښتو) شکل استعمال شوی وي . دادبحث وړ ده . په پخوانۍ پاړسي کې هیوا= حیوا (huwa) دښه په مانا وه . احتمال لري چې یونانیانو عین کلمه په خپل رسم الخط کې په kho (ښو -خو) اړولې وي . د kho (ښو ، خو) نږدې ارتباط له پختو (پښتو) Pakhtu سره دومره زیات دی چې له منلو څخه یې منکرېدل یوخاص اکاډمیک جراو بحث ته ضرورت پیدا کوي .

لااقل دومره راته په ګوته کیږي چې دسکندر په زمانه کې په کونړ کې دایراني ژبو « دروند او کلک » شکل موجود و ، په راتلونکي څپرکي کـــې به د Aspasii او Isapzai ( یوسفزي ) په هکله چې داوسني درانده تلفظ پختو (پښتو) اصلي ویونکي دي رڼا واچوو . راځئ چې له فونیتیکي مشاجرې څخه یو څه لرې شو او دشدید تلفظ له مخې پختون له پاکتیوس سره اړوند و بولو . داټول یو له بل سره ښه تطابق کوي او دبیلې « Bailey » په شان به زیات ساده توب نه کوو .

لانورې معادلې هم شته چې مساوات یې ثبوت کړو . له څلورو قبیلو څخه

دیوې په هکله هیرودوتس وایي چې په پاکتیوک Paktiuke یا ګندهارا Gandhara کې یوه قبیله هم د Aparutai وه . د ګریرسن او ستاین له خوا یادونه شوې وه چې اپاروتای نننی اپریدي دي . په دې هکله مورګن سترن هم د فونیتیک د بدلون په هکله مثبت نظر ښودلی دی او دا دوه کلمې ممکن تړلي بولي ، اپریدي نن ورځ د زیاتو پښتنو په شان ف په پ p بدلوي او دا واقعاً فونیتیک بدلون دی .

په دې کې لا سوال پاتې کیږي چې Aparutai (اپاروتای) او اپریدي ( Aparidai ) یو دي او که نه ؟ ځکه اپریدی Apridi لا نن ورځ هم د ف f په ځای پ p تلفظ کوي ، مګر د فونیتیک له مخې دا نتیجه ګیري نه شو کولای چې دا دواړه یو دي که څه هم د داریوش داووم ولایت د تیرا ، بازار ، خیبر او د کوهاټ د غاښې او سیدونکي اپاروتي معرفي شوي دي او نن په دې سیمه کې اپریدي ( Aparidai ) (پاریدای) اوسي. دا موهیر نه شي چې اپاروتي یوه ځانته قبیله وه چې له دې ولایت سره نږدې په بله سیمه کې اوسیدل او ګانداریوي Gandarioi سره نږدې پراته وو او په دې کې هم شک نه شته چې ګانداریوي ( Gandarioi ) د پېښور دوادۍ اوسیدونکي وو. څرنګه چې موږ او تاسې ته څرګنده وه د آپاریدیو کورونه نن دلته د پېښور وادۍ ته نږدې پراته دي سربیره پر دې د آپاریدیو د زیاترو کورونه د غرو په لوړو کې دي ، هلته تګ راتګ ډیر مشکل دی او یوازې د سپین غر لوړو برخو ورشوګانو ته لارې لري چې د سمندر له سطحې څخه ۱۰۰۰۰ څخه تر ۱۵۰۰۰ فوټو پورې لوړوالی لري ، نو ځکه د هیخ امپراتورۍ لپاره دا د اشغال او نیولو ګټوره سیمه نه وه . د Aparutai /Aparidai ( اپاریدي - اپاروتي ) د نومونو مشابهت د هیرودوتس په لیکنو کې دا مرسته کوي چې دا نومونه ترنن ورځې تعقیب شي . بیلیو Bellew لا نور پر مخ ځي او د

Sattagudai ساتاګوداى قبيله دننني خټک قبيله ګڼي او همدارنګه Dadikai داديکاى د کاکړو يوه څانګه بولي چې دى ورته Dadi وايي .

د« دادي » Dadi په هکله ما هيڅ کله څه نه دي اوريدلي ، مګر د بيليو دخټک او ساتاګوداى اړيکي د بحث وړ دي . ساتاګوداى Sattagudai دلفظ په مفهوم په يوناني ژبه کې د پخوانۍ پاړسي کلمې ( ساتاګوش ) ژباړه ده چې د هخانشيانو په ليکل شوو ډبرو کې د يوه ولايت نوم دى . ددې دقيق موقعيت روښانه نه دى خو په ختيزو سيمو کې د هغې ذکر دهند ،اراکوزيا (کندهار ) او ګندهارا په ګروپ کې راغلى دى ، ګرشمان Ghirsman هغه د اباسين غرب او د ګندهارا جنوب ته ښيي .

په مودرنه جغرافيه کې تقريباً دننني کوهاټ ، بنو ، ډيره جات او وزيرستان سيمه څرګنديږي . دا هغه سيمه ده چې دلته زيات شمېر خټک اوسيږي . پخپله خټک د دودله مخې داسې وايي چې پخوا زمانو کې دوى د توچي Tochi په وادۍ کې اوسيدل او د خپلو ترو زامنو يانې د « شيتک » (Shitak ) د زامنو له لاسه جبراً له هغې سيمې څخه وتلي او دلته ميشته شوي دي . داموضوع داسې څرګندونه کوي چې خټکو لا پراخه سيمه نيولې وه .

بيليو Bellew او راورټي Raverty دواړه د هخامنشيانو په رسم الخط نه پوهيدل . دا چې « بيليو » د پښتو او پختو تر منځ توپير منى او وايي چې دا قبيله کيداى شي چې شاتک تلفظ شي او هغه له Sattagudai سره يو بولي ، دراورټي دانتقاد وړ دى. (راورټي دلته حق په جانب دى چې د خټک لومړى توری يې خ khe ښودلى او khin (ښ) يې د پښتو د shin ش پر ځاى ډيالکتي بدلون ښودلى دى ، خټک هيڅکله ځانونه شتک shatak نه بولي ، مګر بيليو او راورټي دواړو دا هيره کړې چې

دلته یوه بله مشهوره قبیله هم شته چې کرلاڼي ته منسوب ده او له ختکو سره د موقعیت او نسب په لحاظ په تیره بیا له شیتک سره نږدې اړیکي لري . شیتک هغو قبیلو ته خطاب دی چې عموماً په توچي او بنو کې اوسېږي او خلک یې داوړ او بنوڅي بولي . همدارنګه ختک وایي چې دا د شیتکو اوسنۍ مځکې او سیمې یو وخت د دوی وې او شیتک په زوره نیولي او ختک یې ځینې شړلي دي ، اوس ختک په کوهاټ او پېښور کې اوسېږي .

د ختک او شیتک په نامه د مغولو د زمانې د شجرې لیکلو او چاپولو څخه د مخه نه دي یاد شوي . ختک او شیتک په تېره بیا د اکبر په زمانه کې د پېښور د لویې لارې د ساتلو په منظور زیات شهرت موندلی دی . بابر په خپلو خاطراتو کې د کرلاڼي یادونه کوي ، دا هغه وخت و چې دی د ۱۵۰۵ م کال په شاو خوا کې د بنو سیمه کې له دوی او نیازیو او عیسې خیلو سره مخامخ شوی و . احتمال لري چې د ده استشاره به ختکو یا شیتکو یا داوړو ته وي . دا ځکه چې دواړه کرلاڼي قبیلې دي ، دا د تشویش وړ نه ده چې پورتنۍ قبیلې پخوا په نامه نه دي ذکر شوي . حتی ابدالیان چې پر افغانستان یې حکومت کاوه په تېرو دوو پېړیو کې تر ډېره وخته نه دي ثبت شوي او د صفویانو د امپراتورۍ په وخت کې په اوه لسمه پیړۍ کې د دوی ذکر راغلی دی .

ختک او شیتک په ګډه له بنو سره نږدې ګډه پوله لري او د افغان او پښتون ( پټهان ) دهرې بلې قبیلې لکه یوسفزي ، دراني او غلجې په شان یې لویه سیمه نیولې ده . د ختکو له لنډ خوړ څخه چې د ملکنډ غاښي ته نږدې دی نیولې بیا د شیتکو تر برو داوړو پورې چې په توچي کې دي نږدې ۲۰۰ میله سیمه تر کنټرول لاندې لري . د دوی پراخوالی او د دوی زیات شمېر نفوس او د داوړو قبیلو تړون او اړیکي د بنو او توچي له مروچینو سره د داوړو کورنیو د خلکو ارزښت راښيي ، دوی په توره شپه له کوم بوتي څخه نه دي راشنه شوي .

دوی کرلاني دي خو دسړبن له ختې شخه، اصلي افغانان نه دي ، ساتاګوش Thatagush ښايي د دې سيمې په شاوخوا کې د کوم ځای نوم وي . داد توری شپې ته‌وپ دی خو کيدلی شي چې دهخانشيانو په ساتاګوش او دهرودوتس په ساتاګودای Sattagudai په پلټنه کې نه يوازې فونيتيک توپير روښان شي ، بلکې ديوې لويې قبيلې دټولېدو ځای تثبيت شي . دډېرو قبيلو ځانګړي نومونه دمغولو له زمانې شخه را په دې خوا پيژندل شوي او لانور هم امکان لري .

دهرودوتس دوه وروستي متنونه چې را اخيستل شوي دي يوه قبيله يادوي چې ساګارتيوی ( Sagartioi ) نوميږي او کوچيان دي . دوی دزيرسيس (xerxes ) داردو تکړه سپاره تشکيلوي ، داخلک په پارسي ژبه غږيږي او په لباس کې نيم پښتانه ( Paktuan ) اونيم پارسيان (Persian ) دي . داداسې يوه پيژندنه ده چې له ابداليانو سره لګيږي ، ابداليان ( درانيان ) دنادرشاه افشار لهزمانې شخه لږ شه مخکې په مجهول ډول راڅرګند شول . ( لهدوو پيړيو شخه لږ شه دمخه ) .

داهغه افغانان دي چې په غرب کې ژوند کوي او ايران ته نږدې دي ، لومړی ځل دلوی پادشاه شاه عباس ( ۱۵۸۷-۱۶۲۹ ) دنظر وړشول او بيا دنادرشاه افشار ( ۱۷۳۰-۱۷٤۷ ) په وخت کې هم دتوجه وړوو . دوی ټولو په پارسي خبرې کولې په تيره بيا مشرانو يې د پښتو په نسبت پارسي ته ترجيح ورکوله . دوی دايرانيانو دکلتور ډېر تابع وو او په دې ارتباط تر ټولو نورو افغانانو لکه غلجي چې پنځلس کاله يې پر ايران حکومت وکړ دوی زيات دايران دکلتور تر تاثير لاندې وو .

ددرانيانو په هکله الفنستون هم ښه شرح ورکړې ده . دی ليکي چې دوی په پارسي ژبه ښه پوهيږي لباس او وسله ، عادتونه يې کټ مټ دايرانيانو په

شان دي خو بياهم تر يوه حده يې خپل خصوصيات ساتلي دي ، الفنستون د دوی دمالدارۍ او کوچياني ژوند په هکله هم اشاره کوي او ليکي چې دده په وخت کې ( ۱۸۰۹ ) دوی خپل وطن داسې ساته چې دقلبې په وخت کې هم لاجنگيالې سپاره گرځېدل اوښار به يې کاوه . الکساندر برنيس -Alexan der Burnis له ده څخه شل کاله وروسته ليکي چې درانيان په کابل کې په پارسي خبرې کوي او دلوړې طبقې خلک حتی په پښتو نه پوهيږي . داداسې پديده ده چې دورځې په شان روښانه ده . له هره اړخه دهرودوتس څوکرښې دساگارتيوي په هکله له درانيانو سره مطابقت کوي چې څه ناڅه دوروستيو دوو پيړيو په موده کې پيژندل شوي دي .

Sagartia ساگاتيا يوازې دداريوش دډبرو پر مخ ليکنې چې د پرسپپاليس دماڼۍ تبۍ دي ، يوه صوبه بولي .ددې نښتوالی ښايي دکوم بغاوت له کبله وي او يا دکوم بل ولايت له خوا جذب شوې وي . دولايت موقعيت هم په شک کې د ی، گيرشمن دادمشهد او هرات تر منځ يو ځای ښيي. او هغه سيمه ده چې ابداليانو ورياندې تسلط درلود اوبيا په اتلسمه پېړۍ کې دنادرشاه افشار له خوا محدود او محصور شو .

کله مو چې دنسب او شجرې مطالعه کوله ومو ليدل چې دابداليانو نيکه شرخبون يا شکربون دی . دا هم ممکنه ده چې شکربون يا شرخبون لهساگارتيوي سره يوه کمزورې اړيکې هم ولري . مخکې تردې چې هيرودوتس پرځای پرېږدو ، دابه مناسبه وي چې د راوورتي وروستيو کلمو ته چې د هيرودوتس دخيال بافۍ په هکله يې کړي يو لنډ نظر واچوو :

« افغانان » که څه هم پر بيلابيلو قبيلو ويشل شوي دي ، بې له شکه ديوه نژاد دي او په اصل کې په يوه ژبه خبرې کوي . که چيرې دوی ددې خاورې چې افغانستان نوميږي اصلي او بومي اوسيدونکي وای نو هرومرو به پخوانيو

ليکوالو د دوی په هکله څه ليکلي وای ، ځکه موږ و تاسې ته ښکاره شوه چې حتی د هیرودوتس په زمانه کې داریوش یوه پلټونکې ډلګۍ د کاریاندا Caryanda د سايلکس Scylax او ځينو نورو په واسطه تر اباسين پورې واستوله . »

د پورتنۍ ليکنې د تائيد لپاره د هيرودوتس ٤٤،٤ ( په دې څپرکي کې دده لیکلی متن ) یادښت يې ژباړلي او د نوټ په شکل يې ضميمه کړی دی : راورټي ، په عمومي ډول دا متن په دې ډول بیانوي : « دوی د Pactics پاکتيس هيواد د کاسپاتيرس Caspatyrus له ښار څخه په دریا کې ختيځ او لمرخاته خوا ته خپل سفر پيل کړ چې سمندر ته ورسیږي . »

د دوو پورتنيو ليکنو ترمنځ توپير ليدل کيږي . ده په خپل متن کې لیکلي دي چې د دې خلکو په هکله چې راورټي يې د ژبې ګرامر ليکلی ، پخوانيو ليکوالو څه نه دي ليکلي ، حال دا چې هيرودوتس د پاکتيس Paktyice په هکله ليکنې کړې او راورټي په منفي شکل له هغو څخه انکار کوي . داسې ښکاريږي چې راورټي د دې تضاد او تصادف ته هېڅ متوجه نه دی او له خپل موقف څخه وړاندې ځي او افغاني مورخينو سره په دې موافقه کوي چې افغانان د عبراني قبايلو پاتې شوني دي .

زما خپلې لوستنې او څېړنې - دده پر عکس ، ښکاره کوي چې د هيرودوتس په ليکنو کې د ځايونو او قبيلوي نومونو ، دودونو ، او عنعنو په هکله پوره ورته والی شته چې له نننیو ځايونو او قبيلو سره سمون خوري او داسې باید ونه وايو چې دا تصادف دی ، نو که تصادف يې بولو ، خورا ډېر تصادفونه به وشميرو .

هېرودوتس دوه ځله پاسکاپورس Paskapuros د پاکتيوک Paktuike ديوه ښار په نامه يادوي ، پاکتيوس Paktues داسې راپيژني

چې جنګیالي خلک دي ،ساتووه ( چاړه ) د ددوی وسله ده او هغه قبیلې چې دلته اوسېږي اپاروتای Aparutai او ګارندار یـــــــــوي Gandarioi دي او کله چې سړی د پاکتـیـو ک Paktuike دسیمې د دریا ( اباسین =Indus )ختیځ خواته سفر وکړي دساتاګودای (Sattagudai ) قبیلې ته رسیږي چې ترټولو هندي قبیلو څخه چې د پاکتیوک شمال ته اوسیږي زړه ور او جنګیـالي خلک دي. - داټول تشریحات دنړۍ ددغه کونج او سیمې په هکله یو له بل سره تړلي دي. په دې تشریحاتو کې بې منطقه نه معلومیږي چې ووایو چې پښتورښار چې د پښتونخوا (Pakhtun Land ) یا ګندهارا دولایت مرکز و او دلتـه ګنداریان Gandarian اوسیدل چې بیا وروستـه قندهاریان (Qandaris ) شول ، اپریدي اوښايي هم ختک دلته اوسیدل . همدارنګه دهیرودوتس لیکنه چې د سمندر خواته په اباسین کې تلل ، ښايي له کابل سیند ( لنډي سیند ) څخه به بیل شوی وي .

دا چې هیرودوتس دافغان مستیقماً یادونه نه ده کړې دحیرانتیا وړنه ده او شجرې مو هم هغې خواته بیايي چې موږ يې توقع لرو ، موږ وتاسې به یې وګورو چې له هخامنشیانو څخه وروسته پر دې هیواد باندې ډول ډول یرغلونه شوي چې داسیمه یې لوټه لوټه کړې او خلک یې په واروار مهـاجرتونو ته اړکړي دي ، چې په نتیجه کې ځینې قبیلې له منځه تللي او تجزیه شوي دي او ځینې نورې نوی راپیدا شوي دي ، مګر دایرغلونه احتمالاً په هوارو سیمو کې شوي دي چې هلته ننني اوسیدونکي ځانونه اصلي افغانان معرفي کوي ،نو کوم وخت چې اسنادو تاریخ او شـواهدوتـه پاملرنه کـوو ، مـوږ ته پوره پوره څرګندیږي چې دهسکو غرنیو سیمو اوسیدونکي د پردیو له یرغلو نو څخه تر ډیره حده پورې مصئون پاتې شوي دي او لښکرې یې له څنګه تیرې شوي دي ، دشجرو او نسب تینګار پر غیرافغاني قبیلو لکه اپریدي او ختک چې په ختـه

کرلاني دي دهسکو سيمو او سيدونکي دي او معلومات داسې څرګندوي چې دوی تر ټولو اصلي پښتانه ګڼل کيدای شي او ډير وروسته د يرغلګرو تر تاثيراتو لاندې څه ناڅه بدلونونه په کې راغلي دي ، په بل عبارت سره که ووايم په اسنادو او شواهدو کې مونږ هر څومره پلټنه چې وکړو په دې سيمه کې مونږ د پښتانه ( پختون ) له نيکه ګانو سره ټکر خورو او نه له افغانانو سره .

داسې هيڅکله هم نه شي کيدای چې د اصليت ، نژاد او ژبې له مخې يوه قبيله او ختيه تر پايه پورې تعقيب او وڅيړل شي . حالت داسې کيدای شي چې د قبيلې يا قبيلو ځينې شړل شوې کورنۍ ، مهاجرين او شړل شوي افراد بيا په بل ځای او بل شکل سره دوباره ټول شوي او يو ځای شوي وي او نوې ټولنه يې جوړه کړې وي . او حتی خپله ژبه او کلتور يې څه ناڅه تعديل کړي وي او سره له دې ټولو خارجي او اجباري عواملو چې په دوی کې يې بدلون راوستلی وي بيا يې هم په غرنيو او هسکو مشکلو سيمو کې تر يوه حده پورې اصلي معيارونه دودونه او عادتونه ساتلي دي او پر تاريخي ارزښتونو وياړي . داتيوري لږ تر لږه د پټهان ( پښتون ) تاريخ ته مقدمه کيدای شي او پوره منطق او استدلال په کې شته نسبت ديته چې دوی بني اسرائيل وګڼل شي .

بنا يي دا به پر ځای او مناسبه وي چې د هيرودوتس استدلال د وينسټون چرچل Winston churchill په کلماتو چې په Fair Rosamond ( فيرروزامند ) کې يې ليکلي دي خلاصه کړو . ډيرو ستونزمنو څيړونکو د اعالي کيسه تر لاس لاندې نيولې وه خو په يقين سره بايد د دې کيسې ځای په تاريخ کې روښانه او ثابت شي . که چېرې پښتانه په خپله په شک کې وي او يا دودونو او عنعنو بدلونونه راوستلي دي ، پرېږدئ چې دوی په يادولري چې هيرودوتس لومړنی څوک دی چې د پاکتيوک د شاوخوا سيمې خلک يې د ټولو شاوخوا سيمو د خلکو په پرتله زړه ور او جنګيالي بللي دي .

# دریم څپرکی

# دسکندر عبور

دفارس دهخانشیانو امپراتوری دلوی سکندر په واسطه پر ۳۳۱ ق م کال سقوط وکړ . په ګوګامیله Gaugamela ، اربیلا Arbela (نني اربیل Arbil ) ته نږدې دموسل ( Mosul ) په شاوخوا کې دهخامنشي داریوش کودمانوس Darius Codomanus پوځونه له ماتې سره مخامخ شول او سکندر مقدوني فاتح شو . جګړه ډیره خونړۍ وه او فارسیانو په خورا میړانې سره مقاومت کاوه . داریوش ارګباتانا Argbatana (همدان Hamadan) ته وتښتیده . که څه هم له ختیز ایران څخه ساکا Saka او باختریانو Bactrians په ټوله شپه کې مقاومت وکړ خو بالاخره مات شول ، مګر دسکندر لپاره یې څو کاله وخت ونیو چې داخلک آرام کړي ، داجنګ قاطع او پریکړی جنګ واو دهخامنشیانو امپراتوري ختمه شوه . سر داوید هوګارت SirDayid

Hogarth د آریان Arrian لست ته اشاره کوي او د فارس په اردو کې
د پښتنو او غرنیو سیمو او هندوکش د خلکو پوځیان په گوگامیله کې یادوي ،
مگر متاسفانه دا داسې یوه خبره ده چې د هغې جوړښت په خیال او فکر کې په
پام کې ونیول شي ، آریان Arrian په ( ۸ ، ۳ ، Anabasis ) کې راښیي
چې اراکوزیا د ده یوازینی ختیز ایالت وچې د نورو ختیزو ایالاتو په جمله کې
دوی په هندي غرنیو او سیدونکو یاد یدل . موږ داسې تخمین کولای شو چې
په دې کې گانداریوي Gandarioi ، پاکتیوس Paktues ، اپاروتای
Aparutai او نور چې هیرودوتس د هغو یادونه کړې ده هم شامل دي .
سکندر خپل پوځونه د ۳۲۷ ق م په پسرلي کې داباسین وادۍ ته ولیږدول.
په دې ځلورو کلونو کې حیرانوونکي مارشونه بابیلان Babylon ، سوسا
Susa او پارسیپالیس Parsepolis ته او بیا له فارس څخه په تیریدو
سره د داریوش په تعقیب تر مشهد پورې اجرا او بیا په نننې افغانستان کې
فراه ، کندهار او کابل خواته یې ادامه درلوده خو په دې ځایونو کې احتمالاً
بې له کابله د کومې آبادۍ بنیاد کښېښښودل شو . ده غوښتل چې د هندوکش
له لارې باختر ( باکتریا ) یانې نننې افغان ترکستان ته ننوځي او وروسې
د سوېر دریا Syr Darya ( Jaxartes ) آخوا سمرقند ته ځان ورسوي .
د لرغونو تاریخ پوهانو په حواله دا مارشونه لومړی د دې لپاره وو چې
پرځیدلی داریوش تعقیب کړي او وروسې د باکتریا والي Bessus بیسوس
پل ووهي او په سزا یې ورسوي ، ځکه چې نوموړي دلوی پاچا وروستنی
استازی په دامغان Damghan کې وژلی و او هڅه یې کړې وه چې پخپله
مستقل حکمران شي او ختیز ایالتونه په خپله ولکه کې وساتي . مگر اصل
حقیقت داسې و چې د دغې لښکر کشۍ په نتیجه کې سکندر غوښتل چې

دپارس دامپراتورۍ په ختیزو سرحدا تو کې خپل حاکمیت ټینګ کړي .
دخپلې پالیسۍ مطابق یې هر چیرته ښارونه جوړول چې دده راتلونکو لپاره په
آسیا کې دسوق واداري مرکزونه موجود وي . دسیلوکید دیا۔
دوچي Seleucid Diadochi امپراتورۍ په سوریا او بابیلان کې ۱۵۰
کاله دوام وکړ مګر د پارس پرڅمکه یې لږڅو لسیزو څخه پرته حکومت ونه شو
کړای ، دسکندر لښکر کشۍ په ګندهارا او هند کې وار له واره څه اداري بدلون
را نه ووست دوه افسران دموریا Maurya له خوا داباسین له غاړو څخه لږڅو
کالو وروسته وشړل شول ، له سکندر څه خاطرې پاتې نه شوې او په ګندهارا او
شاو خوا کې لاد ایراني هخامنشیانو نښې په سیمه او خلکو کې لیدل کیدې ،
دهند دموریا امپراتورۍ په ۳۰۵ ق م کې سیلیوکیو Seleucue
دشمال لویدیز سرحد سیمو له څخه آخوا وشاړه ، خو دا عمل دسکندر
دتیریدونکي مارش له کبله منځته نه و راغلی ، دموریا پاچاهانو چندر اګوپتا
او اشوکا دسکندر سبق ته ضرورت نه درلود . دوی دامپراتورۍ په چارو ښه
پوهیدل . دوه پیړۍ دپارس پاچاهۍ دوی ته ددولت جوړښت ورښودلی و او
دپارس امپراتورۍ دوی دآزاد دولت جوړولو ته تشویق کړي وو او دهغې په
څیرېې دولت جوړ کړی و .

پر ګندهارا باندې دسکندر دیرغل تاثیرات دتیري کوونکي په حیث ډیر
زیات وو او دیوناني کلتور او مفکورې دپراختیا په مقصد یې تاثیر ډیر کم و .
وروستی کوم ګریکو - باختر کوم یوناني تفکر چې هند ته خپور شو ،
دوروستیو پاچاهانو بنسټ ایښودنه وه او سکندر په کې کوم تاثیر نه درلود .
دا تاثیرات دسکندر له مړینې څخه ۱۵۰ کاله وروسته ګندهارا ته ورسیدل .
دسکندر د پاتې کیدو تړله موده په صوبه سرحد کې له هغه وخت څخه چې له

باختر څخه د ۳۲۷ ق. م ، په اوړي کې ووت او له اباسين څخه دراتلونکي کال په لومړيو کې تيرشو ، څه کم دولس مياشتې پاتې شو او په دې موده کې هم يا يي کلاګانې رنګولې او يا په جګړه ييز شکل مخ په وړاندې تلو . کله چې له لوی سيند څخه پورې ووت زموږ له نظر څخه نيام شو . ده غوښتل چې تر بيس Beas پورې ولاړ شي او بيا په بيړۍ کې داباسين له لارې سمندر ته ځان ورسوي ، دی په ګندهارا کې يو وار ( يو طرفه ) تير شوی دی .

په سرحد کې داسې هم ويل کيږي چې پلانۍ قبيله د يونانيانو او مقدونيانو وينه لري چې دسکندر او دهغه له پوځيانو څخه يې په ميراث وړې ده . اپريدي دمثال په ډول ګڼه يوناني وينه لري . دوی خپلو يوناني نښو ته اشاره کوي او رښتيا هم ډير اپريدي ځوانان به کټ مټ داپولو Apollo پر ځای موډل شي او په عين حال کې اپريدي مشران په کټ مټ زيوس Zeus ته ورته والی ولري . داسې ځوان جنګيالي په اپريديو او نورو قبيلو کې شته چې دسکندر له شکل او صورت سره بيخي ورته والی لري . داسې وايي چې سکندر کله چې له تيرا او خيبر څخه تيريده ، دده دپوځ فراريان په اپريديو کې پټ شول او په نتيجه کې ديونانيانو وينه له دوی سره ګډه شوه ، مګر داسې ليکلی سند تر اوسه نه دی تر لاسه شوی چې سکندر دې له دې سيمې څخه تير شوی وي . په دې هکله نه هندي ، نه هخامنشي ، نه معاصر او نه له معاصر څخه دمخه ليکلی اثر شته چې پورتنۍ خبره تائيد کړي . که چيرې د آريان Arrian او نورو کلاسيکو منابعو يادښتونه ، نه وای موجود ، نو له يونان او لاتين سره به دسکندر اړيکي دګندهارا په سيمه کې پخوا هير شوي وای او لکه دخوب په شان به تير شوي وای ، داپريديو او نورو دودونو ريښه بيا په لويديزو کلاسيکو زده کړو کې ليدل کيږي چې دبغداد دعباسي خليفه

گانو په دوره کې په عربي ژبه ژباړل شوي دي او ديوناني (Greek) (لور Lore = دودونو ) تاثيرات په اسلامي ادبياتو کې راښيي ( Literae Humaniores ) . همداد سکندر ذوالقرنين نوميالي کارونه وو چې د اسلامي نړۍ د فولکلور برخه شوه . ترڅو چې يوناني او لاتين زده کړې نه وې پيل شوې د سکندر مقدوني پوځي کړه وړه په ختيز ايران او هند کې بيخي له ياده وتلي وو او دده زمان او عمر په صوبه سرحد کې هم خورا لنډ و ، چندان خاطرات او اثرات يې هم نه وې پرې ايښي او په خلکو کې يې اغيزې نه ليدل کيدې .

يوناني کلتور ډيره موده وروسته د يونان - باختر پاچاهانو په واسطه په دې سيمه کې مسلط شو . په هغه دوران کې د ستونزو په گاللو سره ډير شواهد بيا جوړ او راژوندي کړای شول او د مخه تردې يوناني خاطرې ژوندۍ نه وې پاتې شوې . د يونان - باختر پاچاهۍ په دور کې د يونانيانو کلتور او فرهنگ دودونه او رواجونه چې په دې سيمه کې پاتې شول د سکندرنامه په ژوندي پاتې کيدو کې يې هم تاثير درلود . البته په دې کې په بغداد کې د عربوله خوا د يونان د تاريخ زده کړې هم لوی رول درلود ، مگر په حقيقت کې مقدوني سکندر پر دې سيمه باندې د ليږد يدونکي مرغه په شان تېر شو او شخصاً يې په دې سيمه کې د يادولو وړ څه له ځانه يادگار پرې نه ښودل او نه يې د ختيز سرحد پر چارو باندې کوم تاثير واچاوه او د فارس امپراتورۍ تاثيرات نسبت سکندر ته ډير او دياوني وړ وو .

Arrian آريان : زمونږ اصلي استناد د رومي امپراتورانو هريو هادريان Hadrian انتونينوس پايوس Antoninus pius او مارکس او ريليوس Marcus Aurelius هم عصر و او د انتونينوس پايوس مشاور هم و

احتمالاً د ۱۷۵ م په شاوخوا کې اوسیده او تقریباً پنځه سوه کاله وروسته د تېرو حُوادثو ثبت کوي . د ی دهیرودوتس په خلاف یوازې د یوه نسل او دهغه پرحوادثو نه دی غځېدلی ، بلکې ده ډېره اوږده موده تر ځېړنې لاندې نیولې ده ، دآریان کتاب Anabasis ( سفر ) په یوناني ژبه لیکل شوی دی ، نور څه ناڅه کونیتوس گورتیوس روفس ( Quintus gurtius Rufus ) په لاتیني ژبه او پلوتارک (Plutarch) چې دځینو معاصرو ژوندیو په هکله یې په یوناني ژبه لیکنې کړې چې د میلاد په لومړۍ پیړۍ پورې تړلي دي ، مگر دواړه کمزوري اسناد دي ، همدارنگه دسترابو Strabo( ٦٤ق م - ۱۹م) په کارونو کې هم جغرافیوي معلومات او ریفرنس شته او همدارنگه دسکندري منجم پتولیمي (Ptolemy) په کارونو کې ( ددویمې میلادي پیړۍ ) معلومات شته چې گټوربلل کیدای شي.

Arrian په عمومي توگه نظامي مورخ دی ، بې له شکه چې دده کار پر معاصرو اسنادو باندې بنادی لکه د پتولیمي -۱ (ptolemy-1) یادښتونه. نوموړی دسکندر ملگری ، دمصري کورنۍ او دمیگاستینیس (Megasthenes) موسس دی او په ختیځ کې یې د سکندر جنرال سیلیوکس (Seleucus) دسفیر په توگه دموریا دربارته ولیږه . دآریان کتاب Anabasis له غرونو څخه دتېرېدو په هکله ، خورا ډېر معلومات لري . دده راپور دمحاصرو ، کلابندیو ، دځینو ځایونو لکه بزیره Baziraاو اورنوس Aornos دتوپان په هکله په زړه پورې نظامي لیکنې دي ، او په ډېر دقت سره دمحلي جغرافیې شرح او تفصیل ورکوي چې ارکیالوژستانو ته غټه مرسته ده او داراضي په مخ یې دوی ته حتی دنن ورځې دڅیړنو لپاره اسانتیاوې رامنځته کړې او دهغو تشریحاتو څخه گټه اخیستل کیږي ، څه

ډول چې د نظامي تحرکاتو له راپور څخه پوره معلومات اخیستل کیدای شي او ګټور وي. خو افسوس ، دا چې دایمي فتح او حکومت نه و ترلاسه شوی نو د آریان لیکنه نهیلې کوونکې ده . دا اثر د سرحد صوبې د هغو برخو په هکله چې سکندر ورڅخه تیر شوی دی ، د ترکیب ، اصلیت او ژبو په هکله هیڅ ډول معلومات نه لري ، په دې هکله د هیرودوتس له لیکنو سره تو پیر لري او دلایل یې د ځیرنې وړ دي .

د هیرودوتس یادښتونه د هخامنشیانو د زمانې د سلوکالو مودې د اسنادو په استناد دي . هخامنشیان په اداري سیستم کې ډیر پر مخ تللي وو او ښه نظم یې درلود . د هیرودوتس په عصر کې چې ډایي لیکل نظم او اداره ټینګه وه. که څه هم زورکیز xerxes د لوی داریوش ځای ناستی د یونان په فتح بریالی نه شو ، څرنګه چې اشاره ورته وشوه هیرودوتس خپلې خاطرې چې لا تازه وې ولیکلې . پرعکس آریان او د سکندر نورو واقعاتو لیکونکو څو پیړۍ وروسته په دې کار لاس پورې کړی و او همدارنګه د لرې والي له کبله د دوی لیکنې دقیقې نه شي کیدای ځکه چې دوی یوازې یوه سلسله عملیات تشریح کړي دي چې په هغو کې د هخامنشیانو سقوط ښیي . ګندهارا او هند که څه هم دوی فتح کړي وو ،مګر د دوی د تسلط اثر چندانې محسوس نه و . سربېره پردې هېرودوتس لکه څرنګه چې رالین سن Rawlinson په ګوته کوي ټوله پیژندل شوې نړۍ په کیسه کې راوړي ، دولتونه او امپراتورۍ په دقت سره ګوري او زموږ په وړاندې یوه پراخه پانوراما مجسمه کوي . آریان که څه هم متوازن او ژوندی شخصیت و ، یوازې یې د یوه لوی جنګیالي جګړې لیکلې دي ، د هېرودوتس څیړنې د فارس د امپراتورۍ او ختیزو سیمو په هکله د حقایقو منعکسونکې دي او د هخامنشیانو د امپراتورۍ د ماشین هر څه

ثبتوي . د آريان له ذکاوت څخه ډ ک يادښتونه د يوې امپراتورۍ د سقوط او دنورو دانقلاب د برياليتوب جګړې بيانوي . سترابو Strabo او پتوليمي Ptolemy چې څه زيات توي يوازې جغرافيوي معلومات دي او د کيسې په مرام او هدف پورې څه نه زيات توي . څرنګه چې د نړۍ ډير لوی قوماندان تر چنګيز د مخه په صوبه سرحد کې تعقيبوو نو مجبور يو چې تر پايه يې وڅېړو . دا امکان شته چې د فاتح د لارې تعقيبول ، د ځايونو او قبيلو د نومونو يادونه څه نا څه زموږ د څېړنې داصلي موضوع په هکله رڼا اچوي .

دا به ډيره اسانه وي چې د آريان دراپور لنډيز ته غور وکړو او د ده کلمات به کټ مټ په ژباړه کې راولو ، ځکه چې له موضوع سره اړيکي لري ، کله چې د ۳۲۷ ق . م . پسرلی تېرشو ، سکندر خپل پوځونه له باختر څخه د هندوکش له لارې سکندريې ته چې دوه کاله مخکې يې د پاراپاميزاد (Parapamisidae) په خاوره کې جوړه کړې وه وليږدول . د غه سکندر يه له ننني جبلالسراج سره سمون خوري چې له کاپيسا او بګرام څخه ۱۵ ميله لرې د کوهدامن په خاوره کې د کابل شمال ته پروت دی . پتوليمي د پاراپاميزاد په هکله وايي چې دا له پنځو قبيلو څخه تشکيليږي چې پارسيان (Parsyetae) په کې هم شامل دي او مور ګنسترن دا قبيله له پښتنو سره تړي . ( زه په دې هکله دليل لرم چې پاړسيوان او تاجک يو دي ) . په دې ډول د کوپين Cophen درياب خوا ته نږدې کېدو او دا درياب د پتوليمي له خوا د (Coa کووا ) په نوم ياد شوی دی او د دريا په غاړه يوه ځای و چې نوم يې نيکايه Nicaea دی . د کوپين درياب بيخي روښان دی او دا د کابل درياب دی ، نيکايه که څه هم نه دی پيژندل شوی خو احتمالاً يا دلغمان په شاوخوا او يا د جلال آباد يا ننګرهار په سيمه کې د کوم ځای نوم

دی. آریان خپلې لیکنې ته داسې دوام ورکوي :

« کله چې دی نیکایه ته ورسیده او خپل معبود آتنا Athena ته یې قرباني ورکړه ، یو هیئت یې د ټکسیلا (Taxiles ) مشرانو ته چې داباسین په دې غاړه کې وو ، ورواستاوه ،او هغوی ته یې ښوونه وکړه چې له ده سره په داسې ځای کې وګوري چې دوی ته مناسب او مساعد وي ..... ده بیا خپله اردو نیمه کړه او د ګورګیانو ( Gorgias ) دلواګانو په راس کې یې هیپاسشیان Haphaestion او پیردیکاس( Perdicas ) او دبلې نیمې ، د مل سپاره او ملیشه سپاره په راس کې کلیتوس Clietus او میلیګر Meleager مقرر او د پیوسیلاتیس Peucelaotis او داباسین سیند خاورې ته یې ولیږل ، دوی ته امر شوی و چې د لارې په اوږدو کې ټول ځایونه فتح کړي ، که چېرې په خوښه تسلیمیدل نو د دوی تسلیمي دې ومنل شي ، کله چې اباسین ته ورسیږئ هرډول احضارات او ترتیبات له اباسین څخه داردو د تیرولو په مقصد ونیسئ او ټول امکانات تیار کړئ په دې مارش کې له دوئ سره د ټکسیلا مشران او نور مشران ملګري وو ، کله چې دوی اباسین ته ورسیدل ، له هدایتونو سره سم یې په عمل لاس پورې کړ . یو له مشرانو څخه آستیس Astes چې د پیوسیلاوتیس Peucelaotis حاکم و په بغاوت پیل وکړ مګر وځپل شو او دده اقدام له ماتې سره مخامخ شو . » په دې محاسبه کې تکسایل د ټکسیلا حکمران دی ، ټکسیلا داباسین پورې غاړه او له هغه څخه ۳۵ میله ختیځ ته پرته ده ، ټکسیلا زیات شهرت لري ځکه چې بیا دیونیان - باختر شاهانو د ساک ( Saka ) او کوشانیانو (Kushan ) د تمدن مرکز و ، اوس هم دارکیالوژیکي څیړنو لپاره دااهمیت ورځای بلل کیږي . پیوسیلاوتیس ( Peucelaotis ) په نړیواله سطحه قبول

شوی چې د پراکریت په ژبه کې پوکالاوتيPukaloaoti او دسانسکرت په ژبه کې پوشکالاواتي (Pushkalavati) منل شـــــوی دی ، جنرال کنینګهمGeneral Cunningham دپراتګ او چارسدې په شاو خوا کې له پېښور څخه اتلس میله شمال شرق ته یوه لویه غونډۍ پرته ده چې د پیوسیلاوتیس خاوره یې بولي . دپورتنیو خبرو پر اساس دپېښور او ګندهارا سیمه د پیوسیلاوتیس سیمه ده ، له آریان څخه دپاسکاپورس یا بل مشابه نوم په هکله څه نه دي تر لاسه شوي او موږ بالاخره داسې حکم کوو چې ددې دوو پیړیو په موده کې چې دسایلکس scylax او سکندر تر منځ تیرېږي ، داسې ښار ګندیږي چې چارسده له پېښور څخه وروسته دګندهارا پایتخت و . دچارسدې په سیمه کې په ستنهاتیک او منظم ډول سره کیندنې نه دي شوي ، مګر په غـــــیر منظم ډول لــــــه دې سیمې څخه هنـــــدویونـــــاني (INDO-GREEK) سکې ، دمجسمو ټوټې او خاورین لوښي موندل شوي دي چې دروم او سکندر دزمانې سکې او مجسمې دي ، چې په نتیجه کې ګندهارا دلویدیځ د تسلط او تاثیراتو مرکز ګڼل کیده .

داسې ښار ګندیږي چې ټکسیلا به ښایي دهخامنشیانو دامپراتورۍ دهند دایالت مرکز وي . او عیناً لکه چې لومړی پاسکاپوراس ( پېښور ) او بیا پیوسیلاوتیس ( چارسده ) دګندهارا ( پاکتیوک ) دایالت مشهور ښارونه وو. کله چـــــې ســـــکندر دټکسیلا دحاکم کونیتاس کورتیاس (Quintus- Curtius) چې اصلي نوم یې او مفـیس (Omphis) و بیعت ومانه ، داسې معلومه شوه چې دی د داریوش کادمانوس ځای نیوونکی واو د هخامنشیانو د هند ایالت ته وفادار و . سکندر کله چې دجهلم

سیند ځنډ وته ورسیده دفــــــارس دامپراتــــوري له حدودو څخه واوښت او د (Porus پاروس) د پنجاب حاکم له سخت مقاومت سره مخامخ شو . سکندر لومړنی او وروستی شخصیت نه و چې داورته ځرګنده شي چې دایران دامپراتوری ختیزه لمن دخیبر دره نه وه او حتی داباسین ځنډې هم نه وې ، بلکې دلرغوني ټېکسیلا په سیمه کې چې ننني لویه لار او داوسپنې پټلۍ دمرګاله (Margalla) دغاښي په برخه کې ببو بل سره پرې کوي ، وروستۍ پوله ګڼل کیږي ، حتی نن ورځ هم چې پښتانه (پټهان) له دې غاښي څخه راواوړي نو وایي چې کورته ننوتلو . -

دآریان په لیکنو کې پیوسیلاوتیس (Peucelaotis) او ټکسیلا (Taxila) یوازیني ځایونه دي چې په ننـنۍ نقشه کې تثبیت کیدای شـــي ، داعـــادتاً منل شـــوې ده چې د هېپاسشیان Hephaestion لارله نیکایه (Nicaea) څخه په ننګرهار کې تر پېښور پورې له خیبر درې څخه تیره شوې ده ، مګر په متن کې په دې هکله څه نه شته چې ثابت حکم پرې وشي ، موږ ته یوازې دومره معلومات شته چې دسکندر پورتني جنرال ، چې اړخیز قوتونه یې قومانده کول جلال آباد ته نږدې له کوم ځای څخه دچارسدې په لور حرکت کړی و . دځایونو نومونه یې نه دي ځرګند چې له پېښور سره یې اړیکي وځېږو . که چېرې د پېښور نوم هلته ذکر شوی وای نو کولای مو شول چې د هیپاسشیان سفر له خیبر درې څخه په یقین سره ومنو ، مګر داسې کومه استشاره نه شته ، لا دشک خبره داوه چې په هغه وخت کې پلونه ، نه وو نو آیا دخیـبر دره به آسانه لاره وه او که نه ؟ ښایي هیپاسشیان به دکابل له سیند څخه دکامې په شاوخوا او یا دلالپورې په سیمه کې دکونړ سیند له ګډیدو څخه مخکې ځایونو څخه تېر شوی وي او بیا به د

کراپه Karappa او گنداب Gandab له لارې د پېښور وادۍ ته ورکوز شوي وی ( دالارد مومندو په سیمه کې تېرېږي ) او د شبقدر په دوآبه کې به پېښور ته ننوتلی وي ، او یا ښایي ده به د سیند شمالي غاړه د ترکزیو مومندو په سیمه کې تعقیب کړې وي او یا به د جنوبي غاړې په اوږدو کې له شلمان څخه چې د تاترې د لوړې څوکې شاته ده تیر شوی وي . د خیبر درې د سړک له جوړیدو څخه د مخه مسافر به له دغو دواړو پورتنیو لارو څخه پر یوې تېریدل . دا به سمه نه وي چې ووایو پېښور ته له غرب څخه د تیریدو یوازیني لار د خیبر دره ده . دا خبره همداسې پاتې کیږي چې د سکندر خپله لار په پام کې ونیسو او په دې هکله آریان داسې لیکي :

« سکندر د پاتې قوت قومانده په خپل لاس کې واخیسته .......او د اسپاسي Aspasii گورایي Guraei او اساسیني Assaceni د هیواد پرخوایې تقرب وکړ . کومه لاره چې ده نیولې وه ، خطرناکه او له موانعو څخه ډکه وه او د چوس Choes د سیند پر غاړه وه ، سکندر د دې سیند له پورې وتلو څخه عاجز پاتې شوی و ..... ( وروسته ) یې د یواسپله Euaspla د سیند خواته حرکت وکړ او دلته د اسپاسي مشر ......و . ( او له عملیاتو څخه وروسته ) دی له غرونو څخه تېر شو او د . غره په لمنه کې یوه ښار ته راغی چې د هغه ښار نوم اریگایون Arigaion و مگر د ښار خلکو هر څه سوځولي وو او په خپله تښتیدلي وو . څرنګه چې د دې ښار موقعیت د اهمیت وړو ، ده کراتیرس Craterus ته امر وکړ چې ښار تحکیم کړي . ( او له زیاتو جنگونو څخه وروسته ده د اسپاسي خلکو ته ماته ورکړه ) بیا یې خپل پرمختګ ته دوام ورکړ او د اساسیني Assaceni خاوره یې ونیوله . کراتیرس د اریگایون له تحکیمولو څخه وروسته په اساسیني کې له سکندر

سره یو ځای شو او د محاصرې او تسخیر تدابیرې و نـــــیول او بیا د گورای Guraei له سیمې څخه تېر شول او دلته دی مجـــــبور و چې د گورای Guraei له سیند څخه هم پورې وځي ، بیا سکندر د مساگا (Massaga) پر خوا یرغل وکړ او داډېر لوی او مهم ښارو چې په سیمه کې یې ساری نه درلود . ( ډیره اوږده موده یې محاصره کړی و او بالاخره یې مات کړ ) سکندر دا ښار د توپانې حملو او یرغلونو په ترڅ کې ونیوه او د اساسینس Assace-nus لور او مور دواړه د سکندر له خوا اسیرانې شوې .

وروسته ده کوینس (Coenus) بازیرا Bozira ته واستاوه او په دې مقصد چې د بازیرا خلک به د مساگا له ماتې څخه عبرت واخلي او یې له جنگ څخه به تسلیم شي او همدارنگه اتالس Attalus ، السیتاس Alcetas او دیمتریوس Demetrius یې د اورا (Ora) ښار ته واستول چې هلته د ښار په شاوخوا د محاصرې دیوال چاپیر کړي او دده تر راتگ پورې یې تسلیمی ته تیار کړي ، کوینس (Coenus) په بازیرا کې چندان بریالیتوب تر لاسه نه کړ . خلک په ډیرو کلکو او هسکو مورچلو کې ځای پر ځای شوي وو او تسلیم نه شول ....... سکندر لومړی د (Ora) اور اخوا ته مخه کړه او په لومړي یرغل کې یې ونیول . کله چې د بازیرا خلک خبر شول چې « اورا » سقوط کړی دی نو دوی هم د خپل موقف په هکله مشوش شول او په نیمه شپه د Rock (راک غره) خوا ته چې د Aornos اورنوس په سیمه کې پروت و ، وتښتیدل ...... سکندر وپتیله چې داغر هم ونیسي .........ده « اورا » او مساگا په دوو ټینگو سنگرونو بدل کړل او په عین وخت کې یې د بازیرا مدافعه هم ټینگه کړه .

په همدې وخت کې د هیپاسشیان Hephaestion فرقه د اباسین خوا ته

په حرکت کې وه ........ چې د سکندر له امر سره سم پل جوړ کړي . بیا سکندر داباسین خواته مارش وکړ او د پیوسیلاوتیس (Peucelaotis) تسلیمي یې ومنله او بیا یې د سیمې د کوچنیو کلیو په نیولو یو څه وخت تېر کړ ..... بیا ده د اور نوس د غره Rock of Aornos خواته مخه کړه .

که چیرې د Strabo سترابو (۶۹۷، xv) متن نه وای نو د سکندر د لارې په هکله چې Hephaestion هیپاسشیان ورته اشاره کړې ده هرومرو به شک موجود وای . د آریان له لیکنو څخه هم څرگندیږي چې سکندر به د سپین غره له لارې کوهاټ ته کوز شوی وي او د الارهم عارضه لرونکې او جگې - ټیټې لري او حتی له شمالي لارې څخه به هم جگه ټیټه وي . مگر سترابو strabo شمالي لار په خاصه توگه ځکه خوښه کړه چې سیمه یې حاصل خیزه وه او جنوبي لاربې اوبو او همدارنگه د توپان خطر هم په کې ښکاریده او ده فکر کاوه چې له سیندونو څخه په منبع کې تیریدل اسانه دي .

د پورتني راپور او ډاډ له مخې څرگندیږي چې سکندر وارله واره پېښور ته راکوز نه شو . لومړی یې د لوړو سیمو کلاگانې ورانې او ویجاړې کړې ، داریگایون Arigaion ، مساگا Massaga ، بازیرا Bazira او اورا (Ora) کلاگانې یې ونړولې ، نو د توپوگرافۍ له مخې پوره روښانه معلومیږي چې د سکندر لار کومه یوه وه . هغه سیندونه چې دوی ورڅخه تېر شول له چوس Choes ، یواسپلا Euaspla او گورایس Guraeus څخه عبارت دي چې په ترتیب سره موياد کړل . د یواسپلا او گورای تر منځ یو غرذی چې دواړه سره بیلوي چې دایوازې کېدای شي د کونړ سیمه وي او د پنجکوړې داوبو د گډیدو ځای چې هلته اوس د ډیورند کرښه تېریږي . او چوس Choes کیدای شي چې د الیشنگ سیند وي او یواسپلا به د کونړ

سیند وي . گورایس د پنجکوړه سیند بلل کېدای شي او دادسانسکرت په ژبه کې د مهابارا تا په شپږم کتاب د گوري Gauri په نوم یاد شوی دی . اریگایون Arigaion به پـه دې ترتیب په باجوړ کې ناوه گۍ وي چــــې په حقیقت کې د موقعیت له مخې ډېر مهــــم ځای دی او ټول باجوړ ورته محکوم دی ، د پنجـــکوړې له تېریدو څـخـــه وروستـه سکـــــندر هرو مرو د تلاش Talash لارنیـولې ده چې د پنجکوړې او سـوات له کټگلـې چـیـو څـخـه ځـان وژغوري او په دې ترتیب د کټ گلا Catgala pass غاښې څخه ادین زیو ته تېریږي او د سوات د سیند غاړو تـه په چکدره کې وررسیږي .داسې څه نه شته چې د هغې په وجه وښودل شي چې له سوات څخه پښور ته ده کومه لاره په مخه کړې وه ؟ همدارنگه موږ باید د مـسـاگـا ، بازیرا او اورا موقعیتونه تثبیت کړو .

پورتنۍ مـوضـوع او همـدارنـگه او رنوس Aornos د موقعیت تثبیتولو موضوع د اهمیت وړ ده ځکه چې په ۱۹۲٦ کې اوریل ستاین Aurel stein پر دې څیړنه پیل وکړ . راپارونکې او حیرانوونکې خبره خو داده چې په محل او سیمه کې هیڅ ډول ریکارډ او نښې نښانې نه شته چې پر د غو حوادثو رڼا واچوي ، مگر په تصادفي ډول د تکتیکي فعالیتونو له مخې آریان Arrian حدث وهلی او نظر یې پې ورکړې ده او له دې څخه نتیجه اخلي چې مقدونیانو دلته جگړې کړي او د مقاومت محلونه یې جوړ کړي او په دې ترتیب موږ بیا گورو چې د سکندر پوځونه په دې سیمه کې تېر شوي او په تیره بیا سپاره قـوتونه یې د سوات په ښکلې وادۍ کې تېر شوي او دده بیرغ یې هسک ساتلی و ، ستاین د مساگا د تبثیتولو لپاره کوم قدم نه دی اخیستی ، یوازې دومره یې ویلي دي چې کوزسوات کې کوم ځای دی ، خو ده په دې هکله پوره

ښېرنه نه ده کړې . د آريان له ليکنو څخه دومره پوهېږو چې هغه يې د پنجکوړې (گورايس Guraeus ) ختيځ ته ښودلې ده . مگر ده هم واضيح توپوگرافيک موقعيت نه دی په گوته کړی . ډير روښان بارز تکتيکي ځای چې هم انگريزانو او هم مغولو هغه ته داهميت په سترگه کتلي او هغه يې ساتلی دی چکدره ( Chakdara ) ده چې ننني لويه لار « ډير » او « برسوات » ته له همدې ځای څخه تيرېږي او دسوات د دريا پر غاړه يو بل سره پرې کوي . که چيرې داسې فرض کړو چې مساگا په دې نقطه کې وه نو هرو مرو به آريان هغه ديوه آرام سيند پر غاړه ښودلې وای . د توپوگرافيکو معلوماتو له مخې موږ بايد د مساگا موقعيت د کورتيوس ( Curtius ) په يادښتونو کې ولټوو هغه مساگا داسې راپيژني :« مزاگا Mazaga ختيځ خواته په هسکو غرونو تړلې او ويالې په کې بهيږي چې څنډې يې ډيرې شخې دي ، جنوب او لويديز خواته د طبعيت له مخې دلته داسې غونډۍ جوړې شوې دي چې تولې تيږې او غټې ډبرې دي او په منځ کې يې داسې ځمکه پرته ده چې کندې لرې او جبه زاره ده .

که نقشې ته و کتل شي د کتگلا توپوگرافي چې داد ينزي او تلاش واديو تر منځ پرته ده ښه توضيح کوي ، چې د چکدرې شمال ته دا تو ميلو په فاصله د هغې لارې په سر پرته ده چې دير ته ځي . ترغاښې لاندې يوه لړۍ غونډۍ پرتې دي او يوه وياله چې وچ خوړېې بولي شته چې د کورتيوس له تشريحاتو سره مطابقت لري چې شرق خواته يوه هسکه نقطه تشکيلوي . همدا رنگه دلته ډيرې ژورې ، لوړې او کندې موجودې دي او د پخوانيو ودانيو کنډوالې هم شته چې د بودايانو کنډوالې دي ، همدارنگه د ډېرو نورو سيمو په شان دلته د مسلمانانو يو زيارت هم شته چې مجاور بابا نومېږي او شاوخوا يې ډيرې

ونې ولاړې دي . داغاښې ، واقعاً شرقاً - غرباً د تګ راتګ لپاره يوازينی لار او کيدای شي چې د قوتونو مخنيوی هم په کې عملي شي او له همدې ځای څخه د جوارو د ځمکو شنې جلګې داد ينزي او تلاش په وادیو کې ترحاکميت لاندې راوستلی شي . په دې کې شک نه شته چې سکندر له همدې لارې څخه تللی دی او همدارنګه له ده څخه اتلس پيړۍ وروسته بابر هم له همدې لارې څخه تير شوی دی. د چارسدې په شان دالرغونې کنډوالې نه دي سپړل شوي او که نه يقيناً به دلته ډيرې تاريخي نښې نښانې رابرسېره شي . داد ځمکې پر سر دلته بل عمده او بارز ځای دی چې د کتګلااو مساګاد يووالي علامې او نښې راښيي . لکه مخکې مې چې وويل د آريان راپور توپوګرافيک معلومات نه لري . هغه يوه کوچنۍ غونډۍ ښيي چې له کمپ څخه لرې پرته ده او سکندر خپل يو څه قوت هلته ځای پر ځای کړ . ځانګړې کوچنۍ غونډۍ په نقشه کې هم شته چې د غاښې شرق خوا ته لارې ته نږدې پرته ده او د هغه له شرحې سره مطابقت لري .

د مساګاله پرېښودلو نه مخکې زه غواړم چې دوه پيښې يادې کړم چې هغه به تړوله صحنه راژوندۍ کړي . سکندر غوښتل چې يوه غونډۍ راپورته کړي او يوه کنډواله ډکه کړي په دې وخت کې يو غشی د ده پرپښه ولګيده او ټپي شو . اريان ليکي چې په ښنګري کې ولګيده او کورتيوس Curtuis ليکلي دي چې په پنډۍ کې لګيدلی و . کله چې غشی ورڅخه وايستل شو ، ده خپل آس راوغوښت او بې له دې چې پښه يې بنداژشوې وي پر آس سپور او په زياتې انرژۍ سره يې هغه کار چې پيل کړی و ، تر پايه تعقيب کړ او خوږ پښه يې بې له کوم مسند څخه ځوړند وه او کله چې پښه ورو ورو سړيده او وينه وچيده درد پيل شو .

داسې ويل کيږي چې ده ته به د مشترۍ د زوی ( The son of Jupitar ) خطاب کيده . ( دا دزږه ور توب علامه ده ) دغه زخم داسې وښود له چې دی هم انسان دی او په داسې حال کې چې خندل يې جراح يې را وغوښت او خپلو ټپونو ته يې د کټ ګلادغاښي په سرکې داسې وويل: « دوستانو ! دا وينه ده ، دا زوې نه دي چې خدای بخښلې نه مړه کيدونکي څخه بهيدلې وي . هومر Homer داخبرې نقلوي . »

بله پښنه د کور تيوس په خپلو کلمو کې درته وړاندې کوم : « د مساګا خلک چې له خپلې دفاع څخه مايوس شول نو دوی ټول بالاحصار ته ننوتل ، دوی بې له تسليميدو څخه بله لاره نه درلوده ، دوی خپل استازی پاچاته ورولیږل او ښننه يې وغوښته . کله چې دوی ته عفوه و شوه ، ملکه له نورو مېرمنو سره راغله او سره واين يې په کاسو کې واچول . ملکې په خپله خپل ماشوم زوی د سکندر په پښو کې پر زنګنو کښېناوه او له سکندر څخه يې عفوه وغوښته او همدارنګه د خپل پخواني موقف د ساتنې غوښتنه يې هم وکړه . ځينې وايي چې دا امتياز دې ته ددې د بې ساري ښايست او جذابيت په خاطر ورکړ شو ، او نه په دې سبب چې ملکې خپل تخت له لاسه ورکړی وا وزړه سوی پر ې شوی و . له ډيرو واقعاتو وروسته ددې زوی پيدا شو او نوم يې سکندر پرې کيښود او داچې پلار يې څوک و مهمه نه ده . »

بزيرا Bazira دستاين له خوا په قناعت ښو نکي شکل سره له برکوټ Birkot سره يو بلل شوی او ننن ورځ بريکوټ بلل کيږي . د دغه بريکوټ Barikot موقعيت په منځني سوات کې په هغه ځای کې دی چې يوه فرعي لار له اصلي وادۍ څخه بېله شوې او د کاراکار Karakar له غاښي څخه بونير Buner ته اوړي . دلته ډيرې زياتې کنډوالې شته چې د وادۍ په منځ

کې ستراتیژیکې نقطې تشکیلوي . د آریان تشریح دبازیزا په هکله « دلوړو غرو د لوړې څوکې ښار » په نامه ده چې د کوټ Kot وروستاړی ورسره زیات شوی دی چې د کور ، بالاحصار او مانۍ مانا لري . دا په دې سیمه کې ډېره عامه کلمه ده او ډېرو ځایونو د نومونو په پای کې دوروستاړي په شکل ورزیات شوی دی . په یونانیي ژبه کې د Z ( Zeta ) زیټا حرف دانګریزي د y توري معادل او دهغه پر ځای راغلی دی ځکه چې y ( ی ) په یوناني ژبه کې نه شته او کوتیوس z د y لپاره راوړی دی ، یانې Bazra ( بازیرا ) یې لیکلې دِه خو په حقیقت کې Bayira بایرا ( یا Barra یا Beira ) ده چې کورتیوس همدا کلمه استعمال کړې ده او د دې کلکې دفاعي نقطې نوم دی چې دوخت په تېریدو سره په Bir ( بیریابر ) بدل شوی دی .

ستاین Ora ( اورا ) هغه ځای بللی دی چې راجاګیرا Raja Gira نومیږي او یوه کلکه کلاده او د اودیګرام ( Udegram ) دکلي په سرکې موقعیت لري او دسوات وادۍ له برکوټ څخه پورته پروت دی . د ګرام Gram کلمه دپراکیت Prakit د ژبې یو عام شکل دی ، چې د کلي مانا ورکوي او په مودرنه هندي کې ورته ګاون Gaon وایي . او د Ude کلمه اصلاً د Ora یا Ura شکل دی چې دپښتو « ړ » یې د d ( ډ ) په شکل راوړې ده ، هغه ځای چې ستاین یې له دې نوم سره تړي هلته موقعیت لري چې یوه تیره تړانګه اصلي وادي دسیدو Saidu له وادۍ څخه بېلوي او دلته بیا دیوه پیر ، مذهبي او روحاني شخصیت زیارت دی او پر ګنړو ونو پټ شوی دی ، دا دسوات دحاکمانو دښکار له سیمې څخه پورته واقع دی او په طبیعي ډول یوه کلکه نقطه او ټینګه موضع ګڼل کیږي .

زه دا نه حس کوم چې د غه پیژندنې او څیړنې دې وروستۍ وي ، کله چې

سکندرOra اورا تار او مار کړه دلته يې عسکري چاونۍ پرېښودې او پخپله ولاړ چې له هيپاشيان Hephaestian سره د پښور په وادۍ کې يو ځای شي ، دامهال ده د پيوسيلاوتس ( Peucelaotus ) (چارسده ) تسليمي ومنله او بيا د اباسين غاړې ته وراندې ولاړچې د پورې وتلو تدابير ونيسي او بيا اورنوس Aornos فتح کړي . څه ډول ، دې هواروسيمو ته له بازيرا يا برکوټ ( Birkot ) څخه ورسيده ؟ حال دا چې بازيرا ( برکوټ) د سوات له وادۍ څخه ډير لوړ او برپروت دی .

کوم منابع چې زموږ لاس ته راغلي دي په دې هکله څه استشاره نه ده شوې ، ښايي دی به ببرته په شاتللی وي او يا به د ملاکنډ له لارې يا کومې بلې لارې لکه شاه کوټ ، چرا ت او موړا ( لږ څه ختيځ خوا ) څخه تير شوی وي نو ښايي دی به سهيل خواته د کاراکار دغاښي له لارې بونير ته اوښتی وي او د ملاندړی او امبيلا له يوه غاښي يا دواړو کندونو څخه په ګټې اخيستنې سره هوارو سيمو ته ورغلی وي . دا هغه لارده چې د مغولو پوځونو په ۱۵۸٦ م کې غوره کړې وه ، مګر د دوی سوق او اداره صنعيفه وه له بد بختۍ سره مخامخ شوي وو . که چېرې سکندر نه غوښتل چې په دې لاره ولاړ شي نو د برکوټ دنيولو هيڅ ګټه نه وه ، دبرکوټ دنيولو اهميت په همدې کې و چې دالارېې تر قوماندې او حاکميت لاندې وه ، نو په همدې دليل سره موږ بايد (Ora) او را په بونير کې ولټوو نه په سوات کې .

- داسې امکان لري چې Ora اورا به په بونير کې دډاګار Daggar (ډګر ) په خواو شا کې وي ځکه چې د بونير دوادۍ ستراتيژيکه نقطه ګڼل کيږي .

دستاين تر ټولو زړه راښکونکی کار دادی چې په دې سيمه کې ده

داورنوس غر ( Rock of Aornos ) پیژندلی او هغه یې اوړنه یا اونړا (Urna /Unra) نومې ځای ته چې داباسین په ښۍ غاړه د پیرسر په هسکه نقطه کې پروت دی نږدې ښودلی دی او دا د کانه Kana او غوربند -Ghor band دځنګ وادیو څخه هم لوړ دی . دا ځمکې چې دی معرفي کوي د توپوګرافي او فونیتیک له مخې که چیرې په پښتو مورنۍ ژبه کې اصلي نومونه وویل شي نو بیخي قانع کوونکي دي ، دلته یوازې دومره ویل په کار دي چې پیرسر کمر ( Pirsar Rock ) په داسې ژۍ کې موقعیت لري چې آخوایې د پټهان خاوره ده که څه هم نن ورځ په سوات پورې تړلې ده ، دستاین لیکنې د آریان د پوځي تشریحاتو چې د سیمې په هکله یې لیکلې دي بیخي لاربښودې ګڼل کیدای شي خو د پټهان کیسه یې پوره نه ده په کې رانغښتې .

اوس داسپاسي Aspasii ، ګورای Gurai او اساسیني Assaceni قبیلې چې د سکندر له خوا د کونړ او سوات تر منځ سیمه کې فتح شوې وې یادونه کوو . څه چې ویل شوي دي له هغې څخه څرګندیږي چې اسپاسي دوېش په دواړو برخو کې اوسیدل چې دا ویش نن ده یورنډ د کرښې په نوم یادیږي . یانې هم په کونړ او هم په باجوړ کې میشته دي ، ګورای په کوزدیر (لردیر ) کې د پنجکوړې پر غاړه او اساسیني چې مساګا ، بازیرا او اونړا یا (اوړنه ) د دوی سیمې وې د تلاش او سوات دوادۍ ترمنځ یې موقعیت درلود . ګورای هیڅ ډول ریښې اوګنډې نه ښیي یوازې د دوی سیند په سانسکرت کې ښودل شوی دی او د هغه په هکله لا د مخه غږیدلي یو .

ددې لپاره چې اسپاسي وپېژنو ، سترابو Strabo په دې هکله ښه استشاره کوي : هغه داچې دی یې هیپاسي Hippasii بولي او په اویستا

پاړسي کې اس ته اسپه ( Aspa ) وايي . (اس مذکر او اسپه مونث شکل دی) . داچې سترابو ددې قبيلې نوم ژباړلی او هيپاسي يې بللی دی ، دنوم داصلي ماهيت او ايتمولوژيک اهميت له مخې يې ژباړلی دی . دلته موږ په واضح شکل سره د اسپ او ايراني کلمو ارتباط ليدلی شو .

دمعاصرو څېړنو په جريان کې د يوسفزي پر اصلي ريښه باندې تبصرې وشوې او د آريان دقبيلوي نومونو په اړه اشاره هم نه وه شوې . يوسفزي کليوال خلک حتی نن ورځ هم ځان ته يوسفزي نه وايی بلکې ايسپزي يا اسپزي (Asapzai=Isapzai ) يې بولي . دهوتي له خانانو څخه يوه خان ماته وويل چې : له اسلام وروسته بنايي زموږ د پلارونو په پرېکړه همدا ايسپزي له اسلامي نومونو سره دبرابرولو په مقصد پر يوسفزي بدل شوي وي.

دېر کلونه چې ما په محکمو کې د يوسفزيو شهادتونه اوريدلي دي ، دافونيتيک پرابلم ليدل کيږي لکه چې آفريدي دف پر ځای پ وايي او اپريدي تلفظ کوي . دآريان او سترابو په ليکنو کې د يووالي د ثبوت شکل ښکاري ځکه د آريان « اسپاسي » او دسترابو هيپاسي له نننی ايسپزي سره ورته والی لري . همدارنګه ، داچې دسکندر اسپاسي په باجوړ او کونړ کې اوسيدل او نننی يوسفزي لر اوسيږي بايد موږ پريشانه نه کړي . پخپله يوسفزي داسې وايي چې ننني سيمې يې په پنځلسمه پيړۍ کې نيولي دي او دوی دکابل له خوا څخه دې سيمو ته راغلي دي.

داچې يوسفزي د پښتو درنده لهجه لري هم دليل لري . په تېرڅېرکي کې مو ددريابونو په هکله بحث وکړ . دکونړ - يواسپله يا کواسپس يا چواسپس (Choaspes ) نومونه موږ سره مرسته کوي چې ايراني ريښې لري او درانه تلفظ په کونړونو کې دارسطو او سکندر ترزمانو پورې رواج درلود . ممکن

اسپاسي دايراني لهجې يو دروند شكل استعمالاوه . لكه يوسفزي چې درنده لهجه لري . داهم دعلاقې ورخبره ده چې هم قبيله او هم دريا چې قبيله يې پر غاړو اوسيده له ايراني كلمې ببره چې د آس مانا لري ورته والى او يووالى لري .

دسوات اساسيني هم دكونړاو هم باجوړ داسپاسي په شان خپل نوم له توري او ميړاني څخه اخستى دى. په سانسكرت كې آس ته اسوه ( Asua ) وايي او په مهابارا تا Mahabarata كې داسواكا Asvaka دقبيلې يادونه شوې ده ، چې په شمال كې اوسيدل او وحشي مزاجه او ظالم خلك وو . دسانسكرت Asvaka ( اسواكا ) په پراكريت كې په اساكا Assaka بدل شوى او په يوناني رسم الخط كې راساً ( Aσσακηνωοt ) ليكل شوى دى . دلته مور د آس لپاره هندي كلمه دايراني كلمې پر ځاى لرو . دابيخي پر ځاى ښكاري . يانې كيداى شي چې اسپاسي يوه ايراني قبيله وي چې په كونړ او باجوړ كې اوسيده او اساسيني يوه هندي قبيله وي چې په تلاش اوسوات كې به اوسيده .كه چيرى دهند او ايران تر منځ په هغه زمانې كې سرحد ومنو نو ښايي ددواړو سرحد به دكونړ او سوات سيندونو تر منځ وو .

احتمالاً دپنجكوړې سيند ( Guraeus ) به سرحد و .

وروستي اسناد په گوته كوي چې دپنځلسمې اوشپاړسمې پيړۍ په اوږدو كې چې پښتنو دا سيمه ونيوله له هغې څخه دمخه په دې سيمه كې چې ځو ك اوسيدل په سوات او پنجكوړه كې ختيځ خواته هغه ځو ك وو چې هندي ريښې يې درلودې .

ديوناني او لاتيني ليكوالو مداخلات دصوبه سرحد په هكله پايته رسيږي. دداريوش ( ٦ مه پيړۍ ق م ) داووم ايالت جوړول او دسكندر ( ٤ مه پيړۍ ق م ) يرغل پر دې سيمه په سلگونه كلونه دمخه شوي چې د هغه وخت

دافغانانو په هکله څه شواهد نه شته . داخلک پر خپل لرغوني تاریخ باندې تر اسلام دمخه هېڅ فکر نه کوي او که بیا هم کوم یو شی پیداشي چې تر اسلام دمخه خپل تاریخ ته نظر واچوي نو عبراني اثاروته گوته نیسي . زه په دې قانع یم چې داډول ملحوظات په هیڅ وجه دپښتون ۲۵۰۰ کلن تاریخ په دې سیمه کې نه ردوي . کیدای شي حتی نن ورځ د دوی دقبیلو دمیشته کیدو او ددوی د موجودیت په هکله په دې سیمه کې نوي شواهد تر لاسه شي . داځکه چې دهیرودوتس او دآریان واقعي تاریخ دی او د دوی زمانه تیاره زمانه نه وه که چېرې دسایلکس او سکندر قدمونه داباسین په اوږدو کې تعقیب کړو ، دځایونو او قبیلوو نومونو او دشواهدو ورته والی په گوته کیدای شي .

که داسې څوک وي چې پخواني نومونه او ځایونه بې له بدلون ومني او پر دې نظریه څرخي ځواب یې خامخا دادی چې په لرو پرتو سیمو کې به دبرتانیې دهادریان Hadrian د دیوال دزرگونو کلونو دمخه لیکل شوو اثارو مثال وي . آیا یوه ورځ به داسې راشي چې یو څوک په تلاش کې له خوبه راویښ شي او سکندر یا بابر دآسونو او تورو له شرنگهار سره وو یني چې تیرېږي ؟ دا خو امکان نه لري مگر کیدای شي دخپل کلي پېژندگلوي هسې وویني سره له دې به څومره چې موډ او فیشن بدلیږي وسلې هم بدلیږي .

که هرڅرمره پوهه او سیانس په وړاندې ځي خو خلک په لرغونو اثار وپسې هم شاته دخوند لپاره ځي . لي اینفیلد Lee Enfield بیرته دکارابین خواته ځي او کارابین دپتاقۍ خواته او پتاقۍ والادغشو او لینډو خواته ځي او غواړي چې داسې حالاتو کې ژوند وښیي لکه دوه زره کاله پخوا چې خلک په پاکتیو ک کې اوسیدل .

# څلورم څپرکی

## د پښتو زیږېدنه

کله چې سکندر پر ۳۲۳ ق م کال مړ شو د صوبه سرحد د سیمې د حوادثو په هکله دا بله ډیوه هم مړه شوه چې دلنډې مودې لپاره یې دا سیمه رڼا کړې وه .
تر دې وروسته تاریخ له زیاتو ستونزو سره لاس و گریوان و : دسکو ، ناڅیزه اسنادو او تبیو په موندلو او څېړنو ، او همدارنگه دسفیرانو ، اسنادو او سیلانیانو دلیکنو او یادښتونو څخه یې کله کله معلومات راټول کړي او مینه والو ته یې تیار کړي دي . دسفیرانو له جملې څخه یو هم د موریا Maurya په دربار کې دسیلیوکس Seleucus استازی میگاسیتنیس Megasthenes و او همدارنگه دده جغرافیه پوهان سترابو Strabo او پتولیمي Ptolemy دي چې پخوا دهغوی یادونه شوې ده او ددوی معلومات گټور گڼل شوي دي . ددوه زرو کلونو په موده کې دپاکتیوس

Paktues نوم د تاریخ په پاڼو کې راپیدا شو . وروسته په پنځمه او اوه مه میلادي پیړۍ کې دوه په زړه پورې چینایي ســـیلانیان Fa-Hien فا - هـــایـــن ( ۳۹۹-۴۱٤ م ) او Hiuen- Tsang هیوین - تساتګ (٦۲۹-٦٤٥ م ) هم د یادونې وړ دي چې دوی له ډېروشیانو پرده پورته کړې او د دوی په زمـــانه کې هم د ګندهارا Gandhara او دهغې د پاسکاپورس Paskapuros د ښارنو مونه لاژوندي پاتې وو. د سکندر له مړینې څخه وروسته د زروکالو په موده کې پردې سیمه باندې څپې څپې یرغلونه یو په بل پسې شوي او دهند او ایران تر منځ سرحد همېشه بدلیدونکی و او د غښجلبیاکې په شان کله دیوه په ګټه او کله دبل په ګټه و ، یانې کله هند بر لاسی و او کله ایران برلاسی و . په دې پیچلې لړۍ کې د پوهانو څیړنې دیته محدودې شوي دي چې د سیمې دلرغوني تاریخ پیژندلو په مقصد یا باید د هند په لرغـــوني تاریخ او یا دلویدیز ایران دجلګې پر تاریخ باندې فکرونه متمرکز کړي .

وینسنت سمیت Vincent Smith دلومړۍ او ګیرشمن Ghirsh-man د دویمې برخې ښه مثالونه کیدای شي .

په وروستیو کې هم هڅې شوې دي چې د مرکزي اسیا دهوار وسیمو د تاریخ په هکله پلټنې ترسره شي او داسیمه تر ډېره وخته پورې د ترکستان په نامه یادېده . دادمثال په توګه د مک ګورن McGovern دڅېړنې موضوع ده . دالیکوالانو یوه هم د ګندهارا یا د سرحد او یاحتی دافغانستان په هکله څه نه دي لیکلي اوحتی د پښتان یا افغان په ارتباط یې څه نه دي څیړلي .

الفنستون Elphinston هم د دې نیمګړتیاو سپکه کوي او په بل عبارت سره د خپل زړه ناآرامي څرګندوي . دهند تاریخ ته ګوته نیسي او لیکي چې

دنورو قومونو او ملتونو په هکله تر یوې اندازې پورې هغه وخت معلومات لاسته راغلي چې له هند يانو سره يې تماس پيداکړی دی . په ورته ډول کيسه کې څيړونکي دلروپښتنو په هکله ډېر ابلمو نو سره مخامخ دی .

که څه هم نتيجه به يې ډېره کوچنۍ وي خو داضروري ده چې د پاچاهانو دکورنيو کالنۍ (تذکرې) لپاره يو چوکات جوړکړو چې هغوی ددې ادعا کوي چې پر صوبه سرحد باندې يې حکومت کړی دی - که څه هم دقبيلوي تفصيلاتو پوره محاسبه او احصائيه مو په لاس کې نه شته ، خو پر دې عقيده لرم چې په حقيقت کې دهخانشيانو دامپراتورۍ له زوال څخه وروسته په غرنيو سيمو کې پر اوسيدونکو باندې دهېڅ پوره اداري کنترول موجود نه و .

څرنګه چې لاندينۍ کيسه د ساکا ( saka ) له پيژندنې پرته د پوهيدو وړ نه ده ، يو ځل بيا دهيرودوتس د نه هيريدونکو هڅو په نتيجه کې دده ليکنې ته رجوع کوو او دلته بيا ، پر موضوع رڼا اچوو . دی د (Xerxes زيرسيس) داردو ( ٤٨٠ ق م ) ديوه پوځ په هکله خبرې کوي . دی وايي ساکايان پتلونونه اغوندي او پر سر باندې يې داسې جګې خولۍ ايښې چې د مخروط شکل لري او پيکونه هم لري . دوی ليندې او پيشقبضې له ځانه سره وړي او همدارنګه يو خاص ډول تبر چې ساګري Sagaris نوميږي هم له ځان سره ګرځوي ، دوی په حقيقت کې امورجي سايتيان (Amurgian seyths) دي خو په ساک Saka شهرت لري ، ځکه چې ايرانيان ټول سايتيان په همدې نوم سره يادوي . دهېرودوتس ليکنې د ( زيرسيس -Xerx es) اوداريوش Darius ) ددواړو دوخت د تابلوګانو له ليکنو څخه سرچينه اخلي او په هغه کې امورجي سايتيان Amurgian scyths څوواره ذکر شوي او د ساکا په نوم يادشوي دي ؛ چې احتمالاً د آمو دريا پر غاړه اوسيدل .

دوی هم دخپلو تربرونو پارتیانو ( Parthians ) په شان ( چې هغوی له دوی څخه لوېدیځ خوا ته پراته وو ) دایراني لړۍ په یوه ژبه غږېدل او داسې ښکاري چې دننیو ښتنو پلرونه وو ، دشرقي ایراني ژبو په ډله کې راځي او نسبت هندي څانګې څخه ایراني څانګې ډېرې ورنږدې دي . دا به بیا په خپل مناسب ځای کې تکرار راشي .

ترڅو چې په دغو سیمو کې ډېرو لو کلاسیکو نومونو سره اشنایي ونه لرو ، دایراني اوهندي امپراتوریو دبدلون ، او ښتون او رااو ښتون لړۍ نه شو تعقیبولای.

ګندهارا دهېرودوتس « پاکتیوک » او نني پښتنو جلګه ده ، کله کله دشاوخوا چاپیریال ځینې ختیزې او لویدیزې سیمې هم ورسره تړل شوي دي . اراکوزیا Arachosia په عام ډول دغزني اوکندهار سیمو څخه عبارت ده دارانجیانا ( درانګیانا ) Drangiana نننی سیستان او آریا Aria دهرات سیمه ده . ګیدروزی ( Gidrosia ) داراکوزیا جنوب ترسمندر پورې دبلوڅو منطقه ده . باکتریا ( باختر ) Bactria دافغاني ترکستان نوم دی چې دآمو سیند جنوب ته پرته ده. دباکتریا غرب ته دکسپین سمندرګي خواته د پارتیا Parthia سیمه پرته ده او دباکتر یا ختیځ ته د سوګدیانا ( سوغدیانه ) Sogdiana منطقه ده او تقریباً عین منطقه دزرافشان Zarafshan و- ادي ده چې سمرقند او بخارا خړوبوي . دپارتیا ، باکتریا او سوګدیانا شمال ته دساکا Saka وطن دی . دهخامنشیانو په زمانه کې دهندوکش دغره شمال ته په دې ټولو سیمو کې ایرانیان اوسېدل او په ایراني ژبوبې خبرې کولې او ټول دساکا په شمول دهخامنشیانو اتباع ګڼل کېدل ، دګندهارا دمحلي ژبې په هکله په دې وخت کې له مونږ سره معلومات نه شته خو داهم

د منلو وړ نه ده چې داسیمه دې دهخامنشیانو یو ولایت وي او دوه سوه کاله دې هغوی پرې حکومت هم کړی وي او په ایراني ژبه دې خلک نه وي غږېدلي ، په دې کې هم شک نه شته چې هندته نږدې پرته سیمه ده او ښايي دهندي ژبې نښې نښانې به هم لیدل شوې وي ، هونیان او ترکان Huns and Turks لاتر دې وخته پورې صحنې ته نه وو راوتلي .

سکندر چې مړ شو ده دجنرالانو تر منځ دقدرت دنیولو پر سر شخړې پیل شوې او په نتیجه کې دداریوش دامپراتورۍ ټوله اسيايي برخه دسیلیوکس (Seleucus) تر سلطې لاندې راغله او دسلوکید خاندان -Seleucid dy nasty منځته راغلی او آل سلوکید په سوریا او بابیلان کې تر يوې پیړۍ زیاته موده تیره کړه او دسکندر موقف يې ونه شو ساتلای او ختیزې برخې يې له لاسه ووتې ، مقدوني افسران ډیر ژر له ګندهارا او هند څخه وشړل شول او بیلیوکس شخصاً په ۳۰۵ ق. م . کې دلښکر مشري پر غاړه واخیسته او غوښتل يې چې داسیمې دوباره ونیسي او امپراتوري ټینګه کړي مګر دیوه نوي قدرت له خوايې په هند کې ماتې وخوړه او د ۵۰۰ هاتیانو په عوض کې يې ګندهارا ، اراکوزیا او ګیدروزیا هندي حریف ته پرېښودل .

دانوی قدرت چندراګوپتا Chandrgupta و . په یوناني ژبه کې دی دساندراکوتس Sandrakottos په نامه یاد شوی دی . ده په ۳۲۳ ق م کې د موریا کورنۍ Maurya dynarty بنسټ کېښود . چندراګوپتا د اشوکا Asoka پاچا ( ۲٦٤-۲۲۷ ق. م ) نیکه و ، تر اشوکا وروسته دموریا سلطنت هم مات شو ، مګر دموریا کورنۍ پر پېښور ، صوبه سرحد ، احتمالاً تر لغمان Laghman او کابل وادۍ پورې نږدې سل کال حکومت وکړ . اشوکا بودايي مذهب و او پر بودیزم باندې مین و . مردان ته نږدې په شهباز

ګهړه کې ، مانسیره څخه پورته بودايي د تيږو مجسمې او په ټکسيلا او لغمان کې د تيږو پرمخ ليکنې دده دمذهبي علاقې او بشر دوستۍ ښې نښانې موجودې دي . دهندوکش په لړۍ کې دباميان په غره کې کيندل شوې مجسمې او نورې علامې تر بخارا پورې موجودې شته او دبوديزم دتسلط دوره رابښيي چې له هند څخه پيل او تر ختيز ايران پورې يې ټوله منطقه ونيوله ، مګر داشوکا له تېبو څخه دانه څرګنديږي چې دصوبه سرحد خلک څوک وو او له چاسره يې اړيکې درلودل ميګاستينيس (Megasthenes) دسلوکيد دکورنۍ استازي لکه دهربل ديپلومات په شان په مرکز کې دموريا په دربار کې مصروف و او ددې وخت يې نه درلود چې دصوبه سرحد چارو ته غور کيږدي .

دبوادي معبدونو کنډوالې دپښور دوادۍ په غونډيو کې يوه ښکلې او خوړه منظره تشکيلوي چې دبډای او هراړخيز تمدن نمايندګي کوي حتی نن ورځ له هغو څخه دطراحانو او دهغو دمعمارانو لوړ تخيل او تفکر له ورا يه ليدل کيږي . زياتره يې له اشوکا څخه ډيرورسته جوړ شوي دي . دګندهارا دمعمارۍ له مکتب څخه څرګنديږي چې له کوشانيانو او روميانو سره هم عصر دي او داسې معلوميږي چې دموريا او يونان مقدونيه له تسلط څخه ازاد دي .سره له دې اشوکا لومړنی نوی پاچاو چې بودايي لارې ځانته غوره کړه او په شمال کې دبوديزم رواج ورکوونکی اشوکا و ، مګر عجيبه خبره داده چې دخلکو لپاره فضا په داسې ډول وچې عمر يې دخيال په شان تيريده او هيڅ ډول خاطرات يې نه پريښودل ، يوازينی انعکاس چې له هغې زمانې څخه پښتانه ته پاتې دی هغه دادی چې کرلاني قبيله پر دوو برخو ويشل شوې چې د (ګړ - غر Gar او سامل Samil ) په نومونو يادېږي . خلک ددې دليل نه

شي ويلای چې ولې دوی ډلې شول او نن ورځ چندان اهمیت هم نه لري ، خو که څه هم بې ارزښته موضوع ده مګر د قبیلې د غړي لپاره دا ډیره ګرانه ده چې له یوې قبیلې څخه بلې قبیلې ته ځان بدل کړي ، سم لکه د اکسفورد محصل چې نه شي کولای په سپورت کې ځان د کمبیریج محصل جوړ کړي او په سپورتي مسابقه کې بدل آبې کالي واغوندي . دا توپیر چې په کرلانیو کې دی له اسلام څخه د مخه دی چې ځینې یې زردشتي وو او ځینې نور بودایي شول چې د هغه دانتشار عامل اشوکا و . له دې تعبیر سره (ګر Gar) فرکسیون د پارسیانو مګیان ګبر Magian Gabr یادوي او سامل Samil هم بودایي سرامان Sraman یادوي . د دې تفکر حقیقت هر ډول چې وي ، خو وي به ، مګر دیوه واقعي حقیقت او سابق سمبول په څېر یوازې د ګندهارا هیواد ګڼل کیدای شي چې په یوه وخت کې د پیړیو پیړیو لپاره د آهو رامازده A huramazda او اهریمن Ahriman د مذهب تابع وا و بیا بودایي دین ته راواړول شول .

د موریا لیکنې او رسم الخط په خپله د قبیلو په هکله څه نه وایي ، مګر له یاده یې ونه باسو چې دا قبیلې پوره یوه پیړۍ د هندي امپراتورۍ تر سلطې لاندې وې ، که څه هم د غروسیمې د دوی ترادارې نظم لاندې نه وې راغلې خود هوارو سیمو خلکو پوره د هندوانو کلتور غوره کړی و چې د هخامنشیانو له زمانې راهسې یې زده کړی و . که د پښتو په هکله وغږیږو په اساسي ډول له ایراني ژبو څخه ده او د هندو - آرین ( Indo- Iryan ) له ژبو څخه یې زیاتې کلمې جذب کړې او په ګندهارا کې د چندرا ګوپتا او اشوکا د تسلط له کبله یې د دوی کلتور هم تعقیب کړی دی . د اشوکا له مړینې ( ۲۲۷ ق، م ) څخه وروسته بیا د کوشانیانو تر امپراتورۍ پورې نېږدې درې پیړۍ تیرې شوې . کوشانیان هندي - سیاتیان Indo- suythians وو چې د ۷۵ م په

شاوخوا کې اوسیدل . په دې موده کې په ترتیب سره یوناني - باختریانو Graeco- Bactrians ، ساکایانو (Sakas) او هندي پارتیانو Indo -Parthian پر گندهارا حکومت وکړ ، د دې لپاره چې پر دغو بدلونونو پوه شو باید د موریا له ضعیفېدو څخه څو کاله د مخه شرایط و څېړو او وگورو چې د سیلوکید (Seleucid) پر قدرت باندې د ایران په هواره کې څه و شول ؟

پر ۲۵۰ ق. م کله چې اشوکا لا ژوندی و د سیلوکید کورنۍ ته دوه پېښې ورپېښې شوې . په شرق کې یې د باختر ولایت او د هغه حکمراني له لاسه ووته او همدارنگه په غرب کې پارتیانو شورش وکړ .

د باختر د مستقل سلطنت جوړېدل او شمالي هند ته د هغه د پراخېدو دلیل دا و چې د سلوکید حاکمانو د لومړي دیودوتس (Diodotus-۱ ) او دویم دیودوتس Diodotus-۲ په زمانه کې د داخلي ضعف له کبله قدرت په تدریجي ډول کمزوری کېده او د مستقلو حکومتونو د رامنځته کېدو سبب شو. کومه کیسه چې سر ویلیام تارن Sir William Tarn کړې ده او د سکندر د ځای ناستو د هیلنیزم د تاریخ یوه برخه یې بولي د گندهارا د سیمې د حوادثو په هکله ده ، دویم دیودوتس او د ده زوم یوتیدیموس -Euthy demes وکړای شول چې باختر مستقل کاندي که څه هم لوی انتیوکس Antiochus the Great پر ۲۰۶ ق. م کال ډېره هڅه وکړه چې باختر د سلوکید د امپراتورۍ یوه برخه پاتې شي ، په ۱۸۵ ق ،م کې کله چې دیمتریوس Demetrius د یوتیدیموس Euthydemus زوی په قدرت و باختریانو پر گندهارا او پنجاب باندې حمله وکړه او فتح یې کړل او په ټکسیلا (Taxila) کې یې د موریا امپراتورۍ پر کنډوالو باندې خپل

قدرت جوړ کړ .

د سلوکید تر تشویق لاندې یو شهزاده چې یو کراتیدیس Eucratides نومیده ، پر ختیزو برخو یرغل وکړ او دیتمریوس یې وواژه او ګندهارا یې د اباسین تر غاړو پورې د څه وخت لپاره ونیوله . خو په خپل وارسره میناندر Menander چې اصلاً د دیتمریوس یو جنرال و ، یوکراتیدیس ته ماتې ورکړه او یو ځل بیا یې باختري تسلط ته زمینه مساعده کړه . دا ذات البیني جګړه د یونانیانو تر منځ د دې سبب شوه چې ګندهارا آزاده پاتې شي او له باختر ( بکتریا ) څخه بېله شي او دوخت په تیریدو سره د یوناني تمدن بقا په افغانستان او د اباسین په وادۍ کې له منځه لاړه ، او بیا هر قصدبه یې مرګوني وي . پته دې نه وي چې دغه حاکمانو چې لومړی پایتخت یې ټکسیلا او ورپسې دویم پایتخت یې ساکالا = سیالکوټ Sakala=sialkot و ، له ځانه څخه ډیرې ښکلې او ښایسته سکې په یادګار پرې ایښې دي . Tarn تارن وایي چې په ګندهارا کې له مجسمو څخه څرګندیږي چې په دې وخت کې له هینایانا څخه ماهایانا بودیزم ته بدلون راغلی و او له کوچني څرخ څخه دلوی څرخ پر خواتللی و او بودایي پر خدایۍ منلی و . ګریکو - باکترین (Graeco-Bactrians) باختري یونانیانو نږدې یوه پیړۍ ( ۱۸۵ - ۹۰ ق.م ) پر ګندهارا حکومت وکړ تر هغه چې د ورور وژنې او حسادتونو په نتیجه کې یې امپراتوري ونړېده او د یونان د سیاسي سیستم له ړنګیدو څخه وروسته پر کوچنیو مستقلو حکومتونو او د شهزادګانو پرواکمنیو باندې وویشل شوه . دوی دا قدرت له لاسه ورکړ چې د ساکایانو Sakas مخې ته ودریږي . ساکا د اباسین په اوږدو کې د بلوچستان له خوا او همدا رنګه د شمال له استقامت څخه پر مختګ پیل کړی و . دا تقریباً یقیني ده چې د باختري

یونانیانو تر حاکمیت لاندې دلته ټول نفوس په دې سیمه کې ایرانیان وو او په
شرقي ایراني باختري او سغدیانې لهجو یې خبرې کولې . مګر د یونانیانو
معتبرو اولوړو طبقو چې د سکندر د استعماري قوت پاتې خلک وو ، وکړای
شول چې د هېواد دلوړو څوکیو په نیولو سره یوڅه شمېر یوناني یا مقدوني
سرتیري وساتي او د ساکا کوچیانو په مقابل کې مدافعه وکړي او همدارنګه
په یونانې معمارۍ سره ښارونه جوړ کړي . که څه هم داسې شوي وي خو
ویلای شو چې د انګریزي تاثیراتو نښې حتی نن هم په پېښور کې ښې لیدل
کېږي ، داقوي احتمال شته چې د یونانیانو دغه ډېر لرې والی او تجرید د دې
سبب شو چې د ایرانیانو او یونانیانو تر منځ تفاهم پیداشي او په شریکه
ژوندو کړي . په عین ترتیب د انګریزانو او پټانانو ( پښتنو ) ترمنځ په مشابه
شرایطو او حالاتو کې خپل منځي تفاهم منځته راغلی و .

په هر دلیل چې وي په باختري کلتور کې یوناني عناصر ګندهارا ته تکثیر
شول او رواج یې وموند ، ډېرې هڅې شوې دي چې د پښتنو په کلتور کې
د یوناني تمدن نښې نښانې او خاطرې ولټول شي ، ځکه چې یونانیانو یوه
پېړۍ دلته حکومت کړی و چې ټکسیلا یې مرکز او د قدرت دوړانګو د پراخولو
ځای و . پخوا مو هم یادونه کړې وه چې اپریدي په یونانیانو پورې د شجرې
تړل مني او په دې موده کې چې باختري یو نانیان په قدرت کې وو ، د اپریدیو
اړیکي پر ځای او مناسب دي او د سکندر د لنډ مهال د پاتیدو او تیریدو سره
دهغو تړل سم نه ښکاري ، په هرحال د ټولو ادعاګانو لپاره ثبوت نه شته ،
یوازې څوټکي لیکنې پر ځینو ښکلو سکو باندې او ځینې کوچنۍ مجسمې
شته چې دهغې زمانی نمایندګي کوي . د ځینو نویو څېړنو او مطالعو په
محاسبه د ګندهارا ټولې مجسمې په دغو زمانه پورې تړلې نه دي ، بلکې په

کوشانیانو پورې اړیکي لري چې هغه له دوه څخه دوه پېړۍ وروسته په قدرت کې وو . اوس دا مفکوره زړه شوې ده چې دا مجسمې د باختري یونانیانو پر حاکمانو پورې ارتباط لري . یو څه ډېر کوچنی اثر چې پاتې دی سبب یې دادی چې له یوې خوا په حقیقت کې دا حاکمان یونانیان نه وو ، بلکې هغه ایرانیان وو چې د یونانیانو له خوا مقرر شوي افسران وو او یوناني لباس یې درلود او بل دا چې دومره یرغلونه پر دغو سیمو تیر شوي دي چې اثرات یې په وروستیو پیړیو کې بیخي محوه شوي دي .

د ټکسیلا او سکالا باختري - یوناني پاچاهي پر ( ۹۷ ق م ) کال د ساکایانو له خوا سقوط وکړ . د مخه تر دې چې د ساکا شجره او کړه وړه روښانه او د سکندر د ځای کیناستونکو پر ضد دویم بغاوت ته چې د پارتیانو له خوا پر ( ۲٤۹ ق م ) کال شرح کړو . د باختریانو پر خلاف پارتیانو د یونانیانو کلتور ته تمایل نه درلود ا په ختیه سایتیک ( Scythic ) ایراني کوچیان وو چې له ساکا قبیلې سره یې خپلوي درلوده او د کسپین او آرال د سمندرګیو تر منځ واديو کې اوسیدل چې نننی ترکستان دی . دوی له پنځوس کالو جګړو څخه وروسته ایران اشغال کړ او پنځه سوه کاله یې حکومت وربانډې وکړ . د حکومت واګې د پارتیانو د پارني Parni قبیلې په لاس کې وې ، چې مشر یې ارساکس Arsakes نومیده . ده د ارساکي کورنۍ -Ar sacid dyansty بنسټ کیښود او تر هغه یې پر ایران حکومت وکړ چې د ساسانیانو له خوا یې په دریمه میلادي پیړۍ کې ماتې وخوړه . په دې اوږده موده کې په غربي ایران کې د یوناني کلتور برخې په کراره جذب شوې وې او دا د ایران په تاریخ کې وروستی ځل نه و چې د باندني کلتور پرې اثر شوی و او د یرغلونو او اشغالګرۍ په نتیجه کې دا اثار دوامدار لیدل کیدل ، دارساکي

کورئی د تکړه سپرو په واسطه ساتل کيده او هغوی تکړه غشي ويشتونکي
هم وو چې په رفتار کې به يې خپل هدف له منځه وړه او د هر ډول يرغلگرو په
مقابل کې يې مقاومت کاوه . حتی د روميانو قوتونو د دوی تاب نه درلود . په
غربي نکلولو کې دوی د کراسوس (Crassus) د سختې ماتې سبب
گڼل شوي چې پر (۵۳ ق م) يې د کارهی Carrhae په جگړه کې دی وواژه
او د ده ټوله اردو يې نابوده کړه.

د هخامنشيانو د پارتيا (Parthia) ايالت د پارس له ننني خراسان ايالت
سره چې مشهد يې مرکز دی ورته والی درلود . مگر د پارني Parni خلک
کوچيان وو او له شمال څخه راتلل ، دوی په ختمه ايرانيان او په واقعيت کې
سايتيان (Scythians) وو او له ساکا (saka) سره گډيدل . ساکا وو چې
گريکوباختريان يې مات کړل او تر گندهارا ورسيدل ، اصلي ټکی دادی چې
په دواړو حالاتو کې دوی کوچيان وو او مېشته خلک يې چې هغه هم په اصل
کې ايرانيان وو فتح کړل . دواړه پر مختگونه د پارتيانو په فارس کې او
د ساکاو په گندهارا کې د يوه ډير پراخ حرکت برخه گڼل کيږي چې داد سايتيانو
د قبيلو (Scythic tribes) له يرغل څخه عبارت دی چې په پارس او
باختر کې يې هيلينزم (يوناني کلتور) ته د پای ټکی کېښود چې د
سلوکيديانو (Seleucids) او گريکو باختريانو له خوا پر ايرانيانو باندې
تحميل شوی و ، مگر پارتيانو پر فارس يوه پيړۍ د مخه يرغل وکړ او ساکا يوه
پيړۍ وروسته د ختيځ خواته وخوځيدل . کله چې ساکايان ختيځ ته خوځيدل
او مېشته کېدل پارتيانو او د دوی مشرانو د پارس مدنيت خپل کړی و .
پارتيان دې ته چمتو وو چې د پارس خواته د ساکايانو د پرمختگ مخنيوی
وکړي او بريالي هم شول او په نتيجه کې ساکا مجبور شول چې جنوب ختيځ

خواته مخه کړي ، باختر ( باکتریا ) یې ونیولو او بیا ځینې یې دګندهارا خواته او ځینې یې دسند خواته پر مخ ولاړل . په دوله موده کې په سیاسي او کلتوري لحاظ پارتیانو سره تړلي وو . دمثال په توګه هغه ژبه چې دوی پرې غږیدل د ایراني ژبې یو شکل و چې د کوچي پارتیانو له ژبې سره یې ورته والي درلود او ډیرې مشترکې کلمې یې درلودې . د تاریخ همدغه زمانه ده چې موږ ته حکم کوي چې د پښتنو دژبې پیل ثبت کړو ، او دوروستیو مستندو لیکنو له مخې احتمالاً همدا دساکا لهجه ده چې له شمال څخه راپیژندل شوې ده ، له دې څخه مخکې چې د کورنیو کلنۍ وګورو بهتره به وي چې ددغې تیورۍ په هکله څېړنه وکړو . دا ژبه که پښتو ده که پختو ، بیخي څرګنده ده چې دنن ورځې د پښتون د پیژندنې سمبول دی او دده دویاړ خاص تکی دی . که چیرې تر یوه حده پورې دا احتمال تر لاسه شي چې ددې ژبې اصلي شکل له ساکا سره یو ځای راغلی وي نو زموږ د بنستونو د تینګښت لپاره به مو یوه بله ډبره ایښې وي .

په جستین (Justin ) کې یو عبارت دی چې په لاتیني لیکل شوی او نیته یې نه ده څرګنده .خو ښایي ددویمې میلادي پیړۍ په وروستیو کې لیکل شوی وي . دا عبارت د پارتیانو ژبه داسې ښیي چې د میدیان Medi-an او سایتیانو Scythian دژبو تر منځ ده او له دواړو څخه ګډه شوې ده . دیوې زیږې ایرانۍ ژبې دا بدتعریف نه دی او همداډول ښایي دا د پښتنو دژبې ریښه وي . د ګریرسن Grierson په یوه مضمون کې کې چې په : (دهند ژبنۍ سروې) Linguistic Survey of India کې د پښتو یا پختو په هکله نشر شوی ، له ډار مستېتر Darmesteter څخه نقلوي او ثابتوي چې پښتو ( پختو ) دایراني ژبو د کورنۍ له ختیز ګروپ څخه یوه ژبه ده ، خو

له شمال غربي هند څخه يې ډيرې کلمې په خپله ژبه کې اخستي دي ، او دا تائيدوي چې اوستا سره ګډون ثابت دی او دزند ( Zend ) په نامه تبصرې هم لري ، عيناً لکه ننني مودرنه فارسي چې دغربي ايراني ژبو دګروپ اساسي مثال دی ، دهخامنشيانو له زړې فارسي څخه رامنځته شوې ده ، نو ځکه پختو دبلوچي او د پامير دسيمې دمختلفو ژبو سره يوځای ختيزې اوستا سره ارتباط نيسي . اوستا او زند دواړه زردشتي اثار دي . زردشت چې دنامعلوم وخت پيغمبر بلل شوی دی يقيناً له هخامنشيانو څخه دمخه و ، او خپل تدريس يې تعقيبولو او خپل وعظ او تبليغ يې دسوګدنايا ( سغديانه ) او دايراني نړۍ له ختيزو برخو څخه خپراوه ، چې دګريرسن په حواله بې له شکه دپښتو يا پختو پلرينه شميرل کيږي .

مورګن سترن وروستنی صلاحيت لرونکی ليکوال دی چې تربل هر چا د پښتنو په هکله زيات علمي معلومات لري او ترټولو نورو ليکوالو څخه دده ليکنه مستنده او باوري ده ، دده دخيمې شمع هو مره روښانه ده لکه دده دکتابتون څراغ چې روښان دی . دی وايي چې پښتو يا پختو په اصل کې دساکا دژبې يوه څانګه ده چې له شمال څخه راغي مګر ددې رابطې دټينګښت ثبوت ممکن نه دی ، خو دا په ډاګه ده چې پښتو په اصل او جوړښت کې له ايراني ژبو څخه ده او د هند - آرين ( Indo - Aryan ) ګروپ څخه يې ډير څه پور کړيدي . ددې پورونو په لړ کې زياته برخه يې مورفولوژي (لهجه ) تشکيلوي او په دې برخه کې ډير مثالونه ورکوي چې زه به وروسته هغې ته راوګرځم ، دی ديو زيات شمير کلمو دآواز دبدليدو په هکله معلومات راکوي او دپاړسي او پښتو مقايسه راښيي او بالاخره دی دوه اساسي ورته والي په غږ کې په ګوته کوي چې لومړی دپاسته او درانده آواز بيلوالی په ژبه

کې راښيي او بيا دويم دا چې د قبيلو دويش کرښه څرګندوي او بل په عمومي ډول ټولې کرلاني قبيلې په يوه دايره کې راولي .دابدلون د الف (a) بدلون په کوچني واو (o) « پېښې والا الف » او کوچني واو ( مجهول واو ) پر معلوم واو باندې او همدارنګ د (ي) او ( ږ) بدلون په ( ي) راښيي .

راځئ چې وګورو دا ټول په څه ډول په ساکا پورې اړه لري ؟ يو ډير عام فونيتيک بدلون چې د پښتو او فارسي ترمنځ شته هغه دادی چې په فارسي کې دال ( d ) په پښتو کې په لام (L) بدليږي . لاندې څو مثالونه به هرو مرو مرسته وکړي :

پارسي = پښتو

پدر = پلار

ديدن = ليدل

دارم = لرم

ده = لس

دختر = لور

دست = لاس

ديوانه = ليونی

د ګندهارا ايالت د ساکا حاکمانو نومونه له موندل شوو سکو څخه څرګند شوي دي . د دوی ځينې لقبونه او تخنيکي اصطلاحات له خروشتي (Khoroshti) ليکدود څخه تر لاسه شوي دي . دا ټول نومونه په روښانه شکل ايراني او له ختيز ګروپ څخه دي ، مثالونه : سپالاګادامه = دا ردو لارښود (Spalagadama سپا دا =Spada= اردو ، ګا ga دارتباط توری ، داما dama= لارښود ، په لاتيني کې dominus دومينس ) .

(سپاډاهورا Spada= اردو ، آهورا Ahura = روح ، خدای ، په لاتینی کې Ahuramazda آهورامازدا ) . ( چستانه Chastana : ( پښتو کې ښښتن او پختو کې ښختن= بادار ، میړه . )

په ډیرو زیاتو کلمو کې به یې وګورو چې د پارسي ( د ) د پښتو په (ل) بدلیږي .

داهم د یادونې وړ ده چې داختیز ایراني القاب یوازې د ساکا له دورې څخه نه دي ، بلکې وروسته هم استعمال شوي دي ، د کوشانیانو په وخت کې کله چې له ساکاو څخه یې ګندهارا ونیوله همداډول القاب استعمالیدل . کوشانیان که څه هم پخپله ساکانه وو خو ډیر ساکا اتباع یې درلودل ، پورتني معلومات چې په نسبتي توګه د سایتیانو ( Scythian ) له سکو څخه تر لاسه شوي دي لږ ترلږه په پښتو ژبه کې دایوه رابطه مونږ ته په لاس راکوي .

باید داموهېره نه شي چې ساکا کوچیانو ګندهارا داسې ونیوله چې هغه دهخامنشیانو په واسطه دوه پیړۍ ایراني شوې وه او بیا یوه پیړۍ دموریا هندیانو په واسطه هندي شوې او یوه پیړۍ هم د یونان باختریانو په واسطه یوناني شوې وه ، نو نه یوازې دلته مدنیت په بدلون کې و ، بلکې دمختلفو قواو تر منځ دشخړو او تېلو میدان جوړشوی و ، داهمیشه دهند او ایران تر منځ سرحدي سیمه وه ، نو دا دحیرانتیا وړ نه وه که چیرې د پښتنو په ژبه کې هندي اثار لیدل کیږي ، تر ټولو مهم دماغي آوازونه دي چې په ایراني ژبه کې نه شته او دهندي ژبې خصوصیت ګڼل کیږي . همدارنګه ددوو ګرامري جنسو موجودیت بیا هم دهندي ژبې خاصه ده او ښایي تر هر څه مهمه نحوي او ترکیبي ( Syntactic ) پدیده وي چې په ماضي زمانه کې فرعي جوړښت بلل کیږي ، او داهم دهندي ژبې خاص کرکتر دی .

يو څه نوره پلټنه هم ضروري ده . دساکا او همدارنګه دکوشانيانو ژبې دواړه
دکوچيانو خبرې وې چې يوې پراخې ، ابادې او حاصل خيزې سيمې ته راوړل
شوې . داسيمه دمتمدنو خلکو کورو ، خو غرنۍ درې يې هم درلودې لکه تيرا
او وزيرستان چې په اسانۍ سره دتيريدو وړنه وې . داپراخې او هوارې سيمې
په پيړيو پيړيو دمختلفو امپراتوريو تر ولکې لاندې وې حال داچې غرنۍ
سيمې يې په طبيعي شکل دلښکرو له پل او قدم څخه په پرده کې پاتې وې ،
غرنۍ سيمې په طبيعې ډول تجريد شوې وې ، ددواړو ژبو دلهجو تر منځ هرو-
مرو توپير رامنځته شوی و او هريوه خاصه لهجه غوره کړې وه . داهم ناممکنه
نه ده چې دشمال سپاره کله چې ګندهارا ته راتلل نو ژبه يې زده کړې وه او
ددې مقصد لپاره يې ښوونه تر لاسه کړې وه . دا چې فتح شوې سيمه ترپيړيو
پيړيو پورې يوه ايراني نړۍ وه او هندي تاثيرات هم وربانديې راغلي وو او
فاتحان هم پخپله په ختيزو ايراني ژبو غږيدل نو د دوی لپاره داکوم خاص
مشکل نه بلل کيده .. که څه هم پښتو يا پختو چې په ساکا Saka قبيلو پورې
اړه لري داسې استدلال هم کيږي چې ښايي پخوا لاختيز ايراني تاثيرات يې په
ريښو کې موجود وي . داورمړ قبيلې داصليت داثبات دپرابلمونو دحل کولو
په نتيجه کې به ددې تکي په ارتباط لازياته روښنايي ترلاسه شي .

په لنډ ډول ، هرڅومره چې د پښتنو دژبې په هکله ژوره څيړنه کيږي ، په
هماغه اندازه دانتيجه تر لاسه کيږي چې دجغرافيوي موقعيت له مخې دهندي
او ايراني نړۍ تسلط له ورايه ښکاري او ژبه يې هم ددواړو هندي او ايراني
ګروپونو مشخصات لري چې ايراني ژبه لږ څه زيات اثر ښيي ، دامشخصې نه
يوازې دکلمو او مشتقاتو اتيمولوژيکي ( رېښه يي ) اړيکي څرګندوي
بلکې دنحوي جوړښت ( Syntax ) رابطې هم په ګوته کوي . په يوه جمله

کې ویلای شم چې پښتو یا پختو د یوې منځنۍ ژبې د ېر ښه مثال کیدای شي .

څه چې موپورته بیان کړل باید دژبې له اصلي ریښې او بنیاد سره په ارتباط کې مطالعه شي . په دې څېړنه کې باید لرغونی تفکر ، فعلونه ، عددونه ، کورنۍ او کورني اړیکي ، دلمر ، ستورو او سپوږمۍ په هکله تفکر ، شپه او ورځ ، ځمکې او اسمانونه له اسلام څخه دمخه په پام کې ونیول شي او نه داسلام په راتلو سره وروستي بدلونونه . په عام ډول سره ټولې هغه نورې ژبې چې د مسلمانانو له خوا وریاندې خبرې کیږي اود عربستان شمال ته پراته دي زیات عربي کلمات لري .

پښتو هم د فارسي ژبې له لارې زیاتي عربي کلمې په خپل جوړښت کې لري . مګر داظاهري سمبالتوب دی لکه چې لاتین او یوناني کلمات په انګریزی کې شته ، خو د پښتو ژبې په اصلي جوړښت او ریښه کې داکلمې کوم تاثیر نه لري .

وروستۍ کلمې پورشوې دي اوبې له اتیمولوژیکي ( اشتقاقي ) بدلون څخه مروجې شوي دي . داهم رښتیا ده چې ددې کلمو تلفظ په خپله د پښتنو له خوښې سره سم دي چې په اصلي عربي شکل نه تلفظ کیږي لکه فرانسوي کلمې چې په انګریزی کې راغلې دي . دانګریزي تلفظ لري .

زه دلته دافارسي اوعربي پور شوي کلمات ځکه یادوم چې کله کله په دې هکله فکر کول په کار دی . په پښتو کې خاص نوم چې اصلاً عربي دی په هماغه شکل راغي لکه ابراهیم ، عیسی ، موسی ، ایوب ، یحیی ، یعقوب ، یوسف ، اسحاق ، او داسې نور چې دعبراني نومونو بدل شوی شکل دی . او پورتنی نومونه په عبراني ژبه کې ابراهم ، حبیس ( اسیو ) موسیس ، جاب ، جان ، جیکوب ، جوسیف ، ایساک په شکل راغلې دي ، دلته مناقشه کیږي

چې پورتني نومونه او پورشوي شکلونه د بني اسرائيل تيسيس پياوړی کوي، خو حقيقت دا دی ټول هغه قومونه د پښتنو په شمول چې په اسلام مشرف شول ، دا ډول کتابي نومونه يې ځان ته غوره کړل ، دااسلامي ميراث ګڼل کيږي چې يوازې په پښتنو پورې خاص ارتباط نه لري . د حضرت پيغمبر (ص) نومونه ډير زيات اينبودل کيږي ، په فارس او ختيځ کې اسلام وروسته خپور شوی دی خو د اسلام په خپريدو کې دود او دستور د ديني مسايلو په هکله په اصلي شکل نه دی پاتې شوی .

د پښتو ژبې په هکله که څه هم زموږ شواهد ډير پاخه نه دي خو دا پوره جوته شوې ده چې د ساکا له ژبو او لهجو څخه را خوځيدلې ده ، ترکومه ځايه چې پوهيږو ، دا ثابته ده چې پښتو د ختيز ايراني ګروپ يوه ژبه ده ، دا هم ويلای شم چې د پښتو اصلي ريښې لرغونې ايرانۍ کړی ته رسيږي او حتی دهخامنشيانو زمانې پورې اړيکي لري ، دا نيتجه له دې څخه اخيستل کيږي چې په دې ژبه کې هندي ايراني Indo-Iranian عناصر زښت ډير موجود دي او په روښانه دا څرګنديږي چې د ساکا له دورې څخه د مخه دي ، بالاخره ويلای شو چې د مورخينو او ليکوالانو د څيړنو له مخې چې وروستۍ نظريه يې د هغې اړيکي د ساکا له ژبې سره بولي ، رانيولې بيا د ګندهارا د خلکو تر ژبې پورې ننۍ پښتو د هغې زيږنده ګڼل کيږي .

# پنځم څپرکی

# ساکا ،کوشانیان او فارسیان (ایرانیان)

ساکا هغه څوک دي چې خپلو تربرونو پارتیانو له ایران څخه وشړل او له اوږدو لوړو ژورو څخه دوی د ق، م لومړۍ پیړۍ په پیل کې ګندهارا ته ورسیدل او هلته یې نږدې یوه پیړۍ تر ٥ م میلادي کال پورې حکومت وکړ. ددوی موندل شوي سکې دڅلورو مشهورو پاچاهانو : مافیس MAVES لومړی ازیز 1- Azes. ازیلیسز Azilises او دویم ازیز 2-Azes نومونه راښیي. ( په دغو نومونو کې z توری دلاتین توری دي چې د y په مفهوم دی، یانې (ز) نه ویل کیږي ، بلکې (ی) لوستل کیږي ، لکه پخوا موهم Bazira بازیرا چې بېرا «بایرا» ده ، z مو په y بیان کړی و . ) دساکاتوپان شرقاً - غرباً پرتو غرونو څخه په هغه دره ورننوتل چې دهرات ښار ته وروڅي او له دې لارې څخه یې دهخامنشیانو د درانګیانیا (Drangiana) او اراکوزیا

Arachosia ا یالتونه ونیول او د دانګیانا ( درانجیانه ) نوم یې په ساکستان (Sakastan) واړاوه. د دوی موقعیت په اراکوزیا کې ترغزني پورې غزیدلی و ځکه چې تر لاسه شوي سکې دا مطلب څرګندوي . همدارنګه د ګومل ، توچي او پیواړ له لارو څخه نننی پاکستان پورې رسیدلي وو . ځینې یې بیا د جنوب له لوري له بلوچستان او سند څخه د اباسین په اوږدو کې ګندهارا ته ورسیدل او د پارتیانو د فشار له کبله په همدې خوا نورهم د غرب په لوري وخوځیدل .

د پنجاب پر خوا ضربه د ۹۷ او ۷۷ ق . م کالونو تر منځ د مافیس (MAVES) له خوا ترسره شوه ، د دوی د چټک پر مختګ او ژر بري سبب دا و چې دوی په جګړه کې له نوي تخنیک او نوي تکتیک څخه کار واخیست. دوی یوه زغره واله سپره قوه جوړه کړې وه چې په اوږدو نیزو سره سمبال وه ، رومیانو دا نیزې کانتوس ( Contus ) بللې او دوی لا پخوا دا ډول وسله استعمال کړې وه آریان Arrian : د دوی ضربتي او چټک یرغل زور ، د فارس له غاړې څخه په ګوګامیلا Gaugamela کې د لومړي ځل لپاره ولیدل شو چې د سکندر ټول قوت دلته د بخت د آزموینې لپاره پر کار واچول شو او ګټه یې ورته ونه کړه .

مافیس ټکسیلا خپله پلازمینه وټاکله چې ترده د مخه هلته یوناني باختری پاچاهان وو . دده تر مړینې وروسته څو موده د ساکاو د مختلفو قبیلو تر منځ د قدرت نیولو لپاره کورنۍ جګړې وشوې چې نږدې شل کاله یې دوام وکړ . بیا بالاخره په ۵۸ ق م کې لومړی آیز ( ازیس - Azes - 1 ) بریالی شو چې د ساکا حکمراني بیا راژوندۍ کړي . کله چې مشران ومري د کوچنیو مشرانو تر منځ همیشه دا ډول مسابقې پیل کیږي تر څو چې بیا د باوروړ یو

مشر دقبیلو په منځ کې راپورته شي او داد پښتنو په تاریخ کې ډېر زیات مثالونه لري . داویلای شو چې دساکا تاریخ په دې سیمه کې یوازې دژبو پیژندونکو لپاره اهمیت نه لري ، بلکې دوی ، دساکا میراث په ښه توګه پرې ایښی دی ، لومړی ایز=ازیس ( Azes-1 ) ډیر قوي او شتمن سلطنت جوړ کړ او دسپینو زرو څو ډوله سکې یې درلودې .له ده څخه وروسته دده زوی ازیلیسیس ( Azilises ) او دده لمسی دویم آیز ازیس Azes-2 په وارسره پاچاهي کړې او تر ۵ م میلادي کال پورې یې دوام کړی دی ، چې ددوی له سکو څخه دامطلب څرګندیږي . بیا پارتیان بریالي شول او داسیمه یې په خپله ولکه کې راوستله .

دیوناني مؤرخینو له قوله او له پارسي لیکنو څخه راڅرګنده شوې ده چې ساکا دخپلو پارتیانو ترېرو په شان ښه سپاره او تکړه جنګیالي وو . یوناني کنډولونو او خاورین لوښو باندې انځور شوې څیرې دوی غښتلي ، ببر اوږیره ـ ورسره ښیي ، یو رومي مبصر دسایتیانو ( Scythian ) د الاني ( Alanni ) قبیلې خلک دلوړ قدخاوندان ، ښکلي او غنم رنګي ځوانان معرفي کوي . دفارس په اردو کې دوی مهم رول درلود چې دهیرودوتس او آریان له خوا دهغې تائید شوی دی او همدارنګه ډېرې هغه سکې چې ددوی دساکستان ( سیستان ) Sakastan سرحدي صوبې او شمال غربي هند له فتحې څخه وروسته جوړې شوې دي ددوی تکتیکي وړتیا او جنګي ځواک څرګندوي . دزمري تخت ( Lion-Capital ) چې دهند له ماتورا څخه تر لاسه شوی ( اوس دبرتانیې په موزیم کې دی ) له کښل شوو څېرو څخه خپل مشر ته احترام او هغه ته وفاداري ، په ډاګه کوي او ښایي کیندل شوې څیرې دیوه پاچا دمړینې او خښولو مراسم تمثیلوي ، ډیر امکان لري چې دا به

دمافيس MAVES دمړينې مراسم ښيي .

په عمومي ډول ويلای شو چې ددوی تاريخ ځانګړې خصوصيت لري او ددوی په ورځيني کارونو ، فعاليتونو او کړو وړو پورې تړلی دی . له مختلفو سکو څخه دا څرګنديږي چې دخپلو پاچاهانو د دورو ، حرکاتو او پوځي عملياتو په هکله وي او له رسمو څخه يې داسې نتيجه اخيستل کيدای شي .

دهندي پارتيانو پاچاهي له ساکاو څخه وروسته په صوبه سرحد کې تر يوې لنډې او يا کلنې مودې پورې پاتې شوه ، داپه حقيقت کې فتح نه وه ، بلکې دساکانو خوځيدنه وه ، پارتيان هم په اصل کې دساکانو په شان دمرکزي اسيا کوچيان وو ، او ددوی فتح په حقيقت کې يوه قوي ليږديدنه وه چې له غرب څخه پيل شوې وه . په ٥ م ميلادي کال کې د ارساکيد - Arsac-id پارتي کورنۍ چې ستييفون « Ctesiphon » يا ( کتسيفون ) يې مرکز و ديوې نوې دورې بنسټ کيښود او ترا باسين پورې يې خپله واکمني پراخه کړه ، دپارس دهخامنشيانو دپاچاهۍ دسلطې دبيا راژوندي کولو هڅه او اراده يې وکړه ، دا عمليات دساکيستان ( سيستان ) له لارې څخه تر سره شول او دسورين ( Suren ) له کورنۍ سره تړلي ګڼل کيږي ، سورين دارساکيد دکورنۍ تر ټولو غښتلی مشرو . د ١٩ ميلادي کال دتخت باهي (Takht-i- Bahi ) ليکنې راښيي چې (Gondo phares) ګوندوپهاريس هغه پاچادی چې پر ګندهارا او شمالي پنجاب باندې يې حکومت کاوه ، په ګندهارا کې آزاد و مګر د اسياکيد پاچا ته يې ک-سيفون کې بيعت ښوده ، د مذهبي اوروحاني مبلغينو لپاره يې شرايط برابر کړي وو او روحاني مبلغ توماس Apostle Thomas دهغو مذهبي روحاني مبلغينو په ډله کې و او دروحانيونو په

لست کې دده پادونه شوې ده ، تو ماس داباسين په سيمه کې فعاليت کاوه .
مور ددې کيسې رښتيا او درواغ نه څېړو ، خو ځکه په زړه پورې ده چې نيټې
يې سره مطابقت لري . گوندو پهاريس پر ۴۸ ميلادي کال مړ شو او احتمالاً
د تخت باهي د کنبل شوي ليک او مسيحي روحاني کتاب تر منځ ممکن تکر نه
شي تصور کيداى .

دسورين دکورنۍ دغه پارتيان په شان او شوکت کې اوسيدل . که چېرې
رښتيا هم دساکاو په شان دوى د پښتو دجوړښت لپاره څه کړي وي نو خامخا
به ډير ښه او لوړ وي . فيوډالي سرداران د درندې سپرو قوې جوړولو ته
گمارل شوي وو . درنده او سپنيزه زغره ددوى خاصه وسله وه چې
د کاتافراکتي Cataphracti په نوم ياديده او کوچنيو سردارنو سپکه سپره
قوه ورته جوړه کړې وه چې هغه يې ساگيتاري Sagitarii بلله . ددا ډول
قواو په درلودلو د پارتيانو اردو خورا شهرت درلود . د پارت غشي
ويشتونکي سرباز دهوراس په بدلو کې ( Odes of Horace ) ډير ستايل
شوى دي ، او هغه انځور چې سرباز شاته را گرځي او غشي د دښمن خواته ولي
ډير شهرت لري او هر څوک ورسره اشنا دي . يونانيان او روميان د ۵۳ ق. م
کال د کرهي ( Carrhae ) جگړه ښه انځوروي . په سپيدو کې خاورې او
دوړې پر ده تشکيلوي او دسورين په زرگونه باډي گارډان (ساتونکي ) چې
په زغرو پټ او تکړه سپاره وو پر رومي پلي لښکرو وروختل او هغوى له
دا ډول سپرو له تکتيک سره اشنا نه وو . دانوې وسله د نننۍ عصر له زغره والو
وسايطو سره تشبيه کيداى شي . د روميانو لښکرې دانگې وانگې شوې او
دفرات ختيځ ته يې بيا دراپورته کيدو توان پيدا نه کړ . کرهي Carrhae
يوه غوڅه جگړه وه چې دهغې جگړې د باتورانو ، لمسيو او کړوسيو وکړاى شول

چې په شمال غربي سرحد کې د حکومت بنسټ کښېږدي . داد يادونې وړ ده : کله چې د پارس ساسانيان قدرت ته ورسيدل او ارد شير Ardsher په ۲۲۵ ميلادي کې دارساکيد کورنۍ ته د پای ټکې کېښود ، د سورين ټبر ځان له دې ماتې څخه وژغوره .

په ختيز سرحد کې د پارتيانو کورنۍ ناکامه شوه او پر ۷۵ ميلادي کال يې سقوط وکړ . د آمودريا له آخوا يوه بله داړه ماره قبيله رامنځته شوه او داکوشاني قبيله وه . کوشانيانو د ټکسيلا تر ديوالونو لاندې د ګوندوپهارس ځای کيناستونکي ته په خونړۍ جګړه کې ماتې ورکړه . اوسنۍ کيندنې په دې سيمه کې د پورتينو پيښو ښه ژوندي مثالونه راښيي . ارکيالوجستانو د ټکسيلا په ښار کې د سورکپ ( Surkap ) په ديوالونو کې يوه سوړه پيدا کړې وه چې هرې خواته د غشي ويشتلو لپاره همداسې سوړې تللي او تيتې شوي دي . داسې معلوميږي چې له دغې نيتې څخه وروسته ټکسيلا د يوه ښار په څير له منځه تللی او ويجاړه شوی وي . وروستنۍ ليکل شوې تبۍ او هنري اثار له سورکپ Surkap څخه نه بلکې د ښار ختيځ او شمال خواته پرتوغونډيو له بودايي معبدونو او هوجرو څخه تر لاسه شوې دي .

کوشانيان چې مخ پر جنوب روان وو پر پارتيانو يې يرغلونه کول او په نتيجه کې دارساکيد پارتيانو امپراتوري خورا کمزوري شوه . ځکه چې دوی په عين وخت کې له غرب له څخه د روم د قيصر له خوا تر فشارونو لاندې وو . د دوی لومړۍ فتح د آمو په جنوب کې باختر ( باکتريا ) وه او دلته د دوی لومړنی نوميالی حاکم کجولا کادفيسيس ( Kujula kadphises ) و چې ختيز لويديز او جنوب خواته يې ډېر يرغلونه او پر مختګونه تنظيم کړل او د وخت په تېريدو سره يې امپراتوري خورا پراخه شوه . نه يوازې يې ختيز

ایران ( چې اوسنی افغانستان او پاکستان هم په کې شامل و ) نیولی و ، بلکې پنجاب او د ګنګا دوادې هندیې تر الله آباد او بنارس پورې تر خپل اشغال لاندې راوستلي وو . احتمال لري چې کجولا په خپله لومړی د کابل وادي تحکیم کړې وي او بیا یې ګندهارا هم نیولې وي او پر ۶۰ میلادي کال تر اباسین پورې پر مخ تللی وي او داسیمې یې د پارتیانو پاچا ګوندوپهاریس څخه نیولې وي . پوشمالي هند باندې دده عام حاکمیت هغه وخت تامین شو چې څه ناڅه پنځلس کاله وروسته ده دیوې ډیرې خونړۍ جګړې په ترڅ کې ټکسیلا ونیوله . فاتح یا دا چې بې نومه بریالی واو یا ښایي دویم کادفیسیس Kadphises-2 و چې تر لاسه شویو سیکو څخه دی دویما کادفیسیس Wima Kadphises په نامه پیژندل شوی دی . د Wima ویما ټال د اباسین تر خولې پورې رسیدلی و او ده د پارتیانو له کمزورۍ څخه ګټه واخیستله ځکه هغوی له روم سره پر جګړه بوخت وو او په نتیجه کې یې آریا Aria ( اوسنی افغانستان ) ساکستان ( Sakastan =سیستان ) او اراکوزیا Arachosia خپل کړل . ویما څخه وروسته د کوشانیانو خورا مشهور پاچاهان قدرت ته ورسیدل چې تر ټولو مشهور یې کنشیکا Kanishka دی او ده یوه نوې دوره پیل کړه . د کنشیکا په زمانه کې د کوشانیانو امپراتورې تر ماتورا د ګنګا دوادۍ مشهور ښار پورې ورسیده او ماتورا یې د هندې ایالت مرکزو . دده د بریالیتوب او حکومت د دورې دقیق تاریخ واضح نه دی ، وروستي مورخین دده د حکومت دوره د دویمې پیړۍ د دویمې مسیحي څلرمې پیل یانې احتمالاً د ۱۲۸ میلادي کال په شاوخوا کې ګڼي ، چې له شهرت څخه یې نږدې پنځه سوه کاله د مخه کیږي . دده شمالي پلازمېنه یاد امپراتورۍ مرکز د پوروشاپورا Purushapura

(ننني پښتنور) ښارو، نو يو ځل بيا دکور خواته راځو.

دکوشانيانو دختمې او اصليت په هکله نظريې مختلفې دي. ډير مؤرخين داسې نظر لري چې ددوی زياتره اتباع په غرب کې ايرانيان او په شرق کې هنديان وو، خو دوی دهونيانو (Huns) او يا ترکانو يوه څپه وه چې دلته مسلط او ميشته شول. ځينې نور لکه گرشمن Ghirshman او مک گورن McGovern پر دې ټينگار کوي چې دوی دساينتيانو (Scythians) يوه بله پښه وه چې له ساکاو او پارتيانو سره خپلوي لري او زه هم ددې نظريې پلوی يم ځکه چې ډاډيره مستنده ثرگندېږي.

چنيايان دوی يو يهچي Yueh-chi شميري او بيا گوی شانگ Gwei- shang يا کوشان دهغې يوه غښتلې قبيله شميري. لرغون پوهنې اوځايو کيندنې او دهغو څيړنې داسې راښيي چې دکوشانيانو دين داورلمانځنه وه چې دمازدا Mazda طريقه يې تعقيبوله چې نښې نښانې يې د اباسين په اوږدو کې د دوی په کورنيو او کورونو کې په ځلو او منارو کې پيدا شوي دي، کله چې دوی داباسين وادۍ ته راورسېدل نو له ډول ډول اديانو سره مخامخ شول او دهغو لومړنۍ اغيزې دا وې چې له ا ديانو سره په کراره کراره تحمل او تطابق منځته راغی او ډول ډول مذهبي شخصيتونه راوزېږېدل لکه هراقلس Heracles، هيپاستس Hephaestus، ميتراس Mith-ras شيو Shiv او بالاخره بودا Buddha. ددغو اوږدو تجربو په لړ کې کوشانيان د ډول ډول مذهبونو او اديانو تر اغيزو لاندې راغلل. دکوشانيانو لوی پاچا کنشيکا د بوديزم تر تاثير لاندې واقع شو او بالاخره بوديزم يې ومانه او د ټولو نورو اديانو معبدونه او سمبولونه يې ونړول او دبوديزم عبادت نن هم له گندهارا او کنيشکا سره تړلی بولي.

کنیشکا د خپل سلطنت لپاره گندهارا خوښه کړه او پېښور يې پلازمېنه شوه او دده امپراتوري د گندهارا د پاچاهۍ په نامه مشهوره شوه . څرنگه چې کینشکا د اشوکا په پله روان و او هغه څلور پیړۍ دمخه و . بودايي دين ته يې ډېره وده ورکړه ، دده په دوره کې ډېر شهرت وموند ، په تېره بيا په ارت او هنر کې يې ډېر پرمختگ وکړ او د گندهارا د هنر اثارو له پېښور څخه د اسیانورو ډېرو برخو ته پراختيا وکړه . د کینشکا په زمانه کې د بوديزم طلايي دوره وه . مشهور چنيايي سياحان فا هين (Fa-Hien) او هيون تسانگ (Hiuen-Tsang) ددې سيمې ليدنه د خپلو سيلو نو يوه خاصه برخه شميري او توصيف يې کوي . داوسني پېښور گنج گيټ (Ganj Gate) دباندې په ۱۹۰۹ م کې د کنشيکا يو ډير ښايسته ، لرغوني او تاريخي تابوت وموندل شو چې د پېښور په موزيم کې ساتل کيږي او د لرغون پوهنې د څه کيندل شوې سيمې ته د شاه غونډۍ (Shahji ki dheri) وايي .

د کوشانيانو د تاريخ د بيا جوړولو خاص مشکل دا دی چې ددوی اصلي اړيکې د هندوستان له هغو اوسيدونکو سره ټينگ شوی دي چې هغوی د لرغوني تمدن نښې نښانې نه لري ، په مقايسوي او نسبي توگه د امپراتورۍ د وسعت او پراختيا په مقايسه تاريخي شواهد کم دي ، که څه هم چنيايي وروستي بودايي ادبيات د کنشيکا د قصر په هکله اسناد ښيي ، مگر دا کتابونه پوره مستند او ربښتيني اثار نه شمېرل کيږي ، او په پراخ ډول د هندي مذهبي دودونو تکرار دی . پر دې سربيره کوم ليکلي اثار چې شته په گندهارا کې د کنشيکا پر اتباعو ، قبيلو ، کورنيو او خلکو باندې لړ رڼا اچوي. سکې او هنري اثار خورا ډير دي او يوازې د شاهي کورنۍ کره وړه ور څخه معلوميدلای شي ، مگر د استعمار شويو خلکو د ژوندانه ، ډول او ژبې په

هکله څه نه څرګندوي ، يوازې د پايتخت نوم ښکاره کوي دپاکتيوس Paktues ، اپاروتې Aparutai او ګنداريوي Gandarioi په هکله او ددوی ځای نيونکو افرادو په هکله څه نه وايي .

ان پردې هم نه پوهيږو چې په خپله دا حاکمان په ختيه څوک وو ، څکه دوی په دې هکله روښنايي نه ده اچولې او دا ډير دافسوس ځای دی ، يوازې دکوشانيانو په دوره کې د پېښور ښار دامپراتورۍ دمرکز او پايتخت حيثيت پيدا کړی و .

دکوشانيانو په دوره کې دروم دنړۍ او داسياد سرحدونو تر منځ دسودا ګرۍ ځنډونه له منځه ولاړل ، له کوم وخت څخه چې د سيليو کيد (Seleucids) کورنۍ قدرت تر لاسه کړ بيا د ارساکيد Arsacid کورنۍ پورې چې دايران په وادۍ کې يې حکومت کاوه ديوه انګريز سر مورتيمر ويلر Sir Mortimer Wheeler په قول ترلې سيمه وه او دپارتيا حکومت له خوا دټولو لارو پر سرخنډونه وو او ددوی له خوا زياته اندازه ماليه او ټکس اخيستل کيدل . کله چې کوشانيان قدرت ته ورسيدل په شرقي غاړه کې يې پارتيا له دوو خواو څخه په جنګ کې راښکيل کړه . ګرشمن Ghirshman داسې ښاري چې ايران دروم او دګندهارا دنوي قدرت يانې کوشانيانو تر منځ سنډويچ شوه او په نتيجه کې ايران وځپيده . دروم او ګندهارا حکومتونو په سياست او تجارت کې دګډو ګټو علاقې درلودې . کوشانيانو دختيز-لويديز تجارتي لارو کنترول په لاس کې درلود . دوی کولای شول چې خپل مالونه دپارتيانو له خاوری څخه بهر په نورو لارو ، روم ته ورسوي . او همدادوره وه چې دپارتيانو انحطاط يې رامنځته کړ .

ټارن Tarn عقيده لري چې که چيرې تر ميلاد دمخه په دويمه او لومړۍ ،

پیړیو کې یوناني پاچاهانو پر ګندهارا حکومت نه وای کړی . دګندهارا آرټ او هنربه ، هېڅېری هم نه وای زیږیدلې ، مګر ننني عقیده داده چې دکنشیکا دوره ( ۵۱-۱۲۸ م ) څه ناڅه دوه سوه کاله را وروسته یوه طلایي دوره ګڼل شــوې ده او دګندهارا هنر ته یې ډېره وده ورکـــړې ده ؛ دډبرو ، زیړو او ګچو مجسمې ، لوښي لکه غوري ، کاسې ،کوزې ، اوداسې نور هر ډول هنري شیان جوړیدل او خورا وده یې کړې وه . ددغو ډیروشپانو د شتوالی له کبله Wheeler (ویلر ) داسې څرګندونه کوي چې دا دیونانیـانو اثر نه و ، بلکې دروميـانو هغه تاثیرات دي چې پر ختـیزه نړۍ باندې یې درلودل . ښـایي کسبه کار یې یونانیان وو خو ددغو ټولو هنري خزانو منابع دپلټنې له مخې رومي سکندر ته رسیږي . د غربي نړۍ دمفکورې داظهار ښې په مجسمو کې ددې سبب شوې چې دبودیزم مخ بدلون ومومي . هینایانا Hinayana (کوچنۍ څرخـه ) د مهایانا Mahayana لویې څرخې خواته وخوځیده . دهینایانا تر تاثیـر لاندې دوره کـې دبودا نمایندګي نه کیـده او دی دعبـادت سمبول نه و ، یلکې دا یوه مرحله بلل کیده ، مګر په مهایانا کې دکنیشکا په دوره کې د ګندهارا هنر بیخي پرمختګ کړی و او بودا معبود شو او دهرچا دپاملرنې وړ وګرځید . دروم دقهرمانیو او میړانو هنر په حقیقت کې په ختیځ کې په حرفه بدل شو او بودایي بڼه یې غوره کړه . Wheeher بیا وایي چې په شکلي او اخلاقي لحاظ یې انقلابي بدلون رامنځتـه کړ او دخـورا لوړ ارزښت او اهمیت سنتیز ښیي .

که څه هم پر دې ټکي باندې دنظر اختلاف شته چې داروښنایي له روم یا یونان سره تړلې ده ، دا ممکنه ده چې ووایو چې په سیمه کې ددغـو دوو منابعو دتاثیراتو تر منځ توپیر غوره کړو خودا به سمه خبره نه وي . په عمومي توګه

هرڅوک پر دې موافق دي چې د ټولو اميدونو او رڼا د ثقل مرکز سکندريه وه . چې دلته د اپلاتون فلسفه او هيلنيزم په وده کې و . دا مهمه نه ده چې اصلي محرکين يې روميان وو او که پتوليميان وو ، د ګندهارا د هنر وده د کوشانيانو د تجارت محصول ده چې دروم د امپراتورۍ لاسي صنايع يې شرق ته راوړل . دا هم د يادونې وړ ده چې د دې وخت پاچا امپراتور ها دريان Hadrian (۱۱۷-۱۳۸ م) و چې پر آرت او هنر خورا مين شخصيت و او تر لاتيني ژبې يې يوناني ډيره ښه زده وه . دا هم څرګنده ده چې ټول کسبه کاران او هنر مندان چې استخدام شوي وو ، د ختيزې مديترانې دود يې تعقيبولو نه لاتين دود . مورډ تارن Tarn نظر تر دغې پورې تعقيبوو چې وايي ـ په ګندهارا کې لږ ترلږه دلته د لومړنۍ يونان - باختري Graeco-Bactrian پاچاهۍ دراتلونکي پر مختګ لپاره بنسټ کېښود .

کينشکا پاچا چې ډير متقي بود يست و ، د ده پاچاهۍ وروستۍ ورځې وې چې يو تاريخي او يادګاري ټاپو يې جوړ کړ او احتمالاً د ګنج ګيټ Ganj Gate د باندې په ( شاهجي کې دهري Shahji ke dhrie) کې بنا شوی وي . پورتني پوړونه و کيندل شول او له لرګيو څخه جوړ شوي وو چې ديارلس پوړه يې درلودل او ۴۰۰ فټه جګ و او اوسپنيزه کټاره يې درلوده . وينسنت سميت Vincent- Smith وايي چې چينايي سياح سنګ يون - Sung yun په شپږمه پيړۍ کې دا ټاپو ليدلی و چې په هغه وخت کې دا ټاپو درې واره په اور لګيدو سره ويجاړ شوی او د ښو هنر دوستو پاچاهانو له خوا بيا جوړ شوی و .دلته يو بودايي معبد او د مذهبي زده کړو مرکز لا په دې وخت کې په پوره قوت سره فعال و او حتی تر نهمې پيړۍ پورې دلته بودايي زده کړې کيدې او ويرا ديوا Vira' Deva چې مشهور بودايي عالم و هم دا ځای ليدلی و . مګر کله چې برهمنيزم راژوندی شو د کوشانيانو آخيري شپې

ورځې وې او دبودایې مذهب څه اثرات چې دبرهمنیانو له خوا لا مراعات کېدل په یوولسمه پیړۍ کې محمود غزنوي او دده پیروانو له منځه یووړل .

دا یو حیرانوونکی انعکاس دی چې پښتونخوا دیوه داسې دین دپیدا ښت مرکز وچې ټول ژوند یې په هنري انځورونو کې منعکس کړی و او وروسته دداسې عقیدې مرکز شو چې نورو عقیدو د ردولو لپاره یې شهرت وموند ، موږ داسې شواهد تر لاسه کړي دي چې دهغو قبیلو نومونه را ښیي . چې له کوشانیانو څخه ډیرې پیړۍ دمخه دپښتونخوا په شاوخوا کې اوسیدلي .

همدا رنګه ددې سیمې اوسني خلک په کومه ژبه چې غږیږي یقیناً د دوی نیکه ګان لـ ساکا کورنۍ څخه دمخه دغې سیمې ته راغلي وو . کوشانیان چې تر ساکا وروسته راغلل او هغوی هم له ایرانۍ ختې څخه وو ، ښایي ژبه یې هم له ساکا څخه بېله نه وه ، په یوه جمله کې ویلای شو چې دننني پښتو ژبې ویونکي خلک او د دوی پلرونه دکنیشکا په زمانه کې راپورته شول . نني پښتون څخه چې پوښتنه وشي چې نیکه ګان دې بودایان وو ، حیرانتیا ښیي او وایي چې په هیڅ وجه داسې نه شي کیدای چې زموږ نیکه ګان دې بودایان وي ؟

داهم مشکله نه ده چې یو ډول ځواب ورته پیدا کړو ، نوی بادبه چلیږي خو لرغونی عطر به بویږي . دپښتانه عکس العمل دديني او مذهبي کړنو په مقابل کې داښیي چې دنیکه ګانو دودونو ته په درنښت ګوري او داسې ځرګندیږي چې نیکه ګانو یې هم هماغه دیني اومذهبي کړه وړه په دودیزه بڼه اجرا کول او درانه یې ورته کتل ،

ګفتګوی کفر ودین آخیر بکجامی کشد

خواب یک خواب است ، باشد مختلف تعبیرها

دکفر او دین خبرې کوم ځای ته رسیږي ، خوب خو یو خوب دی خو دهغه

مانا ببله ببله وي .

له کوشانیانو څخه وروسته یوه بله ایراني کورنۍ هم قدرت ته ورسیده او هغه د ساسانیانو کورنۍ ده . له ساسانیانو څخه وروسته په مرکزي اسیا کې نوې ډلې را پیدا شوې چې پر گندهارا باندې یې لښکر کشۍ وکړې .

دوروستیو څیړنو له مخې کنیشکا پر ۱۵۱ م کال وفات شو او په ده پسې درې تنو واسیشکا Vasishka ، هو ویش کا Huvishka او واسودیوا Vasudeua یو په بل پسې تر ۲۲۵ میلادې پورې پاچاهي وکړه . له مجسمو او سکو څخه څرگندیږي چې د کوشانیانو تر وروستیو پورې بودیزم وده وکړه ، مگر د وروستي پاچا له نامه څخه د قوي هندو یزم نښې ښکاري . واسو دویشنو Vishnu یو بل شکل دی ، دیوا پخپله څرگند هندي نوم دی . نو دا په خپله ښیي چې احتمالاً د برهمنیزم دبیا راژوندي کیدو اثرات له ورایه په دربار کې لیدل کیدل . په اگنی پورانا Agni Purana کې یو معاصر متن موجود دی چې د کوشانیانو د زمانې هندو ایدیالوژیستان بودیزم ته و ښتل او په نتیجه کې د دولت پایښت ته خطر متوجه شو . بودیزم چې سوله ، آرامي ،ځان غندنه او شورش ضد کړنلاره لري د کوشانیانو په شان نظامیانو لپاره د قوت پایښت نه تضمینوي . کوشانیانو تل د برچې د نو کې په زور فتحې کولې او سیاسي قدرت یې ساته ، دا متن د خارجي اشغالگرو په هکله کلکه غندنه ، نه کوي ، دا احتمال هم شته چې کوشانی وروستی پاچا چې هندویزم یې قبول کړی و خورا کمزوری ښکاري چې د برهمنیزم خواته به تللی وي . په دې کې ډیر لږ شک ښکاري چې په دریمه پیړۍ کې خورا کلکې بودایي عقیدې د کوشانیانو په نظامي ماته کې رول درلود ، مگر ربښتیني برهمیزم ته اوښتنون ډېر وروستی پیښ شوی دی . د کوشانیانو راپرځول دهغه لوی قدرت په واسطه را منځته شول چې په فارس کې را پیدا شو او دا قوت د

ساسانیانو کورنۍ وه . نه اوس او نه وروسته دا د پوهیدو وړ ده چې د ګندهارا څه ډول تاریخ دی ؟ اکثراً د فارس ختیز سرحد و او هېڅکله په فارس کې د ننه څه پیښه له دې خوا څخه را منځته نه شوه .

آردشیر چې د ساسان لمسی و اود « ستاخر » یو مذهبي شخصیت و دفارس یا پرسیس (Persis) رښتینی ایرانی و او ځان یې دهخامنشیانو اصولي او قانوني پاتې شونی باله او هخامنشیان پنځه پیړۍ له دوی څخه دمخه تېر شوي وو ، کوچني شاهزادګان یې له ځان سره یو ځای کړل او دارساکید پارتیانو دوروستي پاچا ارتبانوس Artabanus یا ارداوان Ar-davan په مقابل کې وجنګیده او پر هغه بریالی شو او په ۲۲٦ م کال پاچا شو . بیا پر ۲٤۰ م کال دده زوی شاپور پاچا شو . شاپور کله چې ولیعهد و دخپل پلار په څنګ کې یې ددښمنانو په ماتولو کې لوی لاس درلود . اردشیر او شاپور دایران ویروونکی قوت جوړ کړاو ډکرهي Carrhae دورځو په شان نه هېریدونکی ډار و چې ددوی پر دښمنانو را پریووت ، لومړی دوی خپله پاملرنه دکوشانیانو خواته را وګرځوله ځکه چې هغوی دروم په ملګرتیا دایران لپاره غټ سردرد و . د ارساکید جګړه ییز قابلیت یې مات کړ . بیا شاپور دروم په مقابل کې وخوځیده او هغه یې هم مات کړ اوّ پر ۲٦۰ م کال یې دایدسه Edessa په میدان کې دروم امپراتور والیریان یې Valerian پخپله اسیر ونیوه .

همدا شاپور پاچا دی چې دده دوخت لیکنې په نقش رستم کې د اور معبد په دیوالونو کې د پرسیپولیس Persepolis په ښار کې لیدل شوي دي . دالیکنې پاسکیبورا Paskiboura (پېښور) دفارس دامپراتورۍ ختیزه څنډه ښیي ، دا په ۲٦۰ م کال کې لیکل شوې وې . دایدسه Edessa فتح یې ستایلې ده او دشاپور مړینه پر ۲۷۳ م کال پېښه شوې ده . دکینشکا

کوشاني کورنۍ ديوې بلې کرښې شهزاد ګانو له خوا تعويض شوه چې دفارس حکمراني يې منله او پر يوه کوچنۍ سيمه باندې يې حکومت کاوه چې له کابل وادي او ګندهارا څخه عبارت وه . دساسانيانو له خوا په ګندهارا کې د کوشانيانو دماتې دقيق تاريخ څرګند نه دی ، مګر دوروستی پاچا واسو ديوا Vasudeva کښل شوې ليکنې ۲۲۶ م کال ښيي ، چې دانيته دساسانيانو دبرياليتوب زمانه ده ، نو داسې ښکاري چې له شاپور څخه دمخه په ښور دار دشير له خوا پر ۲۳۰ م کال نيول شوی و .

ساسانيانو دارساکيد دکورنۍ په شان تر ځلورو پېړيو زيات حکومت وکړ. دوی تر ډيره وخته پورې په مېرانه خپله پاچاهي وساتله تر هغه چې دريم يزدګرد دفارس شاهنشاه په ۶۴۲ م کې دعربو له خوا په ينها وند کې مات شو او دهخامنشيانو د داريوش کودمانوس Darius Codomannus په شان ختيز ته د « مرو » په لوري وتښتيده او ديوه قاتل له خوا ووژل شو . دده امپراتوري هم دداريوش دامپراتورۍ په شان ټوټې ټوټې شوه او لويديزې برخې يې دعربو دخلافت برخه شوې او يوځل بيا بايد مونږ ختيځ ته د پښور خواته پام وکړو . دساسانيانو ختيزه پوله له اباسين څخه آخوانه تيريدله . پنجاب او دګنګا برخې دکوشانيانو دسلطنت برخې پاتې شوې او بالاخره زياتره دګوپتا Gupta دهندي پاچاهۍ سره يوځای شوې دکوشانيانو دسلطنت هغه برخې چې ساسانيانو ونيولې : ګندهارا ، ديره جات ، سند او دافغانستان زياتره برخې په کې شاملې وې او داسې سيمې دکوشان شهر Kushan shahr په نامه ياديدې . ددې سيمې حاکم همېشه دساسانيانو يو معتبر شخصيت و چې تر شاهنشاه وروسته يې غټ مقام درلود او دکوشان شاه په نوم به ياديده او دا ددې سيمې دحکمران لقب و . عيناً لکه چې دانګريزانو په وخت کې تر ډيره پورې ويکتوريا دهند امپراتوره بلل کيده .

داسې دلایل شته چې لومړی شاه پور دخپل پلار په وخت کې سربیره پر دې چې د پلار آردشیر ولیعهد و لومړنی کوشان شاه هم و . وروستي زیاتره حاکمان همدلته ولیعهدان مقرر شوي وو . داسیستم تر ۳۶۵م پورې ژوندی و ،کله چې سپینو هونیانو ( White Huns ) دشمال له خوا پر دې سیمه فشار راوړ او موقتاً یې دا سیمه ونیوله . دساسانیانو تر قیادت لاندې دپخوانیو پاچاهیو سره په نسبي اوژبني لحاظ او دمدنیت په لحاظ په ختیزه برخه کې یو تو پیر لیدل کیږي . داتوپیر دادی چې دافغان کلمه یاده شوې ده ، په خاص شکل سره لکه چې دلومړي شاپور په کبنل شوو تبیو کې په نقش رستم کې پاسکبورا = پېښور ښکاري همدارنګه : (TouvSKPEPAPSYPiσMaW 8)
Abgan Rismaud · Gaundifer (ګوندیفر ابګان (ریسمود ) کلمې لیدل کیږي . دویمه کلمه له ورایه ښکاري چې دافغان کلمې لومړنی شکل دی . داخاصه پېژندګلوي ده چې دشاهنشاه دختیزو سیمو دانعکاساتو په واسطه حمایه کیدای شي . د سپرینګ لینګ Spreng ling په حواله مشابه نوم لکه اپاکان Apakan چې دریم شاه پور یاد کړی دی دیادونې وړ دی . دریم شاه پور په ( ۳۰۹-۳۷۹م ) کې اوسیده او ده اویاکاله عمر درلود.

دفونیتیک په حساب ابګان - اپاکان او افغان ورته کلمې دي او دوخت په تیریدو سره یې تکامل کړی دی . کیدای شي چې دساسانیانو دغه معتبر مشران دافغاني قبیلو لکه یوسفزو او یا درانیو نیکه ګان وي.

ساسانیان لانه دي ختم شوي خونږدې دوه سوه کاله پردوی تېرشول چې بیا ګندهارا ته راغلل . داخلي نوې او ډېره په زړه پورې خپه پیل شوه چې له پخوانیو جګړه ییزو هلوځلو سره یې توپیر درلود چې دپخوانیو کورنۍ رقابت دهغې په پس منظر کې ورک شوی و .

## شپږم څپرکی

# سپین هونیان

ترڅلورمې پیړۍ پورې دګندهارا ټول اشغالګران له هخامنشیانو څخه وروسته له سکندر مقدوني څخه مستثنی ، نور ټول ایرانیان وو چې یادفارس دښارونو اوسیدونکي وو او یا کوچیان وو . دوی لکه پارتیان ، ساکان او کوشانیان چې دایراني نړۍ په پولو کې اوسېدل حتی یونان - باختریان په حقیقت کې ایرانیان وو خوپه ظاهري بڼه دهیلنیزم نښې په کې لیدل کیدې . مګر تردې وروسته دډیرو وحشي خونخوارو قبیلو مهاجرت داسیا د براعظم له زړه څخه پیل شو . داخلک دسپینو هونیانو په نامه یادیدل . یوناني او رومي لیکوالان دوی دیفتلیانو او شیونیانو ( Ephthalites and Chionites ) په نامه یاد کړي دي . دانومونه په یوناني لیکنو کې اصلاً دچینایي ( یي - تي - لي - دو = ye-ti-i-Li-do ) او دمنځنۍ پاړسۍ

خیون Khion یانې هون Hun څخه راالخیستل شوي دي ، دزړې عربي او پا ړسي جـــــــغرافیه پوهانو او پیښو لیـــــــکونکو ، دوی دهیتـال Haytal یا هیاتیله Hayatila په نامه یاد کړي دي .

یوازینی منابع چې د یفتلیاتو یا سپینو هونیانو لیږدېدنه په ګوته کوي چینایي منابع دي . پاړسي او عربي لیکوالو او نورو کلاسیکو اسنادو ددوی یادونه هغه وخت کړې ده چې دجنوب خواته دوی له هندوکش څخه تېر شول . که څه هم وینسېنت سمیت Vencent Smith دوی داتیــلا هونیـان (Huns of Attila) بولي خو چینایان په ډېر احتیاط سره دوی یې - تي -لـــي - دو =ye - ti - i -Li- do یا یفـتلیـان بولي چې هیـونګ نو Hiung -nu یا اصل هونیانو ته یې منسوبوي . پروکوپیس ( Procopi-us) یو معـــــــاصر لیکوال په ـپل (De bello persico ) کې داسې بیانوي چې یفتلیـانوله هغو هونیـانو څخه چې رومیانو پېژندل بېخي توپیـر درلود . داداسې هونیـان وو چې پوستکي یې سپین او دمخ غړي یې نورمال او عـادي وو . چنیـایي سرچینې وایي چې دوی نه په منګو لیـا یي ژبه غږېدل او نه په ترکي ژبه . نو ځکه دژبې له مخې یې دهغو هونیانو ګروپ څخه چې زونګاریا Zungaria یې اشغـال کړې وه پوره تـوپیـر درلـود او اصلي هونیـان او یفتلیانُ هم دهمدې ځای خلک وو . د مک ګورن Mc Govern په حـواله یوه چنیــایي منبع دوی داسـې بیــانوي چې اصـلاً دوی په خـتـه کوشانیـانو یانې یو یـهچي yueh-chi ته ورګـډېږي . مګر په دې خبره کې پوره شک شته .

له دغو متضـادو نظریو څخه تر ټولو ښه نتیـجه ګیـري داده : یفـتلیـان دترکي نژاده هونیـانو په ګـاونډ کې اوسیـدل او په نتیـجه کې ژبني او نسبي اړیکي ددوی دګډېدو سبب شول ، او ښـایي هر یوه په دې ویاړ کـاوه چې ځان

دهونیانو کورنۍ ته منسوب وبولي . په عین وخت کې په شمالي ترکستان کې د دوی موقعیت دایران اوتوران په پولو کې و او کوچي ډوله ژوند یې درلود ، چې د دواړو خواو تر تاثیر لاندې واقع شوي وو او ډیر امکان لري چې دوی به په دواړو ژبو خبرې کولې . ترکي - ایراني ترکیب پوره دمنلو وړ دی . دروسیانو له اشغال څخه دمخه دبخارا او سمرقند مدنیت ددې خورا غوره مثال دی . همدارنګه دامپراتور بابر او دده لمسی جلال الدین اکبر ددې تاریخي شان او شوکت بل مثال کیدای شي او دوراندې پلټنې اړه به نه ښکاري . ډیر وخت دا ډول نتیجه ګیري پوره حقیقت ته نږدې ثابتیږي . نو دافغانانو یا پښتنو په هکله نتیجه ګېري کول عیناً حکم لري .

دلومړي ځل لپاره چې یفتلیان یاد شوي دي د آوار ( Avars ) داستازو په شکل ذکر شوي چې هغوی په څلورمه میلادي پیړۍ کې لویه امپراتوري جوړه کړې وه او منګولیا یې مرکز و . د آوار خلکو احتمالاً په منګولیایي ژبه خبرې کولې او حاکمانو یې دخاقان Khagan یا خان Khan لقب ځان ته غوره کړی او یفتلیانو هم دالقب له مرکزي اسیا څخه له ځان سره راووړ . که څه هم د خپلو تشکیلاتو اکثره نمونې یې له آوار څخه اخیستي وې خو دوي اصلاً ځانته بېل خلک وو چې ځانته یې بېل کلتور او بېله ژبه درلوده . ددوی په لیږدېدنه کې له آوار څخه لرې کیدل هم یو څه موثر وو ځکه چې دوی نه غوښتل چې بالکل آوار تر تسلط لاندې پاتې شي . دوې قاشغر Kashgharia ( نننی سینکیانګ ) او سغدیه Sogdia ( نننی سمرقند ) ونیول او پر ۳۶۰ میلادي کال د جنوب خواته ولاړل او دباختر پر کوشانیانو باندې یې برید وکړ . کوشاني حاکمانو سخت مقاومت وکړ مګر ماتې یې وخوړه او د پارس له ساسانیانو څخه یې مرسته وغوښته ، خو دفشار له کبله جنوب ختیځ خواته وتمېدل او دخپل مشر کیدارا ( Kidara )

ترقـومـاندې لاندې گندهارا ته په شـاشـول او گندهارا ددوی دتره زامنو کـوشانیـانو په لاس کې وه او دساسانیـانو اتبـاع گڼل کـیدل . داکیـداریان دکوچنیو کوشانیانو په نامه یادیدل او دوی کله دسپینو هونیانو لومړی څپه هم بلل شوې ده چې له شمال څخه یې فتوحات پیل کړل او دوی ته خیونیان یا شیونیان (Chionites) هم وایي مگر دا باوري ده چې کـیـداریان او دهغوی وروستی ځای ناستي ساتیانو (Seythian) دختې کوشانیان وو چې له باختر څخه یفتلیانو وشړل . کیدارادگندهارا کنترول په خپل لاس کې راووست او دساسانیانو وروستی کوشان شاه یې له گندهارا څخه وشاړه او په ۳٦۵ میلادي کې مړ شو . کیدارا پخپله دکوشان شاه لقب ځان ته غوره کړ او ښایي ساسانیانو هم په همدې لقب سره په رسمیت پیژندلی وي . دکیدارایانو دحکمرانۍ موده په گندهارا کې پوره روښانه نه وه . مگر له ځینو سکو څخه څرگندیږي چې له یوه څخه زیات حکمرانان یې درلودل او ښایي یوه پیړۍ حکومت به یې کړی وي . وروسته تو له سیمه دیفتلیانو یا سپینو هونیانو له خوا ونیول شوه چې تر شمالي هند پورې پر مخ ولاړل او په غرب کې یې هم دفارس دساسانیانو امپراتوري له منځه یووړه .

یفتلیانو دباختر اشغال پر ٤۲۵ میلادي کال تکمیل کړ . او له هغه ځای څخه یې دمرکز په توگه گټه واخیسته او خپل تعرضونه یې دجنوب غرب په استقامت دفارس خواته او جنوب شرق دکابل وادۍ او گندهارا خواته غښتلي کړل. دفارس په مقابل کې لومړنی قوا په ٤۲۷ میلادي کې وړاندې شوه چې دساسانیانو دخورا مشهور حکمران بهرام گور (Bahram -v) له خوا له ماتې سره مخامخ شول . بهرام گور په ښکار او عشق کې شهرت درلود . بهرام گور هڅه کوله چې دوی تطمیع کړي او دسروزرو په ورکولو سره دوی له تعرض څخه منصرف کړي او په عین وخت کې یې کمین ورته ونیولو او

يفتليان يې تر آخرين سري پورې ووژل . تربوه نسل پورې دا حيله موثره وه . مگر كله چې د بهرام گور لمسى فيروز پاچا شو د پنځمې پيړۍ نيمايي وه او دتلې پله مقابل لوري ته درنده شوه . فيروز يفتليان پاچا جوړونكي بللي وو او دخپل كوچني ورور په عزل كې يې مرسته غوښتله او د نارضايتۍ په نتيجه كې جگړه پېښه شوه ، ديو لړ جگړو په نتيجه كې فيروز لومړۍ اسير او بيا په اخر كې پر ٤٨٤ ميلادي كال له مرگ سره مخامخ شو . دفارس دساسانيانو وياړ او غرور مات شو او په ټيټ موقف كې ودريدل . يفتليان غښتلي وو او په شپږمه پيړۍ كې يې لا حكومت كاوه . مگر يفتليان په نورو ځايونو كې هم پوره مصروف وو . دفارس دنظم جوړولو لپاره يې وخت نه درلود .

پر ساسانيانو باندې فشار يو څه كم شو ځكه چې ساسانيانو دهندخواته مخه كړه او هغه يې گتمو ره وبلله او لومړۍ يې پر گندهارا يرغل وكړ او پر ٤٥٥ ميلادي كال يې دكيدارا ځاى ناستى وپرځاوه او گندهارا يې ونيوله . په جگړه كې له دوى ســـــره دځو قبـــــيلو غړي وو چې گورجاره Gurjara نوميدل ، په گندهارا كې يې له دوى څخه يو تن وايسرا ، يا تاجين (Tagin=Viceroy) مقرر كړ چې په باختر كې ديفتليانو دعالي حكمران تر امـرلاندې و . دا وايسرا احتـمـالاً دهند دگوپتـا دليكنو له مخـې له (تورامانا ) (Toramana ) ســره مطابقت كـوي . تورامــانا او دده زوى ميهيرا گولا ( Mihiragula ) خورا ظالم او خونخوار خلك تېر شوي دي . دوى له دې څه مخكې چې پنجاب ونيسي دگوپتـا هندي امپراتوري يې ړنگه كړه او دټول شمالي او مركزي هند حكمرانان شول . دوى دخپل مركز بنسټ په سكاله Sakala ( نننى سيالكوټ Sialkot ) كې كېښود .

دميهيرا گولا Mihiragula دظلمونو كيسې نه يوازې دهند يانو له خوا ويل شـوي دي ، بلكې چنيـايي سيـاح سنگ يون Sung-yun او

دبيزانتين يو راهب هم چې شمالي هند ته تللى و دده د ظلم كيسې كړي دي .
په آخر كې دده د ظلم او فشار په نتيجه كې بغاوتونه پيل شول او په پايله كې
يفتليان مات شول او بوازې په شمال كې تش په نامه پاتې شول . ميهيراگولا
كشمير ته پناه يووړه او هلته يې د ظلم او فساد بله دوره پيل كړه تر هغه چې په
٥٤٢ ميلادي كې مړ شو . د كشميريانو په منځ كې كيسې پاتې دي چې
ميهيرا گولا دومره ظالم و چې فيلان ( هاتيان ) به يې له غړ نگو څخه غورزول
او ددوى له درد ناك مرگ څخه به يې خوند اخيسته . د دغو غړنگونو يادونه
نن هم كيږي چې د پير پنجال Pirpanjal جنوبي څوكې ته نږدې او س هم شته
چې زر كاله وروسته د مغولو دزمانې لويه لاره له همدې ځاى څخه تېريدله او د
كشمير كلني سيل ته به له همدې لارې تيريدل .

د يفتليانو اصلي قوت په باختريا كې و ، مگر دا باسين دوا دي له لاسه
وتلو سره دوى هم ماته وخوړه . تقريباً د شپږمې پيړۍ په منځ كې تركان
د آوار داستازو په صفت پر يفتليانو برياليي شول ، ددوى پر ضد دبغاوت په
نتيجه كې يې شمالي تركستان ونيو . تر هغې وروسته هم د باختريا يفتليانو
او تركانو تر منځ اړيكي كړكيچن شول . په دې وخت كې په ساساني ايران
كې لومړي خسرو ( نوشيروان عادل ) خپله داوړدې مودې ( ٥٣١-٥٧٩ م )
پاچاهي كوله . كه څه هم دفرات ( Euphrates ) په غاړه
دبيليزاريس ( Belisarius ) له خوا دده مخنيوى كيده خو دجگړې په ترڅ
كې برياليى شو او دجستينيان ( Justinian ) تر قوماندې لاندې يې دروم
بنزانتين ته ماته وركړه او په دې توگه يې غوښتل چې دفارس غيږه يو ځل بيا
پراخه كړي . دباختري يفتليانو پر بله غاړه د تركانو دقوت ودې خسرو ته
موقع وركړه چې له هغه چا سره زور وآزمويي چې درې نسله يې ددوى
امپراتورۍ كمزورې كړې وه . ساسانيانو او تركانو په گډه سره پر يفتليانو

يرغل وكړ او په سغديانه كې يې ديوې پريكړونې جگړې په نتيجه كې يفتليان بيخي له منځه يووړل او دميناندر پر وتيكتور Menander protector د بيزانتين مورخ په حواله ددې دسقوط نيټه ٥٦٨ م كال و . ددې پېښې شرح دفردوسي په شاهنامه كې هم راغلې ده چې لومړي خسرو ( نوشيروان عادل ) ته ليكل شوې ده . فردوسي يفتليان د هيتال په نامه ياد كړي دي .

يو ځل بيا دساسانيانو قدرت داباسين او ختيز ايران - ننني افغانستان پورې وغزيده . لږتر لږه لا تش په نامه را ژوندی شو او د دوی لاس ته ورغی .

سره له دې چې د يفتليانو امپراتوري ړنگه شوه خو يفتليان له منځه لاړنه شول . دا احتمال شته چې ډېرو دودونو تر څنگ دخان كلمه هم له دوی څخه پاته شوې وي . چې نن ورځ نه يوازې په پښتنو كې ، بلكې په پنجاب او ځينو نورو ختيزو برخو كې هم استعماليږي ، چې مركزي اسيا څخه د دوی دنسب څرگندوي گڼل كيداى شي . همدارنگه ويل كيږي چې ډيرې نورې اصطلاحگانې چې د پښتنو له خوا استعماليږي له منگوليا څخه دتركي مهاجرو په واسطه راوړل شوې دي . لكه ولس - برمته ، حشر ( اشر ) او داسې نورې كلمې دي چې په پښتو كې رواج لري او ايراني ريښه نه لري . له يفتليانو سره گورجرا Gurjaras هم راغلل او پر دې تكي ټول مثبت نظر لري . كله چې يفتليان له قدرته ولويدل د گورجرا خلك پاتې شول . دا هم سپينه شوې ده چې د پنجاب جټان او حتى راجپوت قبيلې دسپينو هونيانو اولادونه دي . سكان له همدغو جټانو څخه را پورته كيږي او راجپوت قبيلې هم پرخپل اصل ډير وياړ كوي .

كه چيرې دا خبره پوره كړه وي نو خامخا به د يفتليانو پاتې شوني د پېښور په سيمه كې هم وي . د راجپوت اصل ريښه داوسنۍ ستونزې لپاره لا بله نوې ستونزه گڼل كيداى شي . وينسينت سميت Vincent Smith په دې هكله

په زړه پورې خبرې لري . له اسلام څخه دمخه هغه باندني يرغلګر چې له شمال لویديز وغاښيو څخه را تېر شوي وو : ساکان ، کوشانيان او سپين هونيان وو . وينسينټ سميت ليکي چې دلرغونې او منځنۍ زمانو تر منځ دهند په تاريخ کې داسې وخت تېر شوی دی چې اوسني دودونه مړه او تر خاورو لاندې شوي دي . يوازې له سکو او تبيو څخه چې ليکل په کې کښل شوي دي ددوی پېژندنه کيږي . مګر پر عکس دراجپوت دودونه لا ژوندي پاتې دي او حتی نن هم دخلکو په ژوندانه کې رول لري .

دوينسينټ سميت په عقيده دا درز په پنځمه پيړۍ کې دهونيانو ديرغل په نتيجه کې پيدا شو . دسپينو هونيانو يرغلونه او داړې دومره درندې او بيروونکي وې چې ټولې پخوانۍ خاطرې يې دخلکو له افکارو څخه ومينځلې.

ساکا او کوشانيان دخلکو هېر شول . دا حملې داسې وې لکه چې انګلوساکسن Anglo - Saxon پر برتانيه وکړې او توره تياره خپره شوه . وينسېنټ سميت زياتوي :

راجپوت څوک وو ؟ دوی اوددوی حوادثو تر اسلام دمخه پيړيو کې ولې دومره شور را منځته کړ ؟ ددوی اوج بيخي روښانه دی ځکه چې په شمالي هند کې يې منځنۍ زمانه له لرغونې زمانې څخه بېله کړه او دانسانانو ماغزه ددې وضاحت غواړي . داخر ګنده ده چې دهون قبيلې او لښکرې په اساسي ډول په راجپوتانه او پنجاب کې ځای پر ځای شولې . له هونيانو څخه وروسته تر ټولو مهم عنصر دهون په ګروپ کې ګورجرا ( ګوجر ) دي چې نوم يې لا تر اوسه ژوندی دی او په شمال غربي هند کې تيت شول . جټان يا جاټان چې په عمومي توګه بزګر دي او ګوجر پوينده دي ، په حقيقت کې ټول يو ګوجر دي او دا يوه عامه مفکوره ده .

دکانوج Kanuj یا پاریهار Parihars راجاګان چې ۸۰۰ - ۱۰۱۸ میلادي پورې اوسېدل او ځینو یې مستقلې پاچاهۍ هم کړې وې په حقیقت کې د پنځمې او شپږمې پېړیو د پردیو مهاجرو زامن وو چې د ګوجرو تربرونه بلل کېږي . دوی د لومړۍ طبقې راجپوت بلل شوي دي او د هند د تاریخ یوه مهمه برخه تشکیلوي . داسې نظریه شته چې د راجپوت ټولې قبیلې له همدا ډول مشابه نسب څخه دي . خو په رښتیا سره داسې څرګندېږي چې هره بهرنۍ قبیله چې هندو شوې وه هغه د راجپوت یا کشاتاریا Kshatariya په نامه مسمې شوې وه او په عین وخت کې ټول پردي د ګوجرو په لست او قطار کې حساب شوي او نورې مذهبي طبقې یو په بل پسې د تقدم او تأخر په لحاظ ټیټ او مادون شمېرل شوي دي .

راځئ چې اوس دا وګورو چې دا مناقشه د پښتنو په اصل او نسب پورې څه اړه لري ؟ ګندهارا او د پېښور وادي د یفتلیانو او سپینو هونیانو له خوا د شمالي هند د اشغال په مسئله کې د مرکزي نقطې حیثیت لري . نن ورځ په سوات - دیر او مردان کې په زرګونو ګوجر اوسېږي او د دوی یو لوی کلی ګوجر ګهړۍ Gujar Garhi نومېږي چې د یوسفزو د مردان په سیمه کې پروت دی . د سودم Sudhum شمالي غونډۍ چې بونیر د مردان له سمې (Samah) څخه بیلوي ، ټولې په ګوجرو ډکې دي ، او د هر کلي مشر یا خان پښتون دی او ګوجر یې د ګاونډي ( همسایه ) په شان ورسره ژوند کوي او عیناً لکه پخوا چې ګوجرو د یفتلیانو خدمت کاوه . د خان لقب د هر پښتون میراث ګڼل کېږي ، دا عجیبه د نه منلو وړ خبره ده چې د یفتلیانو په شان فاتح قوم په هند کې د راجپوت غونډې او لاده لري مګر په پېښور کې چې د دوی د امپراتورۍ مرکز ګڼل کېده هیڅ ډول نسل او اولاد یې نه دی پرې ایښی . دا موهم باید په یاد وي له اسلام د مخه کله چې ساسانیانو او ورپسې یفتلیانو

سقوط وکړ ، گندهارا او شاوخوا سیمې ترڅلورو پېړیو پورې دهندوانو تر قبضې لاندې راغلې ، په دې موده کې له شمال غرب څخه بریالي یرغلونه تر سره نه شول او خلکو ته دا موقع په لاس ورغله چې مېشته شي . دا موهم باید په یاد وي چې سپین هونیان د پراکوپییس Procopius په حواله ښکلي ، سپین پوستي او دنگ خلک وو او دمخ غړي یې هم لوړ او ښایسته وو :

ډیر مخکې تردې چې دیفتلیانو او گوجرو دمشابهت او ورته والي په هکله څه وویل شي ، بیلو Bellew استشاره کړې ده چې افغانان او راجپوت دکرکتر او رواج له مخې بیخي سره ورته دي ، د دوی ځینې کلک اصول لکه مېلمه پالنه - دپناه غوښتونکي ساتنه - د ناموس په هکله حسادت - توره او مېړانه - ویاړ او غرور ، دځان حیثیت ، دپت او ننگ پالنه ، دملي شرف دساتنې حسادت او رقابت ، باداري او باتوري او داسې نور هغه خصلتونه دي چې په پښتنو او راجپوتانو کې یو شان دي او همدارنگه جسماني مشابهت ددوی تر منځ ډېر زیات دی . ددوی تر منځ توپیر کول مشکل کار دی ، ددواړو تر منځ اوس توپیر کول یوازې په دې کیږي چې پښتانه مسلمانان او راجپوت برهمنیان دي ، شخصیت او ځمکنی لرې والی ددوی ترمنځ توپیر نه شي ښودلی . دلته یوه مقوله رانقلوم :

« دراجپوت او دسکاټلنډ دلوړو اوسیدونکو تر منځ دومره ډېر مشابهتونه شته چې څېړونکي ته داسې ښکاري چې سړی د والټر سکاټ Walter Scott کیسې لولي . یوازینی توپیر په نومونو او ځایونو کې دی . دوی دواړه ډار نه پیژني او مېړني خلک دي ، دواړه خپلو مشرانو ته وفادار دي . دواړه له سپورت سره مینه لري او دواړه هره شیبه جگړې ته تیار دي . که چیري مخته دښمن ونه لري له یو بل سره هم پخپلو کې جگړې ته چمتو دي . ددومره پیړیو په تېریدو سره بیاهم دراجپوتیانو په وینه کې دنیکه گانو نښې

ژوندی دي او له تولو نورو نژادونو څخه دوی بیلوي . تر تولو غریب یې دزړیدنې له مخې شاغلي او بادار دی ، او له همدې کبله دهر پیاوړي ساری دی . کله چې راجپوت پر آس سپور وي او پر سر ک تیریږي دنیکه گانو د توری شرنگ او د آس د پښو کړپې وریادیږي او داسې فکر وکړئ چې د پریتوي راج «Prithwi Rij» لښکرې تېرېدې او پاچاهان جنگ ته تلل ، دا اوس داسې وبولئ چې د راجپوت پر ځای یو افغان دی او د پریتوي راج پر ځای احمد شاه بابا دی ، دا مشابهت بیخي کټ مټ او یو بل ته ورته دی . »

موږ تاسې د پښتنو د قبیلو نومونه ولوستل چې له یفتلیانو څخه په سل گونه کاله د مخه وو او همدا رنگه دا راته څرگنده شوه چې حورا مشهور ژبپوهان د پښتو ژبو نیکه گان له یفتلیانو څخه څلور پیړۍ د مخه . لږ تر لږه د ساکا دزمانې خلک بولي . ما ته داسې بریښي چې د پښتنو اصل هر څه چې وي خو سپین هونیان هم د پښتنو په ترکیب کې یو څه نقش لري . لکه څرنگه چې په زرگونو گوجر د سپینو هونیانو نوکران ، نن ورځ ددې سیمې په کلیو کې موجود دي ، هرومرو به ددوی دخانانو په ډله کې یفتلیان هم وي . زما خو دا عقیده ده چې ډیر خان خیل لکه یوسفزي دا ادعا کولای شي چې یفتلیان دي دا احتمال شته چې دهوارو سیمو افغانانو لکه یوسفزو کې د یفتلیانو وینه شته او دغرو په اوسیدونکو کې ـــ دا احتمال کم لیدل کیږي . په بل عبارت ددغو علامو پلټنه د جنیولوژۍ له مخې د سړبن په اولادو کې کیدای شي او په کرلاڼي کې نه ښکاري ، دلته د بیلو ( Bellew ) نظریې ته پاملرنه کیږي چې د سړبن جنیولوژي داسې ښیي چې راجپوت سره یې اړیکي شته ، د مثال په توگه ویلای شو چې سړبن (Suryaban) له سوریابان څخه شارجون له سورجان ، څخه او کریشیون له کریشن څخه اخیستل شوي دي .

دا د حیرانتیا وړ نه ده چې د پښتو ژبه له څو کلمو څخه پرته له ترکي ژبو

سره هېڅ اړيکي نه لري او دشرقي ايراني ژبو له گروپ څخه يوه ژبه ده ، يوازې ځينې کلمې يې له هندي گروپ څخه اخيستي دي . په کلتوري چارو کې ، دژبې په شمول هوني فاتحانو دخپلو فتح شوو سيمو خلکو لاره نيولې ده او دسلگونو کلونو را په دې خوايې ايراني تمدن په ميراث نيولی دی .

داچې يفتليانو دافغانانو په ترکيب کې رول درلودلی دی ، نور ډېر دلايل شته چې غور پرې وشي . دجنيولوژۍ له مخې مور تاسې وښېړله چې غلجي دبېټني زامن او دقيس لمسيان دي خو دا يوازې دده دلور بي بي متو له لارې حسبابيږي او بي بي متو ديوه باندېني شهزاده له خوا ښځه شوې وه ، او هغه حسين نوميده . پخوانيو پرغلگرو همېشه ښځې په زور او يا چال سره نيولې او نکاح کولې يې ـ داسې نظريې هم شته چې داشهزاده ترکی و . په هرحال ، داڅرگنده خبره وه چې دا شهزاده افغان نه و .

داچې غلجي دترکي نسب ريښې لري ، ډيره مناقشه پرې شوې ده . ديوولسمې پيړۍ دبغداد اوسيدونکی محمود قاشغري Mahmud Kashghari دنظريې پر اساس چې په بغداد کې يې ليکلې ده روسي ختيځ پيژندونکی بارت هولد Barth hold غلجي ، ترکانو ته منسوبوي او ترکي خلجي يې بولي چې دترکو داوغز Oghuz يا غز Ghuzz څلرويشتو قبيلو څخه دوه قبيلې دوی جوړوي ، چې ددوی لومړۍ څپه په لسمه پېړۍ کې له آمو څخه دجنوب په لور پورې وتله او دمحمود غزنوي دقواو لومړۍ برخه يې تشکيله کړه . داسې منل شوې ده چې دوخت په تېريدو سره دوی دافغانانو ژبه او کلتور خپل کړل ، يو بل روسي ختيځپوه رئيزنر Reisner ددې نظريې دتائيد تمايل ښيي او په خپل کتاب (Cambridge History of India) دهند په هکله دکمبريج تاريخ کې يې څيړي . ما په خپله هم ددې ملاتړ کړی دی .

په دې شيبه کې زما ور انديز دادی چې خلجي او غلجي رابطه په خپل ځای پرېږدو او وروسته کله چې د هند اشغال د خلجيانو له خوا څېړو پر دې ټکي باندې به هم رڼا واچول شي . راځئ چې وګورو چې د خلجيانو مخينه څوک و؟ که چېرې خلجيان په رښتيا سره ترکان وي او بيا يې د غزنويانو په زمانه کې دافغانانو دود او دستور غوره کړی وي ( لسمه او يوولسمه پېړۍ ) ، او د اهغه زمانه د چې د هغې په ارتباط معاصر او محلي ليکل شوې رسالې په عربي ژبه بيخي ډيرې دي ، نوزه د انعکاساتو له مخې ويلای شم چې دا بيانيې د غزنويانو په اثارو کې شته ، مو ږ بايد نور هم شاته نظر واچوو او د خلج اصل ته وګورو . آيا دا امکان شته چې دوی به او غز ( غز ) ترکو څخه لا د مخه د يفتليانو اولاده وي ؟ د دې نظريې د احتمالي حقيقت لپاره کوم سند يا ايپي ګرافيک ( ليکنه ، کندنه ) شواهد نه شته ، ځکه ترکومه ځايه چې روښانه شوې ده يفتليانو ليکلي آثار يا څلي نه درلودل . مګر دا نظر داسې معلومېږي چې ټوله کيسه را ژوندۍ کوي او لااقل په زړه پورې ښکارې لکه وينسينټ سميت چې راجپوت د يفتليانو اصل ته ورګډوي .

يو څه روښنايي په دې را لوېږي چې عربو او فارسيانو يفتليان د هيتال او هياتيله په نامه ياد کړي دي او د فردوسي په شاهنامه کې هم د هيتال په نامه ياد شوي د ي . د « حدود العالم » د کتاب په هکله د پروفيسور ميناړسکي Professor Minorsky تبصره د وه متونو نه د عربي حوادثو ليکونکو څخه را اخلي چې څه ناڅه زموږ شک لرې کوي :

(a) دالخوارزمي د مفاتح العالم څخه چې احتمالاً په ۹۷۵ م ( ۳۶۵ هـ ) کې ليکل شوی دی ؛ وايي :

« هياتيله د خلکو هغه قبيله ده چې شان او شوکت يې درلود او د تخارستان Thukharistan هيواد يې نيولی و . هغه ترکان چې خالوخ

Khalukh یا خالج Khalaj نومیږي ددوی او لادونه دي. »

(b) داستخري له کتاب المسالک څخه چې د ۹۳۳ م ( ۳۲۱ هـ ) په شاو خوا کې لیکل شوی دی داسې ښکاري : خلج هغه ترکان دي چې په پخوازمانو کې د هند او سجیستان ( سیستان ) تر منځ سیمو کې د غور آخواځای پر ځای شول . دوی مالدار او پوینده دي ، کالي ، کړه وړه او ژبه یې ترکي دي . »

لومړی متن چې وګورو تر پایه پورې دخلج او خلوخ ترمنځ توپیر اومناقشه دوام لري . په عربي کې د ( خ او ج ) تر منځ توپیر یوازې دټکي په موقعیت کې دی ، خو په دې کې شک نه شته چې مقصد یې خلج دی ، تخارستان په نني افغانستان کې شمال شرقي ولایت دی چې د بغلان ، کندز او بدخشان سره ګډه پوله لري . که دواړه متنونه یوازې وګورو دیفتلیانو له جغرافیوي فتوحاتو سره سمون خوري ، له خلجو سره ګډه پوله لري او له خلجو سره یې اړیکي ښیي . په دې توګه خلج پنځه پېړۍ شاته وړي او دغز ترکو لرخوزیدو څخه دمخه زماني پورې تړلي دي او سپین هونیان ددوی نیکه ګان بلل کیږي. لکه په همدې ډول چې په شمالي هند کې دډېرو فاتحو قبیلو نیکه ګان دي.

زه ښایي دنتیجه ګیرۍ لپاره حدس ووهم چې دوروستیو پیژندګلو لپاره خلج په غلجي بدل شوی او زما په فکر په دې کې شک نه شته چې هماغه خلجي دي . د مفصلې مناقشې لپاره باید دحوادثو دثبت جدول په خپل ځای کې وڅیړل شي .

یو ممکن بل اړیکی هم باید وګورو . مخکې له دې څخه یفتلیان پریږدو . یوه پیړۍ دمخه لیکنې دګرځندوی مسن Masson په قول درانیان هم دیفتلیانو او لاده ګنې ، درانیان په هند او ایران کې ابدالیان یا اودالیان بلل

کیږي . کله چې مورږ ته داخر ګنده شوې ده چې دلرغوني تاریخ سپین هونیان
او دکلاسیکو لیکنو یوتلیان ( Euth alites ) دارمني (Armenian )
لیکوالوله خوا هیپتالیان ( Heptals ) بلل شوي دي ، موږ ویلای شو چې
ابدالیان یا درانیان دهماغو غښتلو خلکو اولاده کیدای شي . سیاه پوش
کافران Siahposh Kafrs داسې یادونه کوي چې ددوی پلرونه داوډال
(Odals ) له خوا غروته تښتول شوي وو او سمه یې ورڅخه نیولې وه ، دا
اصطلاح اوس هم دسمو خلکو ته راځي .

دفونیتیک له مخې یفتالیتس Ephtalitesاو اوډال Avdal دواړه په
مناسب شکل مشابه ښکاري مګر ددې اړیکي لپاره زیاته څیړنه په کار ده .
هرډول چې ده دابدالیانو اصل مجهول ښکاري ، خو له تورې تیاري څخه نه
راوځي اودلوی شاه عباس په زمانه کې داوه لسمې پیړۍ په پیل کې رامنځته
شول .

په هرحال هر ډول چې وي ، الله پاک (ج) ښه پوهیږي . خو دشپږمې
پیړۍ په پای کې دڅو قبیلو ګروپ چې ایرانۍ سابقه لري او په ایراني ژبه
خبرې کوي او یو پربل پسې یې یرغلونه او ډله ییزې لیږدېدنې کړي دي او
وروستۍ یې دهونیانو فتحې دي او دټولو تاریخي مرکز ګندهارا او دپېښور
وادي وه . سپین هونیان حتی دهند هوارو سیمو ته ورښکته شول او هسکې
غرنۍ سیمې یې بومي خلکو ته ورپریښودلې ، په ټولو جنیولو جیکې
پیژندګلویو کې باید دا ډول شکل او فورم له یاده ونه باسو . دانقشه په ګډه
سره رسموو او بالاخره دهجرت دورې ته رسیږو او دمحمدصلی الله علیه وسلم
ځلانده لمر راخیږي او پر افغانانو هم ځلیږي .

# اووم څپرکی

## دعربو پراختیا

پر ۵٦۸ م کال یفتلیان یا هیتال دساسانیانو له خوا دترکانو په مرسته بیخي مات شول . شمال غربي سرحدي سیمه تر ابا سین پورې دگندهارا په شمول دساسانیانو دخاورې برخه شوه ، گندهارا دیوولسو پېړیو لپاره دهند لوري ته دفارس باندینۍ پوسته وه چې دهند خوا ته یې مخه وه . ددار یوش له زمانې څخه په ترتیب سره هخامنشیانو ، پارتیانو ، ساسانیانو ، کوچي یرغلگرو ، باختر یانو ، ساکاو او کوشانیانو ټولو پر دې سیمې قبضه درلوده او داټول له ایراني ختمې اووینې څخه شمېرل کېږي . په دې وروستیو کې یفتلیانو له شمال څخه یرغل وکړ او داسیمه یې هم ونیوله او دپخوائیو په شان دوی هم خپل مقدرساعت پورې پاته شول ، دسلطان په نامه یادېدل او بیا له منځه ولاړل ، مگر دخلکو پر زړونو یې تور داغ پرېښود . یفتلیان هم دایراني

تاثیراتو تر اغېزې لاندې وو حتی خپله ژبه یې پر خلکو تحمیل نه کړای شوه .

تر اسلام دمخه دایران په نړۍ کې پورتنۍ اړونده چارې تر زرو کالو پورې ادامه وکړه او خاص اهمیت لري . ایراني تمدن تر اسلام او حتی مسیحیت څخه دمخه خپل تاثیر پرې اېښی و او حتی وروسته هم تر ډېرو پورې دایراني کلتور نښې محسوسې وې . دا هم دحیرانتیا وړ نه ده . کله چې اسلام له اناتولیا (Anatolia) څخه بیا تر آمو پورې او بالاخره دا باسین وادۍ پورې پراخ شو دایران له منشور څخه تیریده . اسلام بریالی شو او په کراره یې شمالي برخې ونیولې خو تر ډېره پورې هلته نظم پوره نه وپلی شوی یا په بل عبارت ویلای شو چې لرغونی کلتور چې له خراسان څخه یې سرچینه اخیستـه تر اسلام وروسته هم تر ډېرو پورې مسلط و او دعربو کلتور داسلام په خپریدو سره ژر تر ژره خلکو ونه مانه . ایراني روحیه دپښتور په شاوخوا کې حتی نن هم لیدل کیـــــږي چې دزرو کـــــالو په مـــــوده کـــــې دډېرو پـاچاهانو په واسطه دلته راوړل شوې وه .

گندهارا دفارس ختیز سرحد و او له هندي تاثیراتو څخه بې برخې نه و ... دزرو کالو په موده کې یوه پیړۍ له سکندر مقدوني څخه وروسته داسیمه دموریا دامپراتورۍ برخه هم شوه ( ۳۲۳ - ۱۹۰ ق- م ) اود بودیزم دشهرت مرکز بلل کیده . په دویمه میلادي پېړۍ کې کنیشکا دکوشانیانو پاچا بودیزم ته ډېره وده ورکـړه او دده په وخت کـې دبودیزم درنسـانس دوره وه . دگندهارا آرت او هنر شهرت وموند اودمهایانا لویې عرابې هم دلته وده وکـړه. لکه چې دواسـو دیوا Vasudeva له نامه څخه څرگندیږي دکوشانیانو پخوانیو پاچاهانو برهمنیزم خپل رسمي دین وگرځاوه. داویلای شو چې دهندي تاثیراتو شاته راتگ واو بیا ساساني پاچاهانو آردشیر او شاپور ډېرې هڅې وکړې چې فارسي مفکورې بیرته په دې سیمه کې ژوندۍ

کړي او دې مفکورې وروسته په مسلمانانو کې زيات غيرت راوپاراوه چې اسلامي کلتور بايد مسلط کړي .

دشپږمې پيړۍ په پای کې دفارس تسلط پوره بريالی و ، ديفتليانو قوت په ۵٦٨ ميلادي کې دخسرونو شيروان له خوا مات شو او دويم خسرو ( ۵۹۰-٦۲۸م ) انتيوک ( Antioch ) ، دمشق Damascus او يورشلم ( Jerusalem ) = بيت المقدس) ونيول او مصر ته يې لښکر کشي وکړه او بيا شمال خوا ته تر انقرې پورې ورسيده . حتی دباسفورس تر ابنا پورې وړاندې شول او دبيزانتين له امپراتورۍ سره هم سرحدي شول . ددويم خسرو پاچاهۍ کې دهخامنشيانو فتوحات تکرار شول او دروم دبيزانتين امپراتورۍ لپاره داداسې عادي ښکاريده لکه پخواچې د داريوش يازيرسيس ( xerxes ) کړنلارې يونانيانو ته ښکاريدې .

مگر ددې مفهوم داسې دی لکه دتوپان دمخه غولوونکې رڼا .دهراقليه Heraclius تر حکم لاندې دبيزانتين قوا و متقابل تعرض اجرا کړ . کوچنی اسيا Asia Minor او ارمينيه Armenia يې له فارس څخه آزاد کړل او هراقليه Heraclius له ژمي څخه دمخه دفارس پايتخت کتيسيفون Ctesiphon ته ورسيده . دويم خسرو ماته وخوړه او دخپل زوی له خوا چې موريې دبيزانتين شاهزادگۍ وه په قتل ورسيد . دا نېټه ٦۲۸ ميلادي کال او دهجرت ٦ م کال و .

دغې جگړې ساساني فارس له بنسټه وښوراوه . دڅوارلس کالو په موده کې ددويم خسرو له مړينې څخه وروسته او دساسانيانو دوروستي پاچا دريم يزدگرد پورې يو شمېر پاچاهان چې شمير يې تر دولسو کم نه و ، يو په بل پسې پر تخت کښېناستل ، داردو کنترول له لاسه ووت او دشاهۍ کورنۍ غړي لا- نځکې ( ليزکې ) شوې او دقدرت لرونکو سردارانو په خوښه به پر تخت

کښیناستل ، او بیا به قتل کیدل . نظامي مشرانو دڅان لپاره دقدرت واګو داخیستلو هڅې پیل کړې . ساساني شهزاده ګان یو په بل پسې ووژل شول او ژوندي پاتې یې وتښتیدل او یو بل ځای پټ شول . خو هر وخت به چې پاچا په کارونو نظامي مشرانو به دشاهي کورنۍ غړی لټاوه او له پټ ځای څخه به یې راایسته او پر تخت به یې کښېناوه تر هغه چې به بیا دحریفانو له خوا ووژل شو . په ستخر Stakhar کې دالو به جاري وه . امپراتورۍ ټوټې ټوټې شوه هر نظامي قوماندان ځان ته مستقل حکومت اداره کاوه او دمرکزي حکومت اطاعت یې پرینښود . داسې حکومت او مضبوطه اداره نه وه چې دعربو مخنیوی وکړي . څوکاله وروسته عربو دوی ته بیخي ماته ورکړه او دوی یې ورک کړل . کتیسیفون Ctesiphon دمېسوپوتامیا (Mesoptamia) له ماتې څخه وروسته ولوید . پر ٦٤٢ میلادي (٢١ هجری) کال دهمدان جنوب ته دنهاوند په هواره کې عربو وروستی او نهایي برې تر لاسه کړ . یزدګرد دداریوش کادمانوس په څېر ختیځ ته وتښتیده او (مرو) ته نېږدې په یوه ځای کې پر ٦٥١ م کال مړشو .

عرب ، ترکان او مغول یو په بل پسې دفاتحانو په څېر د ایران لوېدیزو او ختیزو خاورو څخه تېر شول او ډیرې پیړۍ دړ دیو له فتوحاتو څخه تیرې شوې . تر هغه چې دهیواد اصلي خلک پاچاهۍ ته ورسیدل ، مګر دایران دوداو دستور چې دزرو کلونو په موده کې ښکته او پورته شو ژوندی پاتې شو او حتی فاتحان یې تر تاثیر لاندې راغلي وو . اسلام چې تر آمو او اباسین پورې وغزیده ، تاثیرېې ډیر زیات و او یوازې دتاریخي سابقې په مقابل کې دپوهیدو وړ دی . ایران په دې وتوانیده چې خپل دود او کلتور وساتي . په ختیزه سرحدي سیمه کې دساسانیانو ماتې ډیره مهمه او پیچلې وه چې دفارس دامپراتورۍ له ښاري اېالاتو څخه دهغې تاثیر ددوی لپاره

ملاماتوونکي و . عربي ليکوالانو يوازې خپل بريااليتوبونه ليکلي دي او پر شاتګونه او ماتې يې نه دي ښودلې . داسلام رښا هرې خواته خوريدونکې وه ، خو سره له دې له سپينو هونيانو څخه بيا تر غزنويانو پورې دسبکتګين تر مشرۍ لاندې نږدې څلور پېړۍ هغه موده ده چې د ګندهارا دسيمې تر ټولو تياره دوره حسابيږي . داسې پخوانۍ تذکرې (يادونې) يوازې په سکو کې ليدل کيږي چې په حاشيه کې د هغې يادونه شوې وه او په عمومي توګه پيژندنې کمې دي . دا ځکه چې د عمومي مفکورې په خلاف او د پښتنو د نکلونو په خلاف ،اسلام دې سيمې ته پس له څلورو پيړيو څنګه څخه رارسيدلی او هغه هم ډير په کراره کراره پرمخ روان و . په غرنيو سيمو کې چې له ننني افغانستان څخه عبارت دي ، د عربو پرمختګ له خنډونو سره مخامخ و . په لومړيو پيړيو کې چې عرب د کابل وادۍ ته رانونتل د دوی جګړې د دارو په شکل له محلي شهزاده ګانو سره وې چې هغوی يا بُت پرستان او يا هندوان بلل کيدل . حتی کابل د مسلمانانو له خوا يوازې په نهمه پيړۍ کې فتح شو . حال دا چې ګندهارا او داباسين د شاو خوا هوارې سيمې تر يوولسمې پيړۍ د محمود غزنوي تر وخته پورې د هندوشاهي د کورنۍ تر حکم لاندې وې . وينسنټ سميت په لنډه توګه داسې وايي چې له سپينو هونيانو څخه وروسته تر پنځو پيړيو پورې د هند داسې موثره اشغالګري نه وه شوې چې د يادونې وړ وي . د دې اجمالي حقيقت لپاره يوازې په اتمه پيړۍ کې د عربو له خوا د سند اشغال يادولی شو خو هغه زموږ له عمومي کيسې څخه د باندې موضوع ده .

په دې سيمه کې د اسلام د فتوحاتو په هکله ډير لنډيزونه ليکل شوي دي خو حقيقت دا دی چې د عربو په افغانستان کې تر ډيره وخته بری نه و په برخه شوی . يو مثال چې ماسره موجود دی دادی چې افغانستان د ٦٦١ او ٧٤٩

میلادي کالو په منځ کې داموریانو او سیمه ییزو ملکانو ترمینځ ویشل شوی و وروسته عباسیانو هم تر بشپړ کنترول لاندی نه درلود تر هغه چې په ۸۶۹ میلادې کال صفاریانو افغانستان ونیوه . داسې هم ویل شوي دي چې افغانستان ډېر پخوا په اسلام مشرف شوی و . مگر داسې نه ده افغانستان او گندهارا ډیر وروسته په اسلام مشرف شوې دي، په ختیځ او شمال ختیځ کې تر ډیره وخته پورې د محلي ملکانو او اریابانو چې لا مسلمان شوي نه وو تر مسلمانانو یې تسلط او قدرت ډیرو چې دایران ختیزو ولایاتو ته منسوب و . خو دا تر محمود غزنوي د مخه کارو . حتی د محمود غزنوي پر وخت په یوولسمه میلادي پیړۍ کې له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه څلور سوه کاله وروسته هم دافغانستان ټول خلک نه وو مسلمان شوي . په لنډه ول کوم راپوروړنه چې د افغانستان د مسلمان کیدو په هکله لیکل شوي دي پوره سم نه دي . دوی د پیغمبر (ص) په زمانه کې لکه څینو چې لیکلي دي په اسلام نه دي مشرف شوي . مگر یو ټکی د یادونې وړ دی چې دافغانستان مسلمانان له ډېرو پخوانیو مسلمانانو څخه په مقایسوي ډول د کلکې عقیدې مسلمانان دي.

تر ټولو مخکینی سیاح چې گندهارا ته داسلام په زمانه کې راغلی و ،چینایي سیاح هوین تسانگ Hiuen-Tsang دی چې پر ٦٤٤ میلادي کال پېښور او سوات ته تللی و اوده لیکلي و چې بودیزم مخ په ځوړه او برهمنیزم په وده او پر مختگ کې و . داسفر دعربو د بریالیتوب او په نهاوند کې دساسانیانو له ماتې څخه دوه کاله وروسته تر سره شوی و . مگر ددغه چینایي سیاح په یادښتونو کې داسلام په هکله څه نه دي لیکل شوي. دساسانیانو دامپراتورۍ په ختیزه محدوده کې څه چې پېښ شول هغه د مرکزي ایران تسلط له منځه تلل وواو دهند لپاره دبرهمنیزم تائیدو ل او

خپرېدل وو. يو دليل دا هم دی چې موږ تر دې وروسته څلورو پېړيو د پېښو په هکله خورا لږ معلومات لرو. هندوانو د تاريخ ليکلو سره هېڅ علاقه نه درلوده او تذکرې يې نه ليکلې: موږ مجبور يو چې تر لاسه شوو سکو باندې اتکا وکړو او عربي تذکر وليکونکو ته د هلته او دلته داړو د معلوماتو په هکله ارزښت ورکړو.

عربو کله چې د ايران مرکزي اداره ويجاړه کړه، د ايران (فارس) د نورو ايالاتو د خپلولو لپاره يې له فارس څخه د کرمان له لارې په دوو محورو د ختيځ او شمال ختيځ له خواو پوځونه وخوځول. لومړی محور د نشاپور څخه هرات، مرو، او د بلخ (باختريا) په لوري او دويم د سيستان له لوري (هغه وخت سجستان) هلمند او بُست خواته پر مخ ولاړل (بُست اوس کندوالې دی) او بيا يې ارغنداب ونيول. د کندهار په هکله څه نه وليکل شوي. ښايي د کندهار ښار به وروسته جوړ شوی وي. د عربو پر مختګ په دغو دوو محورونو کې په دې ډول و:

لومړی محور جنوبي ديوال يانې هندوکش پورې ونه رسيده. کابل او د مرکزي افغانستان غرنۍ سيمې چې اوس هزاره جات نوميږي او هغه وخت غور نوميده هم په خپل حال پاتې شول. دا پر مختګ د دې سبب شو چې ايراني خراسان او ما ورالنهر Transoxiana ونيسي. کله په غلطۍ سره ويل شوي دي چې عرب له همدې ځای څخه د اباسين وادۍ ته ورسيدل، مګر حوادث بيخي بل ډول وو. له کرمان څخه عبدالله بن عمرو (Alddllah ibn Amr) د دشت لوط له لارې خراسان ته داخل شو او قرارګاه يې په نيشاپور کې وه او دلته پر ۶۵۰ ميلادي (۳۰ هجري) او يا ژر هغه وخت چې هرات، مرو او بلخ يې ونيول ځای پر ځای شول. پنځه کاله وروسته حضرت عثمان دريم خليفه په شهادت ورسول شو او حضرت علی کرم الله وجهه څلورم

خلیفه شو او ددوی پر سر دایران دخلکو او عربو تر منځ بې اعتمادي رامنځته شوه. حضرت علي (رض) څو تنه واليان يو په بل پسې خراسان ته ولېږل خو آرامي رانغله او معاويه د خراسان په نيولو بريالی شو او پر ٦٦١ ميلادي (٤١ هجري) کال په دمشق کې داموي کورنۍ بنسټ کېښودل شو . داموياًنو څو واليان يو په پل پسې دلته مقرر شول چې ځينو يې يو کال يا څو مياشتې حکومت وکړ ، دوی همېشه د آمو دسيند په پورې غاړه کې پر جګړو بوخت و . يو يې هم له هرات او بلخ څخه جنوب خواته وړاندې رانه غلل . پر ٦٨٠ ميلادي ( ٦١هجري) کال ترلسو کالو مودې پورې د آموي استازي سُلمٌ او عبدالله بن خازم چې د خليفه مخالف عبدالله بن زبير يې حمايه کوله ، دښمنی دوام وکړ . په خلافت کې دغه مخالفت په خراسان کې تر هغه دوام وکړ تر څو چې خليفه عبدالمالک ( ٦٦-٨٦ هـ ) يا (٦٨٥-٧٠٥م) خليفه شو چې دده تر امر لاندې عبدالله بن خازم پر ٦٩١ ميلادي ( ٧٢ هجري) کال مرو ته نږدې ووژل شو . پر ٧٠٥ ميلادي ( ٨٦هجري) کال مشهور قوماندان قطيبه بن مسلم د حاکم په توګه مقرر شو او ماورالنهر يې فتح کړ ، تر خوارزم او سمرقند پورې پر مخ ولاړ . هغه په دې د برغمجن شو ، کله چې خليفه سليمان پر ٧١٤ ميلادي ( ٩٦هجري) کال قدرت ته ورسيده ، دی د سليمان پخوانی شخصي دښمن و او بغاوت يې پيل کړ . دده عربي عسکر دده پر ضد ودريدل او دی يې پر ٧١٥ ميلادي (٩٧هجري) کال وواژه . دده تول وروستي ځای نيوونکي تش په نامه مقرر شوي وو کله چې پر ٧٥٠ ميلادي ( ١٣٣ هجري) کال امويانو ماتې وخوړه عباسيانو په بغداد کې د قدرت واګې په لاس کې ونيولې .

دعربو له خوا خراسان بلخ او ماورالنهر Transoxiana په شمالي محور کې ونيول شول خو مستقيماً زمونږ سيمې ته ونه رسيدل ، مګر د سليمان

پوغرونو او اباسین باندې یې څه اغېزه درلوده . عربو له شمالي برخې څخه د مسلمانانو د پرمختګ بېز جوړ کړاو د ترکانو مشرانو ، قوماندانانو ، عسکرو او اجیرانو لپاره یې لاره پرانیستله چې دهند په تاریخ کې دمغولوتر امپراتورۍ پورې خورا زیاته برخه درلوده . سامانیان چې یوه مسلمانه کورنۍ وه له بلخ څخه پا څېدل او اصلاً ایراني نژاده وو او د آمو په غاړو کې یې دعباسیانو حکومت ته د پای ټکی کېښود او په درېیمه او څلورمه هجري پېړۍ ( ۸۷٤-۹۹۹ میلادي ) کې یې حکومت کاوه . ترکي غلامانو دسبکتګین تر مشرۍ لاندې په غزني کې دغزنویانو سلسله پیل کړه ، او دده زوی محمود-غزنوي پنجاب ونیوه او دمسلمانانو ، اشغال او کنترول ته یې مخه خلاصه کړه .

مګر دا له څو پېړیو وروسته پېښې دي ، عربو په موثره توګه کابل ، غزني او یا دسلیمان دغره نورې برخې ولکې لاندې رانه وستلی شوې .

داچې عربو وکولای شول چې د اباسین وادۍ ته حلول وکړي نو هغه دبل محور یانې دسیستان له لارې ممکنه شوه . دا برې په غلچکي داړه مارو بریدونو سره تر سره شو چې کله به بریالي وو او کله نه .

هغه وخت چې عبدالله بن عمرو دخراسان خواته دفارس له لارې روان شو ، نو په لار کې کله چې کرمان ته ورسیده یوه قوه یې د الربیع بن زیاد AlRabi Ibnziad تر قوماندې لاندې سیستان ( سجستان ) ته واستوله ، پر ٦٥١ میلادی ( ۳۱ هجري ) کال ابن زیاد زرنج ته ننووت ، زرنج دهلمند دسیند پر غاړه هامون ته نږدې پروت او اساسي ښارو ، دلته یې خپله قرارګاه په داسې ځای کې جوړه کړه چې هغه احتمالاً دهخامنشي لیکنو له مخې « زرانکه » Zranka وه ، چې بیا وروسته غزنویانو هلته لویه کلا جوړه کړه . دا کلا داوسني افغانستان په خاوره کې دننه پرته وه او دهلمند په دلتا کې نادعلي نومي ځای ته نږدې واقع وه .

لږ دوو کالو وروسته ابن زیاد تبدیل شو او دعربو فتوحات له خطرونو سره مخامخ شول. دخراسان په شان نوي ایالات هم ناآرامه وو او ګډوډیو هلته هم مخه کړه. ددې سبب داو چې په عراق کې دحضرت علي کرم الله وجهه دخلافت پر سر مخالفتونه رامنځته شول. کله چې دمعاویه ترمشرۍ لاندې امویانو قدرت ونیوه (۶۶۱ میلادي - ۴۱ هجري) نوبوره پر مخ ولاړل. نوی والي عبدالرحمن بن سمورا (Abdarrahman ibn Samurah) دبُست ښارونیوه چې دهلمند او ارغنداب دسیندونو په تقاطع کې دبُست شمال ته پروت و او همدارنګه یې زمینداور چې دغور دغره په لمنو کې پروت او خورا حاصل خیزه سیمه وه هم ونیوه. نن ورځ بُست دزرنج په شان کنډواله دی. دبُست پر ځای ګرشک چې پنځه ویشت میله لرې پروت دی خورا اهمیت پیدا کړ، مګر زمینداوراوس هم اهمیت لري ځکه چې دابدالیانو (درانیانو) یوه آباده سیمه پاته شوه عیناً لکه چې دپښبور شمالي برخې یوسفزو نیولې دي. مګر دعلاقې وړتکی دادی چې هلته دابدالیانو یادونه هیڅ نه کیږي او احتمالاً په راتلونکې کې به هم ونه شي.

کله یې چې بُست ونیوه ابن سمورا او دده ځای ناستي ابن زیاد (چې په لومړي سر کې ابن سمورا دابن زیاد ځای نیولی و) هڅې وکړې چې زابل، کابل او (الرخاج ArRukhaj) ونیسي. کابل تول پیژنو. الرخاج دکلاسیک اراکوز یه عربي شکل دی اوهغه سیمه لږو ډېره دکندهار دولایت توله سیمه په غیږ کې نیسي. زابل بېل بېل تعبیرونه لري. لومړنیو عربي تذکره لیکونکو دغه منطقه هزاره جات سفلی او دهلمند، ارغنداب او ترنک دسیندونو ترمنځ پرته سیمه بللې ده، مګر بابر دا سیمه دغزني جنوب او دمقرپر خوا پرته سیمه زابل بللې ده. په دغه زمانه کې دوه حکمرانان وو چې عربو یې په مقابل کې له سیستان څخه لښکرې راایستلې وې، لومړنی

کورنۍ چې میراثي لقب یې رتبیل یازنبیل واوبله کورنۍ دکابل شاه په نوم وه. دواړه کافران وو او په اسلام نه وو مشرف شوي او فتح شوي هم نه وو خو که څه هم تذکره لیکونکو لیکلي چې په موقتي ډول عربو ددوی په مقابل کې بری موندلی و.

ابن سمورا پر ٦٦٣ میلادي ( ٤٣هجري) کال په جګړې سره کابل ته لاره پرانیستله. مګر درې کاله وروسته کله چې ابن زیاد زرنج ته ورسیده خبر شو چې کابل شاه اورتبیل ددوی پر ضد قیام کړی دی او تر بُست پورې یې ټولې سیمې یې بېرته نیولي دي، رتبیل سره ډیر جنګونه وشول او بالاخره له دوی سره معاهده لاسلیک شوه. پر ٦٦٤ میلادي ( ٤٤هجري) کال څه چې پېښې شول په تشو خبرو خورا په زړه پورې بلل کیږي پر دغه کال المهلاب بن ابی صفرا AlMuhallab ibnAbisufra دابن سمورا بریدمن (قوماندان) و، دکابل او الملتان تر منځ تر بنا Bannah او الاهوار AlAhwar ښارونو پورې وړاندې ولاړ او هلته داتلسو ترکي سردارانو له خوا تر حملې لاندې راغی.

دا ترټولو مخکینی اسلامي لیکل شوی سند دی چې په سرحدي سیمه کې دپیژندنې وړ ځایونه ښیي، موږ باید دبنا او بنو په ورته والي ونه غولیږو ځکه چې دادکابل او ملتان تر منځ له پېښور څخه وروسته واقع دی او ډیره حاصل خیزه سیمه ده چې دسلیمان له غرو څخه لاندې پرته ده او ښه هدف و. الاهوار لانور هم په زړه پورې دی دالبلاد هوري AlBalladhuri یو متن دلاهور لپاره الاهوارلیکي چې دعربي ژبې یو شکل دی، بې له شکه چې دایوه ځای ته اشاره ده، چې د پېښور دیوسفزو په سیمه کې هوند Hund ته نږدې داوسني لاهور کلی په کې آباد شوی دی. زه داکلی ډیر ښه پېژنم دهوند په سیمه کې له اباسین څخه دوچې خواته څلورمیله دننه دی او دپنځولو یو

غونډیو په منځ کې پروت دی. یوه یې له هوارې څخه پنځوس فټه لوړوالی لري. دلته څلور، پنځه غونډۍ نورې پرتې دي چې تقریباً داولې غونډۍ په شان دي او دوه میله لرې پرتې دي اودجلسي (Jalsai) کلي څخه جنوب خواته دي، یقیناً همدا ځای دی چې دعربو له داړې سره سمون خوري. کیدای شي چې داسې یې معرفي کړو چې دپېښور له لارې دملتان اوکابل دلویې لارې پر سر پروت دی. زه فکر کوم هغه لاهور چې ښاغلي «فرشته» دخپل تاریخ په مقدمه کې ښودلی دی همدا ښار دی، او د پنجاب مرکز د لاهور ښار ورڅخه مقصد نه دی. دغه ذکر شوی لاهوریې دجیپال پلازمینه معرفي کړې چې دهندوشاهي مرکز و او بیا دمحمود غزنوي له خوايې ماتې وخوړه. او «اوهند» یا ویهندچې یو وخت هندوشاهي هلته تللي وه هم نننی هوند دی، هوند دسیند پر غاړه دی او دکوچنۍ کلا په منځ کې دی او یوه لغړه نقطه ده او ښایي ښار نه وي خو یوه پوځي قشله وي چې له دې ځای څخه به پوځي دفاع کیده. هلته غونډۍ نه شته او نه دکوم زاړه ښار کنډوالې لیدل کیږي. ښار به داسې ځای وي چې لړتوپان څخه به محفوظ وي، نو ځکه څلور میله له سیند څخه دننه دغونډیو په منځ کې لاهور به پایتخت وي. داسې هم ویل کیږي چې لوی لاهور ته چې د «راوی» دسیند پر غاړه پروت دی همدغه داباسین دغاړې پروت ورک شوي کلي ته لاهور نوم ورکړل شوی دی.

«اتلس ترکي سرداران» ښایي احتمالاً هیتال وي چې دهوند او زیدا (Zaida) خانانو یفتلي نیکه ګان وو. په دې کې هیڅ شک نه شته چې مسلسلې او پرله پسې کېندنې به په دغو غونډیو کې نوې نښې نښانې رابرسیره کړي چې ددغې زمانې پر تاریخ باندې به لازیاته رڼا واچوي.

څو کاله وروسته دسجستان (سیستان) بل عرب حکمران عباد ابن زیاد دالهند پر سرحدونو حملې وکړې. او سیدونکي یې وتښتیول خو دوی هم ډیر

تلفات ورکړل. دا پر ۶۷۲ میلادي (۵۳هجري) کال وو. کندهار هم یاد شوی دی خو داننني کندهار نه دی ځکه چې په هغه زمانه کې یې دومره شهرت نه درلود او له یادشوي کندهار څخه مراد گندهارا دی. او دابیا دالبیروني له خوا پوره روښانه شوې ده چې په یوولسمه میلادي پیړۍ کې دمحمود- غزنوي په دوره کې یې لیکلي دي، البیروني دهندي پاچاهانو په هکله خبرې کوي چې په کابل او کندهار کې یې حکومت کاوه، او پایتخت یې ویهندو. (اوسنی هوند یا لکه چې مازیاړلی ده هوند ته نږدې لاهور.) ددې پخواني کندهار پیژندنه دالبیروني په لیکنو کې یو بل ځای هم یاده شوې ده. دی «له پنجاب څخه کابل ته» له یوه متن څخه داسې یادونه کوي. «ترجهلم پورې دبیتهانا (جهلم سیند) غرب ته ۸ فرسخه او دکندهار پایتخت ویهند ته (داباسین غرب) ۲۰ فرسخه او تر پوروشاور Purushawar (پېښور) پورې ۱٤ فرسخه لاره ده. دپېښور وادی کندهار ته لومړی ننوتل یوه داړه وه او دایمي اهمیت یې نه‌درلود.»

لږه موده وروسته د دمشق خلافت درې ځانگې شو. یوه ځانگه دامو‌ي خلیفه پلویان وو، بله ځانگه دعراق او عربو زبیر یان او بله ډله یې خوارج وو. ټول یو له بل سره جنگیدل، خوارج دپارس دخلیج په دواړو غاړو کې وو له زبیریانو سره یو ځای دخلیفه پر ضد جنگیدل، اوکله کله طرفونه بدلیدل. حتی واړه قوماندانان په هره ډله کې دخپلو آمرانو پر ضد راپاڅیدل. په دې وخت کې چې له ۶۸۵ م (۶٦هجري) - ۷۵۰ میلادي (۱۳۵هجري) داموییانو تر سقوط پورې یې دوام وکړ. دټولو هڅې داوې چې اموي خلافت ته وده او دوام ورکړي حتی داموی لوی خلیفه عبدالمالک (۶۸۵ - ۷۰۵) هم دانظر درلود چې اموی کورنۍ پاتې شي، دښمنانو ته ماتې ورکړي، اسلامي امپراتوري ته پراختیا ورکړي او ختیځ ته ترسجستان (سیستان)

واوړي . پر ۶۸۵ میلادي کال رتبیل دومره قوي و چې عرب یې په زرنج کې ایسار ( حصار ) کړل . رتبیل ووژل شو خو دده ځای کیناستونکي هم په همدې ډول د رتبیل په پله روان وو . د سجستان گورنر ته یې ماتې ورکړه او عبدالمالک یې هم عزل کړ . بل حاکم عبیدالله پر ۶۹۸ میلادي ( ۷۹ هجري ) کې پر کابل یرغل وکړ او دده په مړینه او تړاو باندې بدل شو . خو دده کړنلاره عبدالرحمن بن محمد تعقیب کړه او بل کال ته یې پر کابل یرغل وکړ او د رتبیل په مقابل کې یې پر مختگ وکړ . خو ملخپل مشر حجاج AlHajaj سره مخالف شو . دهغه په ضد یې بغاوت وکړ ، وروسته د کابل خواته وتښتیده او رتبیل نه یې پناه وغوښته . مگر دالحجاج په غوښتنه رتبیل دی په ۷۰٤ میلادي ( ۸۵ هجري ) کې وواژه . الحجاج پخپله تر یوه وخته پورې غښتلی و ، مگر سره له دې له رتبیل څخه یې څه باج اخیستلو خو قطعه یې اندازه یې معلومه نه وه او پریکړونې جگړه یې هم ونه کړای شوه . دعبدالمالک له مړینې سره اموي کورنۍ مخ په کمزورتیا روانه وه او وروستیو خلیفه گانو ترزرنج پورې حکومت کاوه .

دبغداد عباسیانو دامویانو حکومت ته دپای ټکی کېښود خو بیا هم په ختیزه خوا کې تر امویانو زیات بریالي نه وو . پر ۸۱۳ میلادي ( ۱۹۸ هجري ) مامون الرشید دقدرت واگې په لاس کې ونیولې خوسجستان (سیستان) یې هم تر بشپړ حاکمیت لاندې راتلای شو ، که څه هم داسې اسناد هم شته چې مامون دخراسان گورنر و آن هغه وخت ددوی پوستې خدمتونه تر کابل پورې اورده شوي وو . مگر کابل شاهان آرام پاتې شوي وو او دمسلمانانو پاچاهۍ پر دوی باندې تاثیر نه درلود تر هغه چې صفاریان په نهمه پیړۍ کې قدرت ته ورسیدل .

پورتني معلومات مو له موثقو اسلامي اسنادو څخه رانقل کړي دي او

داخـر گنده ده چې گندهارا په اول کـې اسـلامي قـوت نـه وه اشـغـال کړې او گندهارا ډيره وروسته وبيـول شوه حـتى شاوخوا غرنى سيـمې هم دعـربو تر تسلط لاندې نه وې . عمومي انځور داسې و چې په دوو لومړيو اسلامي پيړيو کې بې له سند څخه نور دساسانيـانو دامپراتورۍ په ختيـز و ولاياتو کې په موثر ډول سره دعـربو تسلط موجود نـه و . دهندوکش جنوب ته دعـربو سرحد له بُست او هرات څخـه وړاندې نه وتللى . په نيـول شـوو سيـمو کـې هم يوازې دعـمومي لارو او ارتباطي کرښو په اوږدو کې يې کنترول په لاس کې و. دغير اسلامي پاچاهانو تر ولکې لاندې سيمو defacto ( ديفکتو ) آزادي درلوده لکه کـابل او زابلسـتـان چې هلته عـرب د داړو او چريکي حملو په شکل موجـود وو ، او اکثر أيې يوازې باج اخيستـه . ددغو پاچاهيو سکې هم لاس ته راغلي خومگر سـمې نـه دي ژباړل شوي . عـرب د کـابل لمنو ، حتى داباسين غاړو ته دگندهارا لاهورپورې ډير پخـواورننېدې شـوي وو . يو وخت يې حـتى پر بنو هم يرغل وکړ . مگر دهلمند ختيځ تـه سيـمې يې نـه وې اشغـال کړي . دعـربو پر مختـگ په دوو محـورو ، شـمـال تـه دسمرقند په لوري او جنوب تـه دسجسـتـان ( سـيـسـتـان ) په لوري ددې سبب شـو چې د کـابل غـزني سـيـمـه او مـرکـزي افغـانسـتـان بيخي په خپل حال پاتې شي ، دمرکزي سيـمو خلک ترکان يا هيتال بلل کيدل او معمولاً دوى باج ورکاوه او په پوره توگـه داسلام مقدس دين ته نه وو راوښتي . په کـابل او زابلسـتـان کې غيـر اسلامي پاچاهان اوسيدل او څو واره يې دعربو لښکرو ته ماتې ورکړې او قوماندانان يې اسير نيولي وو . رتبيـل يا زنبيـل يا رانـتيـل شاهان ددوى لپـاره کلک خنډونـه وو . او ډير ځله د الرخاج ArRukhaj ( ننني کندهار ) ، زابلسـتـان ( دغـزني جنوب اوغـرب سيـمـه ) اوحتى کـابل دپاچا په نامـه يادېده ، دمسلمـانانو تذکره ليکونکي خپل ددې سيمې مخالفان ترکان او هيتال بولي او پخوا مو هم يادونه کړې وه

چې هیتال او خلج Khalaj سره ترلي بلل کیږي . ځینې دا هڅه هم کوي چې دغلجیو ستر مشر میرویس نیکه دا تلسمې پیړی اتل له همدې رتبیل سره وتړي . دکابل وادی دپورتنی سیمې په هکله ثبت شوی اسناد نه شته او حتی دپیژندنې ورسکې هم نه دي تر لاسه شوي چې په دوو لومړیو اسلامي پیړیو کې ددغې سیمې دپاچاهانو سلسله او اړیکې روښانه کړي ،وینسنټ سمیت لیکي : ترکي شاهي کورنی دکوشانیانو یوه برخه وه چې ترنهمې پیړی پورې تر هغه چې صفاریان رویکار شول پر کابل او گندهارا مسلط وو . کله چې صفاریان قدرت ته ورسیدل دوی پایتخت له کابل څخه ویهند ته ولیږداوه او کابل صفاریانو ترولکې لاندې راوست ، دترکي شاهي پایتخت په ویهند کې هماغه دگندهارا لاهور دی چې داباسین په غاړه پروت دی او بیا دلته هندوشاهي کورنی قدرت ته ورسیده . ددغو غیر مسلمانانو لومړنی مذهب بودیزم و چې ډیر ژر هندویزم ته واوښتل . بودیزم دهندوکش په سیمه کې ډیر غښتلي و حتی دکنیشکا دبامیانو له بتانو څخه وروسته هم تر ډیرو پورې قوي پاتې و . مگر دنیپال په شان یې ماتې خوړونکې جگړې تر ډیره پورې وکړې خو برهمنیزم بریالی شو او دوی یې غرونو ته په شا کړل . لکه دگندهارا په شان هند ته نږدې حاکمان او رعیت ټول ډیر پخوا د ٦٤٤ میلادي کال په شاوخوا کې هندویزم ته واوښتل . او په دې هکله دهوین تسانک Huien Tsang لیکنې شته او دمخه یې ذکر شوی دی . له غزنویانو څخه دمخه ( ۹٦۰ م څخه وروسته ) دپښور دشاو خوا حکمرانان ټول په کلکه دبرهمني هندویزم پیروان وو .

دعربو دتدریجي پر مختگ په نتیجه کې دختیځ خواته کله چې پر محلي ایرانیانو او کوشانیانو هغه چې دهندویزم او بودیزم پیروان وو ، غالب شول . یو عمده فکتور شته : دا څرگنده ده کله چې دمسلمانانو قدرت او تسلط له

سجستان او بلخ څخه پراخ شو د مسلمانانو ډلې له عربو ، عراق ، سورېې او پارس څخه په ډېرو سیمو کې میشته شولې او له بومي خلکو سره ګډې شوې ، دحجاز خلکو د نوي دین دخپرولو په هکله زیات قدر پیدا کړی و ، په دې توګه د عربو میشته کیدل د اسلام دخپریدو او غښتلي کیدو لپاره ښه دلیل و .

کله مو چې د بني اسرائیل تیوري لوستله و مو کتل چې زیات شمیر سیدان موجود وو او دوی ته له پخوا څخه په درنده سترګه کتل کیدل . دصوبه سرحد په سیمه کې خورا ډېر سیدان شته . د پښور په ښار کې د سیدانو د کورنیو نږدې د پنځو بیلابېلو ګروپونو غړي اوسیږي . د یوسفزو په سیمه کې د اسمعیلیه په کلي کې هم مشهوره سیده کورنۍ اوسیږي . یوه بله مشهوره کورنۍ د دوآبې په بټګرام کې شته او همدارنګه د بونیر د پیربابا کورنۍ هم مشهوره سیده کورنۍ ده . کوهاټ ته نږدې دجرمن په کلي کې د دیره جاتو شمال ته دشیخ بادین دغرو په لمنو کې په پنیاله کې هم سیدان ډېر دي . داځو مو د مثال په ډول یاد کړل . سیدان هر ځای کې شته ، داسې ادعا کیږي چې ټول سادات د بي بي فاطمة الزهرا او حضرت علي کرم الله وجهه له کرښې څخه دحضرت محمد صلي الله علیه وسلم اولادونه بلل کیږي . داچې ټول سیدان یا ځینې یې خپله شجره سپینولی شي او که نه ؟ څرګنده نه ده . مګر دا زموږ له مناقشې څخه دباندې ټکی دی ، داخلک که دحضرت پیغمبر او لادونه دي یا عادي عرب دي خو دلته د اسلام د پراخیدو پر وخت ځای پر ځای شوي وو . ددوی مرام دا و چې له یوې خوا د اسلام تبلیغ وکړي او له بلې خوا دفتوحاتو په پراختیا کې خپله ونډه ترسره کړي .

پر سیدانو سربیره ډېر زیات نور لکه میاګان ، اخوندزاده ګان ، صاحبزاده ګان ، قریش او داسې نور شته چې له روحاني کورنیو څخه دي او زیات رسوخ لري او قریش عرب او دحضرت محمد (ص) قبیلې ته منسوب دي . دنورو

لپاره کوم سند او دلیل نه شته چې دوی دې خامخا عرب وي . زیاتره یې پارسیان ، ترکان او پښتانه دي . هغه څوک چې عرب وو دوخت په تېرېدو سره یې عربي ژبه له لاسه ورکړې ده که څه هم دقران کریم دلوستلو لپاره دهغې ساتنه او زده کړه ضروري ده ، دوی له سیمه ییزو خلکو سره وادونه وکړل او دنوي دین په درلودلو سره په سیمه کې داعتبار او رسوخ خاوندان وو او ددغو کورنیو مشران پاتې شول . ددغې سیمې دنفوسو په زیاتوالي کې یې هم رول درلود ، دا خلک اوس هم په ټولو ځایو کې دپرستیژ خاوندان دي ، حتی خلک دسیدانو لاسونه داحترام لپاره ښکلوي .

دعربو شجرې ته که هر څوک ځان منسوبوي هغه به وي . خو دا څرګنده ده چې اسلام دې سیمې ته دپارس له منشور څخه تیر شوی او دې سیمې ته راغلی دی . سیدان که څه هم له عربو څخه داسلام د تبلیغ او تکثیر لپاره راغلي وو خو دوخت په تېرېدو سره دپارسیانو ذکلتور تابع شوي دي او دا کلتور دسیمو خلکو ته دزرګونو کلونو را په دې خوا په میراث پاتې و .

# اتم څپرکی

## صفاریان او هندوشاهان

ددویمې اسلامي پېړۍ په پای کې دعربو پر مختګ دختیځ په لوري پای ته ورسید . په معنوي او روحي لحاظ اسلام په ایراني او ترکي نړۍ کې مخ په خوریدو و ، خو عرب دفاتح په نوم پاتې نه شول . تر دې وروسته قرآن کریم او توره دنورو لاس ته ورغلل . دانوی قوت له سجستان ( سیستان ) څخه راپورته شو او اسلام لومړی دسکتاریزم په شکل سره دخوارجو تر حکم لاندې خپور شو ، خو په حقیقت کې دا ایرانیانو دشعور او مفکورې خپرونه وه که څه هم د عربو له صحرا څخه را پیل شوی و .

سجستان له ګندهارا او سلیمان غرو څخه لرې پروت دی او خلک یې ختیز ایرانیان دي او افغانان نه دي . مګر دا ضروري ده چې په دوو دلایلو حوادث

دهلمند شاوحوا به راونو . لو ... دا چې داسلام دخپریدو لپاره دنوي قوت مرکز زرنج و او پوځ یې داسلام بیرغ ، دپخوانۍ سیستاني امپراتورۍ ختیزو غاړو ته داباسین په وادۍ کې ورپاوه ، دویم داچې دصفاریانو تر حکم لاندې چې یوه سیستاني کورنۍ وه دخلجي داوطلبو جنګیالیو نوم راپورته شو.

ددغې زمانې لپاره یوه ډیره مهمه منبع شته چې « تاریخ سیستان » یې عنوان دی ، چې پر ۱۹۳۰ کال په تهران کې کشف شوی او تالیف شوی دی . دایوه ترکیبي تذکره ګڼل کیږي چې درې مختلف سبکونه ښیي . لومړی یې داخلي شواهد دي چې په نهمه پیړۍ ( دریمه هجري پیړۍ ) کې دصفاریانو دکورنۍ په هکله لیکل شوي دي . څه شواهد چې ښیي دقیق او موثق دي په پارسي ژبه لیکل شوي دي او تر ټولو عربي تذکره لیکونکو څخه دقیق او مفصل دي او ټول هغه حوادث بیانوي چې دعباسي خلیفه ګانو ختیزو پولو ته پیښ شوي دي .

دعربو قوت په ختیځ کې دخوارجو دبغاوت په نتیجه کې له سقوط سره مخامخ شو چې ددغو حوادثو عمده مرکز دسجستان سیمه وه . خوارج ډیر بنسټ پال مسلمانان وو چې دټولو اوړتو دوکس مسلمانانو پر ضد یې که شیعه وو او که سني ، مبارزه کوله ، وروسته یې ډول ډول حیرانوونکې دکتورینونه راویستل او له هغې جملې څخه یې دمشرتابه لپاره میراثي او کورني اړیکي مهم ګڼل ، ددوی مشر دامیرالمومنین لقب ځانته غوره کړ ، ددوی شعار دا و چې ( ولابکم الی الله ) ( بل نظم نه شته مګر دالله (ج) ) ، دوی په غرونو او دښتو کې د داړه مارانو په شکل اوسیدل او دخلیفه ضد مبارزه یې کوله او دعباسیانو لښکرو ته یې په ډیرو جګړو کې ماتې هم ورکړې . د دوی دفشار او قوت په نتیجه کې عربي حاکمانو دسوق او اداري قابلیت له لاسه ورکړ ، او له بست او زرنج څخه دباندې یې هیڅ ځای بې له پرله پسې لښکر کشۍ

څخه کنترول نه شو کړای .

په سجستان کې ملي او وطني تحريک د عربو د تسلط او مالياتو په مقابل کې پيل شو ،خلکو له دوی سره زړه سوی درلود . يوازې په دې شرط چې د تحريک فعاليتونه د عربو او کافرانو پر ضد وي - دا فعاليت پر ۷۹۷ ميلادي ( ۱۸۱ هجري )* هغه وخت اوج ته ورسيد چې د خوارجويو تن حمزه د خليفه قواوې په ښارونو او چاونيو کې محاصره کړې . او باج يې ملغى اعلان کړ ، ماليې ورکول يې بند کړل او د مالياتو د ټولو لو مامورانو يې ووژل ، په دې توګه بغداد ته د ماليو ورکول په رسمي ډول بند شول . تاريخ وايي چې د خليفه هارون الرشيد او حمزه ترمنځ ليکونه رد او بدل شول . خليفه ده ته ليکلي وو چې اعمال يې ديوه مسلمان اعمال نه دي . حمزه ده ته د تسليت او ډاډ ګېرنې ځواب ورکړی و چې دی پوره مومن مسلمان دی او د تحريک شعاريې هم ورته ليکلی و چې هغه مو پورته ذکر کړی دی . تاريخ ليکې چې د ګرديز ښار حمزه بنا کړ چې دا تکی په حدود العالم کې هم تائيد شوی دی او وايي چې د ګرديز خلک خوارج دي . ګرديز د زرمت د وادۍ اصلي مرکز دی ، چې له خوست او (کورمې) څخه څو ميله لرې دي او د ډيورنډ کرښې ته نږدې دی . د خوارجو اړيکې د دې سيمې خلکو سره د ښېرنې وړ دي ځکه چې له يوې خوا حمزه خپل قدرت د سجستان ختيځ ته پراخ کړ او له بلې خوا دا مهمه ده چې ځينې مذهبي بدلونونه په دې سيمه کې عملي شول چې هغه به وروسته د توريو او نورو پښتنو قبيلو په منځ کې وګورو .

د ډېرېمې اسلامي پيرۍ په پيل کې يانې د ۸۵۰ ميلادي په شاوخوا کې د سجستان حکومت ډير کمزوری شو او سبب يې د خوارجو بغاوت و ، د بغداد مرکزي حکومت تسلط پر سجستان باندې تش په نامه و ، رتبيل د بُست ختيځ ته خپله ځانګړې پاچاهي کوله ، رتبيل او کابل شاه کله کله سجستان

ته باج ورکاوه ، مګر په حقیقت کې دوی مطلق ازاد وو . او تر دې وخته پورې دوی اسلام ته نه وو ، اړول شوي . دسلیمان دغره دسیمې دخلکو دمسلمان کیدو په هکله داسلامي نړۍ یو ډیر پخوانی سند تر لاسه شوی دی ، دسند یوه لیکنه ده چې دتوچي له سیمې څخه پر ۱۹۰۷ میلادي کال تر لاسه شوې ده او فعلاً دپیښور په موزیم کې ساتل کیږي . ددې لیکنې په زړه پورې تکی دقیق تاریخ دی چې له ۸۵۷ میلادي ( ۲۴۳ هجري ) څخه عبارت دی . دا لیکنه په دوو ژبو سانسکرت او عربي ده . دلیکنې شکلونه په سرادا Sarada چې دنګري Nagri پخوانی شکل دی ، دسانسکرت لپاره او کوفي رسم الخط ( Kufic ) دعربي ژبې لپاره په کار اچول شوی دی . دا لیکنه دیوې ودانۍ جوړونه ښیې چې دمعمار نوم په عربي لیکل شوی خو معمارې اصلاً عرب نه دی . دالیکنه لږ څه تته ده او سمه نه لوستل کیږي . که څه هم دمتن پوره تعبیرول ډیر مشکل دي او حتی ناممکن دي خو په زړه پورې داده چې دا ددغې دورې لپاره ددواړو ژبو عربي او سانسکرت استعمالول دي . داوخت په سجستان کې دعباسي خلافت وروستی کال او دصفاریانو دلومړي پاچا یعقوب بن لیث را اوچتیدل و .

یعقوب بن لیث صفاري دسجستان په کلي کې زیږیدلی و . ده دیوه مسگر شاګردي کوله او همدالقب یې وګاته . تر یوه وخت پورې یعقوب بن لیث صفاري لارې نیولې او خلک یې لوټول ، وروسته بیا له خوارجو سره دجدي مخالفت په وجه دصالح بن النصر له خوا چې پر ۸۵۲ میلادي ( ۲۳۸ هجري ) دبغداد له خوا مقرر شوی و دی په خپل پوځ کې شامل کړای شو . یعقوب بن لیث ورو ورو قوت وموند ، شپږ کاله وروسته د النصر ورور دده په ګټه استعفاو کړه او یعقوب لیث چې دوسله والو قوتونو قوماندان و پر ۸۶۱ میلادي ( ۲۴۷ هجري ) دسیستان امیر شو .

دخو کلو په موده کې ده دخوارجو پر ضد دکرمان ، هــــــرات او الرخاج Ar-Rukhaj دکابل شاه او رتبیل پر ضد جګړو ته دوام ورکړ . تاریخ داسې معلومات راکوي چې یعقوب لیث دجګړو په ترڅ کې دغزني دښار بنسټ کیښود ، لکه حمزه چې دګردیز دښار تیږه ایښودلې وه . پر ۸۷۰ میلادي (۲۵۷ هجري) ده کابل فتح کړ او له بامیان څخه یې یو بُت او نورې ډیرې تحفې دبغداد خلیفه ته ورولیږلې ، پر ۸۷۲ میلادي ( ۲۵۹ هجري) کال دجنوب له خوا له هندوکش څخه تېر شو او دبلخ ښارېې ونیوه . په راستنیدو کې یې دپارس خراسان هم ونیوه او دنیشاپور دطاهر یانو کورنۍ یې سقوط کړه . دلوړې ځل لپاره کابل ونیول شو ، دغزني سیمه تر اداري لاندې راغله او دغزني ښار بنا شــو . داهم دیادونې وړ ده چې دلومړي ځل لپاره خلج Khalaj په فارسي ژبه خلجي Khalji وبلل شو . او داخلجیان ترکاملې اداري لاندې راوستل شول او دیعقوب لیث په اردو کې اجیران شول . ددې خلجیانو یو نامتو سړی چې سبکاري ( Subkari ) نومیده لوړو رتبو ته ورسیده او بیا وروسته دیعقوب لیث له ځای ناستو سره دخلیفه په پلوی مخالف شو .

پر ۸۷۰ میلادي کله چې یعقوب بن لیث کابل ونیوه ، هرومرو کابل شاهان مجبور شول چې خپل پایتخت ویهند ته ولیږدوي ، او یا داسې چې مااشاره ورته کړې ده داباسین په غاړه لاهور ته ولیږدوي . مګر له بده مرغه داوسني مرام لپاره دده دڅیړنو جګړو په هکله هیڅ ډول معلومات زموږ لاس ته رانه غلل چې پوره رڼا واچوي . کله چې ده داوسني افغانستان په شاوخوا ددایرې محیط تکمیل کړ . له ده سره دعمومي قوماندانۍ هوا په سر کې پیدا شوه . له خلیفه سره یې دښمني پیل کړه او پر ۸۷۵ میلادي ( ۲۶۲ هجري) کال یې له لوی پوځ سره دبغداد پر خوا مارش وکړ . دا حیرانونکی مارش و

او دده وفادارانو دغرور له مخې نورو جګړو ته سمه پاملرنه ونه کړه او هر څه یې بې ارزښته او دښمن یې کمزوری قیاس کاوه . یعقوب لیث دبغداد څو میلۍ ته ورسیده خو ماته یې وخوړه او لښکرې یې په شا وتمبیدې . پر ۸۷۹ میلادي ( ۲۶۶هجري ) په خوزستان کې اهوازته نږدې مړ شو .

دا چې یعقوب لیث ایراني وا او عرب نه و له تاریخ سیستان څخه پوره واضح ده . په یوه موقع چې یوه فتح نمانځل کیده یو چادده مدح په عربي شعر کې وکړه . دی په قهر شواو یې ویل چې دهغه څه ویلو څه ضرورت دی چې زه یې په مانا نه پوهېږم ، اوسملاسي دده وزیر په پارسي شعر ویل پیل کړل . په متن کې ادامه ورکړل شوې ده :

« دالومړنی وار و چې دعربو له فتوحاتو څخه وروسته په پارسي ژبه شعر وویل شو او پارسیانو هم له ساسانیانو څخه رادېخوا دا فرصت نه درلود چې پارسي شعرونه ووایي . کله چې پارسیان دعربو له خوا ماتې شول دا بیخي رواج شوه چې په عربي ژبه شعرونه وویل شي . مولف بیا دشعر یوه مسرۍ په لاندې ډول معرفي کوي :

{الله که دعربو لپاره مکه پناه ګاه جوړه کړه /او ستا وفادار بنده په ایران کې پناه ګاه جوړه کړه }.

(داصلي شعر ژباړه او تعبیر دی . )

داشعر یوه خارجي ته ویل شوی دی چې هغه دیعقوب عفو قبوله کړه او بیا دده په پوځ کې ورشامل شو . » یوه بله منبع دیوه سرتیري خبرې دتوکې په شکل رانقلوي ، چې سرتیر ي له آس سره پارسي خبرې کولې او اصلاً دا متن په عربي لیکل شوی دی .

کله چې یعقوب شهرت ته ورسید دده دښمنانو غیږ پورته کړ چې دی خارجي دی ځکه چې په زوریې قدرت نیولی دی ، او دخلیفه له خوا څخه نه

دي تاكل شوی او عرب هم نه دی ،دی له دې خبرې څخه نه شو منکر یدلای او
داد ده لپاره خوړ گوته وه . دار ښتیـا ده چې له خوارجو سره یې ډیرې جگړې
کړې وې خو ډیر خارجیان یې په خپل پوځ کې شامل کړي وو . ده رویه په دې
ارتباط عادلانه وه ، دا څرگند حقیقت و چې ده هرډول قوتونه سره یو ځای کړي
و و چې دعربود او ز تود کس عربیزم پر ضد وجنگیږي او خپله آزادي وساتي .

پر ۸۷۹ میلادي ( ۲٦٦ هجري ) کال د یعقوب پر ځای دده ورور عمرو بن
لیث امیر شو . که څه هم ځینې جنگونه یې وگټل خو دی پودې قادر نه و چې
دصفاریانو فتوحات په ختیځ کې تحکیم کړي . لکه چې هندوشاهي کابل بیا
ونیـوه ، ننگرهار او لوگر یې هم ونیـول . مگر سره له دې هم عمر و بن لیث په
سجستان او فارس کې خپل واک تر شلو کالو پورې وساته . پر ۹۰۰ میلادي
(۲۸۷ هجري) کال یې دسامانیانو پر ضد لشکر کشي وکړه چې هغوی د
هندوکش په شمال کې دعباسیانو پر ضد په ۸۷٤ میلادي ( ۲٦۱ هجري) کې
را پورته شوي وو . سامانیان هم ایرانیان وو . ده ته ماتې ورکړل شوه او بلخ
ته نږدې اسیر شو ، سامانیانو دی په زنځیرونو وتړه او بغداد ته یې خلیفه ته
ورواستاوه او هلته ووژل شو . سامانیانو وغوښتل چې دصفاریانو ټول ځایونه
ونیسي مگر دیعقوب دکورنۍ یوه غړي طاهر له خواسخت مقاومت وشو او
فارس او سجستان یې تر کنترول لاندې وساتل .ده په عمان کې سکې هم
ضرب کړې ، مگر په ۹۰۸ میلادي ( ۲۹٦ هجري) کې دخپلو دښمنانو له خوا
اسیر شو او دعمرو بن لیث په شان بغداد ته واستول شو . دکورنۍ نورو غړو تر
څو کلونو پورې دسجستان ځینې برخې وساتلې او خلک یې پر هره خوا تیت او
پرک شول . خو دخلکو زړه سوی ورسره و .دغزني سیمه دسامانیانو تر څه
ناڅه کنترول لاندې ورغله .

دیعقوب لیث دوره ځکه دیادونې وړ ده چې دساسانیانو له امپراتورۍ

وروسته دا لومړی مسلمان عجم امیر و چې اسلام یې په موثر ډول سره په ختیزو سرحدونو کې تطبیق کړ . احتمالاً دی لومړی پاچا و چې دافغاني قبیلو ځوانان یې په خپلو لښکرو کې ومنل . زیاتره یې خلجي وو او ځینې نوریې دغزني له سیمې څخه وو . دی داوسپنیز دسپلین او کلک بې لحاظه عدالت او هر ډول اضطراري اوجګړه ییز حالت لپاره تیارۍ ډیرې کیسې لري . دعدالت او دسپلین له وجې خلکو پرده باندې اعتماد کاوه . بالاخره دی لومړی سړی و چې په ویاړ سره دخپل اصلي ټاټوبي دملکیت ادعا یې کړې وه . ده داسلام دپراخوالي په لار کې هم ډیر زیار ویست او ختیز سرحد ته یې داسلام مقدس دین خپور کړ او دبُت پرستۍ پر ضد یې کلک اقدام وکړ . دده دژوندانه په هکله ډیر تفصیلات په لاس کې نه شته خو دده له فتوحاتو څخه ځرګندیږي چې ډیر خلک یې په کابل او غزني کې داسلام دین ته را واړول . په حقیقت کې یعقوب لیث صفاري ، دمحمود غزنوي لپاره تیره کینبوده او دایې غوښتل چې یو څوک دده پر پله ګام واخلي او تر ډیره حده پورې محمود غزنوي دده په تګلاره روان و ، یوازینی توپیریې دومره دی چې دده فتوحات تر کابل پورې وو او وړاندې ولاړ نه شو او محلي حکومتونه یې رنګ نه کړل . خو سره له دې هندي حکمرانان سخت په لړزه راغلي وو . پته دې نه وي چې صفاریانو دافغانانو او پښتنو راګډولو لپاره په اسلامي نړۍ کې ډیر زیات ښه خدمت وکړ . په همدې دلیل تر محمود غزنوي لا زیات دصفت وړ دي او محمود غزنوي پر ایښودل شوي بنسټ باندې کارپیل کړ .

په دې هکله تبصرې کیږي چې یعقوب لیث که بغداد نیولای وای دخلافت پراختیا او نتایج به څه وای ؟ . دا کارنیږدې و چې تر سره هم شي خو اقدام یې ونه کړ . که داکارشوی وای عباسیان به دختیځ تر ادارې لاندې راغلي وای . غلجیو او افغانانو به دترکانو ځای نیولی وای او دپوځ قوت به له دوی سره

وای . همدارنګه دبغداد کلتور به هرو مرو د پښتو ژبې تر تاثیر لاندې وده کړې وای .

د کابل شاهی کورنۍ چې پر ۸۷۰ میلادي کال د یعقوب لیث له خوا ماته شوه او کابل یعقوب ته پاتې شو په تاریخ کې په بېلابېلو نومونو لکه کابل شاهي ،ترکي شاهي او دویهند هندوشاهي یاده شوې ده . البیروني حتی دا کورنۍ په تبتي کورنۍ یاده کړې ده . ( دده مقصد ترک یا کوشانوو چې فرق یې نه دی ښودلی ) مورږته د وروستني غیر مسلمانې کورنۍ په نامه چې پر ګندهار ایې حکومت کړی دی اهمیت لري . دغو پاچاهانو تر یوولسمې پېړۍ پورې ( ٤٠٠ کاله له هجرت وروسته ) په ډېر شان ، شوکت ، جاه او جلال سره د پښتو رپه وادۍ کې پاچاهي کوله اودې سیمې ته اسلام دمخه ورسیده او ددوی شان اوشوکت ته یې د پای ټکی کېښود .

دیعقوب له خوا د کابل له نیولو څخه دمخه ددغو پاچاهانو په هکله ډېر لږ معلومات په لاس کې وو . کله چې یعقوب لیث کابل ونیوه دوی ګندهار اته ولاړل او داباسین ویهند یې پلازمېنه وټاکله او داسې اټکل کیږي چې داداباسین دغاړې نننی لاهور کلی دی . داهم څرګنده نه ده چې دیعقوب له خوا مات شوی کابل شاه دویهند دهندوشاهي کورنۍ موسس یاله هماغې کورنۍ څخه و او که نه ؟ ښايي د پایتخت له بدلیدو سره شاهي کورنۍ هم بدله شوې وي . په دې هکله دالبیروني مستند شواهد یو څه پېچلي دي او داسې وایي :

ددې نژاد وروستی پاچا لاګاتورمان Lagaturman او دهغه وزیر یو برهمن کالار (Kallar) نومی و . وزیر کالار یو څه طالعمند و . ده پټې خزانې په تصادفي شکل سره پیدا کړې وې اود زیات قوت او تسلط خاوند شو . ددغې تبتي کور وروستي پاچا چې ترډېرې مودې پورې یې قدرت چلاوه

ددغه وزیر په واسطه په تدریج سره قوت له لاسه ورکړ. پر دې سربیره لا ګاتورمان یې اخلاق نه درلودل او له خلکو سره یې ښه رویه نه کوله. له همدې سببه خلکو وزیر ته شکایت کاوه، وزیر، پاچا په زنځیرونو وتړه چې اصلاح شي. مګر وزیر دخلکو حمایه تر لاسه کړه او پیسې یې هم ډیرې درلودې چې د هغو په واسطه خپل پلانونه تطبیق کړي. په نتیجه کې یې شاهي تاج تر لاسه کړ. بیا تر ده وروسته برهمن پاچاهان هر یو سمند Samand کمالو Kamalu، بیم Bhim، جیپاله Jaipala، انندا پاله Anandapa-la او تاروجاناپالا (Tarojanapala) یو په بل پسې قدرت ته ورسیدل. دا وروستي پاچا پر ۱۰۲۱ میلادي (۴۱۲ هجري) کال او پنځه کاله وروسته ده زوی بیمپاله Bhimpala ووژل شول. نن هندوشاهي کورنی بیخي له منځه تللې او یوه کوچنی نښه هم له دې کورنی څخه ژوندی نه ده پاتې. مونږ حتماً دا باید وو ایو چې دغې کورنی خورا برم درلود او دښو کارونو لپاره یې هیڅ دول سیمانه کوله. دوی درانه او عزتمن خلک وو.

ددغه پورتني متن په هکله څو په زړه پوري ټکي لیدل کیږي. لومړی او ترټولو مهم دپاملرنې ټکی دادی چې البیروني یو معاصر لیکوال و. دی پر ۹۷۳ میلادي کال پیدا شوی و. ده هند ته هغه وخت سفرو کړ چې محمود غزنوي تر ۱۰۰۱-۱۰۲۶ میلادي پورې په هند کې جګړې پیل کړې. ښایي ده په جیپال او انندپال هم دمحمود غزنوي په لاس له ماتې څخه وروسته لیدلي وي. دویم ټکی دکورنی بدلون دی چې دختیځ یوه ډیره عامه کیسه ده چې وزیر خپل پاچا بندي کړ او په کراره یې له منځه یووړ. ښایي دا به یو نوی دوران وبلل شي چې پایتخت هم له کابل څخه ویهند (لاهور) ته ولیږدیده.

دامتن لږتر لږه راښیي چې دکورنی په تاریخ کې یو څه تسلسل موجود او دهندوشاهي لومړی پاچا کالار Kalar له اسلامی نړی څخه دباندې واو

وروستی تکی دادی چې دالبیروني بیان دفولکلوریو نښه ښيي او په ډیر ډاډ سره لیکي چې داخلک ډیر تکړه خلک وو چې د مسلمانانو په مقابل کې یې په میړانه جنګ کاوه. حال دا چې البیروني مسلمان وا و د دیني دښمن توصیف صادقانه جرئت غواړي، څو نور ټکي هم شته چې د محمود په زمانې پورې اړه لري او هغه وخت به یې وګورو.

همدارنګه یوه بله منبع هم شته چې دا معلومات په موثق شکل سره وړاندې کوي. وایي کله چې عمرو بن لیث د یعقوب بن لیث ورور د صفاریانو فتوحات په ختیز سرحد کې پرمخ بیول دده یو مرستیال د ګردیز یا دغزني په سیمه کې یوې بُت خانـــــې ته اور واچـــــاوه. دابُت خانه په سکاوند Sakawand نومي ځای کې چې دلوګر او زرمت تر منځ التمور ته نږدې واقع دی جوړه شوې وه. ددې مرستیال، نوم فردغان Fardghan و. منبع وایي کله چې کمالو، دهندوستان رای Rai، دسکاوند له ماتې څخه خبر شو نو لوی لښکر یې تیار کړ او دزابلستان په خوا ولاړ. احتمالاً کمالو دالبیروني دلست له مخې د هندوشا هیه دریم پاچا وچې په دې حساب دعمرو بن لیث صفاري هم عصر و (۸۷۰ - ۹۰۰ میلادي). له دې څخه داسې معلومیږي چې ددې کورنۍ اول پاچا دالبیروني له خوا کالار معرفي شوی دی، هرو مرو په کابل کې پاچا وا و د یعقوب لیث څخه به دمخه وا و کابل د یعقوب لیث له خوا پر ۸۷۰ میلادي کال نیول شوی و.

دسکو موجودیت قسماً دالبیروني دلیکنو تائید کوي او په ځینو برخو کې مغایرت لري. زیاتره یې دپښور په وادۍ، خاصتاً دویهند په شاو خوا کې لیدل کیږي. ویهند زموږ دڅېړنو په لړ کې اباسین ته نږدې هوند او یا لاهور دی. داسکې دسپینو زرو کوچنۍ سکې دي چې یوې خواته پر آس سپور رسم او پر بله خوا یو پروت غویی رسم دی. همدارنګه دمسو سکې دي چې یوې

خواته یې زمری او بلې خواته یې هاتي دی ، همدارنګه یوه د سروزر سکه ده چې دوه پاچاهان ښيي او پر مخ یې د بیما دیوا ( Bhimadeva ) او پرشایې سمنتا دیوا Samantadeva انځور شوي دي . داسکې د ښاغلي احیت ګوس Mr. Ajit Ghose له خوا ژباړل شوې دي او داسکې د بیما Bhima په وخت کې توزیع شوي او ترده د مخه پاچا په احترام دا سکې جوړې شوي او توزیع شوې دي ښايي د ه به د بیما Bhima په ګټه استعفا کړې وه ، مګر دا ژباړنه د کامالو په هکله هیڅ نه وایي حال دا چې دی د بیما Bhima او سمنتا Samanta تر منځ تیر شوی د ی .

دانومونه پر ټولو سکو باندې په نګري ( هندو ) ژبه لیکل شوي او د کورونو لوژی له مخې په دې ډول دي :

۱-سپالاپاتي دیوا ( Spalapati Deva ) دوره (سکې عامې وې )

۲- سمانتا دیوا ( Samanta Deva ) دوره ( سکې ډیرې عامې وې )

۳- بیما دیوا ( Bhima Deva ) دوره ( سکې کم پیدا )

٤- واکا دیوا ( Vakka Deva ) دوره ( دمسو سکې عامې )

٥- خمارایاکا ( Khamarayaka ) دوره (سکې ډیرې کم پیدا )

(داسې څرګندیږي چې دا به په اسلام مشرف شوې وي . )[٢٠]

سپالاپاتي Sapalapati ( سپاډا په زره پاړسي کې داردو مانا لري ) اوداردو قوماندان ته وایي . د ( ل ) توری د ( ډ ) په عوض دژ بنې توپیر نتیجه ده چې پخوامو هم په دې هکله څه لیکلي دي اود پښتو (پختو) او پاړسي مقایسه مو کړې ده .

له دغو پنځو څخه په مقایسوي توګه به دویم او دریم یانې سمند Samand او بیم Bhim و کتل شي چې دالبیروني دهندوشاهانو په لست

کې راغلي دي. ( دادواړه هغه پاچا هان د ي چې د سروزرو پر سکه باندې انځور شوي دي. ) په خاصه توگه دا ډېره عجیبه ده چې دانندپال او جیپال په نومونو کومې سکې ترا وسه لاسته نه دي راغلي حال دا چې تاریخ ددوی د شخصیت د ثقت تائید کړی دی، او دا هغه پاچاهان وو چې له سبکتگین او محمود غزنوي سره یې ډېرې جگړې کړې وې. دادبي منابعو چوپتیا د لومړني هندوشاهي پاچا سپالاپاتي په باره کې چې کورنۍ یې بدله کړې وه د حیرانتیا سبب کیږي. یوازې داسې تخمین کیدای شي چې برهمن کالار چې البیروني ذکر کړی دی د پاچا کیدو پر وخت ځانته د سپالاپاتي نوم غوره کړی وي.

دا په زړه پورې ده هغه سکې چې په نگري ژبه د سپالاپاتي نوم پرې کښل شوی دی همدارنگه مشابه لیکنه د کوشانیانو په رسم الخط هم لري. داسې څرگندیږي چې لومړي هندو شاهي هرو مرو د کوشانیانو، یفتلیانو میراث خواره وو او د هغوی دودیې څه ناڅه ساتلی دی او احتمالاً هغه ته یې تر زیاتې اندازې پورې هندو یې شکل ورکړی او د کورنۍ شکل یې بدل کړی دی، که څه هم دا یقیني نه ده، خو پلازمېنه یې بدله کړې وه. دا اختلاف چې د معاصرو، پېښو لیکونکو او سکو تر منځ شته د « هندوشاهي » سوال را منځته کوي او داسې کلاسیک سوال چې لا تر اوسه د منلو وړ ځواب هغې ته نه دی ورکړل شوی. د سمند سکې ( چې د سکو له مخې او واقعاتو له مخې دویم پاچا دی ) ډېرې شته. ددې دلیل دا دی چې تر ده وروسته پاچاهانو هم دده په نوم سکې ضربولې او دوی د ځان لپاره کومه نوې سکه ضرب نه کړه. د سرو زرو سکو له مخې ددې مفکورې پوره تائید کیږي.

سربېره پردې تر ټولو د حیرانتیا وړ خبره چې هیڅ نه ده روښانه شوې دا ده چې عباسي خلیفه« المقتدر » په بغداد کې د هندو شاهي پاچا هانو د سکو په

شان سکې جوړې او چلولې ، دا په ۹۰۸ میلادي ( ۲۹۵ هجری) کې وه . په حقیقت کې دهندو شاهي پر سکو باندې یې په عربي ژبه خپل مهر دپاسه ضرب وهلی و . دا کار موږ ته دوه شیان په گوته کوي . یو دا چې هندوشاهي عربو ته د اهمیت وړ وه او بل دا چې دهغوی دسرو زرو سکې دلوړ کیفیت درلودونکې وې . دا هم داهمیت وړ یادونه ده چې دنښتې مقایسه داسې ده چې دکورنۍ لومړنۍ کس به هغه وخت پر تخت ناست وي چې یعقوب په ۸۷۰ میلادي ( ۲۵۷ هجري) کې کابل نیولی و او یا څه موده له هغه څخه وروسته کیدای شي .

دهندوشاهي پر سکو څه چې کښل شوي دي دهغو قبیلو په هکله چې دوی پرې حکومت کاوه څه معلومات نه ورکوي.

موږ ته دا هم معلومه ده چې دکابل فتح دصفاریانو له خوا دوی ته یوه ضایعه وه خو سره له دې دخیبر لویدیځ ته پر ننگرهار او لوگر باندې مسلط وو. دوی پخپله او قوماندانان یې ددې سیمې له ټولو لارو سره اشنا وو او هم ټولې قبیلې چې ددې لارو په اوږدو کې پرتې وې دوی پیژندلې . مهمې لارې دختیځ خواته : دخیبر لارې ، په جنوب کې دکورمې ، او په شمال کې دکونړ ، باجوړ ، تلاش او سوات له لارې له کابل څخه تر پېښور پورې اوږدې شوې وې .

دا چې دوی په سوات کې پاچاهي کوله پوره ثابته ده او دجیپال شتموالی په دې سیمه کې هم یقیني خبره ده . دسوات په برکوټ کې یوه لیکل شوې تبۍ په سانسکرت ژبه تر لاسه شوې ده چې رسم الخط یې د سارادا Sārada په توررو دی او په دې کلمو پیل کیږي : « دلوی پاچا ، دلویو پاچاهانو پاچا – لوی سردار سري جیپالادیوا Sri Jayapaladeva دپاچاهۍ په دوران کې.... » . مگر له دې سره سره دخپلو اتباعو دحالاتو او پیژند گلوۍ په هکله هیڅ هم نه وايي . مگر په عمومي توگه دا رښتیا ده چې له سکندر څخه نیولي

بیاتر بابر پورې د دغو خلکو د ټولنیز تاریخ او ټولنیز پرمختګ په هکله روښانه انځور نه شته ، چې اتلس پیړۍ اشغالګرو د دوی پر خاوره لښکرې مارش کړي او د دوی په ژوند کې یې مداخلې کړې دي . د تاریخي اسنادو د ثبت له زماني راوروسته به بله داسې له خلکو ډکه سیمه پیدا نه شي چې د دوو ډیرو پخوانیو کلتوري شکلونو تر منځ سرحد جوړ وي چې د هغې د پیژندګلوۍ په هکله حیرانوونکې خلا تمثیلوي .

په رښتیا سره چې د ثراغ درنا یوه کربښه شته هغه دا چې د افغان کلمه (ابګان = Abgan (Αβγαν په دریمه پیړۍ کې د ساسانیانو په لیکنو کې ښکاره شوې ده . افغانانو ته د لومړي ځل لپاره په هند کې د ننه دیوه منجم وارا میهیرا VarahaMihira له خوا په خپل کتاب برهات سمهیتا = (Br hat -Samhita) کې د شپږمې پیړۍ په اوږدو کې اشاره شوې ده . هوین تسانګ = Hiuen Tsang چینایي سیاح د سلیمان د غره د شمالي برخو اوسیدونکي د آ - پو - کیان A-po-Kien په نامه ذکر کړي ، دا یوازې کیدای شي چې افغانان وي او بس . هوین تسانګ Huien Tsang له ۶۲۹ څخه تر ۶۴۵ میلادي پورې په جنوبي اسیا کې ګرځیدلی دی . دی پر ۶۴۴ م کال په ګندهارا کې و چې لاهوار (لاهور) ته د عربو له راتګ څخه تقریباً شل کاله د مخه ده هلته سفر کړی و ، د مسلمانانو له خوا د افغانانو د یادونې تکی په حدود العالم چې د ۹۸۲ میلادي (۳۷۲ هجري) کال سند دی ، راغلی دي،دي دیوه کلي یادونه کوي چې سول Saul نومیږي او ګردیز ته نږدې پروت او افغانان په کې اوسیږي ، او همدارنګه دي لیکي :دنین هار ( دا ثابته ده چې مقصد یې ننني ننګرهار دی ) دسیمې پاچا چې اسلام منلی د ډېرش ښځې لري . چې مسلمانې افغانې او هندۍ ښځې دي . د افغان او مسلمان تر منځ توپیر په دې متن کې د اهمیت وړ دی .

ال طبي یا العتبي (Alutbi) دغزنویانو د دورې مورخ په یوولسمه پیړۍ کې لیکي چې افغانان د محمود په اردو کې موجود وو او دغزنویانو وروستي پاچا مسعود خپل عسکر له غزني څخه دباندې نږدې سیمې ته ولیږل چې افغانان تابع کړي .

مگر تر ټولو قانع کوونکي سندونه دالبیروني په « تاریخ الهند » کې دي ، څرنگه چې دهندوشاهیه په هکله دده لیکنو ته نظر واچوو څرگندیږي چې دی د پراخې مفکورې خاوند واوښه قلم یې درلود . دی لیکي : « دهند لویدیځ ته په غرونو کې دافغانانو بېلې بېلې قبیلې اوسیږي چې دسند دوادۍ تر گاونډیو پورې رسیږي . » دی د ۱۰۰۰ میلادي زمانې په هکله غږیږي . څو عبارتونه مخکې له دې څخه ددغو قبیلو په هکله لیکي چې داقبیلې جگړه ماراو خلک یې ډیر زړه ور خلک دي چې دهند په سرحد کې دغرب خواته تر وروستي سرحد پورې پراته دي . په نورو ځایو کې داحدود کابل بولي . دی دا قبیلې هندو ښیي . همدارنگه دی لیکي چې هندوانو پخوا په کابل کې هم پاچا هان درلودل . مگر دده په زمانه کې پلازمینه ویهندو ، گندهارا ته دپېښور دوادۍ په نوم ډیرې استشارې لري او ده کندهار یاد کړی دی او پېښور ته هم اشاره کوي او هغه « پروشاور » بولي .

په دغه زمانه کې افغاني قبیلې پیژندل شوي او دکابل ختیځ ته په غرونو کې تراباسین پورې په هغو ځایو کې میشته شوې دي چې دا نن هلته میشته دي ، لاتردې وخته پورې په اسلام نه دي مشرف شوي او دچا کنترول نه مني . د پښتون یا پختون اصطلاح هم لا نه ده رواج شوې او ددې لپاره باید څو پیړۍ نورې هم انتظار ویاسو . مگر موږ تقریباً داسې حس کوو چې البیروني یو بل هیرودوتس دی . دلومړي ځل لپاره تقریباً دیونیم زرکلونو مودې

راهیسې د داسې خلکو بوی احساسوو ، خو له بده مرغه دی د دغو جګړه مارو او جنګیالیو قبیلو نومونه نه ذکر کوي او د دې مطلب لپاره باید پنځه پېړۍ نور صبر وکړو تر څو بابر پاچا شي ، مګر موږ داسې قیاس کوو چې هغه قبایل به د بابر د زمانې قبایل وي او چندان توپیر به نه کوي. وبه یې ګورو چې د بابر په زمانه کې پښتنو کومې سیمې چې نیولې وې تقریباً نننۍ سیمې دي ، لږترلږه د البیروني له لیکنو څخه پوره څرګندیږي چې د غزنویانو په دوره کې پښتانه د ستیج سر ته را پیدا شوي او خپل رول یې په هغو سیمو کې پیل کړی دی چې نن په کې میشته دي .

ډیرې پیړۍ تیرې شوې تر څو د اسلام تر نامه لاندې منظم دولت د غزنې په شاوخوا کې جوړشو او د لسمې پیړۍ په پای کې لا هم د خیبر په دواړو غاړو کې هندو پاچا حکومت کاوه .

# نهم ځپرکی

# محمود او خلجیان

له شمال څخه کومې لارې چې دا باسین سرحد ته راغلې وې د محمود غزنوي تر راپورته کیدو پورې نږدې پنځه سوه کاله نسبي آرامي او سوله وه . له محمود غزنوي څخه را وروسته یوې پیچلې مرحلې ته ننوځو . دا زمانه د ترکي کورنۍ په راپورته کیدو سره پر ۹۶۰ میلادي کال په غزني کې پیل کیږي . پر ۱۵۲۶ میلادي کال د مغول بابر په واسطه د لودي پښتنو د کورنۍ په سقوط سره پای ته رسیږي . یوځل بیا د شیرشاه سوري (۱۵۳۹-۱۵۵۵) د کورنۍ په رامنځته کیدو سره د پښتنو قدرت بیا راژوندی کیږي . نو د دې لپاره چې دا انځور پوره شي دا ټول حوادث باید په نظر کې ونیول شي .

دا زمانه د افغانانو د ظهور او قوت دوره ده چې په نړیوالو چارو کې د دوی اهمیت څرګندیږي . افغانان په اسلام مشرف کیږي . افغانان امپراتوري

جوړوي مگر امپراتوري يې په کور کې نه، بلکې په هندوستان کې جوړيږي .
په عمومي ډول دا دوره هم پر دوو برخو ويشل کيږي : او له دوره دسبکتگين دقدرت نيولو څخه پيل کيږي چې پر ۹۷۷ ميلادي په غزني کې قدرت ته ورسيده او دغوري سلطان معزالدين محمد تر مړينې پورې په ډهلي ( ۱۲۰٦ ميلادي) کې دوام کوي . دويمه دوره هغه وخت پيل کيږي چې غوريان. دمرکزي اسيا ( ۱۲۱۵-۱۲۲۰ ) دقواو دضربې په نتيجه کې سقوط کوي او پر ٤ ۱۵۰ ميلادي کال ، کابل ته دبابر تر راتگ پورې دوام کوي . لومړۍ دوه پيړۍ دغزنويانو پر غزني باندې څرخيږي او وروستۍ موده د غوريانو پر کورنۍ باندې رڼا اچوي چې دافغانستان په دننه مرکزي برخو کې يې حکومت کاوه . ددغو کلونو لومړني وختونه دمعاصر ليکوال البيروني او دمحمود غزنوي د دربار منشي ال عتبي ( الاطبی) Ai-Utbi له خوا پوره څرگند شوي دي ، بيا دبابر له راتگ څخه دمخه درې پيړۍ هغه وخت دی چې دافغانستان له هسکو څوکو څخه مرکز نقل دډهلي او هندوستان نورو ښارو نو ته وښويدو او هلته مسلمانانو په پوره قدرت کې وو.

دويمه دوره دمغولو دچور او چپاول او ظلم دوره ده چې (۱۲۱۸-۱۲۲۷) پورې چنگيز خان هر څه خاورو سره برابر کړل ، هرڅه يې وسول او گوډ تيمور ( ۱۳۸۰-۱٤۰۰ ) هم دده په پله روان و .

چنگيز خان پر هندباندې کوم اثر وانه چاوه . مگر په ننني افغانستان کې يې دولتي نظم ويجاړ کړ او هرڅه يې وسول او بيا په پنځلسمه پيړۍ کې د تيمور دځای ناستو له خوانوی نظم او سيستم را منځته کړای شو. د دواړو دورو په جريان کې افغانان او قبيلوي پښتانه داسلامي فتوحاتو سر لښکر وو او دهند په استقامت داسلام تر بيرغ لاندې عسکر وو . بيا زړه ورپاچاهان ،

سلطانان او امپراتوران شول . مگر د حیرانتیا وړ خبره خو داده چې د پښتنو خپل کور همداسې پاتې و . په کور کې یې نه د گاونډیو قوتونو له خوا او نه ددوی له خوا کوم نظم جوړ شو . روه ( دهندیانو په اصطلاح غرنۍ سیمې = افغانستان ) همېشه د جنگیالیو قبیلو وطن و . په هغه وخت کې ددې سیمې یوازینی اهمیت دا و چې زړه ور اجیر عسکر به له دې سیمې څخه تر لاسه کیدل .

ما مخکې د البیروني دلیکنو په هکله چې د افغانانو په باره کې یې لري اشاره کړې وه چې البیروني دوی جنگیالۍ قبیلې معرفي کوي او کله چې دوی اسلام غوره کړ ، دلسمې پیړۍ په پای کې یې د اباسین او کابل تر منځ دهند په سرحد کې هسکې او هوارې سیمې اشغال کړې وې ، په دغه جغرافیوي موقعیت کې چې څه ناڅه همدغه ځایونه نن ورځ هم ددوی عین موقعیت دی د محمود غزنوي په دوره کې په تولیز شکل سره پر اسلام مشرف شول . دعربي تذکره لیکوتکو او معاصرو روشنفکرانو د څېړنو پر اساس د پښتنو قبیلوي اساسي تاریخ له همدې زمانې څخه پیل کیږي او د پښتنو جنگیالي په وسله والو پوځونو کې شهرت مومي . مگر حقیقت بیخي بل ډول دی . د البیروني دوینا او دخوارلسمې پیړۍ یو متن چې مشهور عربي سیاح ابن بطوطه لیکلی دی مستثنی ، نور په عمومي ډول داتایئد شوي دي چې ددغو پنځو پیړیو ددورې تاریخ دخاصو حوادثو ددغه جگړه مار او جنگیالي نژاد په هکله څه شي نه لري ، یوازینۍ قبیلې چې یادې شوې دي او له افغانانو سره تړلي دي دخلجیانو او لودیانو قبیلې دي حال دا چې ډهلي کې یې حکومت کړی دی .

دمنځنیو دورو په اوږدو کې تیاره خپره او پوره روښنایي نه شته . البیروني او العتبی Alutbi په ۱۰۱۵ میلادي کې لیکي او په ښبور ته اشاره

کوي. بیا پنځه سوه کاله وروسته بابر تکرار دهغې یادونه کوي . مګر د پښتنو داهمیت په هکله دکلیدي نقطې په څېر د درې واړو مؤلفینو لیکنې په تائیدي شکل دي .

با لاخره نتیجه داده چې ا لبیروني د مدا خلاتو د دورو لیکوالان سوا وګڼل څکه چې یوازې یې دبري لرونکو کورنیو په ګټه څه لیکلي وو .موږ دغې حیرانوونکې نتیجې ته رسېږو چې افغاني عسکرو په هند کې د ېر څه تر لاسه کړل خو دخپل وطن د پرمختیا لپاره یې هېڅ هم نه وو کړي . کله چېرې پر پښتنو او شاوخوا غزنیو سیمو نظر واچول شي نو دومره به سړي ته څرګنده شي چې قبیلوي تخیل او تفکر دحاکمو کورنیو په هنداره کې ښکاري او بس.

غزني لومړی دبخارا دساماني امپراتورۍ یو ولایت و چې دصفاریانو دفتوحاتو په لړۍ کې کله چې پر ۹۰۰ میلادي کال عمرو بن لیث په بلخ کې ناکام شو ،بریالیتوب یې په برخه شو . سامانیان دصفاریانو غوندې په ختمه ایرانیان وو او د ترکو دمملوک په واسطه یې چې اصلاً د جنګ اسیران وو حکومت چلاوه . دوی دمریانو د خرڅلاو له بازارونو څخه په پیسو رانیول شوي وو . څکه چې دوی تکړه جنګیالي وو. ددوی غوره او خورا تکړه غړي دحاکمانو اونظامي قوماندانانو په صفت په مهمو ولایاتو کې مقرر شوي وو او دخپلو بادارانو په خدمت کې وو .له ۹۵۰ میلادي کال څخه وروسته غزني دالپتګین ،بالکتګین او پیرای Pirai مملوکیانو تر حاکمیت لاندې وو او د نایب الحکومه او والي په القابو سره یادیدل . غزني دسامانیانو سرحدي ولایت و چې دهندوشاهي سلطنت سره یې د کابل په وادۍ کې ګډ سرحد درلود او د غزنیو سیمو اوسیدونکو سره یې سرحد درلود چې له اسلام څخه نوي خبر شوي وو . پر ۹۷۷ میلادي کال پیرایي Pirai چې بې کفایته والي و ،

دالپتگین دزوم او مریي سبکتگین له خوا را وپرځول شو ، دبخارا له ساماني امپراتورۍ څخه یې هم تائید تر لاسه کړ او په نتیجه کې یې دغزنویانو د کورنۍ بنسټ کېښود . دسبکتگین دقدرت نیولو په وخت کې سامانیان ورځ په ورځ کمزوري کېدل او بالاخره پر ۹۹۹ میلادي کال مات شول . دغزنویانو لپاره دبخارا تائید یوازې داګټه وکړه چې غزنویانو قانوني او حقوقي حیثیت تر لاسه کړ او دسبکتگین زوی محمود لپاره یې لاره خلاصه کړه چې غزني خپل پایتخت وټاکي ، خپله امپراتوري جوړه کړي ، تر هند پورې یې پراخه کړي او له پلار څخه لا زیات شهرت تر لاسه کړي .

دا سبکتگین وا ونه محمود چې له کابل وادۍ او پېښور څخه ( لا تر دې وخته پورې په ګندهارا سره یادیده او عربي شکل یې قندهارو) یې دهندوانو دښرلو پرېکړه کړې وه . غزنوي مورخ العتبی Alutbi لیکي چې داردو دپراختیا لپاره یې ډېر افغانان او خلجیان راټول کړل او په زرګونه نفریې دخپل خدمت لپاره سمبال کړل . په پوره اخلاص یې روحاً او جسماً خدمت کاوه . ددغو لښکرو په واسطه یې دوه واره هندوشاهي پاچا جیپال ته په لغمان او ننګرهار کې ماتې ورکړه ، دکابل وادۍ له پورتنۍ برخې څخه یې وشړه او ډېر زیات غنیمت یې لاس ته راوړ چې دوه سوه هاتیان هم په کې شامل وو.

پر ۹۷۷ میلادي کال دسبکتگین مشر زوی اسمعیل پاچا شو مګر یو بې کفایته شخص و او دوه کاله وروسته د سبکتگین دویم زوی محمود پاچا شو. محمود لوړه وکړه چې نه یوازې به هندوان له ګندهارا څخه وباسي ، بلکې له اباسین څخه پورې غاړه هندوستان ته به ننوځي . دده جګړې او فتوحات ان په غرب کې دفارس خواته ،په شمال کې دبلخ خواته او په شرق کې پېښور اوګندهارا - پنجاب او پورتني سند ته خپاره شول او زیات بریالیتوبونه یې تر لاسه کړل . له ۹۹۹ میلادي -۱۰۲۶ میلادي پورې یې دولس واره پر هند

پرغلونه وکړل . دمحمود دعمر په وروستيو کې دده امپراتوري تر مشهدا و نيشاپور ، پنجاب او صوبه سرحد او د آمو دريا تر آخوا پورې پلنه شوې وه . په بخارا کې يې کاراخاني ( قره خاني ) Karakhani کورنۍ ته چې دسامانيانو ځاى يې نيولى و هم ماته ورکړه . دده دامپراتورۍ زړې داوسني غلجيو هېوادو چې دکابل او کندهار ( لا هم نه و تاسيس شوى ) تر منځ سيمه تشکيلوي . دغزني ښار په ډير وښاييسته ودانيو سره پراخ شو . دمحمود دربار له علماو او شاعرانو څخه ډک و . فردوسي دپارسي ژبې تکړه شاعر چې شاهنامه يې ليکلې دده د دربار دشاعرانو لهجملې څخه و ، مورږ ته دمحمود غښتليتوب چې هنديې ونيو او اسلام يې خپور کړ دموضوع دارتباط له مخې نه دی ، بلکې غوره خبره داده چې پښتني قبيلې په اسلام مشرفې شوې ، شهرت يې ومونداو پوځونه يې جوړ کړل . ددوی مېړانه او شهامت شهرت ته ورسيدل او فتوحات يې په نصيب شول . دده سياست دده زوي مسعود له خوا تعقيبيده .

که څه هم محمود ترک وځو دروه او پښتونخوا په سيمه کې يې داسې نښې پرې ايښې دي چې په فلکور کې دی دپښتنو لپاره ملي قهرمان شمېرل کيږي . سره له دې څرگند حقيقت چې وروستيو او معاصرو ليکوالو مورږ ته په نښه کړی دی چې په څه ډول دده دسليمان دغرونو قبيلې خپلې کړې او خپل زوی مسعود يې ايقاظ کړ چې ددغو خطرناکو جنگيالبو قبيلو سره څه ډول چلند وکړي او دده زوی څه ډول دغزني کوه پايه Koh- Payah ته قوت واستاوه او هلته دافغانانو خورا جگړه مارې قبيلې پرتې وې ، دده هدف دامن او سولې ساتل وو . هغه حالت او دننني آزادو قبايلو ورته والی بيخي کټ مټ يو ډول دی .

محمود ته دده له مړينې څخه وروسته دپښتون خطاب يو افتخاري رتبه

وه، د ده په زياتو فتوحاتو کې دغزني شاوخوا پښتانه ورسره وو او همدارنګه زيات پښتانه دده په وخت کې مسلمانان شول . په دې کې هم څه شک نه شته چې زيات شمېر پښتانه دصفاريانو په وخت کې مسلمان شول او زياتو مقاومت وکړ . مګر زيات وياړ په مسلمانيدو کې دمحمود غزنوي په برخه دی ځکه چې په ګڼ شمېر خلک له پښتني قبيلو څخه دده په وخت کې مسلمان شول . په دې هکله له البيروني څخه دمخه څه وضاحت نشته . ترالبيروني وروسته دا روښانه شوې ده چې محمود غزنوي د فتوحاتو لپاره حيرانوونکی قابليت درلود او همدارنګه دده پايتخت دپښتنو سيمو په منځ کې پروت و او له پښتنو سره يې مستقيماً تماس درلود . کله چې محمود پر بلخ حمله کوله دا لښکر ورسره و . داهم پر ځای ده چې ووايو دهند په فتوحاتو کې هم دوی ورسره وو . دمحمود غزنوي دهڅو او هڅې خواته يرغلونو کې پښتانه دومره زيات وو چې دهند هرې برخې اوسيمې ته ورسيدل او داسلام په خپرولو کې يې لاس درلود .

هغه پريکوونی جنګ چې محمود دهندوشاهي جيپال سره په ۱۰۰۰ ميلادي ( ۳۹۱ هجري ) کې دپېښور په يوه نامعلوم ځای کې وکړ جيپال ته يې سخته ماتې ورکړه . څو کاله وروسته پر ۱۰۰۸ ميلادي ( ۳۹۹ هجري ) کال دا شخړې بيا تازه شوې او دجيپال ځای ناستي آنندپال له شمالي هندوستان څخه لښکر جوړ کړ و دهغه دتقويې لپاره يې اوجين Ujjain ګواليار (Gwalior) ، کالينجر Kalingar ، کانوج Kanauj ډهلي Delhi او اجمير Ajmir څخه هندوان را ټول کړل او دمذهبي جنګ په نوم يې هندوان دمسلمانانو پر ضد راوپارول . آنند پال دوی ټول دپېښور دجنګ په ميدان کې دمسلمانانو پر ضد ترتيب کړل . مګر بيا هم هندوانو ماته وخوړه . دراجپوت مېړانه او شهامت يو ځل بيا پر ځمکه ولويد . موږ ته نه دي ويل

شوي خولي. شک به په کې وي چې زياتره ورک شوي د پښبور دوادی اوسیدونکي وو او د گندهارا خلک وو . ددوی په لیکو کې زیاتره هغه پښتانه وو چې لانه وومسلمان شوي . البیروني همدا ډول نتیجه گیري کوي . پر دې هم خبریو چې زیاتو هندوانو هم اسلام غوره کړی و . نو ځه احتمال لري چې دا زیاتره خلک چې سهمې یې محمود فتح کړې وې او دوی مسلمانان شوي وو د محمود دارزدو په لیکو کې ورگډ شوي وو او مخ پر هند تللي وو .

البیرونی یو ښایسته متن لري . دی لیکي چې انند پال Anandapala سلطان محمود غزنوي ته لیک راواستاوه او داهغه وخت و چې ددواړو مناسبات ډېر کړکېچن وو : « ماته خبر راکړل شوی دی چې ترکانو ستا پر ضد بغاوت کړی دی او په ټول خراسان کې تیت کیږي ، که چېرې ته غواړې نوزه د ۵۰۰۰ سپرو ، لس زرو پلي عسکرو او ۱۰۰ هاتیانو سره راځم او یا که غواړې خپل زوی له دوه چند پورتني قوت سره درلیږم ، زه نه غواړم چې غلطه مفکوره واخلې ، زه ستا له خوا فتح شوی یم او زه نه غواړم چې بل څوک تافتح کړي . »

محمود غزنوی پر ۱۰۳۰ میلادي کال مړ شو ! و دده زوی مسعود پاچا شو ،مسعود هم په هند کې دغزنویانو رول وساته خوله بده مرغه دی په قتل ورسیُده . دمسعود له مړینې څخه وروسته دغزنویانو سلطنت له شمال او غرب څخه تر فشار لاندې راغی او په نتیجه کې مخ په زوال شو . سلجوقیان (Seljuks) چې دغزترکان Ghuzz Turks دي له آمو دریا څخه راپورې وتل او پر ۱۰۵۰ میلادي کال یې فارس ونیوه او ددې کار لپاره یې لومړی ځانونه په مرو کې ځای پر ځای کړل بیا یې پر ۱۰۶۳ میلادي کال اصفهان ونیوه او پر ۱۰۹۱ میلادي کال یې بغداد ونیوه . آلپ ارسلان (۱۰۶۳-۱۰۷۲) میلادي کې دسلجوقیانو مقتدر پاچاو . له هرات څخه

دغزني په لور وخوځیده او غزني یې مات کړ، دغزني پاچا سلجوقیانو ته دباج
ورکولو پرېکړه ومنله . دغزنویانو وروستی پاچا چې یو څه شهرت یې درلود
بهرام شاه (۱۱۱۸-۱۱۵۹ میلادي) و . ده له یوې سلجوقۍ شهزادګۍ سره
واده وکړ او دسلطان سنجر په مرسته یې دخپل ورور ځای ونیو او باج یې
ورکاوه . بهرام شاه دمحمود غزنوي دکورنۍ وروستی پاچا وا ودغزني تباهي
یې په خپلو سترګو ولیدله . غزني ته اور واچول شو او دچنګیزخان دتباهۍ یاد
یو ځل بیا تازه شو . دسلجوقیانو دفشار په نتیجه کې غزني خورا کمزوری شو
او په غور کې دشنصب شاهزادګان (Shansabani) چې پخوا یې محمود
غزنوي ته باج ورکاوه قدرت ته ورسیدل . دغور حاکمان افغانان نه وو . ځینو
پخوانیو لیکوالو چې پښتو یې نه وه زده دغر او غور په توپیر نه پوهیدل دواړه
یې یو بل او دغور اوسیدونکي یې افغانان بلل حال دا چې داوسني هزاره جات
نوم غور و . داهغه خلک دي چې دچنګیز له یرغلونو څخه وروسته په دولسمه
پیړۍ کې په دې سیمو کې میشته شوي دي او داهمدغه وخت دی چې زه اوس
وریاندې خبرې کوم . احتمالاً دا به دختیځ اوسیدونکي وي چې افغانان او
ترکان یې دواړه تاجک بولي . مګر دااحتمال هم شته چې داشهزادګان به
ترکي وینه لري که خالص ترکان هم نه وي . نورې ټولې کورنۍ له ساماني
امپراتورۍ څخه راوتلي ، غور او شاوخوا سیمې یې نیولې دي ، سلجوقیان ،
غزنویان او قره خاني (Karakhani) ټول ترکان وو . په داسې هیاهوی کې
دغور ایراني شهزادګانو ته به ډیره نا ممکنه وي چې وینه به یې خالصه پاتې شوې
وي . بالاخره دعلاقې وړتکی خو دادی چې دکورنیو دشجرو په لړ کې
دشنصباني مشرانو او کورنۍ ته خیالي او حیرانوونکی حسین هم منسوب
دی چې دبي بي متو طالعمند مین و او دغلجي او لودي نیکه ګڼل کیږي .
داهم دیادونې وړ ده چې ددغو اړیکو په هکله هغه وخت په هند کې لیکنې

شوي دي چې دغور شهزاده ګان پر هند مسلط شوي وو.

غوريانو په هند کې قدرت دغزني له لاري ترلاسه کړ. دبهرام شاه په زمانه کې دغور مالک سيف الدين سوري بغاوت وکړ او دغزني پاچا يې هند ته په شا کړ، مګر بهرام شاه لاره چاره وکړه او بريالی ببرته غزني ته ورستون شو. بهرام شاه دشپې له خوا پر غزني حمله وکړه، سيف الدين سوري او دده وزيرېې ونيول. بيا يې دواړه پريوه ډنګر او بښ سپاره کړل او په ښار کې يې دمسخرو لپاره وګرځول. وروسته يې د دوی سرونه ورپرې کړل او د دوی تنې يې دغزني دسيند پر سر پريوه پله وځوړولې، خوده ته هم يو ډېر ظالمانه غچ په انتظار کې و.

پر ۱۱۵۰ ميلادی کال دسيف الدين ورور علاوالدين چې په تاريخ کې دجهانسوز (نړۍ سوزوونکي) په نامه شهرت لري دغور هېواد څخه يې ډېر ځوانان راټول کړل او پر غزني يې حمله وکړه. دبهرام عسکرېې دغزني د ديوالونو تر سيوري لاندې مات کړل. ښارېې په توپاني شکل ونيو او چورېې کړ. ټول اوسيدونکي يې قتل کړل او ښار ته يې اور وروا چاوه. ليکونکي ډول ډول کيسې نکلوي: وايي چې له شمېر څخه وتلي عسکر پر ښار ورننوتل، اوه شپې اوه ورځې اوريليده او نږدې ۷۰۰۰ کسان له تورو تېر شول او يا په اور کې وسوځېدل. له سلطان محمود غزنوي پرته نورېې دټولو پاچاهانو قبرونه ويجاړ کړل او دپاچاهانو هډوکي يې وسوزول. دعلاوالدين زړه په دې وحشت هم سوړ نه شو، دغزنويانو دويم مشهور ښار د الروخاج ArRukhaj پلازمينه دبُست ښار ته يې مخه کړه او هغه يې هم دړې وړې کړ. بنګلې يې وسوځولې، ديوالونه او برجونه يې ويجاړ کړل. ليکونکي وايي چې داسې ودانۍ ويجاړې شوې چې په نړۍ کې يې ساری نه درلود. څه پيښې نورې را منځته شوې کله چې علاوالدين غزني او بُست وسوځول، آيا

څوک څه پوهیدل ؟ په رښتیا هم چې دالبیروني یادښتونه زموږ ریکارد لا نورهم بډایوي . شنصباني غوریانو رښتیا هم دافغانستان په مرکزي برخه کې لویه امپراتوري جوړه کړه او احتمالاً د روه دقبایلو تاریخ ښایي له بابر څخه څلور پیړی دمخه پیل شوی و .

علاوالدین یو کال وروسته دخپل غرور او تکبر سزا ولیده . دی ډیر مغرور شوی و او سلجوقي سلطان سنجر ته یې له باج ورکولو څخه انکار وکړ او دجګړې په نتیجه کې دهرات په شاوخوا کې مات او بندي شو . دمسلمانانو کورنیو د غچ اخیستلو خصلت مو باید په نظر کې وي . دوه کاله وروسته پر ۱۱۵۳ کال سلطان سنجر پخپله دیوې بلې څپې قرباني شو . داڅپه دغزترکانوو چې له شمال څخه راښکته شول . داوارد ترکمنانو و چې غزنویان او سلجوقیان یې یو په بل پسې ورک کړل او په نتیجه کې دغور شاهزاده ګانو ته لاره سپینه شوه .

مخکې له دې څخه چې غوریان خپل کهول سمبال کړي ، ترکمنان دغزني په شاوخوا ، دکورمې وادۍ او ګردیز کې ځای پر ځای شول او دلسو کلونو په موده کې یې ویجاړ شوی غزني تر کنترول لاندې راووست . دلته یوه نظر یه شته چې راوړتې هغه تائید کړې ده ، هغه داچې کرلاني قبیلې : بنګښ ، توري ، منګل ، مقبل او ځاځي همدارنګه د ننګرهار اوسیدونکې خوګیاني دهمدغو ترکمنو او لادونه دي . په عمومي ډول سره دکلماتو دتشابه په استدلال داتیوري تائیدوي ، لکه توري او توراني کلمې چې فردوسي هم په شاهنامه کې دترکانو وطن او ځمکې ته توران وایي چې لړ ایرانیانو سره یې توپیر وشي . بنابي لاښه استدلال شته چې پورتنۍ کورمه ترکمنو نیولې وه او د ترکې نومونو نښې نښانې لا اوس هم شته ، لکه پیشبولک په ننګرهار کې چې دپنځو چینو مانا لري ښه مثال کیدای شي .

ماته دغه تیوري شکمنه ښکاري . توري او ددوی ګاونډي دنورو کرلاڼي پښتنو په منځنۍ سیمه کې پراته دي . اپریدي ، اورکزي ددوی شمال ختیځ ته او ختهک ، بنګښ ، او وزیر ددوی جنوب او جنوب لویدیځ ته پراته دي . دوی دټولو کرلاڼیو په منځ کې راځي او توري په یوه حاصل خېزه او ارته وادۍ کې پراته دي . حال داچې نورې په هسکو سیمو کې اوسېږي . په خوی او خصلت کې هم ډېر اورکزیو او وزیرو ته ورته دي ، دا به دمنلو وړوي چې ټول کرلاڼي له ترکمنو څخه راشنه کېږي . دا احتمال شته چې توري او منګل په کرلاڼیو ورګډ-ېږي او په اصل کې دوی هم دغرو کرلاڼیو ته منسوب دي خو دوی دروه دسیمې دنورو پښتنو په شان لږ خوځیدلي دي . داچې څوک توري په اصل کې ترکي شجرې ته منسوب نه ګڼي غوره دلیل به یې داوی چې دغلجیو په خلاف ددوی کړه وړه او څېره ترکۍ نښې نښانې نه لري .

دعلاوالدین جهانسوز په ورکیدو ، دغزنویانو او سلجوقیانو په کمزورتیا سره قدرت په غور کې دعلاوالدین پر دوو وریرویاندې څرخېده . دا دوه وروڼه غیاث الدین او معزالدین دي . دواړه بیا د محمد بن سام په نامه هم شهرت لري او همدارنګه دواړو ته دمعزالدین او شهاب الدین په نومونو هم اسشاره شوې او پیژندګلوي یې پیچلې کړې ده . معزالدین په هند کې په ساده لقب محمد غوري سره شهرت لري او زه هم فکر کوم چې دا به اسانه وي چې په همدې نوم ورته خطاب وکړم .

دواړه وروڼه په دې بریالي شول چې پر ۱۱۷۳ میلادي کال غزني ونیسي ، مشر ورور غزني محمد غوري ته جاګیر ورکړ او پخپله په غور کې پاتې شو او په فیروزکوه کې یې پلازمېنه وه . همدا محمد غوري و چې له غزني څخه یې پوځونه واستول او په هند کې یې دمسلمانانو قدرت ټینګ کړ . محمد غوري دلویو اردو ګانو موسس دی چې زیاتره یې له پښتنو او خلجیو Khalaj څخه

جوړ شوي وو. پر ۱۱۷۸ میلادی کال له اباسین څخه تېر شو او ملتان ته نږدې یې د «اوچ Uchh» سیمه خپله کړه. پر ۱۱۸۲ میلادي کال یې یوه اردو «کوزسند» ته ورسوله او ټولې هغه سیمې یې هم ونیولې او دسمندر غاړې ته ورسیده. بیا په خپله غزني ته راستون شو چې د ډهلي او شمالي هندوستان د نیولو لپاره تیاری ونیسي.

محمد غوري پر ۱۱۸۶ میلادي کال د ډهلي له نیولو څخه دمخه د لاهور ښار ونیوه. په وروستیو کې بابر هم همداسې کړي وو. محمد غوري چې لاهور ونیوه هلته یې خسرو د بهرام شاه زوی د غزنویانو وروروستنی پاتې شوی غړی ونیوه او په دې توګه یې مسلمان رقیب له صحنې څخه ویوست او ده ته د هند د فتحې لاره پرانیستل شوه.

پر ۱۱۹۰ کیال دده لومړی برید ناکام شو. د نارین Narain په میدان کې چې کرنال Karnal ته نږدې او له ډهلي څخه ۷۰ میله شمال ته پروت دی د رای پیتورا Raipithora چې په پریتوي راج Prithwi Raj قواو سره مشهور و. خلجیانو او افغانانو ته په پراخ میدان کې سخته ماتې ورکړه. محمد غوري په خپله ټپي شو او د یو ځوان عسکر په مرسته له مرګ څخه وژغورل شو. د دې ماتې د کسات اخیستلو لپاره یې یو کال وروسته بیا ځان برید ته چمتو کړ. د چوهان راجا پریتوي راج سره د کرنال په ډګر کې یو ځل بیا مخامخ شو. سخته جګړه ونښته او دواړو خواو په مېړانه جنګ کاوه، ده اړو خواو سخت تلفات ولیدل او له دې جګړې څخه کیسې جوړې شوې. پریتوي راج وپرځید او له ده سره د هندو ویاړ او غرور هم پر ځمکه ولوید. بیا نو د هند په شمال کې د هندوانو رول ختم شو تر هغه چې په نوولسمه پیړۍ کې د رنجیت سنګهـ په راا وچتیدو سره یو ځل بیا د هندو قدرت ژوندی شو. دا بیخي روښانه وه چې د ټولو فتوحاتو او هندنیولو کریدت د پښتنو عسکرو او

خلجیانو ته ورکړی شوی او ددوی په مېړانه تر سره شوی دی . او دا به هله ښه روښانه شي چې په ډهلي کې د پښتنو د پاچاهۍ په هکله بحث کوو .

محمد غوري تر ۱۲۰۶ میلادي پورې پاچاهي وکړه او د اباسین پر غاړه پخپله خیمه کې ووژل شو . پس له هغې چې ډهلي یې فتح کړ ده په ډیرې جاه طلبۍ سره دخوارزم دقوت د پرځولو تکل وکړ . خوارزم دلر آمو په سیمو کې خیوا ته نږدې دسلجوقیانو په وخت کې جوړ شوی طاقت و . په وروستیو پیړیو کې روسانو ته معلومه شوه چې دخیوا چینې گرد چاپېره په دښتو ، میرو او دآرال سمندرگي له خوا حلقه شوي چې ځمکې یې ډېر سوړ او اوړی یې خورا زیات تود و . ددغه شنډاو بې حاصله ځای شاته دخوارزم میراثي پاچاهۍ وه چې خپله سیمه یې په کانالونو سره آباده کړې وه . خوارزم شاهان دسلجوقیانو یوه پښه وه چې ډېر پوه او عالم خلک وو ، دډېر لوړ ژوندانه خاوندان وو . د محمد غوري په زمانه کې ددوی استازی وروستی موثر پاچا محمد شاه و . دی او دده زوی جلال الدین پربد برخلیک اخته شول او دچنگیزخان له خوا ریزمریز شول . مگر دده قوت دغوریانو په مقابل کې پوره قوت و ، محمد غوري له لښکرو سره وشړل شو او دده له ماتې سره سم په پنجاب کې بغاوت پیل شو او بالاخره هلته په چاړه ووژل شو . له ده ځخه زوی پاتې نه شو . په ډهلي کې دده قدرت ترکي مملوک قطب الدین ایبک ته په میراث ورسیده او په غزني کې بل مملوک ایالدیز قدرت تر لاسه کړ . دقطب الدین ایبک دمریانو پاچاهان یو په بل پسې تر ۱۲۹۰ میلادي پورې په ډهلي کې پاتې شول او په داسې حال کې چې خلجیانو په غزني کې پر ۱۲۱۵ میلادي کال قدرت نیولی و ، ایالدیز ټول تصرفات له غزني ځخه تر اباسین پورې محمد شاه خوارزم ته ورپرې ښودل او محمد شاه خوارزم لس کاله دمخه محمد غوري له کلکې دفاع ځخه وروسته ماتې ته مجبور کړی و .

دې ترکي دوو مملوکو قطب الدین او ایالدیز په تاریخ کې شهرت تر لاسه کړی دی . ددې لپاره نه چې دوی مریان وو او لویه پاچاهي او امپراتوري یې درلوده ، بلکې دبل ځانګړي دلیل په وجه شهرت لري. یویې په دې شهرت لري چې لس میله دډهلي په جنوب کې یې دسرو له ډبرو څخه قطب منار جوړ کړ .او دابل په دې شهرت لري چې نوم یې په ترکي ژبه کې د ( ستوري او میاشتې ) مانا لري او دعثماني امپراتورۍ لپاره دا یو مثال پاتې شو او نن ورځ هم اکثر اسلامي هیوادونه ستوري او میاشت په خپلو بیرغونو کې سمبول لري .

په دې وخت کې د روه هیواد نږدې و چې د مغولو تر تورپانونو لاندې شي او مورږ باید ددې وخت دفعالیتونو پل ووهو ،او همدارنګه دخلج Khalji / Khalaj اعتبار و آزمویو . ځکه چې دمسلمانانو له فتوحاتو سره سم چې په هندوستان کې پر مخ تلل ، دوی هم ورځ په ورځ او چتیدل ، دغوري شهزاده ګانو اصل او نسب هر څه چې وي خو دوی پر ترکي مریانو او خلجي اجیرانو باندې بالکل متکي وو ، ددوی پوځونه ورنه جوړ وو او اداري چارې یې پر مخ بیولې . مورږ ته دا هم څرګندیږي چې هروارله خلج یا خلجي سره دافغانانو نوم جوړه ، وي او دافغان کلمه هغه وخت رواج شوه چې فارسیانو پخواني عربي شکل په دې کلمه بدل کړ .

له پیل څخه د ترکي مریانو ( مملوک ) پاچاهانو او دخلجي او افغانانو تر منځ تورپیر موجود و ، ترکان دسلطان رانیول شوي مریان وو . او دعثماني امپراتورۍ ، ( جان نثاران ) په شان چې دسلطان خاص عسکر وو . دوی هم دجان نثارانو په شان وو او یوازې حاکم ته یې مسوولیت درلود . دتنخا (تنخواه) سوال ددوی دخدمت عمده مسئله نه وه . مګر سره له دې هوښیار پاچا همېشه دوی ته توجه کوله ، تنخواوې یې پر وخت ورکولې او ښه یې

ساتل او په وخت سره به يې ارتقا او ترفيع ورکوله . په دې توگه کله چې محمد غوري مړ شو . قطب الدين ايبک د محمد غوري خاص مريي و . د ډهلي حکومت يې ونيو او د مريي پاچاهي پيل شوه . په قطب الدين پسې نور مريان پاچاهۍ ته ورسيدل او نږدې سل کاله پاچاهۍ يې وکړه . د مملوک شاهانو ډير لوی صفت د دوی وفاداري او جديت و ، ترکانو د دې لپاره شهرت درلود او د دوی کمزورتيا په دې کې وه چې ټولو مملوکيانو يوازې پاچا ته د خپل بادار په سترگه کتل ، او د دود له مخې د پاچا په مقابل کې دوی ټولو مساوي حقوق درلودل . کله چې د پاچا لاس د دوی له سر څخه لرې شو ، د دوی ځانگړې وفاداري هم له منځه ولاړه . که چېرې د دوی له منځه کوم کلک شخصيت مشر توب پر غاړه وانه خلي ، دوی به تيت او پرک شي او يو بل سره به بر خلاف شي او خپل منځ کې به سره ولوېږي . نوي پاچا به هم خپل خاص وفاداران درلودل او ځينې نورو به له کينې او حسد څخه ډکه عقده اخيستله ، اکثر به داسې پېښيدله چې له ويرې به تيت شول او په نتيجه کې به نه يوازې ځان ته خطر ناک و ، بلکې دولت او حکومت ته به يې هم زيات خطرونه متوجه کيدل .

د مقايسې په ډول خلجيان او افغانان چې همېشه مو يو ځای ياد کړي دي تل يې داجيرو جنگياليو په څېر خدمت کړی دی ، دوی له هيڅ يوه سلطان سره ځانگړې اړيکې نه وو ساتلي ، دوی فقط له هغه چا سره وو چې ډېرې پيسې يې ورکولې او يا يې غنيمت ورکاوه . تر هغه چې مادي گټه وه ورسره وو او که نه ؟ هيڅ ، د دوی قبيلوي وفاداري زياته او خپل منځي اړيکې يې ډير ټينگ وو او همدا قبيلوي وفاداری څه ناڅه بيروونکې وه او پاچاهان مجبور وو چې پر دوی باندې اتکا وکړي . په قبيلوی اړيکو کې دوی هميشه خپل ملک ، مشر او کورنۍ ته وفادار وو . نو ځکه د دوی ټولنيز اړيکې او سازماندهي د ترکانو په شان د سلطان په مړينې سره نه ړنگيده ، د دوی قدرت

پراخ بنستـه و او دوی در قیبـانو په نسبت تر ډیرې مودې پورې قـوي پاتې کېدل. داسې ښکاري چې ترکان نسبتاً ښه تنظیم وو او پوه خلک وو او اعتماد وړياندې کېده خو شمیر یې لږو . مگر خلجي او افغانان دشمېر له مخې زیات وو خو ددولت داری، له نظره تنظیم شوي خلک نه وو .

دمحمد غوري له زمانې څخه خلجیانو په هند کې ورځ په ورځ وده کوله او لوړ موقف ته ورسیدل ، دمثال په توگه محمد بختیار دمحمد غوري په وخت کې په غزني کې دعسکرو دراټولولو او څېره کولو مسؤل و . ( دمکلفیت مدیر ) دبختیار وظیفه پخپله ددې گواهي ورکوي چې پوځ ته یې خلجیان راټولول او په دې توگه یې دخلجیانو رول او ارزښت ثابتوه ، داچې په غزني کې پوځ ته خلجیان راټولیدل دهغه وخت دخلجیانو دتمرکز په سبب نننې غلجي هم ځکه په دې سیمه کې ډېر دي . بختیار په غزني کې پر خپل موقف او مقام باندې قانع نه ونو پرېکړه یې وکړه چې ډهلي ته ولاړ شي . ده ته په «اوده» (Oudh) کې جاگیر ورکړ شو او دبهار دهندوانو په مقابل کې یې پوځ جوړ کړ . دده چوراو چپاول ډېر خلجیان راجذب کړل او په نتیجه کې یې دخلجي لښکر په زور بهار او شمـالي بنگال ټول خـپل کـړل . دیوه هندو پایتخت یې په یوازې ځان ونیوه په دې ترتیب چې ځان یې ستر او اخفا کړی و او ښار ته ورننوتلی و . له دې تکتیک څخه درې پېړۍ وروسته شیر شاه سوري هم گټه اخیستې وه . ده خپله پاچاهي په مستقل ډول کوله او دډهلي سلطنت سره یې په نوم اړیکي درلودل ، خو ډېر پام یې کـاوه او ټولې مهـمې دندې او دولتي څـوکـۍ یې خلجیـانو ته ورکـړې وې . ده یوازې درې کـاله (۱۲۰۲-۱۲۰۵) پاچاهي وکړه . بیا دوه نور خلجي مشران په وار سره پاچا هان شول . چې وروستی پاچا یې پر ۱۲۲٦ کال دالتمیش یا ( التـمیش) Iltutmish دقطب الدین د ځای ناستي له خوا وځپل شو . په دې ترتیب

دخلجیانو نیمه مستقل دولت یوازې پنځه ویشت کاله دوام وکړ. په دې کې شک نه شته چې دخلجیانو حکومت په بهار کې دې ته زمینه مساعده کړه چې ډېر خلجیان هلته مهاجرت وکړي. کله چې شېرشاه په بهار کې دمغولو پر ضد قیام پیل کړ له دغو مهاجرو څخه یې زیات شمېر خپل پوځ ته جذب کړل. په دې ډول په بهار او روهیلکنډ کې دخلجیانو او افغانانو دشته والي کلونه له مغولو څخه دمخه تاریخي حقیقت دی.

ددې لپاره چې دخلجیانو کیسه بشپړه کړو یو څه باید پر دغو تشریحاتو غور وکړو: دخلجیانو دوه نورې پاچاهۍ هم په هند کې وګورو، یوه پاچاهي دعلاوالدین خلجي (۱۲۹۶-۱۳۱۶) ده چې ډهلي کې یې سلطنت کاوه او د خلجیانو خورا مشهور پاچا دی، بله پاچاهۍ دخلجي کورنۍ په ملوا (Malwa) کې (۱۴۳۵-۱۵۱۰) ده چې ددوی پایتخت په مندو Mandu کې جهاني شهرت لري او دهغه پایتخت کنډوالې اوس هم دیوې غونډۍ د پاسه خپل عظمت ښیي او دنربادا Narbada وادي یې تر نظر لاندې پرته ده. دخلجیانو کورنۍ چې په پایتخت کې وې خپل تفوق یې پر مملوکیانو باندې لانور اوچت کړ، دمملوک شاهانو وروستی پاچا په ډهلي کې چې څه ناڅه قدرت یې درلود بالبان Balban نومیده. دده اتکا پر افغانانو او خلجیانو وه او جلال الدین خلجي یې عمومي پلټونکی او دګارنیزیون قوماندان مقرر کړ، بالبان پر ۱۲۸۷ کال مړ شو او دده لمسی کیقباد پاچا شو، کیقباد ناروغ او بې کفایته پاچا و، داسې نکل کېږي. «سلطان کیقباد ډهلي ته نږدې په خپل استوګنځي کیلوګاړهي (Kilugarhi) کې دپوځ ... پوځ ... ورولو قوماندان او لوی پلټونکی جلال الدین و. دپوځ دتفتیش لپاره بهارپور ته تللی و. هغه ترکي نژاده نه و او له بل نژاد څخه و. ده پر هغه اعتماد نه کاوه او ترکانو هم دی خپل دوست نه باله،» ۱۲۹۰م کال و.

دلته بیا هم د ترکانو او خلجیانو تر منځ توپیر دا و چې جلال الدین خلجي د بختیار خلجي په شان د پوځ جوړولو ، عسکرو ښهره کولو او راټولو لو مسوولیت په غاړه درلود ، یانې داردو د جوړښت مسوول و . بې له شکه چې ده هم زیات شمېر خلجیان پوځ ته راټول کړي وو . په نتیجه کې بیا هم د خلجیانو اهمیت په هند کې د وسله والو قوتونو په چوکاټ او د مسلمانانو اردوګانو په جوړښت کې پوره څرګند شو . نکل داسې ادامه مومي : « دوست او دښمن ، خپل او پردي ټول د جلال الدین ملاتړ ته راووتل او هغه یې د لوی لښکر په واسطه له بهار پور څخه ترکیلو ګاړهي پورې بدرګه کړ او د آسانو خاص ټولګي یې په بدرګه کې شامل وو ، دی پر تخت کښیناست د ډهلي اکثریت خلک دده مخالف وو ، خود خلکو له ویرې څخه دی هم تر ډیره وخته ښار ته نه ننووت . همدارنګه خلک هم تر ډیرې مودې پورې ډېریکي ، ویلو ته کیلو ګاړهي ته ورننه غلل . دوی له خلجیانو څخه نفرت کاوه او دوی ته یې درانه ، نه کتل ، بیا د کیقباد په مړینې سره د ترکانو امپراتورې پایته ورسیده .

جلال الدین خلجي د فیروزشاه لقب غوره کړ او یوازې شپږ کاله پاچاهي یې وکړه او د خپل وراره علاوالدین خلجي په توطئه دی په قتل ورسیده . علاوالدین خلجي ډېر ظالم پاچا و خو په ټول هند کې ترده غښتلی پاچا په مسلمانانو ، بودایانو ، هندوانو ، موریا او مغولو کې نه تېر شوی دا او نه ترده وروسته راغلی و ، بیا تر هغه وخته چې ټول هند د انګریزانو له خوا و نیول شو . ده اداري او مالیاتي سیستم بنسټ کېښود چې وروسته دا سیستم د شیرشاه سوري او اکبر له خوا تکمیل او عملي شو . ده هم د اکبر په شان غوښتل چې په ټول قلمرو کې یو دین نافذوي او دده له خوا کنترول شي . مګر دی طالعمند و چې خورا لوی عالم یې تر څنګ و او ده ته یې مشوره ورکوله او ډیر باجرئته او پوه سړی و ، وېره او ترس یې نه درلود ، دی په اعلی الملک یادیده ، ده پاچا ته

مشوره ورکوله چې دخلکو پر ادیانو او مذاهبو غرض ونه کړي چې ډیر خطرناک عواقب به رامنځته کړي . علاوالدین خلجي ده ته احترام کاوه او دده مشوره یې منله .

دډهلي دخلجیانو کورنۍ پر ۱۳۲۱ میلادي کال هغه وخت پای ته ورسیده چې دعلاوالدین زوی او ځای نیوونکی مبارک شاه دیوه هندو مسلمان شوي اعتمادي سړي له خوا چې خسرو خان نومیده ووژل شو .

دملو اخلجي کورنۍ تر ۱٤۳۵ میلادي پورې قدرت ته نه وه رسیدلې. او دډهلي خلجي کورنۍ له سقوط څخه نږدې سل کاله وروسته قدرت ته ورسیده. له دوی څخه بې له ځینو ثلیو څخه په ماندو کې بل څه نه دي پاتې شوي . ددوی مشهور شهزاده محمود نومی و چې دخپل پاچا وزیر و ،پاچا ته یې زهر ورکړل او قدرت یې ونیو ، دده سوانح داسې ښیي چې دی د ترکستان خلجی ترک و او په دوی کې د ترکي کلتور نښې معلومیدې ، نودا خلجیان څوک وو ؟

داچې خلجیان څوک دي فکر کوم چې کوم دلایل په مخکینې څپرکي کې مـا وړاندې کړي دي کافی دي . دخلجیانو کړه وړه مووکـتل او دوی اصل سپینو هوبیانو یا یفتلیانو ته رسیږي چې مسلمانو تذکره لیکونکو هغوی ته دهیاتیله یا هیتال خطاب کړی دی . موږ تاسې ته څرگنده شوې ده چې هباتیله دغز ترکانو ډیرغلو نو څخه ډېر ې پیړۍ دمخه دسلیمان دغرو سیمې ته یه منځینو پیړیو کې راغلي وو او دوی د ترکو - ایراني ډېرې لرغونې ختیې له شمال څخه نماینده گي کوي . ما ته داسې معلومیږي چې خلج دغز ترکان نه دي داچې سلجوقیان دي او که ترکمن ؟ هغه وخت غزني ته راغلل چې غزنویان په قدرت کې وو او خلجیانو دمحمود غزنوي په څنگ کې جگړې کولې

دخلج مساویتوب د هیاتیله سره مستند دی او دوی ترکي ختیې ته رسیږي

او داچې څه ډول غزني ته راغلل مخکې ده غې تول جریان بیان شوی دی او حتی په هغه وخت کې د اسلام تر تاثیر لاندې لاهم نه وو راغلي ،

خلجیان Khalaj هماغه د هند خلجیان Khalji دي . په دې کې هیڅ شک نه شته . خلجي یوازې پارسي شوی شکل دی او اصلي شکل الخوارزمي خلج استعمال کړی دی ، حتی راورټي هم په دې قانع دی که څه هم خلج او غلجې یو نه بولي . اساسي ټکی مورږ ته دا دی چې خلجي افغانان دي او که نه ؟ او آیاد افغانستان له لویې قبیلې سره څه اړیکي لري او که نه ؟ دا پيژند- گلوي ده چې راورټي یې نه لري . دراورټي په حواله غلزي په دغه وخت کې یوه کوچنۍ قبیله وه چې تخت سلیمان ته نږدې اوسیدل ، که څه هم اعتراف کوي چې په عام ډول دا نوم غلجي تلفظ کیږي هغه داده چې په پارسي او عربي متن کې پوره معلومات لري او دشجرو په کیسو پسې ځي اما دا نه له پرورې نه بهلوي . دی ټینگار کوي چې غلزي د بي بي متو او شاه حسین غوري او لادونه دي .

دکیمبریج دهند تاریخ The Cambridge History of India دا نظر یه رد کړې ده او تبصره کوي چې په هغه وخت کې د ډهلي خلکو بې له شکه خلجیان د افغانانو خپلوان گڼل او هغوی له ترکانو سره تړلي نه بولي . بلې دا چې که چیرې غلجي مورږ خلجي ونه گڼو نو خلجیان څه شول ؟ مگر زه فکر کوم چې دا مستنده خبره ده .

ننني غلجي قبیله د پښتنو ډیره لویه قبیله ده ، دا نه شي کیدای چې یوه کوچنۍ کورنۍ دې وي او دسلیمان په غرو کې دې پټه وي ، دویم داچې پخپله د قبیلې خلک د نورو پښتنو په شان خپله قبیله غلجي تلفظ کوي .

غلجي او خلجي تقریباً یوه کلمه ده ، غلزایي کلمه د پارسي ژبو یوه جوړه شوې کلمه ده چې احتمالاً د دوی د تهدید لپاره یې استعمالوي چې غلزي یا

غلزوی ( دغلہ زوی پہ مانا ) دوی اطاعت تہ وھڅوي . بل دا چې تر لاسہ شوي معلومات دا پہ ډاگہ کوي چې خلجیان کلہ چې ھند تہ ورسیدل ترکان نہ بلکې افغانان وو . یانې ددوې ختہ چې ھر څہ وي خو دھند پہ تاریخ کې تل د پښتنو پہ نوم پیژندل شوي دي . زہ بالاخرہ دې نتیجې تہ رسیږم چې خلجي او غلجي یو دي او د پښتنو توریالی ملي شاعر خوشال خان یوہ قطعہ لري چې پہ ډھلي کې د جلال الدین خلجي د پاچا کیدو پہ ویاړ یې ویلې دہ او پہ ھند کې د مسلمانو پاچاھانو نظم او ترتیب ښیي :

بیا سلطان جلال الدین پہ سریر کیناست

چې پہ اصل کې غلجی د ولایت و

کہ څہ ھم خوشال خان پہ ١٦٥٠ میلادي کې لیکلي دہ او مخکې لہ دې څخہ چې دا توپیرونہ راووځي ، دہ بې لہ شکہ خلجي او غلجي یو بللي دي .

زہ فکر نہ کوم چې داسې مستند نظریہ رامنځتہ شي چې خلجي دغلجي پخوانی شکل ونہ بولي . زہ پہ لنډیز سرہ دا خبرہ پایتہ رسوم چې خلجي نني غلجي دي ، دا قبیلې د فزیکي علایمو او ځینو دودونو لہ مخې ښایي ترکي ختہ ولري او د خلج اولادونہ وي چې د سپینو ھونیانو یا یفتلیانو یوہ څانگہ دہ چې پہ پنځمہ پېړۍ کې د افغانانو لوړو منطقو تہ راغلي او ځای پر ځای شوي وو . تر پېړیو پېړیو پورې د پښتنو پہ څنگ کې اوسیدل دھغوی ژبہ او دودونہ یې خپل کړل خو سرہ لہ دې ھم څہ توپیر ونہ لانن ورځ شتہ .

د ډھلي تذکرہ لیکونکي لہ حدودو او سرحداتو څخہ بې خبرہ وو او د قبایلو داجیرانو عسکرو چې حتی پاچا ھۍ تہ ورسیدل لہ پس منظر سرہ یې چندان علاقہ نہ درلودہ . دوی یوازې د دربار لہ مداحۍ سرہ مصروف وو او د پاچاھانو صفتونہ یې کول . د سلطان جلال لدین خلجي د ژبې پہ ارتباط څہ معلومات نہ شتہ . چې آیا د دہ ژبہ ترکي وہ او کہ پاړسي یا پښتو وہ ؟ ددوی

داړیکو ښیګنو ، بدګیو په هکله څه معلومات نه شته یوازې دومره ویل شوي چې دوی ترکان نه دي ، او تل له افغانانو سره تړلي ګڼل شوي دي ، له افغانانو سره د دوی اړیکي د نورو امکاناتو پیشنهاد کوي . داسې معلومېږي چې د منځنیو پېړیو مورخینو د خلجي کلمه ټولو افغانانو لکه یوسفزي ، اورکزي ، بنګښو او ځینو نورو ته استعمالوله ، چې د غو ټولو په هند کې مستعمرې درلودې او د خپل اصل نسب خاطرې ورسره دي . تذکره لیکونکو ته دا قبیلوي نومونه معلوم نه وو نو ځکه یې ټول افغانان او خلجیان بلل .

دهند د منځنۍ زمانې د تاریخ د دغې نیمګړ تیا یو بل دلیل هم شته . دهند دفتحې ، قراول همېشه غلجي او نور پښتانه وو . دوی ونه کړای شول چې په خپل وطن کې قوي دولت جوړ کړي . دوی په فتح شوي هېوادو کې قدرت ته ورسیدل او حتی تاج او تخت یې خپل کړل او حکومتونه یې جوړ کړل . دا مستعمرې له شمال غرب څخه په نوي او تازه راتګ سره لا نورې تقویه شوې دي . لودیان ( ١٤٥١-١٥٢٦ ) او سوریان (١٥٣٩-١٥٥٥ ) په خپله غلجي وو او زیات شمېر سرحدي خلک یې راجذب کړل . دا ټول د محمود غزنوي او محمد غوري له فتوحاتو سره پیل شول . ترکان کوچنی اقلیت وو چې خاص موقف یې درلود ، مګر دوی په لومړۍ مرحله کې چې عادي سرتیري وو او بیا حاکمان شول دوی هماغه غلجي او پښتانه وو او په اصل کې د افغانانو پراختیا وه . پر دې باندې ټولو پښتنو ویاړ کړی دی چې د خوشال خان ختک په دې شعر کې یې هم انعکاس کړی دی :

د شېرشاه او د بـــــهلول خبرې اورم
چې په هند کې پښــــتانه وو پاچاهان
شپږ اوه پیړۍ یې هســــې پاچا هي وه
چې په دوی پورې درست خلک وو حیران .

# لسم څپرکی

## شیر شاه سوري

د پښتنو هغو عسکرو چې غنيمت يې کاوه په هند کې يې ډير بريالیتوبونه په برخه شول . مورږ خلجيانو ( ۱۲۹۰-۱۳۲۱ ) ته راورسيدو چې په هند کې وو . اوس موږ نږدې غزني له ياده ووت . پر ۱۲۱۵ ميلادي کال خوارزم شاه غزني ونيوه اوترکي مملوک اياالديزي له تخت څخه وپرځوه ، اياالديز له محمد غوري څخه وروسته په غزني کې حکومت کاوه . خوارزم شاه چې غزني ونيوه خپل زوی جلال الدين يې د دغه نوي ښار ، والي مقرر کړ . لکه څه ډول چې سلجوقيان پر غزني ژر مسلط شول همداسې ژر دوه کاله وروسته ورک شول . خوارزم شاهان هم ديوه لنډ وخت لپاره په قدرت کې وو او ډير ژر له پنځو کالو څخه وروسته د چنگيز په توپان کې وسوځيدل . جلال الدين يوازې

پنځه کاله په غزني کې تیر کړل مګر کله چې له سرحد څخه تیر شو د خلجي یا غلجي یوه بله کورنۍ یې پاچا هۍ ته ورسیدله او همدارنګه د چنګیز د وحشي یرغلونو مخنیوی یې وکړ او له اباسین څخه تیر نه شو .

محمد شاه خوارزم نه یوازې غوریان مات کړل او غزني یې ونیوه ، بلکې بخارا یې هم له یوې چنیایي کورنۍ څخه چې کارا کتیای Karakitai نومیده ونیوله ، په همدې دلیل او ځینو نورو فتوحاتو په نتیجه کې د عزت خاوند شو .

د ځان خلیفه باله او د وروستي سلجوقي پاچا لقب یې ځان ته غوره کړ او ځان یې سکندر کبیر باله . په همدې وخت کې چنګیز خان په منګولیا کې په ۱۲۰۵ میلادي کال قدرت ته ورسید او ټول چین یې د پیکنګ په ګډون ونیوه .

او خپل مشر زوی جوچې Juchi یې د لویدیز سرحد مسوول وټاکه ، دلته په غربي سرحد کې د جوچي او خوارزم د سرحدي قواو تر منځ سختې نښتې وشوې . محمد شاه چې تکړه مسلمان او ځان یې قهرمان باله غوښتل چې ټول چین ونیسي او دلته یې د سرحدي نښتو په لړۍ کې چینایان په اندیښنه کې کړل . چنګیز خان هیئتونه ورولیږل او د خوارزم له خواهم هیئتونه ورواستول شول .

سفیرانو د دواړو خواو تر منځ تګ راتګ وکړ . با لاخره چنګیز خان یو کاروان ورولیږه مګر د محمد شاه خوارزم په امر سره د اوترار Otrar سرحدي کلي ته نږدې په قتل ورسیده .

په نتیجه کې چنګیز په قهر شو او پر ۱۲۱۹ کال یې پر خوارزم یرغل وکړ. جوچې ته یې امر وکړ چې اوترار تالان کړي او پخپله بخارا او سمرقند ته ولاړ . هلته یې هر څه وسول او ټول یې ووژل . محمد شاه د کسپین په سمندرګي کې یوې جزیرې ته ولاړ او هلته مړ شو . جلال الدین د ده زوی په میړانه جنګیده او بالاخره خپل جاګیر غزني ته په شا شو او چنګیز خان هم د ده پر پله ورپسې روان و . جلال الدین په شاتګ ته مجبور شو او احتمالاً د توچي

له لارې په غرونو او غونډيو کې کلاباغ ته نږدې داباسين غاړې ته ورسيد .
دلته ده سخت مقاومت وکړ او دميړانې او تورې وروستۍ جنګ يې ترپايه وکړ
او بالاخره مجبور شو چې اباسين ته ځان وغورځوي او دمغولو ترسترګو
لاندې يې د اباسين پورې غاړې ته په لامبو ځان ويوست او مغولو دده دغه
جسارت او زړه ورتوب ته دحيرانوونکې ورتيا په سترګه وکتل . جلال الدين
دچنګيزخان پرضد مقاومت ته دوام ورکړ او احتمالاً همدادده مقاومت ددې
سبب شو چې چنګيز خان دهند ډنيولو څخه منصرف شو . مګر چنګيز يو ځل
بيا غزني ويجاړ کړ او کنډواله يې ورڅخه جوړه کړه . جلال الدين په هند کې
دالتتمش مريي پاچا سره چې په ډهلي کې له قطب الدين څخه وروسته پاچا
شوی وڅو بې نتيجې جګړې وکړې او بالاخره د سند له لارې له هند څخه ووت .
داپېښې د ۱۲۲۱ - ۱۲۲۲ کالو ترمنځ موده کې وشوې .

کله چې جلال الدين له هند څخه ووت ، دخلجيانو زيات شمېر پوځ يې
شاته پرېښود . ددوی مشر مالک خان نومېده او په بُست کې يې زياتې
ځمکې نيولې وې . پر ۱۲۱۵ کال دغزني په نيولو کې د خوارزم په اردو کې
ورګډ شوي وو ، دغو خلکو په دې کې خپله ګټه ليدله چې دډهلي له پاچاهانو
سره يو ځای شي او دابه له دې څخه ډېره ښه وي چې په مرکزي اسيا کې
دچنګيزخان مريان شي ، دوی په بر سند کې هغه وخت پاتې شول چې جلال
الدين له هند څخه ووت او بيا يې ډهلي ته مخه کړه او التتمش ته ورغلل .
بيايې د اوچ Uchh او ملتان په نيولو کې دالتتمش سره ډېره مېړانه وکړه .
مالک خان په خپله په دغو کوم يوه جنګ کې له منځه ولاړ . مګر دلايل ښيي
چې دډهلي خلجي کورنۍ له دغه ګروپ څخه را اوچته شوه .

چنګيزخان چې له کابل او غزني څخه تېر شو په ټوله سيمه کې يې وحشت
او بې امني پرېښودله ، غزني په ۷۰ کالو کې دوه واره وسوځيده او يوه ډېره

دبلې د پاسه پاتې نه شوه . د محمود له وخته بیا غزنی د تمدن او فرهنگ مرکز و. د سرحد خلکو لیدل چې پاچا ، دهغه دربار ، کاروانونه او تجارت هر څه له منځه تللي دي . پر ۱۲۲۲ کـال چنگیـز په خپله ولاړ چې د خـپلې لویې امپراتورۍ د نورو سیمو جنجالونه حل کړي او پر ۱۲۲۷ کال مړ شو. د مړینې په حـال کـې یې ټول ولایتـونه خـپل دویم زوی چغـتـای Chaghatai تـه ورپریښـودل . یوازې داړې یې کـولې او یووار پر ۱۲٤۰ کـال تر لاهور پورې ورسید او لاهوریې ویجاړ کړ . مگر پر ته له داړو چغتای او د ده ځای ناستو دهند د غربي له کبله ونه غوښتل چې یا یې ونیسي او یا یې اداره کړي . یوازې یو شمیر منگولیایان د غور په سیمه کې پاتې شول او سیمه یې مستعمره کړه . دهغو پاتې شوني نننې هزاره دي . دا نوم د پاړسي دهزار له کلمې څخه چې د زرمانا لري او د مغولي کلمې مینگ Ming ( زر ) او ترکي کلمې بین Bin ( زر ) څخه راا خیستل شوی دی . دوی له مشابه ایراني خلکو سره گډ شوي دي.

حتی نن ورځ هم ځینې گروپونه شتـه چې په منگولیـایي ژبه خبرې کوي او ځانونه د لرغونې پاړسۍ سره تړلې بولي . دروه هیواد د پښتنو کور د منگولو- یانو له حلول څخه پاتې شو او هیڅ دلیل هم نه شته چې په دغه زمانه کې دې ددوی سر تیري دهند په آزادو سلطنتونو کې له خدمت کولو څخه لږ شوي وي. یانې پښتانه جنگیالي هلته پر نظامي خدمتونو بوخت وو.

په دې سیمه کې چنگیزیانو یوازې په هرات کې د کارتانو په واسطه منظمه اداره جوړه کـړې وه . دهرات کـارتـیـان Karts اصـلاً د غور تاجک وو . هرات دروه دهیواد لرې غرب ته پروت و ، کارتـیـان د مغـولو مقرر شوي مـاموران وو چې په ۱۲٤۵ کـې استـخدام شـوي وو. کـارتـیـان د افـغـانانو وطن ته یوازې تر کندهار پورې را نږدې شول چې پر ۱۲۸۱ کال یې کندهار ونیو . دا لومړنی ځل دی چې د کندهار نوم په تاریخ کې اخیستل کیږي . د ښار د بنسټ ایښودلو

او ودانولو تاریخ روښانه نه دی خو دومره ویلای شو چې علاوالدین جهانسوز کله چې بُست وسوځوه ،سل کاله وروسته د کندهار مخ په تودیدو شو او د ګندهارا څخه ډېر و خلکو دلته مهاجرت وکړ. کله چې د یوسفزو په هکله خبرې پیل کوو نو په دې ارتباط به هم څه ناڅه وویل شي . په دې زمانه کې دابدالیانو او نورو قبیلو په هکله چې وروسته دشهرت خاوندان شول هیڅ شی نه و . د کابل په هکله ډېرې لږې خبرې اوریدل کیدلې او همدارنګه د پېښور په هکله هم لږ خبرې اوریدل کیدې . د کارت کورنۍ تر ۱۳۷۹ میلادي پورې په هرات کې حکومت کاوه او د مغولو ترنوې څپې لاندې شول . له مرکزي اسیا څخه د ګوډ تیمور تر مشرۍ لاندې د مغولو نوی بریدونه پیل شول . په ربښتیا سره ویل کیدای شي چې د ۱۲۲۰ میلادي د چنګیز له وخت څخه بیا تر ۱۳۶۹ د تیمور تر وخته پورې حتی لا څه وروسته زمانې پورې د پښتنو تاریخ په هند کې و او نه د دوی په خپل کور کې . په دا دومره وخت کې د دوی په خپل کور کې د دوی یادونه یوازې د مراکشي سیاح ابن بطوطه په قلم شوې ده . هغه پر ۱۳۳۳ میلادي کال غزني څخه تېرېده او د بنګښو له لارې له اباسین څخه هند ته پورې ووت او ډهلي ته ولاړ .

دی لیکي چې د غزني او کورمې تر منځ له تنګې درې څخه تیریده ، یو ې، ډلې چې ستړې او ستومانه وو د دوی لاره ونیوله او دا افغانان وو . د غزني په هکله داسې لیکي : « د جنګیالي محمود د سبکتګین دزوی پلازمېنه او د خپل وخت لوی ښارو . خواوس زیاتره ویجاړ شوی او په کنډوالو بدل شوی دی . »

ګوډ تیمور پر ۱۳۳۵ میلادي کال زیږدلی واو پر ۱۳۶۹ میلادي کال یې له چغتای څخه قدرت ونیوه . ماورای امو (Transoxiana) یې ځینې ونیوله . بابر د برلاس Barlas له قبیلې څخه و چې په ترکي منګولیانو

(Turcized Mongols) پورې تړلې قبيلې وه . بابر د سمرقند جنوب ته په کيش Kesh کې اوسيده . د قدرت په نيولو سره يې له سمرقند څخه پايتخت جوړ کړ او خورا ښايسته ودانۍ يې په کې جوړې کړې چې نن ورځ هم دده په نامه يادېږي . دی د بابر او د هندي مغوليانو د کورنۍ موسس دی . که څه هم اصلاً ترکان دي خو په چغتايانو او مغوليانو مشهور شوي دي ځکه چې په هغه سيمه کې د چنگيز د کورنۍ قدرت ده ته ورسيد . تيمور د چنګيز د کورنۍ ځای ناستي له ۱۳۷۹ څخه تر ۱۳۸۳ پورې هرات ، کندهار او سيستان ونيول . ده هغه څه وکړل چې چنګيز لا هم نه وو کړي . پښتانه يې په غرونو و رغونو کې هم پرې نه ښودل . پر ۱۳۹۸ کال کله چې ده د هند د نيولو اراده وکړه په لوديالو او په شيرانيو چې نوم يې د لومړي ځل لپاره په تاريخ کې اخيستل کيږي غېږو کړ چې قوتونه ورکړي . تيمور هند ته ننووت او تر ګنګا پورې پر مخ ولاړ او هاردوار Hardwar يې ونيوه او د تغلق ترکي کورنۍ يې ډېرې ورې کړه . تغلق له خلجيانو څخه ډهلي نيولې و . تيمور دلته خپل وايسرا مقرر کړ چې خضر نوميده او په قوم سيد و ، د دوی اداره ډېره کمزورې وه او پر ۱۴۵۱ ميلادي کال د ډهلي پايتخت بيا يوې بلې افغانی کورنۍ ونيوه. دا کورنۍ لودي کورنۍ ده چې په ختنه غلجي د ی .

دلودي سلطنت په ډهلي کې د صوبه سرحد پښتنو لپاره دومره د علاقې وړ موضوع نه وه ، دلوديانو درې پاچاهان بهلول ، سکندر او ابراهيم وو چې ډېر زيات شهرت يې نه درلود او له دوی څخه دلودي کورنۍ په جوړښت کې دشېرشاه سوري رول ډېر زيات و . د دوی عمده يادګار د دوی قبرونه دي چې له مربع شکله ډېر و څخه جوړ شوي دي چې درې ميله د ډهلي په جنوب کې پراته دي . لوديانو پنځه او يا کاله ( ۱۴۵۱-۱۵۲٦ ) پاچاهي کړې ده . د دوی وروستی پاچا ابراهيم لودي دی چې په پاني پت کې د بابر له خوا په

جگړه کې ووژل شو ، دلودیانو قدرت له اباسین څخه را وانه وښت او احتمالاً تر دوآبې Doab پورې چې د اباسین او جهلم د دریابونو ترمنځ ده رسیدلی و . داباسین غرب ته قدرت د تیموري شاهزاده ګانو په لاس کې و . داچې په ډهلي کې د غلجي پښتنو یوه کورنۍ د پنځلسمې پېړۍ په پای او د شپاړسمې پېړۍ په پیل کې قدرت ته رسیدلې وه ، داسې تخمین کیږي چې د سرحدي پښتنو په پرمختیا او پراختیا به یې هم څه رنا اچولې وي . مګر هیڅ ثبت شوی سند نه شته . یوازې یوه استثنایي خبر ده شته.

هغه داده چې: د سرحد قبایلو ته فرمان ابلاغ شوی و چې په ډهلي کې خدمت ته چمتو شي او په دې توګه یې سر حدي پښتانه تشویق کړي وو . دا فرمان سلطان بهلول لودي خپور کړی و . په فرمان کې راغلي وو چې هندوستان په ښه وجه هغه وخت ساتل کیدای شي چې د یوه قبیلوي ملت له خوا اداره شي . هره افغاني قبیله دې خپل سړي راولي او په هند کې دې ځمکه ونیسي او میشته دې شي . له ماحول څخه دې خپل ژوند تامین کړي او د محلي حالاتو په سمولو سره دې له مرکزي حکومت سره مرسته وکړي او د قوي دښمنانو په مقابل کې دې ودریږي .

دا فرمان د شېرشاه په تاریخ کې راغلی دی چې عباس شارواني د اکبر په زمانه کې لیکلی دی ، هغو قبیلو چې فرمان ته مثبت ځواب ورکړی و هم یې لست په دې تاریخ کې راغلی دی ، له توقع سره سم څرنګه چې لودیان غلجي دي ، زیاتره قبیلو چې مثبت ځواب ورکړی دی هم د غلجي ټبر ته منسوبې کورنۍ دي لکه لودي ، لوهاني ، نیازي ، مروت او پښتني . مګر ویل شوي دي چې سړبن او کرلاڼي ته منسوبې کورنۍ هم ذکر شوې دي خو نومونه یې څرګند نه دي . مګر په هند کې د پښتنو مستعمرو څخه داسې معلومیږي چې له سړبنو څخه به مندړ یوسفزي او له کرلانیو څخه به بنګښ او اورکزي وي .

دقبیلوي شخصیتونو په جمله کې یو هم ابراهیم سور دشېر شاه سوري نیکه و.

په دې دوره کې داباسین شاوخوا منطقه زیاتره وخت دتیمور ددوو کورنیو تر منځ اداره کېدله. تر ټولو غښتلی میرزا ابوسعید دبابر نیکه و چې سمرقند او شاوخوا کابل او غزنی ددې کورنۍ په تصرف کې وو. بل یې میرزا حسین بایقرا و چې هرات یې په لاس کې واو وروسته یې کندهار هم تصرف کړ. ابو-سعید کابل او غزنی خپل زوی الغ بیگ دبابر تره ته ورکړل، او هغه تر خپلې مړینې پورې (۱۵۰۱) پورې وساتل، کله چې بابر له سمرقند څخه وشړل شو، زمینه یې دځان په گټه چمتو وبلله او پر کابل یې مارش وکړ، سربیره پردې دتیموري شجرې پر اساس یې دډهلي تخت هم خپل میراث باله او لودي پښتانه یې غاصبان گڼل.

دلودیانو دسقوط (۱۵۲۶) او شیرشاه دقدرت نیولو (۱۵۳۹) تر منځ دیارلس کاله موده کې بابر او همایون مداخله کوله. لومړی څلور کاله دبابر دډهلي له فتحې څخه وروسته دبابر دحکومت دوره ده او نهه کاله د همایون دوره ده. چې همایون داکالونه په ناآرامۍ سره تېر کړل او هڅه یې کوله چې دمغولیانو سلطنت قایم کړي خو بریالی نه شو. دلودیانو له زمانې را په دې خوا دپښتنو مشرانو او جنگیالو په مقابل کې یې تاب نه درلود. دا باید ومنو چې پښتنو بابر او همایون یوازې داړه ماران شمېرل او پښتانه په هند کې د دریو پېړیو را په دې خوا میشته شوي وو. نږدې یوه پېړۍ یې په مجموعي توگه پر هند حکومت کړی و. کله چې شېرشاه داتاج او تخت ونیول نو خلکو ته داعادلانه او پر ځای حق ښکاریده ځکه چې دپښتنو دپېړیو پېړیو میراث و. دا به بالکل پر ځای خبره وي چې بابر او همایون غاصبان وشمېرو. دمغولو اصلي پاچاهي په حقیقت کې له اکبر څخه پیل کېږي. زما په نظر بابر او

مغول به پر ځای پرېږدو او دسوریانو دوره چې د پښتنو د تاریخ ځلانده دوره ده وځیرو.

شیرشاه سوري او دده ځای ناستي هغه پښتانه پاچاهان دي چې په هند کې ددوی پاچاهي داسلامي توک وروستی ځپرکی ګڼل کیږي. دلته یو پارادا کس شته، دبابر په راتلو سره د پښتنو پر کورنۍ باندې د منطقې په لحاظ رڼا ولویده او دا به وګورو. له بلې خوا سره له دې چې لودیان او سوریان د پښتنو پاچاهان وو. خو ددوی دقلمرو پر شمالي غرونو باندې همیشه تورې وریځې ګرځیدې او کله ناکله به رڼا ولیدل شوه. ددې دلیل دا وچې بابر غوښتل له مرکزي اسیا څخه هند ته لار پیدا کړي او ددې مقصد لپاره دی مجبورو چې د پښتنو په قبیلو کې ددوی په خاوره کې قوي مورچه ولري.

شیر شاه سوري دخپل اعظمي طاقت په وخت کې دشمال خواته یوازې دمرګلې غاښي پورې (Marghalla pass) څو میله دراولپینډۍ آخوا تسلط درلود. دجنوب خواته دده پاچاهي دنیازیو په سیمه کې تر کالا باغ Kallabagh پورې وه. نورو خواو ته دده سرحد دجهلم دریاب او دروهتاس Rohtas کلا، لس میله ددریا شمال ته دده سرحدي پوسته وه.

شیر شاه یوازې شپږ کاله پاچاهي وکړه خو سره له دې چې دپاچاهي دوره یې کمه وه ډیر هوښیار او دښه فکر خاوند پاچا و او په تاریخ کې تر احمد شاه بابا هم دده کار نامې ډیرې او دقدر وړ دي. احمد شاه بابا دوه سوه کاله وروسته تر ده په افغانستان کې د دراني سلطنت بنسټ کېښود. دا چې شیرشاه سوري له خپل کور او وطن څخه. باندې شهرت وموند او دخپلو نیکه ګانو ډېهواد څخه دباندې یې پاچاهي جوړه کړه، یوه شیبه ځنډ کوو او دی تر ځېړنې لاندې نیسو.

دشیر شاه اصلي نوم فرید دی، دده نیکه ابراهیم، ددوی دکورنۍ لومړی

غړی دی چې هند ته تللي و او د کيپلينګ ( Kipling ) د محبوب علي په شان او د نورو غلجيو په شان چې له ده ترمخه وو ، د کوړنۍ د بخت لپاره ډېره کينبوده او د غزني او هندوستان تر منځ يې داسانو تجارت کاوه . د شېرشاه سوري پلار حسن د سکندر لودي په پوځي خدمت کې ځان شامل کړ او د بهار Bihar په ساسرام Sahsaram کې جاګير ورکړ شو . دا ځمکه دوی ته اشناوه ځکه چې د خلجيانو بختيار د محمد غوري په زمانه کې ذرې سوه کاله د مخه دلته ميشته شوی و . فريد دلته رالوی شو : دده دځوندانه کيسه داسې ده چې يوه ورځ يې په ګوښي ځان زمری يا پړانګ راوغورځاوه او مړ يې کړ . زيات شهرت يې وموند او ده ته د شيرخان لقب ورکړ شو . که څه هم له پلار سره يې د مېړنيو ورونو ذلحاظ له کبله شخړې کولې خو پلار د جاګير او کورنی مسوولیت دده پر غاړه واچوه او پلار يې د سکندر لودي په پوځ کې پر خدمت مصروف و . مؤرخين د ځوان خان انرژي ، بريالیتوب او زحمت کشي د قدر وړ بولي . د ځمکو د اصلاحاتو تجربه يې ډېره شوه او د مالياتي سيستم را منځته کېدل دده مفکوره وه چې وروسته په شمالي هند کې عملي هم شوه . د شېرشاه خواخوږي او مينه وال د ځمکې اصلاحات او د مالياتو سيستم دده د کار پرنسيبونه ګڼي . د جلال الدين اکبر د مالياتو وزير تودار مال Todar Mal دده له پرنسيبونو څخه کار واخيست . زما په نظر ( مؤلف ) دا مبالغه ده . د شېر شاه سوري شپږ کاله موده په جګړو او شخړو کې تېره شوې ده او اصلاحاتو ته يې وخت نه درلود او د خپل سلطنت کنترول هم ورته مشکل و . دابوالفضل په آئين اکبري Ain-i-Akbari کې پر دې اساساتو ډېر بحث شوی دی ، خو حقيقت دادی چې د دې اساساتو بنسټ د علاوالدين خلجي په زمانه کې ايښودل شوی دی . په دې کې هيڅ شک نه شته چې شېرشاه سوري دا پخه ژۍ تېره کړه او د اصلاحاتو په لار کې يې عملي قدمونه اوچت کړي دي ،

دهمدغو عملي هڅو په نتيجه کې دقدر وړ بلل کيږي او پښتنو ته يې ديادولو وړ خدمتونه کړي دي، کله چې په ساسرام کې ده دجاګير کنترول په لاس کې ونيوه خپلو بزګرانو او کارګرانو ته يې بيانيه ورکړه او دخپل کاراوبار ميتودونه يې بيان کړل :

« زما پلار ښتاسو دڅار وسمون زما پر غاړه ايښي دی . دا زما دنده ده چې ټوله ممکنه توجه خلکو، دکرنې اساساتو او بالفعل کروندې او دبزګرانو ښيګڼو او روغتيا ته واړوم چې ټول له سولې او آرامۍ څخه خوندواخلو . زما دوخت خاصه به داوي چې دظالم لاس دکمزوري له ستوني څخه لنډکړم . دتيرو کارو په هکله به فکر وکړم او ورځينې تير به شم خو له دې وروسته به دهېڅاله جرم څخه تېر نه شم او چا ته به عفو ونه کړم » .

شېرخان بيا دمالياتو ټولوونکي او کروندګر په جلاشکل راوغوښتل او خبرې يې ورته وکړې او دماليې ټولونکو او دځمکې دسروې مسئولانو ته يې داسې وويل : « دځمکې ښېګڼه بالکل دبزګرانو په ښېګڼې پورې تړلې ده . پر بزګرانو باندې غير عادلانه اضافي بار اچول دملک بربادي ده . » ده زياته کړه چې : « شخصاً به پخپله هر کلي ته ولاړ شم، له ماليې ټولوونکي او بزګر څخه به مخ په مخ پوښتنه وکړم او دخپلو اوامرو دذرې ذرې تطبيق معلومات به واخلم . » ده وويل : « تر ټولو غوره ماليه ټولوونکی هغه څوک دی چې دقيقه محاسبه وکړي او مصارف بايد تر عوايدو لوړ نه وي . که هرچا يو غيران هم له چاڅخه زيات اخيستی و، بيا به دکلي مشرته سخته سزا ورکړای شي . »

دشېرشاه سوري له خبرو څخه معلوميږي چې تردې وخته پورې ددهقان برخه معلومه نه وه . داسې ښکاري چې ده دآس له پاسه دحاکميت خبرې کولې اوديوه مسلکي اداره چي حوصله يې نه درلوده، مګر پر دې ښه پوهيده چې له ټګانو سره څه وکړي ؟ بې له کومې دار او يا تطميع څخه مستقيماً لډير زره

ورتګ سره يې حساب تصفيه کاوه . دخپلو مشاورانو دتوصيې خلاف اويابې
له دې چې له پلار څخه مرسته وغواړي د ډېرو زړه وروتګانو او ظالمانو پر کلا-
ګانو يې په ګوښې ځان ير غل کاوه . داسې ويل کيږي چې باغيان به چې دده
دمهارت او جسارت شاهدان وو ډير ژر وارخطا شول په شرمندګۍ او خجالت
سره به پښو ته ورغورځيدل .مګر فريد په دې پوهيده چې دادهندوانو عادت
دی ، هندوان لومړی دخپل آمراو حاکم په مقابل کې بغاوت کوي که وپوهيدل
چې برى يې په برخه دی نو بيا اطاعت نه کوي او ماليه نه ورکوي . که چېرې
آمر او حاکم پر دوی باندې غالب او زړه ورو ، بيانو عذرونه کوي ، ننواتې
کوي او په پښو کې رغړې او ماليه ورکوي ، مګر بيا هم مناسب فرصت ته
سترګې په لاره وي چې خپل ناوړه پلانونه عملي کړي . شېرشاه له پ ل څخه
دوی ته جدي هدايتونه ورکړي وو خو سره له دې هم همېشه به بريالى نه و او
دډوی په اطاعت کې به هم صداقت نه و .

اصلاحي سزاګانې پيل شوې او په نتيجه کې هندوانو خپل درس زده کړ .
بزګرانو دخپل کور او کلي دساتنې لپاره او له سزا څخه دمخنيوي په مقصد
ښه کار شروع کړ او په ارادې سره يې زيار ايسته . کله چې حسن خان راغی
چې خپلې ځمکې او جاګير وپلټي . هر څه يې په وده کې وليدل ، حتی شاړې
ځمکې آبادې شوې وې ، زړه يې ډير ښه شو .

پښتانه اداره چيان اوس هم دشېرشاه پر ميتودونو وياړي . ترټولو دقدر
وړ ټکی دادی چې شېرشاه بالفعل دجنجال ځای ته ورتلو او په خپلو سترګو به
يې کاته او بيا به يې پرېکړه کوله . کله چې به ده امر صادر کړ دهغه اجرا او
تطبيق يې غوښته او هغه يې تعقيباوه ، اګر چې دلته ددې ځای نه شته چې
دده پراداري فعاليتونو او جدي دقت باندې خبرې وکړو . داخرګنده ده چې
دبرياليتوب راز تر ډېره حده پورې په صلاحيت پورې تړلی دی . په آسيايي

هېوادونو کې د آمر نظارت نن ورځ هم دبریالیتوب دلیل ګڼي . مګر شیرشاه سوري ته نظارت ،کنترول ، لیدنه ، وارسي او پوښتنه ، او په جدیت سره کار کول بیخي دویم طبیعت ګرځیدلی و . دی همیشه دهر کار په سر حاضر و او هېڅکله یې بې نه وهلې

یو وخت ما له خپل وزیر اعلی ډاکټر خان صاحب څخه پوښتنه وکړه : « ډاکټر صاحب ! راته ووایه چې دهند دنیمې قارې په تاریخ کې ستا قهرمان څوک دی ؟ او ما له ځان سره فکر کاوه چې دی به هرو مرو اکبر وښیي ، ځکه دده حوصلهٔ مندي ذټولو قومونو سره یوشان وه . دده ځواب و : « شیرشاه » ! اوولې ؟ ده زیاته کړه چې شېرشاه یو رښتینې پښتون و ، دی همېشه سملاسي اصلي ټکي ته راتلو ، آخوا دیخوا یې ځان نه غلطاوه . همېشه پخپله دجنجال ځای ته تلو او بیا یې قضاوت کاوه او دهغې مطابق یې عمل کاوه . » نو کله چې داقدام او عمل خبره به وشوه زما ملګري ډاکټر صاحب همیشه دشیرشاه سوري پر پله پښه ایښودله .

کله چې بابر ډهلي ونیو . شېرخان په هم دپاچالیدو ته موقع تر لاسه کوله ، یوه ورځ شېرخان هم دډېر و مېلمنو په ډله کې لویې میلمستیا ته رابلل شوی و . دې میلمستیا کې ډیر ازبکي خوراکونه تیار شوي او مېلمنو ته وړاندې شوي وو . کوم خوراک چې ده ته وړاندی شوی و هم ازبکې خوراک و چې دی یې دخوړلو په طریقه نا بلده و . له خوړلو څخه شرمنده شو و قارورغی . خپله پیشقبضه یې راویسته او دهغو په ټوټه کولو یې پیل وکړ . غوښه او خوراک یې ټوټې ټوټې کړل او بیا یې دلویې قاشغې په واسطه دهغو په خوړلو پیل وکړ . بابر ده ته فکر شو او دشېرخان دډوډۍ په خوراک حیران شو . بابر خپل وزیر ته اشاره وکړه چې ډېر پښتانه خانان زما تابع شول او زموږ درواج او کلتور مطابق عمل کوي خو داځوان ډېر بې پروا او خطرناک معلومېږي او

حتی خپلې کورنۍ ته هم نه ګوري . بابر یوه شېبه وروسته له ظرافت څخه ووت او وزیر ته یې هدایت وکړ چې دا ځوان باید ونیول شي ، خطرناک دی . وزیر ورته وویل چې دده کورنۍ دومره قوت نه لري چې خطرناک دې وبلل شي . داهېڅ شی نه دی . یوازې له خوراکو سره نابلد دی او ددربار په کلتور نه پوهیږي ، بابر بلې خوا ته مخ واړاوه ، شېرخان دبابر پر پلټونکي نظر بائندې شکي شو . دوزیر سره دبابر پوسپوسک او شېر خان ته ځیر ځیر کتل پر ده بنه ونه لګېدل ، شیرخان ته هم قار ورغی او بې له خدای په امانۍ څخه ووت او ساسرام ته ولاړ . وروسته ، یو وخت ده وویل چې په دربار کې ده همېشه دغاصبانو مغولو کړو وړو ته کتل او ده ویل چې له هندوستان څخه ، دمغولو شړل ډیر اسان کار دی .

ده دا کارلس کاله وروسته تر سره کړ . ده له ډول ډول جګړه ییزو میتودونو څخه کار واخیست . تر ټولو مهمه داوه چې دی دکلکې ارادې خاوند و او په ډېرو چارو کې یې ساری نه درلود او رنجیت سنګه دده دملت دښمن چې له ده وروسته پېړۍ کې قدرت ته ورسید څه ناڅه مشابه صفتونه درلودل . په هرځای کې یې دا هڅه وه چې افغانان او پښتانه دنوي رژیم په مقابل کې سره یو موټی کړي او ډېرې هڅې یې وکړې چې پښتانه په خپل پوځ کې ځای پر ځای کړي . هغه لودیان چې له پخوا څخه پاتې وو ، ده دیوه لودي په نوم له دوی سره خبرې کولې او په عمومي توګه یې افغانانو او پښتنو ته دپښتنونولۍ ننګ او غیرت خبرې کولې . په ننګ کې یې شاته کېدل همېشه غندل او دابراهیم لودي مړینه په پانی پت کې ، ده همیشه یادوله او دهغه دنوم ګټلو ته یې پښتانه هڅول . نوي ځوانانو ته یې دغیرت ، میړانې ، ماجرا جویۍ او غنیمت او مادي ګټو خبرې کولې ، دخپل پوځ دجوړولو لپاره یې بډایان تر فشار لاندې نیول او مادي مصارف یې ورڅخه پوره کول .

دده دستراتیژۍ هدف دا و چې ځوانان وخوځوي او پښتني وفاداري ژوندۍ وساتي ، په جغرافیوي لحاظ ده هڅه کوله چې نظامي عملیات دبهای بهار ایالت په شاو خوا وخرخوي ځکه چې اراضي ده ته ښه معلومه وه . دهمدې مقصد لپاره دبهار له هندو گورنر څخه ده دروهتاس دکلا دنیولو هڅه کوله او په ضمن کې هرڅه چې یې لاس ته راوستلی شول په هندو گورنر یې صرفه نه کوله ، دا «روهتاس کلا » باید له هغې بلې کلا سره گډه نه شي چې دشیرشاه په امر سره وروسته په شمال کې جوړه شوه ، او ده دخوند لپاره هغه نوی کلاهم دروهتاس په نامه یاده کړه . دده ترمخه دبختیار خلجي جگړې او تکتیکو نه په بهار کې دده ښه په یاد وو اودبهار دروهتاس کلایې هم په خاص تکتیک سره ونیوله . ده دخپلو څو تکړه ملگرو په مرستــه دا کــار تر ســره کــړ . دده ملگري په بورقعو ( چادریو ) کې دکلاخواته ورغلل او ټول محافظین یې په باصقین شکل سره ونیول ، راجه یې وواژه او دخپلو راتلونکو عملیاتو لپاره یې اډه پیدا کړه . پر ۱۵۳۹ کال شیرشاه سوري له ډېرو مانورو وروسته همایون ته په دوو جگړو کې قطعـۍ ماتې ورکړه . لومړۍ جگړه په چاوسا Chausa کې وه دگنگا پر غاړه له بنارس څخه لاندې دجگړې له ځای څخه ددریا پر غاړه ډیره پورته پیښه شوه . همایون لاهور ته په شاشوچې دخپل وروركامران سره یو ځای شي مگر ناکام شو ، کامران غزني او کابل په خپل تصرف کې درلودل .همایون دسند اوکندهار له لارې پارس ته ووت او همایون شپاړس کاله دباندې پاتې شو .

دهندي جگړو تکتیک او دجگړو جریان باید مـوږ ونه ځنډوي او پر هغې بحث ونه کـړو . مگر د چاوسا Chausa جگړه دافغان جنگیالي په گټه عجیبه حوادث درلودل . همایون لا خپل اودس نه وتازه کړی چې شیرخان ورباندې یرغل وکړ او دده عسکریې خواره واره کړل . تر هغې وروسته چې

حمام یې خلاص کړ خپل باډیګاردان یې راټول کړل او په جګړه ورګډ شو . خو ماتې یې وخوړه او فکریې وکړ چې ځان بچ کړي دا به ډیره غوره خبره وي . خپله خاصه مېرمن یې هم له ځان سره وژغورله او څه غم یې کم شو مګر د ټول حرم سرای ژغورل ورته ناممکن وو . ده خپل مصاحب له خاصې ملکې سره موظف کړ چې محفوظ ځای ته یې وباسي . کله چې د ګنګا د پاسه پل یې ویجاړ وموند نو له خپل آس سره په سیند لاهو شو او دیوه سړي په مرسته له مرګ څخه وژغورل شو . پښتنو سرتېرو حرام سرای ونیوه او ټولې مېرمنې په شاهي کمپ کې موجودې وې ،سرتېرو ټولې مېرمنې د شېرشاه سوري حضور ته راوستلې . شیرخان له آس څخه ښکته شو او مېرمنو ته یې ډیر زیات احترام وکړ . ملکې ډیرې وېریدلې وې خو کله چې دوی د شېرشاه مېړانه او بې پروایي او احترام ولید نو ساه یې کې وچلیده . شېرشاه امر ورکړ چې دوی دې خپل شاهي کمپ ته بو تلل شي . بیایې داعتماد وړ کسانو څخه ورته قوي پهره وټاکله چې دوی ته څوک ضررا واذیت ونه رسوي او امریې ورکړ چې هېڅوک حق نه لري چې دوی وځوروي . په سبا یې یو سپین ږیری او ډیر مهربان سړی چې حسن خان نومیده راوبللو او ورته ویې ویل چې درهتاس په کلا کې دوی ځای پر ځای کړي او دی به د دوی خدمت کړي . هر ډول خواړه او نور احتیاجات یې ورته اکمال کړل .

د پښتنو د قبیلوي جګړو دستور او د پښتنو نولې دود دی چې د دښمن سپین ږیري ، ښځې او کوچنیان په هېڅ ډول سره ونه ځورول شي .

له دغو سوبو وروسته شیرخان ډهلی هم ونیوه او ځان ته یې د شیرشاه لقب ورکړ . کمزوری کامران چې د خپل ورور همایون سره په مخالفت کې ټینګ ولاړ و له پنجاب څخه وشړل شو او د پنجاب په مدافعه کې د مغولو په نوم دی سخت وځپل شو او داباسین غرب ته په شا شو . شیرشاه کله چې جهلم ته

ورسید دنوې روهتاس کلا دجوړولو امرېې وکړ او دخپلو شمالي پښتنو ورونو سره يې ليده کاته پيل کړل . داسې ويل کيږي چې د روه دهېواد له لرې لرې سيمو څخه په زرګونه پښتانه راتلل او دده په لښکرو کې تنظيمېدل . دمالګوغرو Salt Range لاندې دجهلم په غاړه يې د پښتنو دليدلو لپاره دخوشاب Khushab کمپ جوړ کړ . دلته هره ورځ جرګې کېدلې او پښتانه حتی له کابل او کندهار څخه راتلل ، ځينې وايي چې دهلمند تر لمنو پورې پښتانه دشېرشاه ليدو او جرګو ته راتلل . ددغو خلکو په جمله کې شيخ بايزيد ساروانی دشيخ کتال زوی هم شامل و چې پښتنو ته يو منلی پيرو او د « شيرشاه تاريخ » ليکوال هم دی . دافغاني حاکمانو لپاره د پښتنو له دود سره سم دامنلې خبره وه چې د پيراو سيد مخې ته څو قدمه وړاندې ورشي او دخدای په امانۍ په وخت کې يې څو قدمه بدرګه کړي . کله چې بايزيد راغی نو شېر شاه سوري يې مخې ته ورغی او په پښتو ژبه يې دزړه له کومي ورته وويل : « ای شيخه ! راځه چې غيږې سره ورکړو . » شيرشاه په دې ښه پوهيده چې ملي پښتو ژبه يووالي او پښتونولۍ باندې څومره اغېزه کوي .

کله چې شيرشاه په خوشاب کې و دبلو څو دهيټ Hit دقبيلې درې مشران اسمعيل ، خان فتح خان او غازی خان دده حضور ته راغلل او په ډير احترام سره يې ومنل دا درې خانان ددريو ديرو موسسان دي او په مجموعي توګه د ديره جاتو په نوم ياديږي . شېرشاه دوی په خپلو سيمو کې آزاد پرېښودل . شمال خواته دکامران حکومت واو منظم قوتونه يې لرل . او راول پنډۍ شمال ته په غرونو کې پنجابۍ قبيلې هم په مخالفت کې پرتې وې ، شيرشاه پوره طاقت نه درلود چې له دوی سره جګړه وکړي او اباسين ته ځان ورسوي . ده په جنوب کې داباسين په غاړو د بلوڅو خانان تائيد کړل . نو داسې معلوميږي چې دده هيله داوه چې دغرب خواته خپلې پاچاهۍ ته

پراختیا ورکړي . دده لوړمړی فعالیت دنیازیو خواته و . دا دغلجیو څانګه وه چې داباسین پر دواړو غاړو ځای پر ځای شوي وو او د کالاباغ په ګاونډ کې یوه سیمه وه چې عیسی خیل نومیږي او دغلجیو دیوې ښځې په نامه یادیږي ، دا دده دپر مختګ استقامت و . ددې سیمې نیول اسان وو ځکه چې زیات شمیر نیازي دده په لښکرو کې وو او دده ډیر باوري جنرال هیبت خان هم په اصل کې نیازی و .

هیبت خان دشېرشاه ګورنر و چې پنجاب او ملتان یې دواړه په قلمرو کې وو . شېرشاه خپل وراره مبارک خان چې دوینځې ( کنیزې ) زوی و دهیبت خان تر امر لاندې موظف کړ چې دنیازیو سیمه ونیسي ، داچې څه پیښې شول کیسه یې په دې ډول ده :

نیازیو اصلي برخه دعیسی خیلو او سمبل (Sumbal) څانګې دي ، داسې پیښه شوه چې دسمبل ټبر کې یوه سړي چې نوم یې الله داد و ډیره ښایسته لور درلوده چې ددې دښایست خبرې شاو خوا سیمو ته رسیدلې وې . غنمې غنمې ښایسته تورې سترګې ، نرۍ وریځې او اوږده بانه یې لکه غشي او لیندۍ وې . له مخ څخه یې دښایست لمبې پورته کیدې او اوږدې اوږدې کوڅۍ یې درلودې . مبارک خان دا نجلۍ یو وار ولیده او زړه یې بایلو ده اومین شو .ده د روه هېواد نژادي دود او دستور هېر کړل او الله داد ته یې پټ ریبار ورواستاوه او دلور غوښتنه یې څینې وکړه چې واده ورسره وکړي . الله داد دمبارک خان حضور ته راغی او احترام یې وکړ او په ډیر عزت سره یې دده سوالو ته ځواب ورکړ اوورته ویې ویل چې په حرم سرای کې به ډیرې وینځې لري او حرم به له پاک لمنو ښځو څخه ډک وي او پر دې سربیره عالیجناب خو په هند کې لوی شوی دی او دلوړ کلتور خاوند دی خو زما لور یوه کلیواله نجلۍ ده او یوازې د روه په کړو وړو پوهیږي . په لنډه توګه ستاسو او زما دلور تر منځ

ډیر زیات توپیر موجود دی او زما لور ستاسو لیاقت نه لري ، او دواده امکان نه لیدل کیږي .

مبارک سخت په قار شو اودسمبل کورنۍ په ربړولو یې پیل وکړ تر هغه چې الله داد مجبور کړي چې خپله لور ده ته په نکاح کړي . درې جرګې یې ورولیږلې او ورته ویې ویل چې سوریان او نیازي یوه ختېه ده ، نو ځکه سره مساوي دي . اصیل له اصیل سره - مریي له مریي - بازله باز سره او کوتره له کوترې سره یو دي . له دوی څخه یوه دوینځې له نسب څخه لور درلوده او دهغې وړاندیز یې ورته وکړ او غوښتنه یې وکړه چې دسمبل تېر له ربړو لو څخه دې لاس واخلي . الله داد اصیل زوکړی دی او دلور واده له مبارک خان سره نه مني ، حتی که ژوندیې هم په دې خبرې پورې تړلی وي .

مبارک خان له غرور او تکبر څخه ډک و او دګورنر په صفت یې دې خبروته غوږ ونه نیوه او همېشه یې دا فکر کاوه چې دې قبیلې ته څه ډول درس وکړي . دسمبل پر یوه کلي یې یرغل وکړ او یوه وینځه یې وتښتوله . دټولې قبیلې جرګه ورغله او له ده څخه یې غوښتنه وکړه چې دښځو شرف او عزت ساتنه دپښتنو دود دی ، ددوی عزت هم دی او پښتو باید وساتي . هر څه چې دوی وویل هغه ، ده رد کړل . دوی په قار شول او ورته ویې وویل : « ګوره ! ته په هند کې لوی شوی یې . دپښتنو دود او دستور دې نه دی زده هېڅکله باښه پرباز باندې ظلم نه شي کولای . موږ ستا دتره په وجه چې پاچا دی ستا احترام کوو . که نه ته خو دیوې وینځې زوی یې ، پام کوه چې نور په موږ غرض ونه کړې . زموږ ښځې په عزت کې ځانته پریږده او موږ مه ځوروه . » مبارک ورته وویل : تاسې څه شرف نه لرئ . په قار یې ورته زیاته کړه چې زه به خپل حرم سرای ډک کړم . داجلکۍ هم نه آزادوم او دالله داد لور هم په زور بیا یم .

ملک په قار سره ورته وویل چې که ژوند درباندې ګران وي نوز موږ له ښځینه و

لړې لړې گرځه . ددې په اوریدو سره مبارک خپلو سړو ته امرورکړ چې دکوتکو په وهلو یې ویاسئ د خلکو قاروپاریده او که څه هم وسلې یې دباندې ایښې وې له ډیره قاره یې پر مبارک خان حمله وکړه او په تشو لاسویې دی او دده سړي ټول مړه کړل .

شیرشاه چې له پیښې څخه خبر شو هیبت خان ته یې ولیکل :« سوریان خولړدی ،نو بیا چې خپل نور افغانان هغوی وژني خو بالاخره به یو سورهم پاتې نه شي . سمبلیان دهیبت خان خپل قوم و . باید دوی ته سزا ورکړل شي چې نوربیا ددې جرئت ونه کړي چې گورنر ووژني .

سمبل غرو ته وختل او هیبت خان دوی تعقیب نه کړل ځکه دشیرشاه قلمرو نه و . دی هم نیازی و چال یې جوړ کړاو هغوی ته یې دعفوې احوال ورکړ چې هر څوک پخپله را کوز شي دوی به مجازات نه شي . دقبیلوي اړیکو په اعتماد نهه سوه نارینه له کورنیو سره بېر ته کوروته راستانه شول . هیبت خان ټول نارینه ووژل او ښځې یې شیرشاه ته ورواستولې . شیرشاه پر دې عمل باندې سخت خواشینې شو او ورته ویې ویل چې دقبیلو تر منځ دومره لوی خیانت او جنایت چا تر اوسه نه و تر سره کړی . آیا هیبت خان نه غواړي چې مستقل حکومت وکړي ؟ څنگه یې دومره خلک هغه هم دخپلې قبیلې ،بې گناه مړه کړل ؟ ده پښتو او پښتونواله هېره کړې ده . شیرشاه هیبت خان بر طرف کړ . مگر له دې پیښې څخه لږڅه وروسته پر ۱۵٤۵ میلادي کال شېرشاه په یوه انفجار کې په تصادفي توگه ووژل شو . کله چې د کالینجر کلایې په بندل کند Bundel Kand کې دپرایاگ Prayag جنوب غرب ته ونیوله . دباروتو دانفجار په نتیجه کې مړ شو.

شیرشاه ډیر لوی شخص و . مغول ده پر عکس هغه څوک وو چې دمرکزي اسیا وینه یې په رگو کې غورځیده او دا چې څومره وخت یې په هند

کې ژوند کړی له اقلیم سره یې تطابق نه کاوه . شېرشاه په توره او مېرانه کې ددوی سیال و مګر دخپل نبوغ په پراخوالي کې له دوی څخه مخکې و . ده ډیر قابلیتونه لرل چې په هند کې یې څرګند کړل . یوازې له نیا زیو سره دده بده پیښه را منځته شوه او بیا د سرحد خواته دده حاکمیت ونه رسیده . مګر له دې پېښې بغیر دی په ټولو کارونو کې ټولو پښتنو ته مثال او نمونه و . د پښتنو په یو ځای کولو او اتفاق راوستلو کې یې ډیرې هڅې وکړې په پنځو کالو کې یې پردی وطن د پښتنو لښکرو په وسیله خپل کړ . د ظالم ، مستبد او خونخوار په مقابل کې ډیر جدي او بې لحاظه و ، مګر له خوارانو ، غریبانو ، کروندګرو او اړو کسانو سره همیشه ملګری و او پر ټولو یې پوره ترحم کاوه . ده د وطن په ابادۍ کې خاصه توجه درلوده . سړکونه یې جوړ کړل . کاروان سرایونه یې آباد کړل او تر ټولو غټه موضوع د ښارونو ودانۍ او ښکلې ښکلې تعمیرونو جوړول وو . په ډهلي کې دده لرغوني کلا ( پورانه کیلا ) ، دهغې په شاوخوا دامنیت خندق او دهغې لپاره یې لویې لویې دروازې جوړول دده دعظمت نښې دي ، دشاه جهان لال کلا درې میله شمال ته دده دپایتخت دعظمت په مقابل کې دکوچنیانو دشګوکور ښکاري ، دشېرشاه جومات چې دکلا په منځ کې جوړ شوی . دده مینه له اسلام او محمدي دین سره له ورایه څرګندوي او دمغولو تر ټولو جوماتونو څخه دده دجومات لويي له ورایه ښکاري .

ددې لپاره چې دشیرشاه له زړه څخه خبر شو او دده معنوي او روحي عمق ته ورسیږو دابه ښه وي چې دروهتاس سرحدي کلا له نږدې څخه وګورو . دا پر یوه ډبرینه غونډۍ باندې څو میله دجهلم شمال ته پرته ده . ددې برجونه او دیوالونه دچین دديوال په شان پراخ دي چې دمالګې غرونه SaltRange او دهغې شاته دپیرپنجال Pirpanjal غرونه یې ترنظر لاندې بریښي . دنظامي

تحکیماتو په ښهر ددغې کلکې او لویې دروازې او همدارنګه شاوخوا خندقونه یې ډیر قوي دي خو دډهلي د لرغونې کلا ( پورانه کیلا ) مینه او ښایست بیا په کې نه شته ، برجونه یې یو تر بله سره تړلي او دلیدو وړ دي . دکلا محیط دومره لوی دی چې دوه فرقې په کې ځاییږي . دا ممکنه نه ښکاري چې دومره لویه ودانۍ دې شیرشاه په لنډه موده کې پای ته رسولې وي . شهامت علي کله چې لېښاغلي وېډ Wade سره پر ۱۸۳۹ کال کابل ته تلو دروهتاس کلا یې معاینه کړه . دی لیکي چې دا کلا په لسو کالو کې جوړه شوې ده نو ځکه دا به دبل چا دپاچاهۍ تر نیمایي پورې ایله تکمیل شوې وي . په هرډول چې وي. دکلا جوړول دشیرشاه مفکوره وه . او ددې دیوالو په منځ کې شیرشاه سوري تل ژوندی دی . هغه دخښتو قالب چې دلته په کار اچول شوی دی دموسس طاقت او قدرت دیوه سمبول په شکل ښرګندوي . هغه ډبرې چې له ودانۍ څخه رالویدلې دي دا طاقت له ورایه ښیي . شیرشاه سوري د پښتون قوم او ټولنې یوه داسې مهمه ټوټه ده چې ټولې ټوټې سره نښلوي . تر ده وروسته به دا قوم تل سترګې په لاره وي چې دشیرشاه سوري غوندې لارښود یې په برخه شي چې دا ټوټې پارچې قوم بیا سره سرېښ کړي او د پښتون قوم په تاریخ کې ځای ولري .

دلته دشیرشاه یوه ډیره عالي کیسه درته بیانوم : « یوه ورځ شیرشاه ډیر غمګین و ، آه یې وکیښې او په ژړا کې یې سلګۍ ووهلې. دمجلس خلک ټول خپه شول او یوه درباري له ده څخه پوښتنه وکړه : « ددولت چارې ، تشکیلونه، مالي چارې ، اردو ، شاهي کړه وړه ، قوانین او مقررات ټول تنظیم شوي دي، په لږه موده کې ډیر کارونه تر سره شوي دي او په لنډه توګه هر څه چې تا امر کړی دی هغه اجرا شوي دي . نو بیا هم ته ولې دومره خپه ښکارې ، شیرشاه هیڅ ځواب ورنه کړ . مګر دده ملګرو زیات اصرار وکړ او

دی یې مجبور کړ چې ځواب ورکړي شهرشاه وویل : تاسې حق وایئ ، مگر ځلور غوښتنې زما په زړه کې دي چې زه یې نه شم تر سره کولای او له ځانه سره به یې گور ته ارمان یوسم .هغه دا چې : لومړی : کاشکې د روه غرنۍ سیمې مې پرې ایښې وای او ټول او سیدونکي مې له نیلاب څخه تر لاهور پورې په آوارو او خړو به ځمکو کې ځای پر ځای کړی وای . دوی به د مغولو دهر ډول تیري مخنیوی کړی وای او هم به یې څوک نه پرېښودای چې د کابل له استقامت څخه د هند دنیولو په غرض راتلای او همدارنگه په آوارو سیمو کې داوسیدلو بله گټه داوه چې دغرو خلک به متمدن شوي وای او پوهه به یې زیاته شوې وای . دویم دا چې زه غواړم لاهور بیخي ونړوم . ځکه لاهور داسې ښار دی چې له شمال څخه هر تیري کوونکي ته ټول جگړه ییز امکانات برابر وي ، هر یرغلگر له لاهور څخه ځان اکمالوي او پر هند برید کوي . دریم آرمان مې دادی چې ترمکې معظمې پورې لویه لار او پنځوس لویې لویې ودانۍ دهغې په اوږدو کې جوړې کړم چې زموږ حاجیان په راحت شپې په کې تیرې کړي . ځلورم غواړم چې په پاني پت کې د سلطان ابراهیم ښکلې مقبره جوړه کړم په دې شرط چې مخامخ یې دچغتای سلطان بابر قبر ورته جوړ کړم ځکه چې سلطان ابراهیم دده له لاسه شهید شو . دا ځلور هیلې زما د زړه هیلې دي چې له ځان سره به یې گور ته وړم . »

له دې حیرانوونکي عبارت څخه داسې څرگندیږي چې شیر شاه دزړه د ننه پالیسۍ راوښودلې او ده ته یې په کم وخت کې ډیر بریالیتوبونه ورپه برخه کړل. دی په زیړه ژبه له وخت سره سم غږیږي . دلاهور لمړنگولو څخه مقصد دادی چې لومړی محمد غوري او بیا بابر دلاهور له موقعیت څخه گټه واخیسته او په هند کې دخپلو فتوحاتو لپاره یې د توپ تخته او دجگړه ییزو اکمالاتو منبع ورڅخه جوړه کړې وه . شیرشاه صرف دومره وایي چې پنجاب

دهرچا په لاس کې چې وي هند دهغوی په لاس کې دی . دده دریم او څلورم خواست په هکله باید ووایم چې شیرشاه ډیر لوی معمارو . ده تل د آبادۍ خیال درلود . ده نه یوازې دهماغه ورځې لپاره آبادي کوله، بلکې درا تلونکې ګټې اخیستنې فکر ورسره و . دده په لومړي سوال کې دسرحدي قبیلو لپاره ډیر اوږد فکر کـاوه او ددوی لپـاره یې دلاهور سـوچ کـاوه . ده دروه دغـرونو داوسیـدونکو کـمزور تیـاوې او قـابلیـتونـه ټول پیـژندل . له دوی څخـه یې لښکرې جوړې کړې وې چې دډهلي تخت یې ونیوه . مګر دی پر دې هم پوره پوه و چې دسرحدي قـبیلو بې اتفاقي ، بې نظمي ، کورنۍ دښمنۍ او وینه په وینه مینځل پاچاهي نه شي ساتلای او هرومرو به یرغلونه وربـاندې کیـږي . واقعاً چې دوی داجیر و عسکرو په څیر ، دغه سیستم تـه وفادار نه وو . دیوه قـومـاندان عـسکر به بل قـومـاندان ته وراوښتل ، دوی همیشـه په یو چا پورې تړلي وو . شیرشاه ډیر پوه و او دایې له ورایه لیدل چې داقبیلې به په سرحدی سیمو کې ددولت په ګټه او دهیواد دساتلو لپاره لوی قوت وي . ده داویل چې دپښتنو راتلونکې داباسین له وادۍ سره تړلې ده که څه هم بدلیدونکي ، واړه حکومتونه دمرکزي اسیا پرخوا ځي .

شیرشاه په بهار کې په ساسرام ( Sahsaram ) کې خاورو ته وسپارل شو . دا همدغـه ساسرام دی چې دی په کې لوی شوی او شـهرت تـه رسـیدلی و . دیوه لوی ډنډ په منځ کې پر یوه ډیر ښایسته ودانۍ کې دده قبر ولاړ دی . دا دلویې او عظمت سمبـــــــول دی . مګر دده واقـعي یادګـــــــــارونه ( لرغونې کلا ) په ډهلي کې او د ( روهتاس کلا ) ده چې دجهلم تر شاه دشمال خواته ځار کوي .

دشیرشاه مړینه ددې سبب شوه چې دځـای نیوونکیـو تر منځ تاو تر یخوالی رامنځته شي . دشیرشاه کوچنی زوی جلال خان بریالی شو چې دپلار

ځای ونیسي او دسلیم یا اسلام شاه لقب یې ځانته غوره کړ. دشیرشاه مشر زوی د نورو مشرانو په تېره بیا دنیازیو حمایت تر لاسه کړی و. که څه هم ځینو نورو یې وروسته له اسلام شاه څخه مخ وګرځاوه، ځکه چې هغه ډیر بې لحاظ او انضباطي و. دا حوادث له سرحد څخه بیخي لرې پیښ شوي او دهغو تفصیلي یادونه هم دومره ارزښت نه لري. یوازې دا کفایت کوي چې دلته وروروژنه ددې سبب شوه چې فرکیسونونه را منځته شي او دسور دکورنۍ د پای سبب شي. اسلام شاه پر ۱۵۵٤ میلادي کال په ګوالیار کې مړ شو. تخت دد ریو تنو تر منځ دمسابقې پنډوسکی شو. همایون له موقع څخه ګټه واخیسته ددوی دبې اتفاقۍ او کورنۍ جګړو په نتیجه کې بریالی شو چې ددولت واګې مغولو ته تر لاسه کړي.

دسوریانو کورنۍ دپښتنو قابلیتونه او کمزور تیاوې ښې انځوروي. یو لوی رهبر په دوی کې پیدا شو ټول قوم یې جوړ او بیلا بېلې قبیلې یې سره یو کړې او ټول اختلافونه او کورنۍ دښمنۍ یې شاته وغورځولې، شان او شوکت ته ورسیده، خو چې هغه لوی رهبر مړ شو نو هیلې او ارزوګانې هم ورسره مړې شوې. دا همېشه په پښتنو کې داسې شوي او کیږي. دهغه شخصیت په نشتوالي کې چې باور یې را منځته کړی وي دقبیلو تر منځ حسادتونه حکمفرماشي، شخړې پیل شي او څه چې تر لاسه شوي وي ټول بېرته تیت او پرک شي.

# يوولسم څپرکی

# بابر

لومړنی سم او تاریخي نظر د افغانانو په هکله د دوی په خپل وطن کې په بابر نامه کې ورکړ شوی دی ، بابر نامه د مغولو د لومړني پاچا بابر (۱۴۸۲ - ۱۵۳۰ میلادي) یادښتونه او خاطرې دي . تر دې وروسته د دې اړتیا نه شته چې پر عربي او پارسي سیاحانو باندې اتکاو کړو او یا پر قبیلوي دودلکه د یوسفزو پر دودونو ، باندې ودرېږو . دا رښتیا ده چې هندته د بابر تر راتګ د مخه د ډېرې افغاني کورنۍ د ډهلي پر تخت تېرې شوې . خلجیانو او لودیانو د افغانانو دهشت پر هند خپور کړ او ډېر ښکلي او ښایسته تاریخي ځلي ، مقبرې او کلاګانې یې له ځانه یادګار پرېښودلې چې د ډهلي

شاوخوایې نیولې ده . دهندوستان تذکره لیکونکو ددوی جشنونه ، ددوی جنګونه او وژنې ثبت کړې دي که څه هم کم دي خو په هغو کې خوند او غم دواړه شته . که څه هم پاچاهانو او خانانو اجیر عسکر له شمال څخه راتېرول او خپله پاچاهي یې وربانده ساتله خو په خپله دافغانانو او پښتنو دهېواد په هکله یې هېڅ فکر نه کاوه . په ټولو هغه اسنادو کې دیوې منفردې قبیلې په هکله هم څرنګه چې ضرور ده معلومات نه شته . دخلجي او لودي یوازیني نومونه دي چې له پخوا څخه موږ ته له تاریخ څخه راپاتې دي .

خو کله چې بابر ته راځو نو هر څه بدلیږي ، بابر دهغو منورو شاهزادګانو په ډله کې شمېرل کیږي چې پر ځای پاچاهۍ ته رسیدلی دی ، دیوې قوي امپراتورۍ دجوړو لو لپاره بې له شکه دده په کرکتر کې سیاست پوهنه ، او جنرالي دواړه ځای لري . حتی دی له دې څخه هم زیات و . ده ژوندی احساس درلود او ماغزه یې پوره فعال وو . ددې او صافو په درلودلو سره دخپلې زمانې نمونه مثال بلل کیدای شو ، دده په وخت کې دورځې طبیعي اوهنري داسې څه نه وو پاتې چې څیړنه یې په کې نه وي کړې . دی دمشهور دمریتوب جرم ته له زوړ او غوریګ څخه دطبیعي ښایست او خوشحالی احساس ته رسیدلی و اوکیدای شي چې وښنل شي ځکه ، کله به یې په جهر سره اعتراف کاوه ، توبه به یې ایستله او دګناهونو عفو به یې غوښتله . دې کار به دی لانور دښښې وړ او انسانیت وړ وګرځاوه . له ځوانۍ څخه یې دشاعرۍ هنر ته په ترکي او پارسي ژبه کې وده ورکړې وه او ده پوره شهرت موندلی و ، موږ ته دده شهرت دده اتوبیو ګرافي راښیي چې دچغتای ترکي په شکل لیکل شوې ده او دیوه واقعي نابغه او وینې ماغزه نمایندګي کوي .

بابرنامه دوه ځله په انګریزي ژبه ژباړل شوې ده . لومړی ځل پر ۱۸۲۹ کال ایرسکین Erskine او لیدین Leyden په ګډه سره ژباړلې او دویم ځل

میرمن بیوریج Mrs. Beveridge دلارډ بیوریج Lord Beveridge مـور پر ۱۹۲۲ کـال ژباړلې وه . دواړه ژباړې ډېرې ښې دي . خو زمـا په فکر دمېرمن بیوریج ژباړه ښـه ښکاري ځکه چې هغـې په چغتـای ترکـي کې پوره لاس درلود او مـخکینیو ژباړونکو پر پاړسي متن باندې کار کړی و چې داکبر په زمانه کې جوړ شـوی و . دایرسکین Erskin او لیـدین Leyden ژباړنه خوړه او ژوندۍ ده او په دې وروسـیتو کې پر ۱۹۲۱ کـال دکینګ King له خوا په دوو کوچنیو جلدو کې چاپ شـوې ده او په اسـانۍ سـره ورڅخـه ګټـه اخیـسـتل کـیږي ، داکـار زیاتره دایرسکین Erskine پر غــاړه و ، چې دمونستیورات الفنسـتون په تـشویق او هڅونې سره یې ترسره کړی دی ، الفنسـتون دامنلې وه چې بابر نامـه داروپایانو دپاملرنې وړ وګرځوي ، اصل بابر نامـه په چغتـایي ترکي ژبه لیکل شوې وه پر ۱۸۰۹ مـیلادي کـال دشاه شجاع له خوا الفنستون ته په پېښور کې ورکړ شوې وه .

دبابر جغرافیوي تشریحات ډېر دقیق او روښانه دي حتی نن ورځ هم تر دې زیات صحیح جغرافیوي معلومات څوک نه شي تیارولی ، دآمو او اباسین تر منځ دټولو منطقـو نومـونه په واقـعي شکل سره لیکل شـوي دي . داثقت او سموالی له پېښو او کړو وړو سره دده دمتصلو او پیهمو لیکنو په نتیجه کې تر لاسه شوي دي . دده دلیکنو له وضاحت څخه دا نتیجه اخیستل کیږي چې پخپله ښـه مـورخ هم و ، او ښـه لیډر و ځکـه چې د تجربې پـه ښوونځي کـې یې ډېرې مـاتې او ډېر بریالیتـوبونه لیدلي وو . بابر لوړ شـخصیت و ، دنورو پر شفقت ، لطف او خپګان باندې ښه پوهیده ، بابر په اسانه خندل او په اسانه یې ژړل ، ده به ګناه کول او ژر به یې توبه ایستله . ډېر سخي او خوش طبعه سړی و . بابر لیدل او په ډېر غور سره یې کتل . دی به همیشه ګلانو ، بوټو ، ونو ، الوتونکو ، غرونو ، درو ، دښتو ، میرو او شنه اسمان ته متوجه و . په شاعرانه

او ادیبانه ستر گه یې ورته کتل او پر طبعیت مین و. له خلکو او قبیلو سره اشناو. دوستان او دښمنان یې ښه پیژندل، دخلکو ښه او بد ورته معلوم وو. تر ټولو مهمه دا وه چې په لوی خدای (ج) باندې ډېر کلک معتقدو. همداد بابر په زمانه کې ناڅاپه پرده پورته کیږي او دڅمکې پر مخ افغانان زرغونیږي، او تردې وخته پورې په تورو تیارو کې نغښتي وو. پښتانه، هسې چې لازمه ده په خپل هیواد کې ځانه پیژندل.

البته چې بابر پښتون نه و، بلکې ترک و، د پلار له خوا پر پنځم نسل کې گوډ تیمور ته رسیده، د مور له خوا په دیارلسم نسل کې د چنگیز خان ددویم زوی چغتای له لارې چنگیز خان ته رسیږي. په دې توگه چغتایي او برلاس نسلونه سره گډ شوي دي. که څه هم دواړه مغولي ریښې لري خو کله چې بابر نړۍ ته راغي نو دوی ترکي شوي دي. پر ځ سربیره کله چې ده په جنوبي ترکستان کې دژوندانه لومړني پړاوونه تیرول او د ترکي کیدو په پروسه کې و، تر ډیره حده پورې دفارس د تفکر او عاداتو تابع کیږي او ښې له شکه پارسي وینه ورسره گډیږي. د بابر په جوړیدو کې داټولې مغولي، ترکي او پارسي ریښې موجودې دي. بابر او دده ځینې سرې ښایې داړیکو له مخې یفتلیانو ته څه ناڅه ورته وي. هغوی هم زرکاله دمخه داسې ریښې لرلې او په عین وطن او خاوره تېر شوي وو. که څه هم بابر ددوی په شان جگړې کولای شوې خو توپیر یې دا وچې ده په میړانه جنگ کاوه او په فتوحاتو کې یې وحشت او بې ځایه وژنه وه. د گنگا او اباسین دجلگې د نیولو لپاره کابل د بابر دزینې اړیکه (پتکه) وه. دی لومړی سړی نه و چې د کورنۍ لپاره فتوحات وکړي.

داد ډیرې پراخې امپراتورۍ یوه برخه وه چې پر ۱٤٠٤ میلادې کال گوډ تیمور دخپلې مړینې په وخت کې دهغې بنسټ ایښی و اودده تره حکمران الغ-بیگ ته یې ورسپارلی و. دا الغ بیگ هغه څوک دی چې د یوسفزو مشران یې

په مېلمستيا کې قتل عام کړي وو . او داالغ بيگ بايد له هغه بل مشهور شهزاده الغ بيگ د تيمور لمسي سره چې د سمرقند حاکم او مشهور منجم و گډنه شي . هغه الغ بيگ د شهزاده الغ بيگ چې د بابر تره کيږي له نيکه سره يې دا کازوی کيده . د بابر تره ( الغ بيگ ) پر ۱۵۰۱ کال مړ شو او دده وزيرانو دده دزوی په مقابل کې د بابر په گټه مقاومت وکړ او بابر ته يې لاره پرانيستله چې له هندوکش څخه تېرشي او په نتيجه کې يې پر ۱۵۰٤ کال کابل بې له جگړې ونيوه . بابر پر کابل مين و ، د کابل په هکله يې ډېر شيان ليکلي دي . کابل يې د زړه آرام باله ، اقليم يې په ټوله نړۍ کې بې مثاله گاڼه . د کابل ډېرو باغونو . ويالو او ډ ويالو دغاړو چنارونو او سرو سيورو په هکله يې ډېر صفتونه ليکلي دي . ده په کابل کې داسې ځای ځانته خوښ کړی و چې هلته به خښيږي . او په رښتيا سره هلته دفن دی او نن ورځ د بابر بڼ ( باغ بابر ) په نامه ياديږي . دا دغره لمن ده چې د ښار له منځ څخه د ډېلي گرځيدو په واټن پروت دی او شاوخوا ښايسته ونې دغرو په لمنو کې ښکاريږي او دسترگو په ديد کې مخامخ ورته د پغمان غرونه او سپينې واورې پرتې دي . د بابر مقبره مجلله نه ده ډېره عادي د سپينو مرمرو په واسطه پوښل شوې ده . د چنارو ونې او دارغوان ونې يې د قبر په شاوخوا کې ولاړې دي . بابر پخپله د دې سيمې دارغوانو په هکله ليکلي دي چې : کله چې دارغوان غوټۍ سپړيږي زه په ټوله نړۍ کې بل داسې ښايسته ځای نه پيژنم چې له دې ځای سره دې سيالي وکړي.

کله چې بابر له کابل څخه د هندوستان فتحې ته ورتلو ، دوه جگړې يې له افغانانو سره وکړې چې د سياست له مخې دواړو يو له بله توپير درلود . دده دويم او وروستی جنگ د ډهلي د تخت د نيولو لپاره هغه وخت پای ته ورسيد چې د ډهلي ، لودي پاچا ته يې ماته ورکړه ، د افغانانو امپراتوري پر ۱٤٥١

میلادي کال دسلطان بهلول لودي له خوا « سید » کورنۍ په ماتولو سره جوړه شوې وه . دلودیانو امپراتوري ، دبابر په وینا دجهلم له دریا څخه تر بهار پورې غزیدلې وه . مګر داباسین غرب ته یې دافغانانو اوپښتنو په کورنۍ ځمکه کې هیڅ نفوذ نه درلود ،که څه هم دهندوستان پښتانه پاچاهان اصلاً تول ددغې سیمې وو ، زوه له هیواد څخه راغلي وو ، کله چې بابر په کابل کې و ډهلي کې سلطان سکندر دلودي کورنۍ دموسس زوی او ځای نیوونکي په ډیر شان او شوکت سره امپراتوري چلوله ، بابر لیکي چې ده کولای شول چې نیم میلیون سړي دجګړې میدان ته راوبولي .

دده لومړي او غیر محسوس مخالفین دپښتني قبیلو مشران وو چې په خپل هیواد کې دننه پراته وو . دا قبیلې دلارو په اوږدو کې پرتې دي . هر هغه چا چې د هندوستان دنیولو خیال درلود ، نولومړی دهغې لارې ساتل او امنیت نیول ورته په کار وو چې ددغو قبیلو له سیمو څخه تیریده او دکابل او جهلم تر منځ هندوستان ته دورتلو لاره وه . ډیر کلونه تیر شول چې بابر پر دې کار بریالی شو دده له لیکنو څخه ښکاري چې ده په دې تړله موده کې وضعیت تر څیړنې لاندې نیولی وا وښه پوهیده چې په پرله پسې توګه په تشویش کې و او پرهغو مسایلو یې تل فکر کاوه چې دده دبریالیتوب خنډونه وو او په حقیقت کې یې تول خنډونه په دایمي توګه لرې نه کړای شول . ترده وروسته امپراتوران هم ددغو خنډونو پر لرې کولو بریالي نه شول .

دبابر وروستی او قاطع یرغل پر ۱۵۲۵-۱۵۲۶ کال ترسره شو چې په نتیجه کې ده هندوستان فتح کړ . تردې دمخه په دې استقامت کې ده پنځه واره هڅې کړې وې چې پر هغو قبیلو خپل تسلط ټینګ کړي چې دده دهنددنیولو په مسیر کې پرتې وې ، پر دغو پنځو هڅو سربیره دغزني دشاوخوا سیمو دغلجیو په مقابل کې یې هم جګړه وکړه . او تقریباً هر کال یې

دکندهار دسيمې د آرامولو او دښار دساتلو لپاره قوتونه استول چې پر ۱۵۲۲ کال يې کندهار بالکل ونيوه . دده دجګړو راپور صحيح او پوره دقيق دی او کيدای شي چې دده دجګړو مسير نن ورځ هم په دقت سره تعقيب شي . دسکندر او يا کوم بل يرغلګر دفتوحاتو راپور دقيق او سم نه دی ، کله چې دسرحد دسيمو دجګړو په هکله دبابر ليکنې تر مطالعې لاندې ونيول شي هرپښتون به دلومړي ځل لپاره دالمس کړي چې تياره په رڼا بدله شوې ده او لااقل دقبيلو هغه نومونه لولي چې نن ورځ ورسره اشنايي لري .

ترټولو عمده يوسفزي دي . ديوسفزو د يادونې علتونه دادي چې له يوې خوايې هلته ډيروخت تېر کړی واوله بلې خوا داچې له يوسفزو څخه يې نجلۍ واده کړې وه . تر يوسفزو وروسته دپښتنو مشهورې قبيلې لکه اپريدي،اورکزي ، بنګښ، توري ، ديلازاک ، مومند ، ګيګيانۍ ، محمدزي ، لوهاني ، نيازي ، عيسی خېل حتی غلجي ( په همدې نوم ) او وزير يا دوي او دهرې قبيلې کړه وړه بيانوي . پارشاور Parshawar باجوړ ، ساواد Sawad ، کوهاټ Kohat ، هنګو Angu ، ګورکاتري Gorkhatri خيبر Khyber علي مسجد Ali Masjid او جم Jam له سوابۍ Swabi سره نږدې دمزرو ځالې وې چې ګرګدن Rhinoceros به کې ښکار او نن ورځ هلته تمباکو کيږي. دپژا ( پجه ) ، (Pajja) ترڅوکې لاندې کتلانګ Katlang او دموکم Mukam کوچنی نهر ( وياله ) چې له سودم Sudhum څخه بيليږي ، ټول په بابرنامه کې ذکر شوي دي او دخيال په نړۍ کې ټول راژوندي کيږي . په زړه پورې خولا داده چې ځينې قبيلې په هغه زمانه کې په نورو ځمکو کې اوسيدلې مګر اوس لېږېدلي دي ، اوزياتره بيا دبابر له زمانې څخه وروسته نه دي خوځيدلي او پر خپل ځای پاتې دي . اپريدي په هغه وخت کې هم په ختيځ کې اوسيدل ، يوسفزي په سوات او سمه کې ، محمد-

زي په هشتنگر Hashtnaghar ، بنګښ دهنګو په شاوخوا ، لوهاني په دامان او غلجي دغزنی په شاوخوا کې چې نن هم دلته دي ، اوسیدل ، یوازینۍ پښتني قبیلې چې بابر نه دي ذکر کړي او وروسته یې شهرت تر لاسه کړ هغه ختک او خلیل دي ، له دې خبروسره سره چې نوې او له وخت سره سمې دي بیا هم څومره حیرانوونکې دي چې دهجرت کیسې څه ډول رښتینې او په زړه پورې وې . دمثال په توګه دسوات او پېښور دجلګې دیوسفزو دپښتنو دمیشته کیدو تاریخ دبابر دزمانې له حوادثو سره دنیتې له مخې یو په بل اوړي . دبابر نامې ځینې منفي اړخونه هم شته چې په غیرضروري شکل سره بابر قصداً پرې ایښي دي ، خو دمثبتو تفصیلاتو په شان په زړه پورې دي ، دمثال په توګه که څه هم دپښتنو قبیلې په نامه یادوي مګر دی دپښتون یا پختون نوم نه اخلي ، یوازې له کرلاني قبیلې سره چې دبنو په شاوخوا کې کرونده کوي دهغوی په یادونه کې پورتني نوم ته ورنږدې کیږي . همېشه کله چې دقبیلې نوم نه اخلي نو بیا افغان یا افغانان لیکي ، حتی ژبې ته افغاني وایي که څه هم دکابل دژبو لست یوولس ژبې ثبت شوې ښيي ، داسې فکر کیږي چې ددې دلیل به داوي چې ده یوازې یوسفزي ښه پیژندل ، او څرګنده ده چې یوسفزي دافغان کلمه ځان ته منسوبوي او هېڅکله د پټهان اصطلاح نه یادوي . بله مهمه نقطه چې په بابر نامه کې نه شته هغه ابدالي قبیله ده ، یانې دقبیلو دنومونو په سلسله کې چې په بابر نامه کې راغلي دي ابدالیانو ته اشاره نه ده شوې . یوازینۍ قبیله چې دکندهار او هرات تر منځ مېشته ده په بابر نامه کې دنوکداري Nukdari په نامه یاده شوې ده ( داڅرګنده ده چې کله ابدالیان په تاریخ کې یادشوي دي دهمدې سیمې اوسیدونکي وو ) . نوکداریان دهزاره په شان یاد شوي دي او دوی افغانان نه دي بلل شوي . بابر دخپلو فتوحاتو په لړۍ کې زمینداور یادوي چې هغه دابدالیانو متصرفه وه خو

دهغـه ځـای اوسـیـدونکي یې نه دي مـعـرفي کـړي نو دا ، نه یادونه ، حیرانوونکې ده .

دا به دارزښت وړ وي چې دقبیلوي هغو ځانګړو اشخاصو یادونه وکړو چې دبابر په حضور کې یې ناسته ولاړه درلوده ، په عمومي توګه ویل کیدای شي چې دقبیلو په سیمه کې دکابل او اباسین تر منځ هندوستان ته ورتېریدل اسانه کارهم نه و . پښتنو قبیلو په هروخت کې پوره آزادي ساتلې وه اوکولای یې شول چې له شمال غرب څخه هریرغلګر ته سرخوږی جوړ کړي . واقعاً بابر اعتراف کړی دی چې باجوړ ،سواد ( سوات ) پارشاور ( پېښور ) او هشتنغر که څه هم دکابل دحکومت یوه برخه وه خو دپښتنو قبیلو له خوا اشغال شوې سیمې وې او دهیڅ حکومت تسلط هلته نه و . له کومو لارو څخه چې په دې سیمو کې بابر تیریده په خپلو لیکنو کې یې په عمومي ډول داانځور تائید کړی دی چې دپښتنو قبیلو تابع کولو او دبابر د ادارې مطابق پر هغوی باندې دامرونهې تطبیق زیات وخت په کار درلود . دپښتنو قبیلوي مخالفین داسې خاص خصوصیات لري چې له بل هرچا سر توپیر لري .

بابر چې کابل ونیوه سملاسي یې د ۱۵۰۵ میلادي په پیل کې ختیځ ته لښکر کشي وکړه . دادده پلان و چې پر هند ورننوځي . له خیبر څخه په زور تېرشو او پېښور یې ونیوه ( په دې موقع دبګرام په نوم یاد شوی ) بیا هغه مشهورې بنیان ونې ته ورغی چې په پېښور کې تر ټولو غټه او مشهوره ونه وه . دونې له لیدو څخه وروسته ده خپل اصلي پلان کې نابېره بدلون راووست . له خپلو جنرالانو سره یې مشوره وکړه او داباسین ډ تیریدو څخه یې ځان وژغوره او ډنوې پریکړې سره مخ پر کوهاټ رهي شو . ده اوریدلي وو چې کوهاټ ډیر بډای ښار دی او دزیات غنیمت ترلاسه کولو امکانات شته ، دا راپور ګیګیانو چې پېښور ته نږدې اوسیدل بابر ته ورکړی و . دغرمې پر وخت

يې کوهاټ ونيو او تالا يې کړ ، دلته يې څو ورځې استراحت وکړ او پريکړه يې وکړه چې د غرب خواته ولاړشي . دبنګښو او بنوڅيو ځمکې ګز اوپل کړي او دبرمل له لارې چې دبابر فارمل Baber Farmel يې باله بيرته راوګرځي ، هنګو ته نېږدې دبنګښو په مقابل کې ديوه فعاليت پوره بيان کوي ، دا پېښه په يوه دره کې چې بنايي نن هم دپيژندلو وي . دا د اوستارزيو ( Ustarzai ) او رئيسانو ( Raisan ) دکليو تر منځ پېښه شوې وه . بابر د پښتنو يو لرغونى دود بيانوي چې ده دلومړي ځل لپاره دلته ليدلى و . يو شمير قبيلوي خلک اسير نيول شوي وو او له مرګ څخه دخلاصون په خاطر يې ننواتې کولې او پړي يې غاړو ته اچولي او شنه واښه يې په خولو کې نيولي وو . ددې مانا داوه چې موږ ستا پسونه يو ، کولای شې چې حلال مو کړې . له دې پېښې څخه وروسته دتل له لارې دبنو خواته وخوځېده ، دې په رښتيا سره دبنو سيمه په واقعي ډول آواره او آباده سيمه بولي . او شمال ته يې غرونه ښيي چې دکورمې سيند يې له مينځه تيريږي . دهغو قبيلوي نومونو په جمله کې چې دبنو او اباسين تر منځ پر کرهنه بوخت دي دکرلاڼي يادونه کوي او دکراني ( Karrani ) په نامه يې يادوي او همدارنګه دلودي قبيلو ، نيازيو او عيسې خيلو هم ذکر کوي . هغه کرلاڼي چې نن دبنو په شاوخوا کې دي ختک او ددوی تربرونه شيتک دي او په بنوڅيو مشهور دي ، نيازي او عيسى خيل همدلته وو چې نن هلته اوسيږي . او دبابر « کراني » به هرومرو نننې ختک يا شيتک وي او يا به دواړه وي .

دلته پوځ يو ځل بيا حپل مهال وبش ته بدلون ورکړ او له لارګي جلګې ( Largi Valley ) څخه د « دشت » خواته ( مقصد يې دامان او ديره جات و ) وخوځېدل او د تخت سليمان په لمنو کې دډکي Duki او « آب استاده » له لارې غزني ته راستانه شول ، ډکي د بلوچستان د « لورالي » دسيمې يوه برخه

ده ، دپوځ یوه برخه داباسین پر ښي غاړه تر « سخي سرور » پورې ولاړه . بابر د سخي سرور زیارت ښه تشریح کړې دی او نن هم دې زیارت ته ډیر خلک ورځي . مګر دوی له سیند څخه پورې نه وتل . یو زړه ورسړی ، دبابر ساقي په یوازې ځان له سیند څخه پورې ووت او هلته مخاخ زیات شمېر دښمنان وو چې توري یې پړکولې اودوی په دې فکر وو چې څوک پردوی یرغل نه کوي . مګر دبابر ساقي کله چې وچې ته ورووت ،دومره ستوماني یې وایستله لکه شیدې چې تودېږي نوبیا یې پرېکړه وکړه چې پر دښمن یرغل وکړي او ښه پوهیده چې شاته یې هېڅ مرسته او ملاتړ هم نه شته . ده په ډیر سرعت سره پر دښمن یرغل وکړ . دوی پرده باندې دغشو وارونه وکړل ، مګر دخدای کړه وو ،ټول له یوه سړي څخه وتښتیدل . بابر وایي چې زما ساقي بایزید نومي په یوازې ځان بې له مرستې په شاتوري آس دسیند په بله غاړه پر دښمن حمله وکړه پخپله له سیند څخه تیریدل ډیر غټ کار و . ټول لښکر یې مات کړ او سیمه یې ونیوله ، په دې موقع له ټولو پوځیانو څخه یوازي بایزید له دریا څخه تیر شو .

دبنګښو دسیمو په هکله بابر ډیر څه لیکلي دي اوپه دې متن کې دتوریو په هکله هم یادونه کوي او توري اوس هم دبنګښو د سیمو په یوه برخه کې میشته دي ، دبنګښو سیمه بیا تر سپین غره پورې دشمال خوا ته او همدارنګه یې تر بنوپورې د بنګښو سیمه بولي او نن په دا سیمه کې دتیري ( Teri ) خټک اوسېږي . بابر هېڅکله بریالی نه شو چې داسیمه په ټوله مانا تر حاکمیت لاندې راولي ، دی لیکي چې « دکندهار ، بلخ ، بدخشان او هندوستان فتوحات ډیر ارزښتناک وو او ما ددې وخت درلود چې دبنګښو سیمې تصفیه کړم .بنګښو مالیې نه ورکولې او ده ویل چې که چېرې الله تعالی زماهیلې ترسره کړي نو په لومړي فرصت کې به داسیمه پاکه کړم او

دچورا وچپاول مخنیوی به وکړم . همدارنګه دیوې بلې قبیلې په هکله لیکي چې څلور پیړۍ وروسته لاهم داقبیله هماغه شان ده او په کرکتر کې یې بدلون نه دی راغلی ، « داقبیله وزیر افغانان دي چې هېڅکله یې مالیه په منظم شکل سره په معین وخت کې نه ورکوله .......... نن یې درې پسونه باج راوستلي دي . » دبابر هیلې ترسره نه شوې . بنګښ او توري توروته پاتې شول چې تر نظم لاندې راوستل شول . وزیر و خو لا تر ۱۹۵۷ پورې هم مالیه نه ورکوله .

بابر بیا تر ۱۵۱۹ پورې دهندوستان خواته زړه ښه نه کړای شو . پر ۱۹۰۷ کال بابر دکتواز په سیمه کې له غلجیو سره پر جګړه کې اخته شو . دی دغلجیو دیوه کاروان بیان داسې کوي . توره تیاره ښکاري یا به غلجي لیږدي او یا به تور دود وي . او دغلجیو دپیغلو دا سندره را یادوي :

په غتو سترګو راته ګوره
سبا به پریوزي زما په مخ سپیره ګردونه

یا :

نن په څیر څیر راته وګوره
سبا به پټه شم دکډو په ګردونه .

که څه هم بابر ښتینی او ژوندی دی خو دغلجیو دمختلفو قبیلو په هکله یې لازم معلومات نه دي ورکړي . حتی دی پردې نه پوهیده چې لودي امپراتورچې دده په لاس نسکور شو هم غلجی و ، دی دیوه لوهاني سوداګر په هکله لیکي چې ټانک ته نږدې یې دده سر پرې کړی و او دده حضور ته یې وروړی و . ( لوهانیان اوس هم دټانک په سیمه کې اوسیږي . ) خو بیا هم بابر پر دې خبر نه و چې لوهانیان هم غلجي دي .

د ۱۵۰۸-۱۵۱۹ ترمنځ موده ، دبابر په خاطراتو کې وقفه راغلې ده .

ددې مودې په دوران کې دبابر د فعالیتونو په هکله ډېر لږ معلومات شته .
مهمه خاطره دده ملګرتیا له شاه اسمعیل صفوي سره ده چې هغه هم
دښوطالعو خاوند نه و . ده هم دکندهار پر سیمه باندې هر کال یرغل کاوه او
بابر هم هڅه کوله چې د کابل - کندهار پر لاره ځانته یو بیز تینګ کړي او
دهندوستان دنیولو لپاره یې پښې ټینګې شي . کله چې دبابر خاطرات پر
۱۵۱۹ کال بیا پرانېستل کیدل بابر په باجوړ کې واو دسیمې دپوځي کلا پر
نیولو بوخت و . ددې خالیګاه له وجهې څخه موږ ته دادلیل روښانه نه دی چې
ولې بابر دباجوړ له خوا یرغل وکړ ، مګر دیوسفزو ددوله مخې ، ده له ملک
احمد دیوسفزو مشر سره روغه ، جوړه درلوده چې دوېم ځل لپاره د کابل په
دربار کې ورسره ووینې او هغه انکار کړې و له همدې وجهې څخه بابر په
قارو . په هغه وخت کې یوسفزي په سوات او سمه کې دملکنډ جنوب ته
اوسیدل . اوس هم هملته اوسېږي . ملک احمد خپل تره زوی ملک شاه
منصور چې دملک سلیمان زوی وهلته ورواستاوه ، دیوسفزو په قول ملک
سلیمان دبابر د تره الغ بیګ له خوا وژل شوی و . نو بابر تصمیم نیولی و چې
سوات ته ننوځي او یوسفزو ته سزا ورکړي . ده ددې کار لپاره دباجوړ لاره
خوښه کړه او غوښتل یې چې ددې کار په ترڅ کې غیر افــــــغاني جیباري
(Gibari) حاکم چې الغ بیګ سره مخالف و هم وټکوي.

داکیسه دبابر داصلي مرام لپاره یو پرتوګ اغوستل وو . بابر پرېکړه کړې
وه چې دیوسفزو تکړه او له قدرت څخه ډکه قبیله وځپي ، سوات او دپېښور
شمال ته سیمې دهندوستان له نیولو څخه ژغیت کړي . دااصلي واقعیت دی
چې دبابر دتبصرو او دده له راتلونکي پروګرام څخه دا په ډاګه معلومیده ، کله
چې ده باجوړ ونیوه او له یوسفزو سره یې محاسبه وکړه ، دلومړي ځل لپاره له
اباسین څخه تېر شو او دمالګې غرونو Salt Range وطن یې دجهلم

دغاړې تر بيره (Bhira) پورې ونيوه . دى ليكي : « كله چې مور باجوړ ونيوه . بيا كابل ته له راستنيدو څخه د مخه موقصداً د Bhira بيره د نيولو اراده وكړه او مور همیشه د هندوستان د نيولو اراده درلوده . »

د دې پښتو په جريان كې بابر د باجوړ د جيباري (Gibari) حاكم ملك حيدر علي يز كلا باندې يرغل وكړ او د جندول له لارې پنجكوړې (Panjkora) ته ورسيده او هغه ځاى څخه چې د باجوړ دريا ور سره گډيږي په سيند پورې ووت . ( ښايي له تيمل گړې Timal garha څخه به لرې نه وي چې نن ورځ هلته پل شته . ) او خامخا به تلاش Talash ته ننوتلى وي . ( تلاش اوس په دير پورې تړلى دى) چې وكولاى شي د كټگلا Katgala له غاښې څخه د اوچ (Uch) په سيمه كې تېر شي او د سكندر مقدوني له لارې څخه سوات ته وركوز شي ،مگر د ده له ياد ښتونو څخه واضح ده چې دى پر دې لاره نه دى تللى او بر عكس جنوب ته گرځيدلى او بياد امبهار Ambahar له خوا د پښبور ساحې ته ننوتلى دى او تخت باهي Takht-i-Bahi ته نږدې كتلانگ Katlang ته ننوتلى دى او شهباز گړى Shahbazgarha ته نږدې موكم Mukam ويالې ته رسيدلې دى . د پلان د بدليدو په هكله له بيان څخه داسې ښكاري چې د بابر او ملك شاه منصور يوسفزي تر منځ روغه جوړه شوې او په نتيجه كې د پر يكړې له مخې بي بي مباركه د ملك شاه منصور لور بابر ته واده شوې وه .

د بابر له خپلو خبرو څخه څرگنديږي چې دا واده د سولې په مقصد تر سره شوى و . دى ليكي چې شاه منصور د ملك سليمان شاه زوى له يوسفزو افغانانو څخه و چې د دوى دوستي زما لپاره د خلكو د رعيت كولو په غرض په گټه وه .

د دې لپاره چې يوسفزي له ځان څخه راضي كړم نو د ده د لور غوښتنه مې

وکړه او واده مې ورسره وکړ. داسې ویل شوي دي چې مبارکې او لادونه، نه درلودل. (همایون له بلې ښځې څخه و) او دا اکبر تر زمانې پورې یې ډېر عادي او بې شانه ژوند کاوه، دا هم رښتیا ده چې د بابر په خاطرا تو کې ښځو ته له احترامه څخه پرته نور څه خبرې نه شته. دده لومړۍ ښځه عایشه سلطان نومیده او دی دواده په وخت کې اوولس کلن و، دده په قول ډېر زیات د مور، دخبرو تر تاثیر لاندې و او په مناسب وخت کې به جرم ته تلو. د مینې او محبت په ارتباط له دې سره، ده څه نه دي لیکلي. دده بله ښځه معصومه نومیده. دی اعتراف کوي چې معصومې له ده سره زیاته مینه درلوده او دخپلې مینې په هکله یې څه نه دي لیکلي.

بابر ددې سړی نه و چې فعالیتونه دشرایطو مطابق عیار کړي، بلکې د ښه حرئت خاوند و. ده د مبارکې پلار ته په متواتر ډول اشاره کړې ده او پوره څرگندېږي چې فکر یې پر نجلۍ باندې پوره مصروف و او په دې هکله کیسې هم شته.

ټول افغانان په تېره بیا یوسفزي د دود له مخې نه غواړي چې خپلې نجونې پر دیو ته واده کړي. یوسړی به سلگونه دوستان ولري او کلونه کلونه به کور ته تگ راتگ کوي خو سر تورې نه شي لیدلی، خبرې خو لا پر ځاي پرېږده. دا ډېر کلک دود دی چې پښتانه یې دنجونو په هکله تر نن پورې تطبیقوي، مگر دمبارکې او بابر په هکله د یوسفزو په هوجرو کې د مینې او مینتوب کیسې ویل کېږي، دمبارکې او شهزاده دلیدلو او مینتوب په هکله وایي چې مبارکې به دموراغاښې Morah Pass له چینې څخه اوبه وړې او شهزاده بابر له ځان څخه قلندر جوړ کړی و. کیسه وایي چې په لومړي نظر یو پربل مین شول. داسیمه ډېره ښکلې او شاعرانه منظره لري. شنې ونې او ښکلې دچینو اوبه او دنگ غرونه زړه راښکونکي دي، له دې څخه وروسته بابر د یوسفزو خانانو

سره روغه جوړه وکړه او د پخلاکیدو په پلمه یې مبارکه وغوښتله او واده یې ورسره وکړ . په هرحال د مینې کیسې هرډول چې وي خو وي به ، دا چې بابر د پښتنو قبیلو په هکله زیات معلومات درلودل او ددوی ژبه یې افغاني بلله ، ښايي ددې یو علت به هم د مبارکې شته والی وي چې بابر ته به یې د افغانانو د هرڅه په هکله معلومات ورکول . د قبیلو ، کلو .بانډو ، ښارونو او لارو په هکله د بابر جغرا فیوي معلومات ډیر زیات وو . نو کیدای شي چې د مبارکې موجودیت هم په کې موثر وي .

دلته یوه یادونه کوم چې بابر د هیلاس ( Hellas ) دخلکو په شان له هلکانو سره مینه درلوده په تېره بیا د ځوانۍ په عمر کې یې له هلکانو سره جنسي اړیکي ساتل او بالخاصه پر یوه هلک باندې چې بابوری نومیده زړه بایللی و . کله به یې اشاره کوله چې مونږ دواړه په یوه نامه یادیږو . د مرکزي اسیا سړي اکثراً هم جنس بازان وو . که څه هم قران کریم دلوا طت په هکله دلوط علیه السلام قوم او د سودم Sodom ښار غرق کړل خو دوی ورڅخه عبرت نه واخیستی او له ښځو سره یې مینه نه وه . ښځې ددوی په ټولنه کې منزوي شوې وې . د بابر دلواطت عمر په هغه وخت کې د ټولنې یوه نیمګړتیا وه چې عمومیت یې درلود . دده د نورو ګناهونو په شان د هلکانو شهوت هم دده روح او جسم نا آرامه کړی ، لکه چې دی پخپله وايي : « زه به لوڅې پښې او لوڅ سر په کوڅو او سړکونو کې ګرځیدم ، باغونه او باغچې به مې لټولې دهیڅا پروامې نه کوله . ددوست او دښمن په کیسه پسې به نه ګرځیدم . قصرونه او باغونه مې لټول چې هلته آرام وکړم . مګر نه به تلای شوم او نه به دریدلې شوم ، نه به کیناستی شوم او نه به مې قدم وهلی شو . »

دا کیسه د افغانانو او پښتنو د ځوانۍ د دورو انعکاس کوونکې هم ده . لکه د داود David او جانتن (Jonathan) مینه ، چې د شرم موضوع نه بلل

کیده ، سره له دې چې علما او شیخان ډیر زیات مخالفت ښیي او داسې اعمال شدیداً غندي ، ډیر کسان پر دې فعل اخته دي او دا مینه او محبت ، پاکه مینه بولي .

داچې بي بي مبارکې باندې بابر مین و او که نه ؟ خو بي بي مبارکه د باجوړ په کلا کې اوسیده او شهزاده به احتمالاً دامبهار له لارې د پښور جلګې ته تلو او سمه به یې لټوله . دی د خپلو لیکنو په ترڅ کې دلته د هوارو سیمو یوسفزو ، مندړو او داشنغر محمد زیو په هکله یادونه کوي . له دې ځخه وروسته دی د کتلانګ له لارې د موکم Mukam جلګې ته ننوت ، دلته له موکم ځخه کوچنۍ ویاله بهیږي او له شهباز ګړۍ (Shahbazgarha) ځخه تیریږي . شهبار ګړۍ هغه ځای دی چې هلته اشوکا خپل فرمان دغره په ډبره کې کیندلی دی ، د موکم ویاله د مردان لاندې د کلپانې Kalpanri سره یو ځای کیږي او بیا نو شهرې ته نږدې لنډي سیند ته ورتویږي ، بابر خپلې کیسې ته دوام ورکوي : « خو کله چې د موکم دوادۍ ، د موکم غرختمیږي هلته یوه غونډۍ ده چې تولـه سمه ور ځخه ښکاري . دا نقطه ډیره ښایسته ده او ترکومه ځایه چې دسترګو دید کار کوي تولـه سمه ور ځخه ښکاري . د دې غونډۍ پر سر د شهباز قلندر زیارت دی . زه دلته ورغلم . ما ډیر فکر وکړ چې په دې ښکلي ځای کې باید د یوه ملحد او کافر زیارت نه وي ، نو ځکه مې امرور کړ چې دا قبر ړنګ کړي . ډیره ښه موقع وه ، اقلیم ډیر ښه و او هره خوا ښایسته او ښکلې ښکاریده . دا د فبروري میاشت وه . ما معجون وخښل او تر څه وخته پورې همدلته وم . »

د موکم غونډۍ « غر » د شهباز ګړۍ د دغه ځای له دوو غونډیو ځخه یوه ده ښایي هغه وي چې شمال خواته د ویالې د پاسه واقع ده او پر دا بله غونډۍ باندې د اشوکا کیندل شوی فرمان دی . داچې شهباز څوک و زه هیڅ

معلومات نه لرم. خود بابر له دې معرفې څخه داسې حدث وهل کيږي چې داشوکا دبودايي زمانې کومه خاطره په وي. پر دې سربيره د دغو دوو غونډيو ترمنځ دغاښي له پاسه سوابۍ ته سړک تيريږي او دادره اوس هم کافر دره بولي اونږدې دلته دستومانې ايستلو لپاره سرای جوړ شوی چې نن هم بودا سرای Budaserai بلل کيږي او بودا به دلته ستوماني لرې کوله.

څمله دې مېلې څخه وروسته بابر د سوابۍ شاوخوا دګرګدن دښکار لپاره ولاړ. دده په بادښنو کې سوابۍ په سواتي ليکل شوې ده. ښايي دا ښکار ځای ترازنيزار (ډيلو زنګ) وي. نن داځيل (زنګ) نه شته او پاک شوی دی اود يارحسين جنوب ته پروت دی او بايه دښکار ځای داباسين غاړو ته نږدې دتوپي (Topi) دغونډيو لاندې جنګلزار وي. له دې څخه وروسته دهوند کلي ته نږدې داباسين له اوبو څخه پورې ووت. دا يوارزيني ځای و چې دژمي په شپو کې داوبو دکموالي په صورت کې دپورې کيدو امکان موجود و. او ښان او آسان په اوبو ورګډ شول پلي سر ښړي او دسوارو بارونه په جالو کې پلې غاړې ته ور پورې وتل.

بابر له اباسين څخه تېر شو خو يوازې يوه مياشت يې پر هغه غاړه تېره کړه او له جهلم څخه تير نه شو. له اباسين څخه دوباره راپورې ووت. دا وارد کابل دريا او داباسين دګډيدو په نقطه کې څوميله له اټک څخه ښکته په جالو کې راپورې وتل. دااټک کلا په هغه وخت کې جوړه شوې نه وه. دادمارچ مياشت وه اوهره خوا په ښکلو ګلانو ښايسته شوې وه. دبابر زړه دپښور دلارې په اوږدو کې ښکلو باغونو او رنګارنګ ګلونو وړی و. دی ليکي: «زه په لوړه نقطه کيناستم چې زما له کمپ سره نږدې وه دسيمې د ښايسته ګلونو سيل مې کاوه ........ يوې خواته زيړ ګلان وو او بلې خواته سره او نورډول ډول ګلان وو. تر کومه چې سترګو ليدای شول هرې خواته ګلان وو. دپسرلي پر وخت

د پېښور شاو خوا په رښتيا ښکلي ګلان غوړيدلي وي . »

ترنن پورې په پېښور کې د ګلانو ښايست شته او پېښور له پخوا الازيات ښايسته ښکاري . په تېره بيا د کوکنار و بوټي چې کرل يې رواج شوي دي تول ځمکه يې پوښايسته ګلانو پټه کړې وي او نه هيريدونکې منظره تشکيلوي . د لاله د ګل په شان هر پخوا ته سره او ښايسته ښکاري .

څو ورځې وروسته بابر کابل ته راستون شو او دده دويمه لښکر کشي پای ته ورسيده . کله چې کابل ته راغی شاه منصور او د يوسفزو نورو خانانو ته يې کالي او چپنې د احترام په شکل تحفې ورکړې . ځکه چې دوی په دې سفر کې د بابر مصاحبان وو . دا څرګنده خبره ده چې د يوسفزو اهميت يې له فکر څخه نه و ، وتلی او واقعاً د بي بي مبارکې پلار د خلات وړ و .

څو موده وروسته د عين کال يانې ۱۵۱۹ په مني کې بابر د دريم ځل لپاره د خيبر له لارې لښکر کشي وکړه او د پېښور جلګې ته ننووت . داسې معلوميږي چې د سوات يوسفزي پر خپل عهد نه وو ولاړ . که څه هم د بي بي مبارکې موجوديت هم خپل ځای درلود ، پاچا پلمه وکړه چې يوازې د کنترول لپاره راغلی ، مګر ډېر پر مختګ يې ونه کړ ، د الفنستون په قول رښتيا چې بابر پر دې قبيله باندې چندان تاثير نه و پرې ايښی او د زور په وخت کې غرو ته ختلای شول . د يلازاکو ، ده ته مشوره ور کړې وه چې د هشتنګر يوسفزي لوټ کړي چې ځانونه يې نه شوای تينګولی او تول غنيمت دې د لارې د امنيت ساتلو په مقصد د پېښور او اشنغر کلاګانو د ذخيرې لپاره ور کړل شي .

د هشتنغر داړه له مايوسي څخه ډکه وه او هغه وخت سوات هم کانالونه ، نه درلودل . د لارې په اوږدو کې يې نوې پرېکړه وکړه چې پر اپريديو يرغل وکړي او چورې کړي . دا لومړی او ښايي اخري داړه وي چې په اپريديو يې کړې وي . دا ځکه چې هغوی په خپله مشهور داړه ماران دي او لوټ د دوی کسب

دی . دهمدې مقصد لپاره دده پوځ علي مسجد خواته پر مخ ولاړ . مګر دا پلان هم دبنګښو دپلان په شان ناکام شو . دبدخشان په هکله هم بد راپورونه راورسیدل او دی مجبور شو چې کابل ته راستون شي . دلارې په اوږدو کې يې خضرخیل (Khizarkhil) وتکول . دا دشینوارو یوه پښه ده چې اکثراً به با-غي وو . دده دوزیرو قبیلې هم دې ته اړې کړې چې مالیه ورکړي او په نتیجه کې يې څه پسونه او میږې تر لاسه کړل . لا لښکر کشي څه ناڅه ارزښت ناکه وه ځکه چې اپریدي ، شینواري او دپښور قبیلې یې په واهمه کې واچولې او دالاره چې په دوی ورتله دهندوستان د نیولو لپاره تر ټولو مستقیمه لاره وه.

يو کال وروسته په ۱۵۲۰ کې دځلورم وار لپاره يې لښکر کشي وکړه . مګر دده په خاطراتو کې بیا خالیګاه راغلې ده نو ځکه زموږ معلومات ډېر محدود دي . بابر دا وار تر سیالکوټ پورې پر مخ ولاړ او دلته يې د هغه چا پر مجازاتو لاس پورې کړ چې له ده سره یو ځای شوي وو؛ خو بیا له ده څخه او ښتي وو او دبابر افسران يې شړلي وو . موږ ته دده له لارې او دسرحدي قبیلو په هکله چې بابر څه ورسره کړي دي معلومات نه شته . دی بیرته تګ ته بیا مجبور شو او دکندهار په هکله ناوړه خبرونه ورته رسیدلي وو او کندهار يې پر ۱۵۲۲ کال وځپه .

دده پنځم وار لښکر کشي پر ۱۵۲٤ کال وشوه چې لاهور او سرهندې ونیول . دده عملیات دپنجابي قبایلو پر ضد تنظیم شوي وو . داپنجابي قبیلې دهزاره او حسن ابدال ته نږدې غونډیو او سیدونکي وو . داجګړه دسیمې د افغاني قبیلو پر ضد چې دلودي امپراتورۍ خواخوږي وو ، نه وه تنظیم شوې ، خو داکیسه زموږ له بحث څخه دباندې ده . بابر مجبورو چې دلودي رژیم د پلوي امیرانو داردو پر ضد وجنګیږي . هغوی هڅه کوله چې لاهور بیا ونیسي . بابر وروسته بریالی شو ځکه چې دپنجاب یو لودي فیودال

دولت خان او د ده زامنو غازي خان او دلاورخان د بابر پلوي وکړه او د ابراهیم لودي سره وفاداري یې ګټوره نه بلله . ابراهیم لودي له خپل پلار سکندر لودي څخه وروسته پر ۱۵۱۷ کال د ډهلي پر تخت کښیناست .

ابراهیم لودي ډېر قارجن او عصباني پاچا و او ده د سیاست ښایست نه درلود . هغه افغاني خانان چې لودیان یې سلطنت ته رسولي وو ، د ابراهیم لودي د بدې رویې په نتیجه کې زړه بدي شوي وو او د ده پر ضدیې د دښمنانو ملاوتړله . دولت خان چې د ابراهیم لودي پر ضد د بابر پلوي وکړه اصلاً یې دا پلان درلود چې ځانته مستقل حکومت جوړ کړي . پر دولت خان باندې هم ډېرې جګې او ټیټې راغلې . ډېرې سرې او تودې یې ولیدلې او د بابر له خوا بندي شو . بالاخره پر دې بریالی شو چې د ختیز پنجاب په غونډیو کې ځان خوندي کړي . بابر پردې بریالی شو چې په پنجاب کې د امپراتور ورور علاوالدین د ځان ملاتړی کړي خو دومره قوت یې نه درلود چې پر ډهلي یرغل وروړي . دی لاهورته په شا شو او بیا کابل ته ستون شو .

بابر پر ۱۵۲۵ کال بریالي شو چې هند ته ننوځي او د ۱۵۲٦ کال د اپریل په میاشت کې یې ابراهیم لودي ته ماتې ورکړه . ابراهیم لودي د سختې جګړې په جریان کې د پاني پت په میدان کې ووژل شو او د مغولو امپراتوري افتتاح شوه . د بابر په دې سفر کې د سرحدي سیمو خاص حوادث د علي مسجد په ساحه کې د ده څو ورځې استراحت او د ګرګدن ښکار و . د پېښور په ګاونډ کې د زخي (Zakhi) د ډېلو ځنګلونه د ګرګدن د ښکار لپاره ښه ځای و .

وروسته زما په وخت کې ( د لیکوال په وخت کې ) د جنایتکارانو ځاله وه ، دی لیکي : « په علي مسجد کې د کمپ لپاره سیمه کمه وه ما د ځان لپاره یوه لوړه خوښه کړه چې له هغه ځای څخه مې د کمپ د اور لمبې لیدلې چې ډېرې ځلیدونکې او ښایسته وې . دلته هر وار چې پاته شوی یم ما خپل خواړه څنګل

او له ماحول څخه مې خوند اخیست . » په ښکار کې به یې هاتي او ګرګدن سره واچول او سیل به یې کاوه او دیوه بل عکس العمل به یې کاته . ګرګدن له هاتي څخه وتښتیده او بابر دا د ځان لپاره نیک فال ونیوه . افغاني ملګري چې له ده سره وو خامخا به یې له دې صحنې څخه پوره خوند اخیستی وي .

په دغو تولو لښکر کشیو کې دبابر پوځونه ټینګیدل ځکه چې قبیلوي جنګیالي ورسره یو ځای کیدل . په تېره بیا یوسفزي او ځینې نور قبایل دمرکو او روغو جوړو دمخې له بابر سره یو ځای شوي وو . ددې مثال په لاندې ډول وړاندې کیږي او پر موضوع روښنايي اچوي : قاصوریه ( کاسوریا ) پښتانه Kasuria Pathans چې دلاهور جنوب ته دستلج دسیند پر دواړو غاړو اوسیږي . دمحمد زیو یوه پښه ده چې خو یشکي یې بولي . دوی دبابر له پوځ سره یو ځای شوي وو . دوی ته دا وعده ورکړل شوې وه چې په مرکزي پنجاب کې به ځمکې ورکول کیږي او جاګیر به ورته ټاکل کیږي ،خویشکي دمحمدزو دتره زامن دي چې په هشتنګر کې اوسیږي او ددوی کلی خورا مشهور دی چې دچارسدې او نو ښهرې تر منځ دکابل سیند په اوږدو کې پروت دی . یو شو کرښې پخپله دپښتنو له خوا له بابر سره داړیکو په ارتباط شته ، خوشال خان ختک دډهلي دپاچاهانو په هکله داسې وايي :

بیا له پاسه دډهلـــي بادشاه بابر شو
چې یې کار دپښــــتانه په بـــــرکت و .

بابر یقیناً تیاره لرې کړه او دده تر لاس لاندې سرحدي افغانانو ورو ، ورو شکل ومونډ ، بیا تر انګریزانو پورې درې سوه کاله وروسته دپښتنو قبیلو نومونه او لست له سوات څخه تر دامان پورې داسې په تفصیل چانه وو لیکلی . دبابر له خاطراتو څخه داسې نتیجه اخیستل کیږي چې دیوسفزي او بنګښ ملګرتیا ( بنګښ دسیمې نوم دی او په دې سیمه کې تر بنګښو نورې

قبیلې ډیرې دي ) دده په نظر د پښتني قبیلو په کمر بند کې له کابل څخه تر اباسین پورې د تولو او آرام ساتلو لپاره کلي ګڼل کیږي . که څه هم ده غوښتل چې په دې وخت کې کندهار هم تر کنترول لاندې راولي . مګر له قبیلو ي مخالفت سره نه و مخامخ شوی او حیرانوونکې خو داده چې دابدالیانو په هکله څه معلومات نه شته . دبابر په زمانه کې کوچیان او میشته غلجي تول په اوسني سیمه کې دغزني - کتواز شاوخوا او په دامان کې اوسیدل ، دی ددغو غلجیو او ددوی د تربرولو هانیانو یادونه کوي . نو سوال دادی چې ابدالي چیرته دي ؟ لا اقل دوی په داسې موقف کې نه وو چې بابر دهند دنیولو په هکله په تنګ کړي .

درې قبیلې بابر یادې کړي دي چې هغه وخت په اوسنیو ځایو کې نه وې . داقبیلې د یلازاک ، ګیګیاني او مومند دي ، دیلازاک دهشتنګر او دوآبه په سیمو کې په هغه ځای کې چې نن محمد زي او ګیګیاني میشته دي ، داهمیت وړ موقف درلود . دوی اوس هلته نه برېښي او د پېښور په سیمه کې دنویو راتلونکو تر سیوري لاندې تیت او پرک شوي دي ، داسې څرګندیږي چې ګیګیاني په خپله پېښور کې هلته اوسیدل چې نن ورځ د پېښور مومند او خلیل اوسیږي . دوی نن په دو آبه کې دي او بالاخره مومند دبابر په وخت کې دغلجیو اوسنۍ سیمه « مقر » کې اوسیدل چې د غزني جنوب غرب ته پروت دی او تر هغه وخته پورې پېښور ته نه وو راغلي . داتولې خبرې قبیلوې اړیکي او دودونه تائیدوي . له مومندو څخه پرته نورې غوریاخیل قبیلې لکه خلیل ، داودزي ، بابر نه دي ذکر کړي . داسې معلومیږي چې غوریاخیل دبابر تر وخته پورې پېښور ته نه وو راغلي ، مګر په هرحال دبابر له یادښتونو څخه دا پوره څرګنده ده چې څو مره قبیلې چې نن ورځ شته ، خورا زیات شمیر یې په هماغه وخت کې هم په ننني سیمو کې اوسیدل .

ما ته داسې ښکاري چې قبيلې د خپلو لېږدېدنو په هکله څه ناڅه مبالغه کوي . مور ته داسې ويل کېږي چې قبيلې له يوه ځای څخه بل ځای ته تر ۵۰۰ ميلو پورې لرې ځي او بيا له بومي او سيدونکو سره جګړې پيلوي او د هغوی ځمکې په زوره نيسي او خلک يې وژني يا يې شړي او يا يې په دهقانۍ نيسي .

زما په زمانه کې ماليدلي دي چې يوه قبيله راغلې او د بلې قبيلې ځای يې په سوله ييز ډول نيولی ، خو دا پروسه په اوږده موده کې تر سره شوې ده لکه په يوسفزو او محمد زو کې يوه سيمه چې د ( ميرې ) په نوم يادېږي او د سمې په شمال کې پرته ده پر ۱۹۱۰ کال ښه وبه شوه او بيا په زرګونو مومند له غرو څخه د غو ميرو ته راښکته شول. په لومړيو کې دوی د ګاونډي په توګه او سيدل بيا يې دا ځمکې اجاره کړې او د يوسفزو او محمدزو لپاره يې کار کاوه دوخت په تيريدو سره دوی بډای شول دا ځمکې يې لومړی ګرو کړې او يا يې په پيسو واخيستې . نوی خاوندان ښه بزګران او وينه يې همېشه په غورځنګ وه او په دې توګه يې دزړو خلکو ځای ونيو او په نتيجه کې يې زړې قبيلې بې ځايه کړې او نوې ځای پر ځای شوې . نن ورځ ويل کېدای شي چې د يوسفزو او محمدزو ميرې دوخت په تيريدو سره مومند و اشغال کړې . زه فکر کوم چې ټولې قبيلې چې لېږديدلې دي په دې شکل سره لېږديدلي دي . زما زړه ته نه لوېږي چې يوې قبيلې دې دبلې قبيلې ځای په وچ زور له اولې ورځې څخه نيولی وي . د داسې لېږدېدنو په جريان کې وينه ګډه شوې . يو له بل سره ودونه شوي او حتی داسې وخت به رارسيدلی وي چې د قبيلې اصلي نوم به بدلون موندلی وي .

د دې زيات احتمال په حاصل خيزو هوارو سيمو کې ليدل کېږي . په غرونو کې بدلون ډير کم او حتی هېڅ بدلون نه ليدل کېږي . ډېرې پېړيو را هيسې هماغه قبيلې په خپل حال پاتې شوي دي او لېږترلږه تر اسلام د مخه هم په خپل

نوم پیژندل شوې قبیلې وې چې اوس هم شته . دا په زړه پورې ده کومې لیږدیدنې چې شوې دي دختیزو پښتنو په سیمو کې شوي دي چې دخرشبون دکرښې سړبني ، غوریا خیل او ککي خیل دي . دالیږدیدنې په اپریدیو ، اورکزیو ، بنگښو او وزیرو کې چې دکرلاڼي دکرښې قبیلې دي نه لیدل کیږي او که کله لیږدیدلې دي هغه ډیر وروسته په تاریخي زمانو کې لیږدیدلې دي لکه ختک . دبابر لیکنې پورتنې لیږدیدنې تائیدوي . یوازینۍ استثنا داده چې دیلازاک چې په ختیه کرلاڼي دي بیخي ورک شوي دي . ډیر یې حتی افغانان هم نه بولي . مگر بابر ددې نظر تائید نه کوي . دځایونو دنومونو له مخې احتمالاً دیلازاک دغوریا خیلو په قبیلو ، خلیلو ، مومندو او داودزیو چې دپېښور شاوخوا پراته دي ، ورگډ شوي دي .

په بل عبارت دبابر شواهد دیو عام نظر له مخې له دې سره مخالفت نه ښیي چې دیلازاک افغانان او پښتانه دي ، لکه چې ددې کتاب په مخکینیو څپرکو کې یادونه شوې ده .

# دوولسم څپرکی

## د پښتنو قبيلې

دمحمود غزنوي دزمانې او دبابر درامنځته کيدو دزمانې تر منځ په کومه موده کې دالبيروني پښتانه « هغه جګړه ماراو خونړي نژادونه » چې دالبيروني په وخت کې يې له هند څخه لرې سرحد دکابل په استقامت اشغال کړي و ديوسفزو او نورو قبيلو په چوکاټ کې چې نن يې پيژنو ، وده کړې ده . په همدې زمانه کې چې نږدې پنځه سوه کاله کيږي دالبيروني دکندهار ( دهغه وخت ګندهارا يې مقصد دی ) په مقابل کې پنځه سوه ميله لرې دافغانستان په جنوب کې بل کندهار ( ننني کندهار ) هم سيالی ته راوچت شو . که څه هم دا پنځه پيړۍ چې دمحمود له زمانې څخه پيل کيږي او دهندوحکومت دړنګولو لپاره يې پر ګندهارا او پنجاب يرغلونه کړي او بيا تر بابر پورې چې هغه د خپل ارتباط کرښې په دې سيمه کې ټينګولې ( ۱۰۰۱-۱۵۰۵ )

داسلام دوره ده چې واقعاً پنځمه ، شپږمه ، اومه ، اتمه او نهمه اسلامي پیړۍ تشکیلوي اوله ټولو تاریخي منابعو څخه داسلامي منابعو په شمول ددې سیمې ددغې دورې په هکله ډیر لږ معلومات په لاس کې شته چې ددغو سرحدي قبیلو دلېږدیدنو ، نورو حرکاتو او پر مختګونو باندې رڼا واچوي . غزنویان او غوریان له دې سرحدي غاښو څخه دخپلو پښتنو ( افغانانو ) او غلجي لښکرو سره هند ته واوښتل او راواوښتل مګر دکومې قبیلې او ټبر نوم په کې مشخص څرګندنه شو ، د سلیمان له غرو څخه پښتانه غلجیانو او لودیانو هند کې دافغان په نوم امپراتورۍ جوړې کړې . خوارزم شاه ، چنګیزخان اوګوډ تیمور هر یوه دلنډې مودې لپاره ددې سیمې لویې لارې ونیولې . هیڅ یوه دسرحدي قبیلو په هکله څه ونه لیکل حتی خپله سرحدي قبیلې ډیر لږ معلومات لري . تر څو چې بابر میدان ته راووت .

همدا وخت د ی چې مسلمانو تذکره لیکونکو څه ناڅه لیکلي او په غیر واقعي شکل سره په پښتو کې داوسنیو موجود و موادو اساس بلل کیږي او متاسفانه چې له دې تاریخي زمانې څخه دمخه څه په لاس کې نه شته .

ډیرې لیکنې کوټه شوي دي ، دیوسفزو او داړونده ټولو قبیلو تاریخ ورڅخه جوړ شوی دی . تر ټولو مهم اثر په دې هکله چې دمونسټوارت الفنستون Moantstuart Alphinstone او برنهارډډورن Bern-hard Dornروسی لیکوال او مورخ دالفنستون هم عصر له خوا یاد شوي دي هغه « تاریخ حافظ رحمت خاني » دی . دا کتاب په پارسي ژبه په کابل کې پر ۱۱۸٤ هجري ( ۱۷۷۱ میلادي ) کال لیکل شوی دی . دراورټي Ravertyپه حواله داکتاب دپښتو پر پخواني نثر چې شیخ ملي او خان کجود شپاړسمې پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې لیکلی دی ، ولاړ دی ، دوی دیوسفزو دیادونې وړ شخصیتونه وو چې دهغوی په هکله به وروسته خبرې

وشي . آیا شیخ ملی او خان کجو دبابر یا دهمایون هم عصره شخصیتونو په رښتیا سره لیکنې کړي دي او که نه ؟ په یقین سره ثابته نه ده . فرضاً که دوی دالیکنې کړې وي ، دعلاقی ور خو داده چې ولې له بابر څخه دمخه ددغو لیکونکو اثار دیېښور دقبیلو په هکله نه وو څرگند ؟ بابر کله چې داسیمې ونیولی په خپله یې پر کار پیل وکړاو داقبیلې یې تولې ولیکلې . دمغلو په راتگ سره داسې پیښه شوه چې پښتانه تذکره لیکونکي راوپښ شول او ځانته متوجه شول . ددغو تذکرو دلیکنو پیل تقریباً همدا وخت دی . داسې ویل کیږي چې یو سفزي دکندهار له شاوخوا څخه دکابل له لارې دیېښور وادۍ ته راغلي دي او دیېښور ترټولو لو یه قبیله ده . ددوی حریفان خلیل او مومند چې په غوریا خیلو گډیږي هم تقریباً له عین سیمې څخه راغلي دي . دوی دمقر له Nushki نشکۍ او گړاه (Garah) څخه را خوځیدلي دي چې داسیمې کندهار ته نږدې پرتې دي او ددوی اصلي استو گنځی و . دراورتي په حواله دانشکۍ دبلوچستان نشکۍ نه ده چې دبلوچستان قلات ته نږدې پرته ده ، بلکې دا یو ځای دی چې نن ورځ دمشکي Mashkki په نامه سره یادیږي او له غزني څخه دیرش میله لرې دجنوب خواته پروت دی. په هر حال هر څه چې وي. وي به . خو دیوسفزو دودونه راښیي چې دوی دڅوارلسمې پیړۍ تر پیل (اتمې هجری پیړۍ) پورې دکندهار په شاوخوا کې اوسیدل او بیا پېښور ته لیږدیدلې دي . مگر دا دحیرانتیا وړ تصادف دی چې دپخوانۍ گندهارا (دالبیروني کندهار) نننی اوسیدونکي کاکي (Khakhay) او غوریا خیل قبیلې څه ډول اوڅه وخت له کندهار څخه راغلل . حال دا چې کندهار ولایت او ښار وروسته پیداشوی دی ، سوال دادی چې د افغانستان ددغه جنوبي ولایت نوم کندهار څه ډول راپیدا شو .

په دې کې خو هیڅ شک نه شته چې دمحمود غزنوي دوخت دیوولسمې

پيړۍ کندهار چې البيروني ياد کړې دی د گندهارا (ننني پېښور وادي) عربي شوی شکل دی. داد کندهار ښار نه دی او د ټولو مسلمانانو ليکوالو په اثارو کې د کندهار د ښار ذکر نه شته. که د کندهار ښار موجود هم و. خو د توجه وړ اهميت يې په برخه نه و او چيرته د هغه ذکر نه دی شوی. بيلو Bellew عقيده لري چې کندهار د گندهارا د مهاجرو په واسطه جوړ شوی دی چې د پردو له يرغلو څخه له گندهارا څخه تښتيدلي او دلته ميشته شوي دي. د هيرودوتس گانداريوي Gandarioi خپل نوم د غې نوې سيمې ته ورکړ. هغه يرغلگر چې دوی يې وشړل، هيرودوتس هغوی سايتيان (Seyths) بولي او د دې مهاجرت نيټه پنځمه او د شپږمې ميلادي پيړۍ پيل بولي. له دې څخه څرگنديږي چې په تاريخي لحاظ به داخلک سپين هونيان وي او د ده سايتيان واقعاً د گوجرو او جټانو نيکونه دي، د هيرودوتس په حواله د غه مهاجر نه يوازې د گندهارانوم خپلې نوې مستعمرې ته ورکوي، بلکې لس پيړۍ وروسته بيرته اصلي ټاټوبي ته يوه غښتلي استعماري قوا راليږي. هغه څوک چې اصلي ټاټوبي ته راوگرځيدل د تبعيد په زمانه کې د اسلام د منلو او قبلولو په واسطه يې اصلي کورهير کړی و. مگر هغه کاکي او غوريا خيل چې راستانه شوي وو په ډيرې اسانۍ سره د پېښور د وادۍ او شاوخوا سيمو کې له نفوسو سره مله او يو ځای شول. چې د همدې حرکت پر بنياد بيلو Bellew خپله تيوري تائيدوي.

د بيلو تينگار پخپله نظريه د تاريخي فکت په توگه د ثابت تاريخ په ډول د منلو وړ نه ده. لرغوني فرض شوي مهاجرتو نه د اسنادو، سکو، ليکنو او کتيبو په واسطه نه وو تائيد شوي، صرفاً د اسې تيوري ده چې د دوو «قندهار» داړيکو له مخې طرح شوې ده. اسلامي دايرة المعارف ياني Encyclopaedia of Islam د دې تيوري يادونه کوي

چې په دې هکله دې نورې څېړنې هم په راتلونکې کې وشي . د کندهار د دې متن ، پخوانی نظر چې کندهار سکندر جوړ کړی او نوم یې سکندریه اراکوزیه Alexandria Arachosia ده ، ردوي . د دې لپاره شواهد نه شته چې تائید یې کړي او دا هم سمه نه برېښي چې کندهار دې له سکندرېې څخه اخيستل شوی وي . متن داسې ادامه مومي : « د دې مشابهت له گنداهارا سره چې د کابل سیند د ښکتنۍ وادۍ د هندوشاهانو لرغونی پایتخت و هغه لا پخوا آبادشوی و منطقي نه ښکاري ، قندهار د عربي تذکره لیکونکو له خوا د گندهارا عربي شوی شکل دی ، د مسعودي او البیروني کندهار له نوي کندهار ښار سره هيڅ اړیکي نه لري . دلته د « بیلو » د نظریې د تائید لپاره ښه دلیل شته . یانې کله چې له گندهارا څخه مهاجر اراکوزیا ته ولېږدېدل او نوم يې هم له ځان سره یوړ . ډېر مناسب او ښه احتمالي وخت به د دې مهاجرت لپاره پنځمه پېړۍ وي . دا هغه وخت دی چې يفتليانو گندهارا ونیوله او چينايي سياح سنگ يون گندهارا ته پر ۵۲۰ ميلادي کال سفر کړی و او دې موضوع ته یې اشاره کړې وه ، د بودا کچکول (کاسه ) چې له کندهار څخه د باندې د سلطان ويس په زيارت کې ساتل کيده احتمالاً د کوم بودايي صوفي مهاجر ( Monk ) له خوا راوړل شوی و .

بيلو Bellew د دغې کاسې (کچکول) په هکله ډېر څه ويل غواړي او ده دا کاسه پر ۱۸۷۲ کال ليدلې وه . دا کاسه (کچکول) اوس د کابل په موزيم کې ساتل کيږي . بيلو کله چې په کندهار کې دا کچکول ليدلی و ليکي چې دا يادگاري لويه کاسه ( کچکول ) چې اوه فټه قطر لري او له يوې توتې تورې تيږې څخه کيندل شوې ده د سلطان ويس په زيارت کې پرته ده چې له ننني ښار څخه څو سوه خطوې آخوا د زاړه ښار په غربي حصه کې واقع دی او زوړ ښار د نادر شاه افشار له خوا ويجاړ شوی و . داسې کيسه پاتې ده چې دا کچکول

( کاسه ) تر اسلام دمخه بودايي مهاجرو له پښبور څخه زاوړی و . ددې کاسې پر باندینې طرف باندې په نسخ رسم الخط لیکنې شوې دي ، چې تقریباً په ۱٦ مه پیړۍ کې وربانده لیکل شوي دي ، داکاسه پر ۱۸۷۲ کال په یوه کونج کې بې ارزښته او بې اهمیته پرته وه . سره له دې چې اوږد تاریخ یې درلود خو دزمانې په تیریدو سره هیره شوې وه او ددې ارزښت ته چا توجه نه درلوده . لرغونې ګندهارا دبودايي دين ډير لوی مرکز و او ددې ارزښتناکې یادګاري کاسې موجودیت دانظر یه بیا تائیدوي چې کندهار تر اسلام دمخه ژوندی ښار واو دپښبور دوادۍ سره یې اړیکي درلودل .

په اسلامي دوره کې عربي مورخینو دکندهار یادونه نه ده کړې او داسلام دخپرولو لپاره په سیمه کې ددوی مرکز زرنج و چې دسجستان ( سیستان ) مرکزو .داراکوزیا فتح ېې ننني کندهار دی او عربو الرخاج باله دپخواني پایتخت بُست په شاوخواکې پېل شو . په نهمه میلادي پیړۍ کې بُست دصفاري کورنۍ مهم ښار ګڼل کیده . کندهار دغزنويانو په اسنادو کې هم نه شته ،او حقیقتاً چې دالبیروني قندهار هماغه ګندهارا ده . دکندهار ښار پس له هغه جوړ شو چې پر ۱۱۵۰ کال علاوالدین غوري جهانسوز دبُست ښار په ایرویدل کړ . دچغتایي چنګیزیانو په زمانه کې دهغه یادونه شوې ده چې پر ۱۲۸۱ کال دهرات دکارت کورنۍ دحکمرانِ له خوا ونیول شو چې دمغولو د فیوډالي سیستم استازی و . بیا دګوډ تیمور له خوا ونیول شو او دده لمسي پیر محمد ته ورکړل شوی و . بیا وروسته کندهار دهرات دسلطان حسین بایقرا (۱٤۳۸-۱۵۰۵ ) دپاچاهۍ برخه شوه.سلطان حسین بایقرا هم مغول و او دبابر دتره زوی و . دده په زمانه کې دلومړي ځل لپاره دکندهار نوم په سکو کې راڅرګند شو .

دسلطان حسین بایقرا تر مړینې وروسته کندهار دتیموري کورنۍ

دحاکمانو په لاس کې وه او له درو خواو څخه تهدیدیده . ازبک شیباني خان (چې بابر له ماورالنهر څخه شړلی و ) صفوي پاچا شاه اسمعیل او بابر هریوه غوښتل چې کندهار ونیسي ، بابر پر ۱۵۰٤ کال کابل ونیوه او شل کاله یې په دې هیله او تیاري کې تیر کړل چې هندونیسي ، بیا دخپلو سنګرو په پیاوړي کولو سره یې دهند نیولو ته اقدام وکړ . دکندهار نیول ده ته بیخي ضروري ښکاریدل او دسرحدي لښکر کشیو په ترڅ کې یې څو واره دکندهار دنیولو قصد وکړ . بالاخره پر ۱۵۲۲ کال یې کندهار ونیوه. داویلای شو چې بابر دکابل او هند دفتوحاتو په لړۍ کې تل داهیله درلوده چې دواړه کندهاره : لرغونی ګندهارا او نوی جنوب غربي کندهار تر کنترول لاندې راولي . دده داوږده عمر په دوره کې ددغو دواړو سیمو په نیولو کې ککي خیل او غوریا خیل افغانانو څه نقش چې درلود باید په نظر کې ونیول شي لکه چې دوی یې پخپله وایي :

داصل او نسب په هکله دڅېړکي دویمه برخه به دکاکي او غوریا خیلو په هکله معلومات درکړي چې ددوی اړیکي څه ډول دي . داوسني بحث په مقصد مهمه قبیله یوسفزي او ګیګیاني دي چې په کاکي پورې اړه لري ( په دې کې مندړ یو سفزي هم شامل دي ) او په غوریاخیل پورې تړلي خلیل او مومند دي . دوی ته ډیر نږدې خېل محمدزي دي خو په ختـه کاکي او غوریاخیل نه دي ، ددغو قبیلو اوسنی موقعیت په نقشه کې ښودل شوی دی او جدول یې فهرست شوی دی ، دوی ټول سړبني دي او یو له بل سره خپلوي لري که څه هم دترینو او ابدالو ځانګړې څانګې دي ، ټول ځانو نه واقعي افغانان بولي او نن ورځ یا د پېښور په وادۍ کې اوسي او یا شمال ته دسوات دیر او باجوړ په غرو کې اوسیږي . دوی ، نه کرلاني دي او نه دغرو قبیلې دي ،په عمومي توګه ویلای شو چې دوی یا په آوارو جلګو کې اوسیږي او یا دسوات

پنجکوړې او باجوړ په لوړ و کې میشته دي . ځینې یوسفزي او ځینې مومند په غرنیو سیمو کې اوسیږي مګر خورا ابادې تړې لري او یا د لارو په اوږدو کې ژوند کوئي . د دوی سیمو ته ورتګ ډیر اسان دی ، د دوی سیمې د تیرا او وزیرستان په شان صعب العبور ې نه دي .

## کاکې خیل :

کیسه په دې ډول ده : لکه چې پخوا مو هم اشاره ورته وکړه ، کاکي او غوریاخیل د واړه د مقر په شاوخوا کې اوسیدل چې د مقرله « آب استاده » څخه تر ترنک پورې سیمې یې نیولې وې . ( دا ټوله سیمه اوس د غلجو سیمه ده . ) الفنستون لیکي : داخوند درویزه په حواله کاکیو او غوریا خیلو تر منځ او باالخاصه د کاکیو او ترینو تر منځ ( د درانیو تربرونه او نیکونه ) شخړې وشوې او شخړې تودې شوې په نتیجه کې یې کاکي وشړل او مخ پر شمال د کابل خواته رهي شول . ( دلته داسې نه دي ویل شوي چې دغو قبیلو بیرته تګ کړی دی او یا داچې دوی اصلاً له پېښور څخه وو . ) دلته یوه پیړۍ خالیګاه په منځ کې راغله او له هغه وروسته دا واوریدل شوه چې کاکي د کابل په شاوخوا کې میشته شوي او د تیموري کورنۍ دابوسعید زوی میرزا الغ- بیګ څخه یې دفاع کوله . ابوسعید له تیموري شهزاده ګانو څخه و چې په پنځلسمه پیړۍ کې یې ډیر قدرت درلود او دی د بابر نیکه و ، په دې توګه د ډهلي د مغولو کورنۍ مستقیم نیکه هم شمیرل کیږي . پر ۱٤٦۹ م (۸۷٤ هجري) کال یې خپل زوی الغ بیګ ته کابل - غزني او شاوخوا هغه سیمې چې ګوډ تیمور دا باسین په استقامت نیولې وې ، ورکړې ، الغ بیګ داسیمې تر ۱۵۰۱ پورې وساتلې او کابل یې پایتخت و ، دی چې مړ شو ده وراره بابر درې کاله وروسته دا ټولې سیمې خپلې کړې .

ډیر لیکونکي دا الغ بیګ دهغه بل الغ بیګ چې د شاه رخ زوی او د ګوډ

تیمور لمسی واو په معماری، نقاشی، سیانس او نجوم کې یې شهرت درلود ، غلطوي ، هغه مشهور الغ بیگ یوازې دوه کاله په سمرقند کې حاکم واو پر ۱٤٤۹ م ( ۸۵۳هجري) کال په قتل ورسید ، دی او دبابر تره دواړه له یوې تیموري کورنی، څخه دي مگر دوی دواړه ځانګړي شخصیتونه وو چې دوه نسله یو له بل څخه جلادي ،منجم الغ بیگ دځوان الغ بیگ له نیکه سره اشنا او دتره زوی یې و او پرځوان ابوسعید باندې خورا مهربان و چې دده دملګري زوی و . په دې هکله داسې وایي چې دوخت په تیریدو سره ابوسعید ددغه شخصیت داحترام په نامه پرخپل زوی باندې دده نوم کیښود . یانې هغه یې الغ بیگ وباله .

په هرحال ، همدا دویم الغ بیگ دی چې په کابل کې ده ته یوسفزو او کمکي قبیلو لاس ورکړ . دقبیلو په تذکره کې یې نیټه نه ده معلومه خو د ۱٤٦۹-۱۵۰۱ په شاوخوا کې احتمال لري ځکه چې دویم الغ بیگ په دې موده کې دلته حکومت کاوه . کیدای شي مورږ پخپله ۱٤۷۰ کال ورته وټاکو. قصه وایي چې دده په ټاکنه او قدرت نیولو کې یوسفزو لوی لاس درلود . په لومړي، قدرت نیونه کې ده دغو خلکو ته زیات درناوی کاوه ځکه چې دی په دې پوهیدو چې بقایې ددوی په مرستې پورې تړلې وه . مگر دالفنستون په قول له پاچاهی، سره دیوسفزو مرستې خپل مقصد درلود او الغ بیگ یې همیشه تحقیراوه ، دوی کلي چورول ، خلک یې لوټول او ښارونو ته به یې جنجالونه راوړل . الغ بیگ ډیر چغتایي ترکان ورو ،ورو راټول کړل او پوځ یې ورڅخه ډک کړ . یو څه چې قوي شو بیا یې ځان په چل او هنر سره له دغو دوستانو څخه گوښه کړ . دوی یې په خپل منځ کې سره واچول . یوسفزي او گیگیاني د کاکیو کمزوري تر برونه پخپلو کې سره په جنگ شول او ده دخپل پوځ او گیگیانو په راس کې پر یوسفزو یرغل وکړ . دا جگړه په « غورا مرغه »

سره یاد یږي ځکه چې په دغه ځای کې پېښه شوه او ماتې یې وخوړه او سوله یې وغوښته او په دې مقصد یې دوی ته لویه میلمستیا وکړه چې د یوسفزو ټول ملکان رابلل شوي وو او شمېر یې اووسوو تنو ته رسیده .

الغ بیګ په دې میلمستیا کې دوی ټول قتل عام کړل . یوازې شپږ تنه ژوندي ځینې راووتل . الغ بیګ امر ورکړ چې جسدونه دې له ښار دباندې ښخ شي ، دا مړي په یوځای کې تر خاورو لاندې کړای شول چې درې غشي د کابل له ښار څخه لرې و او دا ځای سیاه سنګ نومیږي . د دې منطقې نوم هم شهیدان ( شاه شهید ) دی ، دلته د دیر د ملیزو د شیخ عثماني قبر هم شته چې ملیزي د یوسفزو یوه پښه ده . اوس هم خلک دې زیارت ته د دعا لپاره ورځي ، د دغو وژل شویو مشرانو په ډلو کې یو هم ملک سلیمان و چې د ټولو یوسفزو مشر او د ملک شاه منصور پلار و چې هغه خپله لور بابر ته په نکاح ورکړه .
ملک احمد د سلیمان وراره هغه ځوان و چې د شپږو تنو په جمله کې ژوندی ووت او بیا د یوسفزو لوی خان شو ، د دغه قتل عام نیټه هم نه ده څرګنده مګر د دویم الغ بیګ د پاچاهۍ په حساب ښایي د ۱۴۸۰ او ۱۴۹۰ تر منځ وي چې دا وخت د بابر د زیږیدنې زمانه ده . دا قتل عام د یوهٔ افغان په واسطه نه و شوی ، بلکې د یوه چغتایي ترک په قومانده تر سره شوی و . مګر افغانانو هم ډیر قتلونه کړي دي ، هر څومره چې افغانان په میلمه پالنه او پښتونواله کې شهرت لري همدومره د انتقام او کسات اخیستو شهرت لري . ځانګړې پورنه پریږدي . د الغ بیګ دا تور مثال د غلجي میر محمود له خوا په اصفهان کې پر ۱۷۲۲ کال عملي شو . هغه زیات شمیر پارسي مشران په اصفهان کې قتل عام کړل . وایي چې هغه لیونی و ، د دې وحشت او بربریت ډیر مثالونه شته ، یوازې یونسل د مخه د مومند و یوه خان په ګنداب کې دروغې جوړې په پلمه ټول رابلل شوي میلمانه مړه کړل . وایي چې د ده د ښمنانو د ده پلار او ټول

خپلوان یې وژلي وو . یوازې دی یې کوچني پرې ایښي و ، کله چې لوی شو روغه جوړه یې وغوښته او ټول یې دروغې جوړې میلمستیا ته راوبلل . کله چې ټول حجرې ته ننوتل ، ده او ملګرو یې وریاندې برید وکړ او ټول یې وویشتل او قتل یې کړل . دا انتقام اخیستلو لپاره میلمه پالنه هم قرباني شوه .

همدا دلایل دي چې پښتانه وسله په غاړه ګرځي ، یو ځل پر ۱۹۴۷ کال په ګنداب کې نږدې دوه سوه قبایلي مشران په یوه میلمستیا کې سره یوځای وو . د ټولو په منځ کې یوازینی کس چې بې وسلې وهغه زه وم . هر ملک چې غوښو او ډوډۍ ته کېناست ټوپک یې پر اوږه و او له هر یوه شخه مې چې پوښتنه وکړه چې د ټوپک جاغور مو ګورم ، ټوپک به ډک و . دوی خپله خوش طبعي کوله او په ټوکو یې ویل چې دلته خلک عام وژل شوي دي او د ګنداب دعمومي وژنې دیوه نسل دمخه کیسه یې تائید کړه .

کله چې یوسفزي لېږدېدل له دوی سره محمد زي دخرشبون زامن ( نه له ککي کورنۍ شخه ) اتمان خیل او ګدون ( ګادون ) هم یو ځای شول . داوروستۍ قبیلې دسړبني افغانان بیخي نه دي . مګر په ترتیب کرلاني او غرغښت دي او دګاونډي ( همسایه ) په شکل له دوی سره راغلي دي - دالغ بیګ له عام قتل شخه وروسته یوسفزي او د دوی همسایګان په ډېر ویر او ماتم کې دخیبر له لارې پېښور خواته راغلل . خو محمد زي به اوس پر خپل ځای پرېږدو . هغه به وروسته وڅېړو او ګیګیاني چې دالغ بیګ پر خوا وو هم فوراً په ننګرهار کې پاتې شول . تذکره لیکونکي وایي چې کله یوسفزي پېښور او باجوړ ته راورسېدل ، داسیمه د دیلازاکو او ځینو نورو خلکو له خوا چې « دهقانان » ( بزګران ) یې بلل نیول شوې وه . راورتي لیکي چې « دا دهقانان » اصلاً بزګران نه وو مګر دسوات جهانګیري سلطانانو اتباع وو او دهشنګر او سیدونکي وو او دسوات جهانګیری سلطنت پایتخت منګلور و .

ددوی وروستی پاچا سلطان عوض و ، چې له بابر سره یې څه روغه جوړه وکړه مګر بالاخره یې داباسین آخوا دهزاره سیمې ته وشاړه ، هیڅ مورخ یا تاریخي مرجع نظر نه لري چې داخلک افغانان یا پښتانه وو . همدارنګه د دیلازاک سوال چې پښتانه دي او که نه هم مجهول پاتې دی .

دنسب په شجره کې دیلازاک داسې ښکاري چې کرلاڼي دي او داورکزو او اتمان خیلو وروڼه دي ، بابر څوواره ددوی یادونه کړې ده او افغانان یې بولي . نن ورځ دیوې منظمې قبیلې په شکل موجودیت نه لري ، مګر د پېښور شمال ته دداود زوپه تړه کې څو کلي شته چې ددې قبیلې په نامه یادېږي او د پېښور د ویل هوندز ( Vale Hounds ) په کلنۍ کې دامشهور نوم دی . « بیلو » او ځینې نور وایي چې دوی دمحمود غزنوي په زمانه کې هغه وخت په اسلام مشرف شول چې دمحمود غزنوي لښکرې هند ته د سومنات ( Somnath ) او نورو سیمو پر خوارواني وې . دیلازاک په دغو حوادثو کې دمحمود غزنوي ملاتړي وو او ډیر قوت یې دسومنات په جګړه کې ورته برابر کړی و . دیلازاک پخپله څو پیړۍ دمخه له غرب او ننګرهار څخه پېښور ته لېږدیدلي وو .

تر ټولو مهم محیطي شواهد ددوی دافغانیت دادعالپاره دتذکره لیکونکو له خوا داحمد دځای نیوونکي ، خان کجود عشق کیسه ده . نوموړی دیوسفزو له خوا ددیلازاکو له ماتې څخه وروسته داحمد پر ځای هلته ملک او استازی مقرر شوی و . کجود بابر په شان یو ښایسته ځوان و چې لومړی دیوسفزو له استازي احمد سره دملګري په توګه دیلازاکو ته ورغلی و ، بیا وروسته دی پخپله داحمد پر ځای ناست و . خان کجو د دیلازاکو دخان په لور مین شوی و کله چې په جګړه کې دیلازاکو ماته وخوړه ، د دیلازاکو خان له خپلې کورنۍ سره وتښتیده او له اباسین څخه د تیریدو په حال کې و چې

دقراول له قوماندان خان کجو سره مخامخ شول . کله چې دیلازاکو خان کجوولید او له ده څخه یې ډیر بد را تلل دخپل خان امریې ونه مانه چې نارینه دې جنګ وکړي او ښځې دې پورې وځي دوی ټولو دا وپتیله چې ټول دې ډوب شو خو اسارت نه منو - دلته دخان کجو غیرت او افغانیت را وپاریده او پردوی یې زړه وسو . ده خپلو سړو ته چیغه کړه چې د دیلازاکو نر او ښځې په خپل حال پریږدئ ، هیچا ته یې ضررونه رسیږي ، لاس ورڅخه واخلئ ، دوی هم افغانان دي ، زموږ هډاوولي دي ، پریږدئ چې تیرشي ، ښځې تیرې شوې او سړو خندل ، خان کجو هم خپله ناوې وګټله . دا بیخي رښتیا او ثابته ده چې پښتانه په قبیلوي جګړو کې ښځو ، سپین ږیرو او ماشومانو ته درانه ګوري او یوه ته هم ضرر نه رسوي ، همدارنګه میلمه ، فقیر او پناه اخیستونکي ته پخپله دروازه کې امن ورکوي او درنښت یې کوي .

دامو هم باید په یادوي چې داقبیلوي یادونې غیر علمي دي او داهم له حقیقت څخه لرې ښکاري چې داسې دسته جمعي لیږد یدنې دې شوي وي . دا هم ضروري خبره نه ده چې له پورتنیو خبرو څخه داسې فرض کړو چې د پښتون خلک له مختلفو قومونو او قبیلو څخه جوړ شوي دي ، بیل کلتورونه او بیلې ژبې لري او له ځینو نورو میشته قبیلو سره له نیکه مرغه یا بده مرغه په تضاد کې وو . سره له دې هم ښایي شجرې مرسته را سره وکړي ، یرغل راوړونکي ټول سړیني وو چې خالص افغانان شمیرل کیږي . دیلازاک کرلاني دي چې دغرنیو او سیدونکو ورونه دي او ځانونه پښتانه بولي . دبې شمیره مجهولو تکیو یوه نقطه بیخي روښانه ده چې بابر دا په ګوته کړې ده چې دیلازاکو له یوسفزو سره څه توپیر نه شته او موږ باید دا مفکوره د منلو وړ وبولو .

کله چې یوسفزي پېښور ته ورسیدل ستړي ، ستومانه او بې قوته وو . له عام قتل څخه وروسته دوی پخپلو تاریخي بیانونو کې داسې وایي ، او بیا هم ،

نیتـه یې ځرګنده نه ده . دوی افغـانانو مسلمـانو ورونو دیلازاکو ته اپیل وکړ چې مرستـه ورسره وکړي او دوی ته داستوګنې ځای ورکړي . دزیاتې میړانې او سخاوت له مخې دیلازاکو دوی ته د « دوآبه » سیمه چې ډیره حاصل خیزه سیمه ده ورکړه چې هلتـه میشتـه شي ، داسیمه دیوه مستطیل په شکل دکابل او سـوات دسینـدونو په ګډون ځـای کې او دغـرو دلمنو تر منځ پرته ده ، نن دا منطقه شبقدر نومیږي . ملک احمد دیوسفزو نوي خان له دوی څخه مننه وکړه خو داسـوال هم موجود و چې دوآبه کوچنۍ سیمـه وه او دده دقبیلې لپاره کافي نه وه چې ټول په کې ځای پر ځای شي ، آیا بله ځمکه هم وه ؟

« دوآبه » تر ټولو آباده ټوټه وه او یوسفزو ددې لپاره هڅه کوله چې خپله یې کړي . دیوسفزو له مفکورې سره سره دیلازاک سخي او مهربانه وو . دوی احمـد ته وویل که چیرې دو آبه کفـایت نه کوي ، نو کـولای شئ چې « دانش کول » او « امبهـار » تر باجوړ پورې هم تاسې ونیسئ . پر دې سربیره داشنغر (هشـتنګر) هم دوی ته وړاندیزوشـو چې دجـهـانګیـري سـوات سلطان له دهقـانـانو څخه یې ونیسي ، دا ددیلازاکـو تحفه نه وه خو غـوښتل یې چې پر یوسفزو باندې داسیمه په زورونیسي او دوی ته هم څه برخه په کې ورکړای شي .

دیوسفـزو اومنـډړو ملک احـمـدخـان پخـپله هم منـډړ و . ده لومـړی دوآبه ونیوله او هغه کورنۍ ورسره یو ځای شوې چې دکابل د عام قتل په وخت کې یې رمې او ګلې بیـولي وې او یا په سودا ګرۍ پسې تللې وې ، دا شپـانه او سوداګر له خپلو مالونو ، رمو او ګلو سره دامبهـار او دانش کول له لارې تر باجوړ پورې مخـتـه ولاړل او په باجـوړ کې یې جـــنوبي وادي « لاشورا » (Lashora) ونیوله . چې نن هلتـه د « خار » ښار ګوتې دی . لاتورهم ښې خواته وړاندې ولاړل « جندول » یې اشـغـال کړ او دپنجکوړې تر دریا پورې

ورسیدل . په عین وخت کې د یوسفزو اصلي قوت له دوآبې څخه دهشتنګر خواته ولاړ او هغه یې له « دهقانانو » څخه ونیوله پر دې یې هم اکتفا ونه کړه او د دیلازاکو داصلي سیمې د « سمې » اصلي ځمکو یانې چارسدې او « کل پاني » دهوتي او مردان دنیولو خیال یې درلود .

په دې وخت کې ګیګیانې چې دالغ بیګ پلوي یې کوله او له یوسفزو سره دجنګ اصلي عامل وو له محمدزو سره په ننګرهار کې پاتې شول . اوس یونوی پر مختګ رامنځته شو . دخرشبون اصلي قبیله غوریا خیل چې خلیل ،مومند او داودزي یې اصلي څانګې دي ،دمقر او کندهار سیمه یې دڅان لپاره ډیره توده او سره وګڼله او د تیموریانو قدرت مخ په ماتیدو و او محلي قدرت د « ترین » په نامه کورنۍ ته په رسیدو و. په دې وخت کې ابدالیان د (درانیان ) د ترین په نامه یادېدل. ( لومړۍ تابلو دنسب په هکله وګورئ ) . غوریاخیل دشمال خواته وخوځیدل او دکاکیو په لار ولاړل . ځینې یې ننګرهار ته ورسیدل او دګیګیانیو، ترکلانیو ، (دکاکیو بله قبیله ) او محمدزو سره په جګړه واوښتل ، ترکلاني لومړی په لغمان کې ځای پر ځای شول ( دکابل او ننګرهار تر منځ) او پر باجوړ یې سترګې سرې کړې وې . دهمدې مقصد لپاره یې یو مقدم قوت واستاوه . ګیګیانو دمومندو سره انې بهانې جوړولې او اوبه یې خړولې چې په باجوړ کې ځانته دښې ځای پیدا کړي مګر ترکلانیو ددوی مخه ونیوله . وروسته ننواتې ته کیناستل ، پړې پر غاړه او وابنه په خوله ملک احمد خان ته راغلل او ښننه یې وغوښته . دکاکي توب داړیکې په حساب یې ځان ته دمیشته کیدو سیمه وغوښته . ملک احمدخان ددې لپاره چې ځان تقویه کړي دنورو په مشوره او رضایت سره یې دوآبه با الذات دوی ته ورکړه . کورنۍ په کورنۍ ورو ورو دکړاپا له لارې ګنداب ته راښکته شول چې په دې وادۍ کې ځای پر ځای شي ، څه لنده موده

وروسته « دهقانان » د « میر هندا » Mir Hinda تر مشرۍ لاندې له خپلو ځمکو څخه وشړل شول او په دې توګه هشتنګر محمدزو ونیوه . یوسفزو هم خپل قوتونه تیار کړل . دنو و راغلو په مرسته یې دختیځ په لوري داباسین خواته او دشمال په لوري سوات او با جوړ خواته منګولې وغزولې .

قبیلوي شکل ، لکه څرنګه چې نن ورځ پراته دي ، مخ په جوړیدو شو . ګیګیاني نن په دوآبه کې او محمدزي په هشتنګر کې ځای پر ځای ، او یوسفزي په یو څه کوچني بدلون سره دلنډي سیند شمال ته د « سمې » په وادۍ کې پراته دي او دامنډ یوسفزي دي . دامو په یادوي چې دودونو قبلول هم له حقیقت څخه لرې خبره ده . په هغو ورځو کې سمه دکرلو او کرنې وړنه وه او وچه تاړه وه . په ډیرو برخو کې شګلنه او خوړې ، خوړ وه . مشهور خوړونه یې بګیاړي ، کلپاني او لنډ ( Lund ) خوړونه دي ، کرنه ډیره کمه او ځای پر ځای چیرته چې داوبو امکان شته کیږي. برعکس ، دوآبه او هشتنګر هوارې سیمې دي چې دکابل اوسوات دسیندونو په شاوخوا کې پرتې او کرنه یې له سیلونو سره مل وي ، حیرانوونکې خبره خو داده چې له یوې خوا قدرت هم له یوسفزو سره و او له بلې خوا تر ټولو ښه ځمکه یې ګیګیانو ته ورکړه چې دوی ته چندان وفادار هم نه وو او همدارنګه محمدزي چې دکاکي کورنۍ ته منسوب هم نه دي ښه سیمه یې ونیوله . اصلي کیسه که راواخلو موضوع لانوره هم پیچلې کیږي او ددې سیمې اصلي څښتن دیلازاک وو چې لا پر خپل ځای وو. موږ ته ویل شوي دي چې ګیګیانیو په لومړي سر کې له دیلازاکو سره په خپل کور کې بده رویه کوله او ملک احمد خان هم سرنه پر ګراوه ، دا هغه وخت و چې بابر ددریم ځل لپاره پر ۱۵۱۹ کال دې سیمې ته راورسید او دیلازاکو ددې لپاره چې ګوندې هشتنګر دخپلو زیاتو په عوض خپل کړي دبابر پر خوا ودریدل . په نتیجه کې داسې وشول چې دبابر له تلو څخه وروسته

گیگیانو پر دوی یرغل وکړ مگر په «گل بیلا »کې چې نن دداود زو سیمه ده ، ماته وخوړه .

د تذکرې په حواله دغه ماتې دملک احمد اویوسفزو لپاره یوخنډشو . دوی مجبور شول چې نوې پالیسي غوره کړي . بیا یې په دې پلمه چې له گیگیانو سره تیری او ظلم شوی دی او په سیمه کې د یوسفزو بې احترامي شوې ده پر دیلازاکو باندې یې یرغل وکړ . ددې مقصد لپاره احمد بریالی شو چې ټول یوسفزي ،مندړ ، « همسایگان » لکه اتمان خیل او گادون او محمد زي په دې نامه چې په بدل کې هشتنگر درکوم ، له ځان سره ملگري کړل . دکتلانگ او شهباز گړۍ تر منځ سخته جگړه پیل شوه او خونړۍ جگړه په گودر مانده کې دیادونې وړده چې په یوه کمین کې زیات شمیر دیلازاک ووژل شول . دیلازاک له قدرت څخه راوغورځول شول او دکابل دریا جنوب ته خپلو اقاربو ته یې دشاتگ لاره بنده وه او خورا ضعیف شوي وو او مجبور کړای شول چې د چچ هزاره سیمې ته له اباسین څخه پورې وځي . داوخت و چې وروستي تعقیب کوونکي قوت قوماندان ملک کجو دیلازاکو ته دپورې وتلو موقع ورکړه او خپله ناوې یې وگټله .

دکتلانگ دجگړې نیتیه څرگنده نه ده او زما هم کوم تاریخ نه یادیږي چې لیکلې مې وي . دداخلي شواهدو له مخې دادبابر ددویمې لښکر کشۍ (۱۵۱۹) چې هغه وخت دی هم په کتلانگ کې واو ډهلي دفتحې (۱۵۲٦) تر منځ موده کې پیښه شوې ده . که چیرې دا خبره په پورتني شکل سره رښتیا وي نو دا دباور وړ نه ده چې که دا پیښه له ۱۵۱۹ څخه دمخه شوې وي او بابر به دا پیښه نه وي لیکلي ؟ داځکه چې له دې قبیلو سره یې کلک اړیکي درلودل . نو پر دې اساس کیدای شي چې دکتلانگ جگړه به له ۱۵۱۹ څخه وروسته بنایي د ۱۵۲۵ په شاوخوا کې شوې وي .

څه موده له دې جګړې څخه د مخه چې نیتیه یې نه ده معلومه ، یوسفزي دلرسوات پر نیولو بریالي شول. دامو په یادوي چې دهشتنګر دهقانانو دسوات دجهانګیري پاچا سره تړون درلود . کله چې په هشتنګر کې مات شول دموړې غاښي له لارې دسوات تانې ته ولاړل چې هلته ددوی دمشر میر هیندا ځمکې وې . په موړه کې یې یو څه قوت د ترصد او پهرې په مقصد پریښود (موړه پاس هغه غاښی دی چې بابر او بي بي مبارکې هلته سره لیدلی وو. ) او همدارنګه ملکنډ یې ونیو او احتمالاً ددواړو تر منځ یې د شاه کوټ او چرات غاښي هم ونیول . سلطان عوض چې مرکز یې منګلور و ، د یوسفزو دجاه طلبی په مقابل کې یې ځان مصؤون کړی و او دملک احمد له خور سره یې واده کړی و . مګر کله چې دامیر من مړه شوې وه نو له ده سره دا ویره بیا پیدا شوې وه چې یوسفزي به پر ده باندې یرغل وکړي . یوسفزي او مندړ چې په دوآبه کې اوسیدل له لوړې سره مخامخ وو ، نو دوی دسوات په سیمه کې تجارت کاوه او دسیمې دآبادۍ په هکله یې پوره معلومات ټول کړي وو . تذکره لیکونکي ، احمدخان دخور په واده کولو سره له دې څخه بری الزمه نه ګڼې چې دده اصلي مقصد سوات و . کله چې دوی فرصت پیدا کړ قوتونه یې تنظیم کړل او دموړې غاښي له لارې یې څو واره پر سوات یرغل وکړ ،مګر بری یې ونه موند . دوه میاشتې یې هڅې وکړې خو څه لاس ته ور نه راغلل . دوی خپل تکتیک ته تغییر ورکړ او دملکنډ سیمه یې ترڅارنې لاندې ونیوله ، دغرب خوا ته یې دملکنډ په سیمه کې دڅارنې په نتیجه کې دقوتونو قشله تثبیت کړه . سلطان عوض او دده قوتونه یې نابېره تر یرغل لاندې ونیول.

داسې پریکړه شوې وه چې اصلي قوت به له ماښام ډوډۍ څخه وروسته مخ په ملکنډ حرکت کوي او یوه کوچنۍ ډله به پاتې کیږي او دکمپ اورونه به

بل ساتي چې سواتیان داسې فریب وخوري چې ټول قوت د موړې دغاښي په بیخ کې دی او کوم بدلون نه شته . اصلي قوت تمامه شپه مزل وکړو او ملکنډ ته یې په تیاره کې ځانونه ورسول او ټوله قشله یې پر خوب ویده راګیر کړه .
سلطان عوض تاڼې ته وتښتیده او میرهیندا چې د موړې غاښي کلکه دفاع کوله ددې خبر په اوریدو سره هم له خپل قوت سره تاڼې ته په شا شو ، چې ددې مهم مرکز دفاع وکړي .

د ۱۷۷۱ د پاړسي ژبې تذکرې څخه د مخه اخوند درویزه وایي چې دا د شاه کوټ غاښي و چې له موړې غاښي څخه څو میله غرب ته پروت دی ، او نه د موړې غاښې چې افغانانو یې په لمن کې کمپ جوړ کړی و . دوی خامخا دواړه غاښي تهدیدول ځکه چې له دواړو څخه پلای ( Palai ) تر تاثیر لاندې و ، نو په دې دلیل ددې توپیر ښودل دومره ارزښت نه لري . دی وایي چې دلته مهمه مسئله د یوسفزو ښځو حماسي بدلې دي چې د خپلو میړنو او نارینه و داحساساتو او میړانې دراپارولو په خاطرې ویلې چې پر دښمن کلک یرغل وکړي او په شا نه شي او د سپیدو پر وخت یرغل یې یاد اوه ، سواتیو چې د اسندرې ویلې نو ټوله توجه یې د غاښي خواته وه او د ملکنډ په مورد کې غافل شول .

د معمول په شان د دغې پلان شوې حادثې نیتیه څرګنده نه ده . مګر محلي دود کې هم دغه تاریخي پیښه یادوي . نو فکر کوم چې رښتیا پیښه وه او شک په کې نه شته . لکه چې ننني خاطرې د کټلانګ جګړه او د یوسفزو بری د دیلازاکو په مقابل کې نه هیروي ، نو دا پیښه هم د ټولو یاد ته سپارل شوې او سوات ته د ننوتلو او دغاښي د ساتلو کیسه هرو مرو خوله په خوله ویل شوې او ژوندۍ پاتې ده. موږ بیا هم کولای شو چې دې پیښې ته ، د نتیجه ګیرۍ په پروسه کې نیتیه وټاکو . دا واړه نیتیه د بابر د لیکنو پر اساس نه ، بلکې د ده

دمينې دکيسې له مخې چې يوسفزي يې کوي وتاکو . دا دموړې کنډو وچې هلته بابر له بي بي مبارکې سره وليدل او په يقين سره ويلای شو چې دا ۱۵۱۹ کال و ، په هغه وخت کې ټول يوسفزي پر دې سيمه مسلط و او غالبې هم ددوی په کنټرول کې و . شاه منصور داحمد خان دتره زوی او دمبارکې پلار وچې له موړې کنډو سره اوسيده . داسې معلوميږي چې يوسفزو به سوات له ۱۵۱۹ څخه دمخه نيولی وي او دکتلانګ له جګړې څخه به څو کاله دمخه وي ، نو دا نيتېه که ۱۵۱۵ قبوله شي ډيره به غلطه نه وي .

زه دکتلانګ په جګړې پسې وم چې ديلازاک وشړل شول او احمدخان ځمکې ونيولې او بيا ديوسفزو او نورو اړونده قبيلو ته يې وويشلې ، دځمکو ويش لړيوه مخور شيخ ملي نومي سره تړلی دی ، اسناد ښيي چې دا ويش او ځای پر ځای کيدل دټول سوات او بونير په سيمه کې وشول. له دې څخه پوره څرګنده ده چې پر شمالي غرونو باندې ديوسفزو تيری د « سمې » دنيولو او ديلازاکو له شړلو څخه دمخه شوی دی . داسروې ډيره پراخه وه او په دې کې اشنغر ( هشتنګر ) ، سيمه پخپله له اشنغر څخه تر اباسين پورې ختيځ ته او له کابل څخه جنوب ته او سوات ، بونير او باجوړ چې کاکي قبيلو نيولی وهم شامل وو . هر چا ته برخه ورکړل شوې وه . په دې برخه کې يوسفزي منډړ ، يوسفزي محمد زي ( کاکي نه وو ، خو دخرشبون زامن وو ) . اتمان خيل او ګادون چې سړبني هم نه وو په ويش کې شامل وو . بالاخره دالله تعالی په نامه يې له خپلو سوبو څخه ځنې ځمکې هغو روحانيونو ، سيدانو او ملايانو ته هم ورکړې چې له دوی سره راغلي وو. کومې ځمکې چې افغاني قبيلو ته ورکړل شوې وې دفتر daftar بلل کيدې او کومې چې روحانيونو ته ورکړل شوې وې هغه څيرې ( Tserai ) بلل کيدې ، څيرې ځمکې به ديوې پلرينې دپتيو په پای او دبلې پلرينې په پيل کې ورکول کيدې ، چې ديوه دريم ګړي ( ثالث )

په شکل د دوو پلرینو دځمکو تر منځ ، بیلتون ونېیي چې په راتلونکې کې د کورنیو تر منځ د جګړې او شخړې مخنیوی وکړي . دا نظم او دویش سیستم چې شیخ ملي یې بنسټ کېښود . د کابل د سیند شمال ته په ټول هیواد کې حتی تر نن پورې د تطبیق وړ دی .

هغه قبیلې چې یوسفزي نه وې لکه ګیګیانې په دوآبه کې ، محمدزي په هشتنګر ( اشنغر ) او اتمان خیل او ګادون شمال ته دغونډیو په لمنو کې ځای پر ځای شول . که څه هم اتمان خیل څه ناڅه بې ځایه شوي دي خو بالعموم دا پورتني نن ورځ هم په همدې ځایو کې میشته دي ، اصلاً دوی ته یوازې امبهار نه وور کړل شوی ، بلکې د « سمې » شمال ته د سوات او هوار و سیمو تر منځ غرنۍ تړانګه ټوله دوی ته ورکړل شوې ده . مګر په شپاړسمه پیړۍ کې کله چې خټک را وخوځېدل دا نظم یو څه سره ویجاړ شو او اتمان خیلو ته د کتلانګ شمال ته یوازې پنځه کوچنې کلي پاتې شول .

د شیخ ملي له زمانې څخه را په دې خوا د یوسفزو او مندړ و ترمنځ هم ویش شوی دی ، له دایمي اوبه کولو څخه د مخه تر ټولو آباده او خړوبه ځمکه د سوات وادي ده . په همدې دلیل مندړو او یوسفزو دواړو په سوات کې برخه درلوده . د دې خبرې ثبوت دادی چې د ملک احمد خان او شیخ ملي قبرونه د سوات په وادۍ کې دي . د ملک احمد خان قبر ، الله ډنډ Allah dand ته نږدې او د شیخ ملي قبر په غوربندي Ghorbandi کې دی . په الله ډنډ کې هدیره د یوه غره په پای کې ده چې د کلي جنوب ته پرته ده او شمال ته د « ادین زو » وادي تر نظر لاندې پرته ده . احمد د رازار Razzar د پلرینې مندړ و او شیخ ملي د دوی لوی ملا و چې په قبیلې پورې تړلی او دده دوزیر حیثیت یې درلود . خان کجو چې د ملک احمد خان ځای نیوونکی و هم مندړ و ، د سوابۍ او مانیرۍ تر منځ د بدرۍ ( Badrai ) نالې پر غاړه په سمه کې ښخ دی ، چې

مخا مخ ورته يوه غونډۍ پرته ده چې سر ميرا Sar-i-maira نوميږي چې
په اوسينو نقشو کې د ګجو غونډۍ Gajju Ghondi په نامه يادېږي . په
څه نامعين وخت کې د شيخ ملي له تقسيماتو څخه وروسته د يوسفزي او منډړ
تر منځ بيا ويش وشو چې په هغه کې يوسفزو ته سوات ، پنجکوړه . بونير او
هسکې سيمې ورکړل شوې او منډړ په سيمه کې پاتې شول . نن ورځ منډړ په
غرونو کې نه شته او يوازې د يوسفزو درې کلي د غرو په لمنو کې سوات او بونير
ته نږدې شته چې په سمه کې حسابيږي . په پخوا وختو کې يوسفزي چې په
غرو کې وو په اقتصادي او اجتماعي لحاظ ښه وو . د غرو اقليم ښه و او وادۍ
يې ښايسته او زړه راښکونکې وې . مګر نن ورځ منډړ بډای دي ځکه چې
داوبو لګولو سيستم لري او سيمه يې آباده ده که څه هم اقليم يې تود دی ،
داوبو کانالونه ايستل شوي دي ، ګنې ، تمباکو او نورې غلې دانې کري . نن
ورځ هشتنګر او سمه په کرنه کې شهرت لري او په دې حساب منډړ د ښه ژوند
څښتنان دي .

د شيخ ملي د ويش د زماني نيټه نه ده څرګنده . مونږ ته دومره معلومه ده
چې احمد د ژوندانه په وخت کې د کتلانګ له جګړې څخه وروسته داويش
ترسره شوی دی ، که چېرې داسې فرض کړو چې جنګ پر ١٥٢٥ کال شوی
وي نو داسروې او ويش لږ موده تر هغه وروسته شوی دی چې که چيرې تخمين
يې کړو نو د ١٥٣٠ ميلادي ( ٩٣٧ هجري ) په شاوخوا کې يې تخمنيوو .
دا د بابر د مړينې کال دی ، چې دی يوازې څلور کاله د ډهلي پاچا و . هغه نيټې
چې د پيښنو لپاره موږ تاکلې دي ، او که چيری د کابل عام قتل پر ١٤٨٥ کال
قبول کړو او احمد چې ځوان و او د ځوانۍ په عمر له هغه څخه تښتيدلی و پر
١٤٧٠ کال دده زيږيدنه تخمين کړو نو پر ١٥٣٠ کال به دی د پاخه عمر ٦٠
کلن سپين ږيری وي . دا هغه عمر دی چې د پرستيژ څخه برخمن و . شيخ

ملي به دده په عمر کې دځمکو دویش پلان تطبیق کړي وي . دا لویه پراخه ځمکه چې له غرونو او وادیو څخه ډکه ده دهغې ویش هم پیچلی ښکاري چې هرې پلرینې ته بیله برخه او ددوو پلرینو تر منځ یوه روحاني سرې ته برخه ورکول هم وخت په کار لري ، نو فکر کیږي چې دې پلان به لااقل پنځه کاله یا حتی لس کاله موده په غیږ کې نیولې وي . دننني پښنور او مردان تړولهٔ سیمه د کابل سیند شمال ته دباجوړ ، پنجکوړه ، سوات ، بونیر او ګاونډي اباسین وادي تړوله سروې شوې ده . دا داسې یوه دایره وه چې قطریې سل میله و او داسې غرونه هم په دې سیمه کې وو چې لوړوالی یې د ۱۰۰۰ او ۱۰۰۰۰ فتو تر منځ و . داسروې او داویش دیادولو وړ او په عین وخت کې ډیر ګران و چې دوخت او شرایطو په نظر کې نیولو سره دهغه تطبیق لوی کار ګڼل کیدای شي. پر دې پلان ، سروې او ویش هر اړخیز غور شوی او ښه تنظیم شوی و . په دې کې هره ښبه ، پلرینه ، کورنۍ او کوچنۍ څانګه هم په نظر کې نیول شوي وو او هیڅ نیمګړتیا یې نه درلوده نو ځکه ویلای شو چې مبتکر یې دښو ماغزو خاوند و چې په هغه وخت کې یې دټولو اړخونو په نظر کې نیولو سره دومره لویه سیمه په یوه قبیله او اړونده قبیلو کې داسې وویشله چې هیڅوک بهر پاتې نه شول او هیڅ ډول شخړه هم ونه شوه او ټولو ته دمنلو وړ هم وه ، دا چې دا له دغو ټولو شخړو مهاجرتونو ، شړنو او جګړو څخه دمخه شوی ، یقیني څرګنده نه ده . دیوه غښتلي مشر،خان او ملک او دښه پوه ملاموجودیت دا په ګوته کوي چې دداسې ځمکو ویش او کورنۍ په کې ځای پر ځای کول لوی کاردی او داهم بیانوي چې یوسفزي دې ته نوي راغلي خلک وو .

## غوریا خیل :

دکاکیو قبیلې موتر هغه ځایه وڅیړلې چې دوی میشته شول . مګر ددوی دتره زامن سړبني غوریا خیل موله یاده وتلي چې ددوی شخړې ډکاکیو او

ترین سره د مهاجرت اصلي عامل وګڼل شو چې له کندهار څخه وخوځېدل.
مګر ډېره موده نه وه تېره شوې چې د کاکیو په لوی مهاجرت پسې غوریا خیل
هم ولېږدېدل، د دوی دلېږدېدنې نیته هم روښانه نه ده. ښایي غوریا خیل هم په
جبر ایستل شوي وي ځکه چې له ترین سره دوی هم په شخړه او لانجه کې وو.
د کندهار په سیمه کې د تیموریانو د قدرت زمانه وه. د حوادثو د بیان پر اساس
کله چې د غوریا خیلو سرکتار ننګرهار ته ورسید هغه ګیګیانې ترکلانې او
کاکي چې د کابل له عام قتل څخه وروسته په کابل کې پاتې شوي وو هم
مجبور شول چې په خپل وار سره د ختیځ په لور وخوځېږي.

د غوریا خیلو څانګې خلیل، مومند، داودزي او څمکني دي (د پېښور په
۶ میلۍ کې یوازې یو کلی د څمکنیو په نوم شته او څمکني په دې محاسبه کې
نه دي راغلي، څمکنې د کورمې له وادۍ سره پیوسته سیمه لري). یوازینې
څوک چې بابر یې یادونه کړې ده هغه مومند دي چې د مقر په سیمه کې یې له
غلجیو سره جګړه درلوده او دا د دوی اصلي وطن و. په دې ډول په دې تکي
بابر د غوریا خیلو قبیلوي دود تائیدوي. خلیل او داودزي ده په هیڅ ځای کې
نه دي یاد کړي.

موږ و تاسې ته څرګنده شوې ده چې کاکي یوسفزي په دوآبه کې نه ځایېدل
او امبهار یې ونیو او بیا د جندول خوا ته باجوړ ته ولاړل. په «سمه» کې
دیلازاکو دوی دې کار ته تشویق کړل بې له دې چې د دوی کوربه د باجوړ و مشر
ملک هیبو (Haibu) سره مشوره وکړي. هیبو په باجوړ کې و، د دیلازاکو
د عمر خیل پلرنیې مشر و له ده څخه چا پوښتنه نه وه کړې او هیچا کوم نوي
مهاجر ته ځمکه نه وه ورکړې. یوسفزو شاوخوا کمک لټاوه او له خلیلو څخه
یې مرسته تر لاسه کړه پر هغه وخت دوی له ټولو غوریا خیلو سره په ننګرهار
کې پر شخړو بوخت وو. د غوریا خیلو تر ټولو قوي څانګه مومند او د کاکي

قبیلې ځانګه تر کلاڼي چې تر دې وخت پورې په ننګرهار کې وو، پریکړه وکړه چې له خلیلو څخه وروسته پاتې نه شي او په باجوړ ورننوتل چې دملک هیبو او دهغه دمخالفینو یوسفزو او خلیلو تر منځ دوستانه مداخله وکړي. مګر هیبو توپکو ته لاس کړ او فکر یې کاوه چې نوي خلک به تر پایه دسولې غوښتونکو په شکل پاتې شي، نو ځکه یې ژر یوسفزو او خلیلو بریدوکړ. جګړه پیل شوه چې مومند او ترکلاڼي هم ورګډ شول او په نتیجه کې هیبو یوازې پاتې شو او ماتې یې وخوړه او دیوه ترکلاڼي برهان نومې دتورې په ضربه چې په غاړه کې یې خوړلې وه مړشو. دهیبو زغره له ده څخه میر جمال مندړ ایستلې وه او په کورنۍ کې یې ساتله - زما په یاد یږي چې دمیرجمال او لادونود؟ په شیر دره کې ساتله او په دې هکله مې کیسه له خلکو اوریدلې وه. شیردره دمیرجمال کلی دی چې دبونیر دوادۍ په غرونو کې دامبیلا غاښي ته نږدې پروت دی.

بیا یوسفزو او خلیلو باجوړ په خپلو کې سره وویشلو مګر ډیر یې دوام ونه کړ. لومړۍ جګړه دخلیلو په ګټه تمامه شوه ځکه چې د «سمې» یوسفزو مداخله ونه کړه یوازې دباجوړ دغرنیو سیمو یوسفزو ماته وخوړه، دباجوړ یوسفزي ملک احمد خان ته ورغلل او مرسته یې وغوښته. هغه هم دا پریکړه وکړه چې کاکي باید نور دغوریاخیلو تر تیري لاندې رانه شي او ددوی دتیري مخنیوی باید وشي ځکه چې په تیرو وختو کې هم دکاکیو دمهاجرت سبب دغوریا خیلو تیری و، نو دوی پریکړه وکړه چې دوه مرحله ییز یرغل پر خلیلو باندې پلې کړي. دباجوړ یوسفزي دملک هیبو زامنو ته په ننواتې ورغلل او ددیلازاکو حمایه یې وغوښتله او عفوې ځینې وغوښته، عمر خیلو نه یوازې عفو کړل، بلکې دوی ته یې قوت هم ورکړ. دوی دباجوړ دخار Khar وادۍ ته نږدې موضع ونیوله. په همدې وخت کې دسمې یوسفزو دګنداب او

پنډيالي له لارې ( دننني لرو مومند و سيمه ) له «دانش کول» څخه دناوګۍ پرخوا پورې وتل .

جګړه دخليلو پر خلاف ناوه ګۍ ته نږدې پيښه شوه . دا جګړه دمير جمال دقوتونو له خوا چې له ښه چال څخه يې کاراخيستی و . ديو سفزو په ګټه تمامه شوه . ميرجمال دهيبو غنيمت ټولوونکی و . خو په دې وار دهيبو زامن او عمر خيل ديلازاک ورسره وو خليل تيت پر ک او مات شول . سنګرونه مات شول دسنګرو شاته يې ددوی ښځې او مالونه اسير کړل ، اوجګړه پای ته ورسيده . تر جګړې وروسته احمد دخليلو مير جمال او دهيبو زامنو شورا وکړه او پريکړه يې وکړه چې نيول شوي کسان آزاد شي خو په دې شرط چې خليل به بيا په شمالي غونډيو کې پښه نهږدي ، دا شرطونه ددواړو له خوا و منل شول.

دا بلوا په باجوړ کې دراورتيي له خوا په ۱۵۱۷ ميلادي ( ۹۲۳ هجري ) کې ... ودل شوې ده چې دغوريا خيلو ډله ييزه لېږ ديدنه ده چې دپېښور په شاوخوا کې ځای پر ځای کيدل . دبابر له مړينې څخه وروسته ( ۱۵۳۰م ) دمغولو نوې امپراتوري پيل شوه او ددوی تر منځ وويشل شوه . همايون هندي برخه ونيوله او کابل ، غزني ، کندهار او اړونده برخې يې تر اباسين پورې دده ورور ميرزا کامران ته وركړې . په نظري لحاظ کامران يو محلي حاکم و او همايون پاچا و . مګر کامران داکبر دورور حکيم په شان ( وروستۍ دوره کې ) زياتې غوښتنې درلودې او هڅه يې کوله چې مطلقه آزادي تر لاسه کړي او حتی د وروروژنې جګړه پيل کړي او وروړله پښو څخه وغورځوي . واقعاً چې له ۱۵۳۰ څخه چې همايون پاچا شو بيا تر ۱۵٤۵ پورې کله چې ډهلی يې شيرشاه ته وبايله او په مقابل کې دکابل په نيولو بريالی شو بيا هم پر سرحدونو مسلط نه و . حتی تر ۱۵۵۳ ميلادي پورې پس له ډيرو جګړو چې

کامران دادم خان د پنجاب دخان په واسطه همایون ته تسلیم شو او ړوند کړای شو خو بیا هم د پېښور په وادۍ کې یې ارامه پاچاهي ونه کړه . د بابر له مړینې وروسته دشلو کالو په موده کې تر ۱۵۵۰ میلادي پورې کامران دخپلو خود خواهیو او جاه طلبیو له لاسه داسې کارونه کړي ووچې په سیمه کې یې نښې نښانې تر ډیرو پورې پاتې وې .

هرکله چې کاکي دکابل سیند شمال ته ځای پر ځای شول ، دیلازاکو دکابل سیند جنوب ته دخیبر له غاښي څخه بیا تر خیر آباد پورې چې داباسین پر غاړه دي ، ټوله سېمه ونیوله دختکو په هکله کومه یادونه نه ده شوې او داسې معلومیږي چې تر دې وخته پورې ختک صحنې ته نه وو راوتلي . غوریا ـ خیلو په تیره بیا خلیل اومومندو چې دغوریا خیلو غښتلې څانگې دي دباجوړ خواته توجه درلوده ، دوی له ننگرهار څخه دپېښور خواته په زور او جبر شړل شوي وو . دوی دکاکیو په پله روان شول او له دیلازاکو څخه یې ځمکه وغوښتله ، دیلازاکو دځمکې له ورکولو څخه انکار وکړ او په نتیجه کې یې زیات تاوانونه وزغمل . خلیل او مومندو دکامران خواخوږي تر لاسه کړه . هغه هم غوښتل چې ددوی په مرسته دخپل ورور همایون په مقابل کې سرحد ټینگ کړي او داقبیلې یې وهڅولې چې داباسین ختیځ ته ولاړې شې او مرستې یې هم ورسره وکړې .

ددې مرستو په وسیله دوی وتوانیدل چې دیو سفزو لیږدیدنه بشپړه کړي او دیلازاک دکابل سیند جنوب ته وشړي . دوی داباسین له خوا داټک په شاوخوا ټولې هغه ځمکې ونیولې چې دوی غوښتې ، نیټه یې نه ده روښانه . مگر کوم رول چې کامران لوبولی دی مورږ ته تخمیني نیټه راپه گوته کوي ، یانې دا پیښې له ۱۵۳۰ میلادي څخه وروسته او د ۱۵٤۵ څخه دمخه شوې دي ، دا هغه وخت دی چې همایون په پارس کې لالهانده و او کابل یې له

کامران څخه ونیوه .

داسې معلومیږي چې خلیل دخیبر له لارې د پېښور وادۍ ته ننوتلې وي ، دوی همیشه له اپریدو سره ښه اړیکي ساتلي دي ، او ددوی ځمکه سره شریکه پوله لري ، ددوی مشران دارباب په نامه یادیږي . دوی د اپریدو پرسیاست او کړووړو پوره پوهیدل . سکانو او انګریزانو د اپریدو په هکله د معلوماتو راټولولو لپاره همیشه له ایجنټانو څخه کار اخیستی دی ، مومند د کابل دریا په مسیر کې ، ځینې دلعلپورې له خوا او ځینې د ګوشتې او بوهۍ ډاګ له لارې ګنداب او دوآبې ته راغلي وو . ددوی اساسي ځایونه حتی نن ورځ هم لعلپوره ، کامه او ګوشته د غرونو غرب خواته په افغانستان کې دننه دي او په غرونو کې په ډیر شمیر اوسیږي او یو شمیر یې د پېښور خواته ولاړل او د باړې ددریا د غاړې ځمکې یې له خلیلو سره وویشلې . دداودزو لیږد یدنه روښانه نه ده . داسې ښکاري چې یو وخت یې خان کجو ته را مخه کړه او له هغه څخه یې د یوسفزو څه ځمکې په کلپانې کې وغوښتې چې په جنوبي سمه کې موقعیت لري ، بالاخره دوی د کابل سیند د څانګو په شاوخوا کې د پېښور شمال ته ځای پر ځای شوي دي ، داسیمه ډیره ښکلې سیمه ده او هر چا چې دلته ښکار کړی دی دا سیمه ښه ورته معلومه ده .

کله چې دا پیښې په جریان کې وې د یوسفزو ملک احمد مړ شو . احتمالاً به ۱۵۳۵ میلادي وي . او خان کجو دده ځای ونیو . خلیلو او مومندو د پېښور شاوخوا میوه لرونکې سیمه په خپل واک کې درلوده او همدارنګه د هند خواته د تللو لویه لارهم ددوی په ولکې کې وه پر تګ راتګ یې حق العبور مقرر کړ او په دې ترتیب په ډیر کم وخت کې دډیرو پیسو خاوندان شول او پر یوسفزو باندې یې خیال نه کاوه ، همدارنګه د غرنیو سیمو مومندو د دریا جالې په واک کې درلودې . دګنداب او لالپورې تر منځ د جالو د ترافیک حق ـ

العبور هم دوی ته لاس ته ورغی . د یوسفزو له کاروانو څخه یې په ګنداب کې هر څه اخیستل او پر سمه باندې یې هم کله نا کله حملې کولې ، خان کجو تر څه وخته پورې غلی و او په دې ډاډه نه و چې ګیګیاني او محمد زي د ده حمایه کوي او که نه ؟ د ه صبر کاوه خو وخت ډیر تیر نه شو چې موقع برابره شوه .

دوآبه او هشتنګر مړې سیمې وې او مومندو له دوو خواو څخه له دې ځایو څخه خپل لوټ کاوه . دوی دې کار ته ادامه ورکړه او د دې کار په جریان کې یې ګیګیاني ملک مړ کړ چې خلکو هغه ته دیوه روحاني په سترګه کتل ، داسې له دوآبې څخه پېښور ته روان و او په لار کې د خلیلو یو ه مسجد ته ورننوت او د عبادت پر وخت ووژل شو .

دا د جګړې د پیل سبب شو . راځئ یوه ټکي ته اشاره وکړو هغه دا چې دوینې دغچ اخیستنې په اړه په پښتنو کې قانون او شریعت دواړه دغچ مخنیوی نه شي کولای ، زما په یاد دي چې د عباذت پر وخت دوژل شوو اشخاصو غچ په محکمه کې هم اخیستل شوی دی . که څه هم بنبل شوی نه دی خو زما نه په یاد یږي چې محکمې دې داسې متهمین په کوم غیر معمول شکل سره بې عزته کړي وي .

مګر دا وژنه د خان کجو لپاره ډېره ښه پلمه وه ، ده د یو لک کسانو اردو جوړه کړه چې د کاکیو او دوستان یې ،محمدزي ، اتمان خیل او ګادون په کې شامل وو . حتی تر کلانیو چې لا ځای پر ځای شوي هم نه وو . دوه سوه سپاره یې ورکړل ، د پیښنو د لیکنو له مخې د کابل سیند د جنوب خوا ته جګړه پیل شوه چې دا ځای نن ورځ شاه عالم نومیږي او د پله په شاوخوا کې دا جګړه پیل شوه چې په نتیجه کې غوریا خیل بیخي مات شول . دا جګړه د شیخ تپور د جګړې په نامه مشهوره ده . د دې نیټه نه ده معلومه خو راوړتې یې د ۱۵۵۰ (۹۵۷ هجري) شاوخوا بولي . دا جګړه ځکه مشهوره ده چې دواړو

خواو دميړانې او قوت بولي يو بل ته ورکړې دي . خان کجو چې دسيند غاړې ته راورسيد و نو ويل چې غوريا خيل دسيند په بله غاړه جګړې ته تيار شوي دي . خان کجو ورته غږ کړ :« تره زامنو ! جګړه خو به خامخا کوو خو په سيند کې جګړه نه شو کولای ، اوبه به په وينو سرې شي او خويندې به له سيند څخه اوبه وانه خيستی شي او همدارنګه داهم مزه نه کوي چې دسيند له يوې غاړې او بلې غاړې يو پر بل غشي وار کړو . ميړونه بايد يو له بل سره لاس په لاس جګړه وکړي . تاسې له سيند څخه راپورې وځئ او زه به په شاشم چې دجګړې ميدان پراخ شي . » غوريا خيلو دا خوښه نه کړه ځکه چې دغورياخيلو شا سيند ته بنده او دنورو شا پېښور ته پرانيستې راتله . نو ځکه دوی همداخبرې تکرار کړې او دوی ته يې له سيند څخه دتيريدو بلنه ورکړه . دکاکيو ځينو مشرانو خان کجو ته مشوره ورکړه چې وړانديز ونه مني . ځکه دوی ويل چې که سيند ته موشاشي زموږ دمانور لپاره به ځای نه وي . خان کجو مشوره ونه منله او دغوريا خيلو وړانديز يې ومانه ، خليل په شاشول . خان کجو خپلو سړيو ته وويل : ګوزئ دوی په شاځي او موږ پر مخ ځو . داددوی وروستۍ ورځ ده .

دادغوريا خيلو ماتې دکاکي خيلو له خوا په دې شکل او دودسره قانع کوونکې نه وه . که څه هم خليلو به ماتې خوړلې وي خو ترنن پورې مومند او خليل پر هغو ځمکو پراته دي چې هغه وخت يې نيولې وې ، دواړه قبيلې ښې بډايې دي او دپېښور په نږدې ګاونډ کې دواړه دملاحظې وړ قبيلې وې ، سربيره پردې مومند دډيورنډ کرښې په اوږدو کې دشبقدر شمال غرب ته پوره اندازه غرنۍ سيمې هم لري . دغرونو غرب ته دوی په افغانستان کې هم شته که تر مسعودو او اپريديو پورته نه وي خو ورڅخه کم هم نه دي . پر دې سربيره دمحمدزو او يوسفزو ښې خړوبې ځمکې يې اخيستې دي ،په دې تيرو څلويښتو کالو موده کې ( دمولف دليکنې وخت ) يې په اقتصادي لحاظ پر

مختنگ کړی دی او په سرحد کې تر ټولو قبیلو مړه قبیله ده ، دا احتمال شته څه چې رښتیانی دقبیلو دځای پر ځای کیدو په هکله پیښې شوی دی دجګړو په هکله دمورخینو له خوا په کې بدلون راوستل شوی دی . دپښتنو او مردان سیمې ته دمومندو په زور کوزیدنه دا اقتصادي مسایلو پر اساس وه او نه نظامي ، زه داسې ګمان کوم چې په شپاړسمه پیړۍ کې چې څه پیښې شوي وو په همدې ډول وو . دا هم ویلای شم چې په هغه وخت کې حکومت کمزوری و . او دقوې لاس بری زیات و مګر سره له دې ټولو خبرو دا قبیلې دقبیلو په خیر نه ، بلکې دمنفرد شخص په شان په حیرانوونکي توګه جرګې او مرکې ته غاړه ږدي ، مګر متاسفانه قبیلوي جنګونه کله کله بې له مذاکرو او مرکو تر سره کیږي .

موږ باید دا دودونه دبابر له خاطراتو سره دتضاد او مخالفت له مخې هم وڅیړو . دغلطیو لپاره هم دوخت حاشیه په پام کې ونیسو ، قبیلوي دود او تذکره لیکونکي دډله ییزو لیږدیدنو یادونه کوي او دکابل او پښتنو تر منځ دځای پر ځای کیدو نیټه دقیقه نه ده ، داحوادث د ١٤٨٥ - ١٥٥٠ تر منځ د ٦٥ کلونو په موده کې پیښې شوي دي چې دالغ بیګ دکابل عام قتل څخه بیا په شیخ تپور کې دغوریاخیلو ترماتې پورې پیښې په غیږ کې نیسي . هغه مهمې پیښې چې دپیښو لیکونکو ښودلې دي په دې ډول دي :

(١) دکاکیو له خوا په شمـــــــال کې د دیلازاکو ماتې د ١٥٢٥ م په شاوخوا کې .

(٢) دکاکیو له خوا دسوات اشغال له ١٥١٥ څخه لږ څه دمخه.

(٣) دشیخ ملی دځمکو ویش د ١٥٣٠ په شاوخوا کې .

(٤) دغوریا خیلو له خوا په جنوب کې ددیلازاکو ماتې د ١٥٣٥ په شاوخوا کې .

(۵) د کاکیو له خوا د غوریا خیلو ماتې د ۱۵۵۰ م په شاو خوا کې.

د حواد ثو اصلي زمانه د ۱۵۱۵ او ۱۵۳۵ تر منځ راځي، د دې مودې په لړ کې بابر څلور واره له دغې سیمې څخه تیر شو. پر ۱۵۱۹ کال دی په سوات کې تر ډیره وخته پورې پاتې شو، له بي بي مبارکې یوسفزۍ سره یې واده وکړ او په سمه کې وګرځیده. ده په یادښتونو کې د دې سیمې لپاره دلارښود په شکل لیکنه کړې او د دې سیمې ښایسته او دلیدو وړ ځایونه یې ښودلي دي، بابر له پېښور او شاوخوا سره پوره بلدو. مګر د ده په ټولو لیکنو کې د ډله ییزو لېږ دیدنو په هکله څه نه شته، (لکه د موسی (ع) او جاشوا د بني اسرائیلو لیږدیدنه او د قبیلو دورکیدلو په څیر، د دغه لیږدیدنو په هکله څه نه شته).

موږ باید د دغو لیږدیدنو کیسه و منو، خو څه نا څه تصرف په کې په کار دی، دا مشکله ده چې ټولې قبیلې چې بابر یې په دې سیمه کې یادوي موږ یې داوسني وخت میشته قبایل قبول کړو. په هماغه وخت کې ځینې قبیلې فقط د دې پروسې په جریان کې وې.

د بابر یو متن شته چې د دغو قبیلو د حرکت تائید کوي او مخکې مو نقل کړی دی، دا هغه وخت دی چې دی د باجوړ، سوات، هشتنګر او پېښور په هکله خبرې کوي چې دا سیمې په یوه وخت کې د کابل تر تسلط لاندې وې مګر اوس افغاني قبیلو اشغال کړي او د هیچا په حکومت پورې نه دي تړلي، یقیناً د بابر د غه عبارت باید ولوستل شي، د دې لپاره نه چې موږ ته د لیږدیدنې معلومات راکوي، بلکې د دې لپاره چې لیږدیدنې تائیدوي او دا یو تاریخي فکت دی، په پنځلسمه پیړۍ کې تیموري امپراتوري سقوط کوي او پر دغو غښتلو او د مشکلو غرنیو سیمو او سیدونکو قبیلو باندې کنترول له لاسه ورکوي.

د بابر د یادښتونو او د قبیلوي یادونو له مقایسې څخه نورې تبصرې او

خبرې راپورته کيداى شي . څرګنده ده چې بابر د کندهار ښار او له يوسفزو سره چې واده يې ورڅخه کړى و ډير زيات علاقمند و . دا چې يوسفزو له کندهار څخه دراتلو ادعا کوله بابر څه فکر کاوه ؟ موږ ښايي داهم وپوښتو چې آيا بابر له دې څخه خبرو چې د پښتنو نوم يو وخت کندهار و او بيا له هغه څخه اوسيدونکي غرب ته مجبور شوي وو او د کندهار نوم يې له ځان سره وړى و ؟ په دې هکله يوه کلمه هم نه شته ښايي بي بي مبارکې هم د قبيلوي اصليت او ريښې سره علاقه نه درلوده . چوپتيا د دې مانا نه لري چې خبره غوټه شوه او نتيجه ګيري وشوه خو داضرور نه ده چې دا ريکارد له حد څخه اضافه تربحث لاندې ونيسو .

هغه څوک چې دا دودونه د ظاهري بڼې په ارزښت مني ، دې ته مجبور يږي چې داهم ومني چې د يلازاک که څه هم يوسفزو ، مومندو او خليلو شړلي دي ، افغاني قبيله ده که څه هم دسړين له ليکې څخه نه دي . لکه چې پوهيږو داڅرګنده ده چې دوى کرلاڼي دي ،داپريدو ،اورکزو ، ختکو ، وزيرو او دنورو وروڼه دي ، زه پردې قانع نه يم چې دبابر په زمانه کې دې د پښتنو ټول نفوس اوړيدلي وي او داهم نه منم چې په شپږ تپور کې د کاکيو له خوا دغوريا- خيلو تر ماتې وروسته دا اوښتون شوى دى ، دا دواړه نظر يې دومره ارزښت نه لري .

کله چې څو کاله وروسته تاريخ ته مخ واړاوو ، په دقيقه توګه د اکبر زمانه تربحث لاندې ونيسو ،موږ ناڅاپه يوه نوې قبيله کشفوو . دا قبيله خورا مهمه قبيله ده چې امپراتور د دې قبيلې مشر ته ، دلويې لارې امنيت ورسپاري او داباسين په اوږدو کې له اټک څخه تر پېښور پورې د دې لارې څارنه ورپه غاړه کوي . دا قبيله د جنوب خوا نه تر بنو پورې رسيږي او له يوسفزو څخه يې ځينې مهمې ځمکې هم نيولې وې . څو لسيزې نور هم د يخوا ته را خوځيږو او له دې

بې شهرته قبيلې څخه داسې شخصيت راپورته کيږي چې توره او قلم يې د پښتانه په تاريخ کې ساری نه لري . دا قبيله ختک دي ، ننګيالی او توريالی شاعر خوشال خان ختک هم دی ، مونږ داسې عقيده لرو چې ختک هم له بل ځای څخه راغلي دي ، داسې دود شته چې لومړی دوی په بنو او توچي کې اوسيدل ، مګر د اکبر په زمانه کې دوی د اکوړي په شاوخوا کې ميشته شوي وو . دا قبيله له شمال څخه جنوب ته په ۱۵۰ ميله خاوره کې ميشته ده . دوی په يوه شپه کې نه دي راشنه شوي . مونږ ته د داريوش د ثتاګوش Thatagush د ايالت يادونه کيږي .

که چيرې خليلو او مومندو ، ديلازاک دا باسين تر پورې غاړې پورې وځغلول نو ولې يې د دوی حکمې تر اټک پورې اشغال نه کړې ؟ ډير امکان لري چې ختک پخپله ديلازاک وي . ختک د دې سيمې اوسيدونکي ښايي تذکره ليکونکو ( د حواد ثو ليکونکو ) ديلازاک ليکلي وي . ختک د ديلازاکو په شان کرلاني پښتانه دي ،دوی له يوسفزو سره ډيرې جګړې کړي دي ،د يوسفزو او ختکو جګړو د خوشال خان تر وخته ( ۱۶۱۳-۱۶۸۹ ) پورې دوام کړی دی . دده پلار ، نيکه او غور نيکه «اکوړه » په همدې جګړو کې وژل شوي دي . زه داسې نظر لرم چې د پيښو ليکونکو راپور د غوريا ( اوريا ) او کاکيو د جګړو په هکله چې د ديلازاکو پر ضد يې کړي دي ، عنعنوي او قبيلوي مخالفتونه دي او د هغوی ارزښت او اهميت عيناً د هغو وروستيو مخالفتونو په شان دی لکه چې د ختکو او يوسفزو په منځ کې روان وو .

دلته يو په زړه پورې انعکاس ليدل کيږي . د پښنور جنوب ختيځ ته تقريباً لس ميله لرې د مومند تپې او د ختکو د وطن ترمنځ درې لوی کلي موجود دي چې براورمړ ، منځ اورمړ او لراورمړ نوميږي . دلته اورمړ اوسيږي او خپله ژبه يې د وخت په تيريدو سره هيره کړې ده او د ختکو تر تاثير لاندې په پښتو ژبه

خبرې کوي. څرنګه چې مخکې مو یادونه کړې ده اور مړ هم لوی کړای شوی او روزل شوی کوچنی و او د سړبن په نسب کې ورګډ کړای شوی دی . هغه هم په خپل وار سره د کرلانیو پلار وروزه . د پښتنو دوادی د دغو قبیلو له موجودیت څخه انکار نه شي کیدای خو ددوی د ختې او اصلیت په هکله هم سوال موجود دی .

موږ په دې متقین یو چې داسیمه له لاپتنا هي نسبو نو څخه ډکه شوې ده او تاریخ ددې شاهد دی او داهم یقیني ده چې قبیلې او ټولنې دلته لویدلې دي او د کوچیتوب مفکوره لا تر اوسه ژوندۍ ده او ځینې پښتنې قبیلې نن ورځ هم له یوه ځای څخه بل ځای ته ځي ، داهم څرګنده ده چې ډیرې لښکرې له دې سیمې څخه تیرې شوې دي .ډیرې امپراتورۍ یو په بل پسې راغلې دي. مګر دا چې دا قبیلې له کندهار ، غزني او یا کابل څخه د سطرنج ددانو په شان پورته کړای شوي او بیا یې په اوسنیو میشته ځایونو کې ایښي وي د منلو وړ مسئله نه ده . زما په عقیده دالیږدیدنې داسې دي لکه د سمندر څپې چې باد او توپان وي نو شوریږي او چې توپان نه وي نو بیا سمندر آرام وي .

# دیارلسم څپرکی

## عقیده وال او دعقیده والو ضد

دپښتنو په هوارو کې قبیلوي میشته کیدل څه ناڅه روښانه شول . لږترلږه داخوبیخي څرګنده شوه چې تیموریانو دبابر تر زمانې ونه کړای شول چې په سیمه کې دولت جوړ اونظم راولي . حتی په وادۍ او دارتباط کرښو په اوږدو کې هم دنظم په ساتلو بریالي نه وو . دبابر خپل یادښتونه ددې تائید کوي . ده زیاتره وخت په سرحد کې تیر کړ و چې دلته مطمئن بیزتر لاسه کړي او دهند دنیولو عملیات له همدې ځای څخه پیل کړي . خو بابر هم ښکته او پورته په دې لار تیرشو دلوی سکندر په شان یې خپله دبدبه وښودله مګر کوم بیزیې تاسیس نه شو کړای . ده دابهتره ګڼلې وه چې په بیړني شکل له هغو قبیلو سره پر مذاکره ،خبرو ، اترو ، وادہ ،او نورو اشکالو خپل کاراوبار وچلوي . مګر په دوامداره توګه دده وخت ویشل شوی و هیڅکله یې ونه کړای شول چې دا

خلک د مثال په توګه لکه بنګښ ، فتح کړي او دده عذر داو چې : « ددغې یا هغې سیمې دخلکو دځای پر ځای کولو لپاره فرصت نه لرم . » دده هم پښتانه جذب کړي وو چې دده په لښکرو کې برخه واخلي او په هند کې د ده په ګټه وجنګیږي . مګر کله چې پر ۱۵۲۶ کال پاچا شو یوازې دده دژوندانه څلور کاله پاتې وو . دا څلور کاله هم بل ځای تیرشوي وو. نه په پیښور ، کوهاټ یا بنو کې .

لکه مو چې دمخه یادښت اخیستی پر ۱۵۳۰ کال دبابر ډمړینې سره دده پاچاهي دده دزامنو تر منځ وویشل شوه . همایون هندونیو او دده کوچني ورور کامران دکابل غزنی او مربوطو سیمو ترا باسین پورې حاکم شو . کامران په نامه دورورنایب و او دده تر ټولو لوی دښمن و ، دده داسې کار ، ونه کړ چې دمغولو نوې امپراتوری تقویه او تحکیم کړي ، بلکې برعکس په سرحدي قبایلو کې يې داسې تسلط پیدا کړی وچې دهمایون پر ضد يې شخړې راپارولې او تر پنجاب پورې يې مداخلې پیل کړې . دکامران له لاسه دهمایون دتخت او تاج ورځې ترخې وې . ډیر غلجي او پښتانه عسکر چې دلودي ډکورنۍ څخه په هند کې پاتې وو ، له مغولي غاصبانو پرته يې هند ډیرښه پیژانده ، او دوی مناسب فرصت او دښه لارښود پیداکولو ته سترګې په لاره وو. دا لارښود پیدا شو ، دا مشهور شخصیت شیرشاه سوري دلودي کورنۍ مربوط ، دهمایون په شان زړه ور ، هوښیار او دوراندیش سړی و . همایون برعکس بدلیدونکی او بې ثباته سړی و . پر (۱۵۳۹) کال همایون دخپل تکړه او مقتدر حریف له خوا ماتې وخوړه او دسند له لارې پارس ته وتښتیده. دده ورور کامران له ده سره مخالفت پیل کړ او دده پر مخ يې دکابل او غزني لارې وتړلې او حتی په پنجاب کې يې هم پرې نه ښود . تر ۱۵٤۵ پورې همایون په پارس کې سر ګردان و او ترهغه وروسته يې دپارس په کمک

کندهار او کابل له خپل ورور څخه ونیول. کامران په پراخه پیمانه دغوریاخیلو، خلیلو او مومندو په حمایت متکي و او هغوی دده په کمک په پښتنو کې خپلې ځمکې تر لاسه کړې وې. حتی تر ۱۵۵۱ پورې هم کامران دجګړې په میدان کې و. پر دغه کال دخلیلو او مومندو په مرسته یې په ننګرهار کې دهمایون پر کمپ دشپې له خوا غلچکی برید وکړ او دلاس او تورې جګړه وه. مسعودوهم پر ۱۸۹٤ کال په وانه کې همداسې یرغل کړی و،

قبیلوي جنګیالي کمپ ته ننوتل اودهمایون بل ورور هیندل (Hindal) یې وواژه اودهغه کوپړۍ یې لهغورۍ څخه تر غوږۍ پورې څیرلې وه. دا یرغل یوازې دامپراتور په ځانګړي مقاومت سره مات شو. همایون له خپلې خیمې څخه په میړانه راووت پر آس سپور شو او دکمپ په منځ کې ودرید او خپل عسکریې سره راټول کړل. کامران خپل ځان [illegible] اجز ولید او داباسین (ډ دیخوا پښتنو سره یې دمقاومت قدرت له لاسه ورکړی او په لاهور کې یې دشیرشاه سوري زوی اسلام شاه ته پناه یووړه. اسلام شاه پر ۱۵٤۵ کال په ډهلي کې پاچا شوی و او څرنګه چې کامران پنجاب بې له مقاومته شیرشاه ته تسلیم کړی ونو دپناه هیلهیې درلوده. مګر هغسې چې ده توقع کوله استقبال نه شو. نو ځکه یې دشمالي پنجاب یوه خان ته چې آدم خان نومیده پناه یووړه. څرنګه چې داسیمه دسوریانو له خوا دوه ځله ځپل شوې وه نو آدم خان دسوریانو پر ضد عقده درلوده او دروهتاس کلا چې دشمالي لویې لارې پر سروه اوډیره ټینګه دفاعي کلا وه او ددې سیمې دکنترول لپاره آدم خان حاضر و چې کامران همایون ته وسپاري او دهغه حمایت تر لاسه کړي او سوري کورنۍ کمزورې کړي.

په دې وخت کې چې همایون کابل له کامران څخه ونیوه دخپل پلار بابر په شان دقبیلوي منطقو تر منځ دارتباطي کرښو او لویو لارو پر ټینګولو بوخت

شوچې وکولای شي هند بیا ونیسي . له خپل قابلیت څخه بې خبره وچې د پښتنو له قبیلو سره څه رویه وکړي . لومړی یې د کورمې ( کرم ) بنګښو لاره ونیوله او په درسمند کې له سختې جګړې سره مخامخ شو . وروسته له خونړۍ جګړې څخه د آدم خان له خوا ده ته پیغام راورسید چې کامران یې په لاس کې دی نو که همایون ده سیمې ته راشي هغه به ورتسلیم کړي. همایون له اباسین څخه تیر شو او هغې سیمې ته ورغی . کامران یې ده ته وسپاره او سترګې یې ورړندې کړې . بیا ده ته اجازه ورکړل شوه چې مکې مکرمې ته ولاړ شي . کامران پس له درو کالو په مکه کې مړ شو .

وینسنټ سمټ Vincent Smith د دې غمجنې پیښې تفصیل ورکوي چې د هغې زماني کړه وړه ، ظلم ، مینه ، مقاومت او شرمندګي په کې نغښتي وو ، زه دا درد ناکه پیښه دلته نه تکراروم . له حریف څخه سترګې ایستل د هغې زمانې د ترکي نژادو یو وحشیانه رواج و . دوی نه غوښتل چې مړیې کړي مګر همیشه یې حریف له مقاومت څخه غورځاوه . ړندول او د سترګو ایستل د میر نیو ورو ته تر منځ یوه عادي معامله وه . صفویانو ، نادرشاه افشار او قاجاریانو چې په ایران کې پاچاهي کوله ټول اصلاً ترک وو او ټولو د یو بل ړندول عادي خبره ګڼلې وه . شاه محمود سدوزي کله چې بخارا ته پناه یووړه دا دویرې ډکه سزا یې زده کړه او پر خپل وروړ شاه زمان باندې یې عملي کړه ، شاه زمان هم په دې هکله ګناه کړې وه له خپل بل وروړ سره یې په « لیه » Leiah پنجاب کې دا عمل تر سره کړی و . دا یو ښالتمې وچې په مقابل کې یې خپلې سترګې له لاسه ورکړې . مګر د پښتنو تر منځ د قصدي سزا ورکول او د خلکو د اداره کولو په مقصد بدني سزا ډیره عادي خبره ښکاري . د پښتنو تر منځ بدي او دښمني د میړانې او میړه توب شکل لري . چالبازي او نیرنګ په کې کم دی .

دکامران په ړندیدو او د سوریانو په کمزورتیا د اسلام شاه له مړینې وروسته (١٥٥٤) ، همایون بیا بریالی شو چې دډهلي پایتخت تر لاسه کړي. مګر موده یې ډیره لنډه وه . دی یوازې شپږمیاشې پاچا و . د ١٥٥٦ دجنوري په میاشت کې دخپل کتابتون له زینو څخه راکوزیده او ولویداو له هغه څخه مړ شو . همایون موثرتولواک نه و دخپل پلار په شان دسرحدي قبیلو تر منځ یې یوازې د تیریدو او راتیریدو لار لټوله . دکامران له نیولو څخه وروسته یې یوڅه هڅې وکړې چې د پېښور او خیبر سیمې تر دایمي حاکمیت او کنترول لاندې راولي او په پېښور کې یې دبګرام کلا ترمیم کړه او قزاق جنرال سکندر نومی یې هلته مسوول وټاکه او زیات قوت یې ساتلی و ، په دې نیت چې قبایل وڅپي ، پاچا چې له پېښور څخه ووت خان کجو پر بګرام کلا یرغل وکړ اما د توپچي دنشتوالي له کبله په شاشو ځکه چې بې له توپچي دکلا نیول ګران کارو .

مهم ټکی دادی چې دبابر له مړینې څخه بیا تر همایون پورې پنځه ویشت کاله موده کې ماورای سند کې دپېښور دوادۍ هوارو او غرنیو سیمو په شمول څه ډول چې لا زمه ده دمغولو تر کنترول لاندې نه وه راغلې کامران چې کابل په لاس کې درلود یوازینۍ خوښتنه یې داوه چې د قبیلو لټوټ او ټکس څخه یې دځان لپاره څه تر لاسه کول او د تاج تخت او دخپل ورور په مقابل کې یې هڅه درلوده . دده صلاحیت په پېښور کې بیخي له خلیلو او مومندو سره په اړیکو پورې محدود و . یوازې دارتباط دلارو په اوږدو کې یې صلاحیت ساته چې معمولاً دلنډي سیند جنوب سیمه وه . مګر داهم دیوسفزیو خان کجو له خوا همیشه تر تهدید لاندې سیمې وې . همایون تر ١٥٥٢ پورې پخپله له دې لارې څخه نه وتیر شوی او دبنګښو لارهم اوس چندان مطئمنه نه وه . ده یوازې دبګرام دکلا ساتنه کوله چې دقبیلو له یرغل څخه یې وژغوري . دسوریانو

پاچاهانو داباسین په شرق کې تر بنو پورې حدود درلودل مگر د نیازیو سیمه یې چې نتني عیسی خیل دي تر کنترول لاندې رانه وستله . شمال خواته د دوی حدود دراول پینډۍ غرب د مارگله غاښي Margalla Pass ته رسیدل . د سوریانو سرحدي کلا د روهتاس کلاوه چې د پنجابیانو تر کنترول لاندې وه او نه د پښتنو ، دبنو او دیره جاتو څه ناڅه کنترول و ، خو تیرا ، وزیرستان ، سوات ، دیر او باجوړ دبابر له زمانې را په دې خوا دیوه تر کنترول لاندې هم نه وو . د پښور کنترول دقبیلوي خصوصیت له مخې د پاچا په تلو له پښور څخه سملاسي بل ډول و . که چیرې زیات شواهد په کار وي نو دقبیلو تر مشرتابه لاندې دې د شیخ ملي ویش او میشته کول په داوخت کې تر ځیرنې لاندې ونیسي . په حقیقت کې دلرو پښتنو په سیمه کې د مغولو دامپراتورۍ بابر ، کامران او همایون هیڅ یوه څه ونه کړای شول . کله کله یې غاښي ساتل او د کورنیو جګړو لپاره یې له پښتنو سر تیرو څخه ګټه اخیستله ، شیر شاه سوري چې پخپله غلجي و تردې سیمې پورې ونه شو رسیدلی . پر ۱۵۵۶ کال چې اکبر پاچا شو وضعیت په دې شکل و . اکبر په هند کې لوی او مشهور پاچا وحتی داشو کا په کتار کې یادیږي او د ځوار لس کالو وچې پاچا شو . داحیرانوونکې او ربښتیا ده چې همایون سره ددومره تجربو او جګړو له خپل ورور کامران سره بیاهم د خپل پلار په شان عین اشتباه تکرار کړه او اکبر یې د ورور له دښمنۍ سره مخامخ کړ . په دې ډول چې د کابل حکومت یې د اکبر میرني ورور میرزا حکیم ته وسپاره . دهمایون د مړینې په وخت کې حکیم درې کلن و . په دې وخت کې چې پخپله اکبر ځوان و پلاریې ددوی را تلونکې ته ونه کتل . داهم ربښتیا ده چې کابل او ټوله سیمه تر اباسین پورې رسماً مستقله سیمه نه وه ، بلکې دهند امپراتور ته تابع وه . مګر عملاً وضعیت داسې و چې د پخوانیو داخلي جګړو په شان دداخلي جګړې خواته روان و . په حقیقت

کې اکبر په عملي شکل داباسین پر آخواسیمو باندې تر ۱۵۸۱ پورې امرونه شو چلولای او که بیخي دقیق روایم دحکیم تر مړینې ( ۱۵۸۵ ) پورې یې په دې سیمه کې په نوم حکومت کاوه .

په لومړۍ مرحله کې حکیم خان درې کلن هلک و . دده میراث هر څه چې و دهمایون یو درباري غړي نلعم خان چې داکبر پالندوی و داباسین دشاوخوا ایالاتو اداري مسئولیت یې پر غاړه واخیست . څلور کاله وروسته ( ۱۵٦۰ ) کې کله چې بیرم خان دبدو ښځو تر تاثیراتو لاندې پریووت له دربار څخه وشړل شو او په عوض کې یې نلعم خان له کابل څخه راوغوښتل شو او دبیرم خان پر ځای په دربار کې خان خانان مقرر شو او په کابل کې قدرت عملاً دمیرزا حکیم دماما ، فریدون په لاس کې و . دآسیا په شاهي کورنیو کې پیښې په عین شکل سره پرمخ ځي یو پاچا مري او ددوو یاڅو ښځو زامن پاتې کیږي او بیا میرنې ورونه دیو بل پر ضد دقدرت دتر لاسه کولو لپاره هلې ځلې کوي . کشر زوی چې احتمالاً دکشرې میرمنې زوی دی ، ښایي په خپله هم قدرمنه وي نو هڅه کوي چې خپل زوی ته قدرت تر لاسه کړي که څه هم ډیر کشر وي . ددې مقصد لپاره کشره مور پر خپلو ورونو یانې دهلک پر ماماګانو اتکا کوي او تو طئې پیل شي ، نو ځکه دحکیم په کوچنیتوب کې دکابل ټول قدرت دده دمور او ماما فریدون په لاس کې و .

پر ۱۵۵٦ کال دسرحد وضعیت بالکل ګډوډو . کامران مړو او همایون ددغسې سیمې دآرامولو لپاره وخت نه درلود . دلته قبیلوي انارشي حاکمه شوې وه. له ۱۵۵٦-۱۵۸۱ پورې د ۲۵ کالو په موده کې کله چې دحکیم کارونه دده ماما فریدون کول او یا وروسته چې پخپله یې دچارو واګې په لاس کې واخیستې په سیمه کې هیڅ ښه والی او اصلاح نه وو راوستلې چې دیادولو وړ وي . فریدون او حکیم هیڅ یوه ونه کړای شول چې دلنډي سیند شمال ته په

پښبور کې پر یوسفزو خپل اصلاحي اوامر تطبیق کړي . په دوآبه او هشتنګر کې دوی محدود او په نامه حکومت کاوه حتی د پښور په شاوخوا کې حکومت ډیر ضعیف و اودوی مجبور وو چې څه نظامي قوت همیشه دلته ځای پر ځای کړي او دهغه په زور پر خلکو اوامر ومني . د پاچاهۍ په لومړیو کالو کې اکبر د دې سیمې له خوا چندان نه ومتاثر شوی ، ځکه چې دی په هند کې د ننه د خپل حکومت پر ټینګولو بوخت و ، له بلې خوا پر دې قانع و چې دده ورور حکیم اوس ځوان دی او دی دې په خپله د سیمې مشکلات حل کړي . مګر کله چې حکیم ځوان شو یو څه بدلونونه یې رامنځته کړل او د دې تغیراتو مسوولیت څه ناڅه پخپله د اکبر پرغاړه هم و . مخصوصاً د مذهب په ساحه کې دده په ورور کې نوی هیلې او غوښتنې په وده کې وې . پر دې سربیره دریم اساسي فکتور بل څه هم و چې په سرحد کې مسلط کیدونکي و . دا تو پان چې پر سرحد راوالوت د حکیم له بخت آزموینې څخه لږ څه د مخه و او دا د حیرانتیا خبره هم نه وه . مذهبي مشران د دې حوادثو مسوول وو .

د میرزا کامران او له هغه څخه وروسته د میرزا حکیم په وخت کې د سرحد په سیمه کې دوه مذهبي لیډران راپیدا شول . یو یې حنفي مذهبه سني او ډیر کلک معتقد او اورتړ دوکس سړی و . بل یې د آزاد فکر خاوند او غیر اورتودوکس شخیصت و . لومړی سړی سید علیشاه ترمزي دی چې تر نن پورې هم د پیربابا په نامه شهرت لري . او دویم شخص بایزید انصاري دی چې دروښانیه تحریک موسس و او په پیرروښان سره یې شهرت درلود . دده دښمنانو د تحقیر په مقصد پیر تاریک باله .

د پیربابا کیسه په دې ډول ده : یو سړی چې قمبر نومیده له خپلې ښځې او زوی علي سره د آمودریا آخوا له ترمز څخه هند ته راغلی او د بابر او همایون په دربار کې پر خدمت بوخت شو . دده زوی علي طالب العلم شو او د حقیقت په

لتـول يې پيل وكـړ . كله چې دده مـوراو پلار د همـايون سره دسند له لارې پر ۱۵٤۰ كـال پـارس ته ولاړل ،علي په هند كې پاتې شـو او پر ديني زده كـړه بوخت شو . دى په گجرات كې و ، بيا وروستـه د دوو تنو گـيگيانې ملايانو له خوا وهڅول شـو چې پېښـور ته نږدې دوآبې ته ولاړشي چې هلتـه د دين تبليغ وكړي او د دين ضد عناصرو پر ضد يې مبارزه پيل كړه . څه وخت تير شو او دى په كور پسې ډير خپه شو پريكړه يې وكړه چې د خپل نيكه سيداحمد كورته دازبكستان ترمزته ولاړ شي ، دى خپل نيكه روزلى و او د طريقت درجې ته يې رسولى و .گـيگيـانو ده ته ډير په درنه سترگه كـتل او نه يې غوښتل چې دى ترمز ته ولاړ شي ، نو څكه ملك دولت خـان ده ته خپله لور په نكاح وركړه تر څو چې دى هلتـه ايسـار شي ، ده د بى بى مريم سره واده وكـړ او څو موده پاتې شو. مگر له څه وختـه وروستـه بيا دكور په فكركې شو .ښځـه او كورنۍ يې پرېښودل او د ترمز پخوا رهي شو . كله چې ترمز ته ورسيده خبر شو چې نيكه او پلار يې دواړه وفـات شـوي دي خـو مـوريې ژوندۍ ده او د پارس له لارې كورته رسيدلې وه موريې ډيره پوهه او دښه تدبيـر څښتنه وه . كله چې پوه شوه چې زوى يې ښـځه او كـورنۍ پرې ايښې ده خپل زوى يې دې تـه مجبور كړ چې بيـرته ولاړ شي او دخپلې ښځـې او كـوچنيـانو پالنـه پر غـاړه واخلي، دى بيرته ولاړ ، مگر دى ددوآبې له ازدحام او بير وبار څخه ستړى و دلته د گنداب له لارې ډير كـاروانونه تلل او راتلل او يو غلى ځاىٔ غوښت ، همـاغـه وچې پاچا نومي ځاى ته ولاړ چې دبونير په خوله كې پروت دى . هلتـه ميشتـه شو او هلتـه ښخ شـو. ده ښـه نوم پرې ايښى اونـن يې هم خلك زيارت تـه ورځي او ډير قدرمن زيارت دى چې په ټولـه سرحدي سيمـه كې شهرت لري ، خلك دده په نوم لوړه كوي. ديرش كـالـه مخكې مې په خپله په مـردان كې وليدل چې ټول كارونه د پيرباباً په نامه پيل كيږي .

دپیربابا زیارت دهغو غرو په لمن کې دی چې بونیر او سوات سره بیلوي .
دپاکو اوربو او بو ویاله یې له ځنګه تیریږي اوکاراکارغابښې یې لس میله
ختیځ ته پروت دی ، یوبل غابښی دزیارت شمال ته دی چې دهغه له سره
مسافر «سیدوته» وراوړي . دایوه ځانګړې او ډیره ښایسته سیمه ده . دوسره
( Dosirra ) او ایلم Ilam ځوکې دکلي شاته غرب او شرق ته د دوو پهره
دارانو په څیر دکلي په سرښکاري ، او په ونو پټې دغرولمنې دوادۍ شمال ته
ځانګړې کیفیت ورکوي . داسې یوه کیسه دبونیر دقبیلو په منځ کې شته چې
ددغو ځوکو په سرېې دعواوې سره کړې دي او شرطونه یې تړلي دي چې کومه
یوه ډیره جګه ده ، دامناقشه حتی نن ورځ هم شته . زیارت له کیندل شوو
لرګیو څخه جوړ شوی دی خو څه ناڅه زاړه شوي او ښایست یې له لاسه ورکړی
دی. دلته دپیربابا په ځنګ کې یو بل زیارت دده دکوم مرید زیارت دی ،حتی
دقبروپر سر هم مناقشه شته چې کوم یې دپیربابا دی او کوم یې دمریددی .
دزیارت ځنګ ته مخلصانو یو جومات هم جوړ کړی دی چې پوخ او
پلاسترکاري شوی دی او جګ منارونه لري ، خوله ماحول سره مطابقت نه
کوي . که دایې له تیرو جوړ کړی وای او هغه یې حکاکي کړی وای ډیر به ښه
ښکاریده ځکه چې دلته اوس هم داسې خلک شته چې داکسب یې زده دی .
دزیارت په پلې لار کې شل ، شوټ، ړانده ، ګوزڼ وهلي او داسې نور ډول ډول
ناروغان ناست وي . دپیربابا دربارته دروغیدو په امید ناست وي دلته نږدې
کلي په غربي پاکستان کې یوازینی کلی دی چې نن هم هندوان اوسکان هلته
خپل تجارت او سوداګري کوي. دلته لا اوس هم دیوه بل زغم شته . دایوه
مقدسه خاوره ده اودپاکوالي واقعي احساسات ښکاري .

دپیر بابا یو مریدهم اخوند درویزه و چې اصلاً تاجک او له ننګرهار څخه و.
اخوند درویزه دپښتو ژبې تکړه لیکوال و اودروښانیه دکتورین پر ضد کلک

مبارزو چې په شپاړسمه او اوه لسمه پیړۍ کې یې د سرحدي قبیلو په منځ کې شهرت موندلی و . داخوند درویزه « مخزن افغاني » د قبیلوي دکتورین په شکل کې مذهبي اړخ ګډ کړای شوی دی ، لکه پیر روښان ته چې ده د پیر تاریک لقب ورکړی دی . په دې خبره کې شک شته چې دا کلمه به د آزاد فکر و ( غیر اورتودوکس ) په مقابل کې حکمفرماوي او که نه ؟ مګر د سیاسي ملحوظاتو له نظره دا خبره جلال الدین اکبر چې پخپله کلک غیر اورتودوکس شخصیت و د خپلو ګټو په خاطر تائیدوله . واقعاً ارتودوکس اسلام د نورو ادیانو او مذاهبو په مقابل کې پوره حوصله او تحمل ښیي مګر ځینې فرکسیونونه د اسلام د ننه د خپلو سیاسي ګټو په خاطر نورو ډلو ته تعصب او قهر ښیي . دا فرکسیونونه د اسلام له مقدس نامه څخه ناوړه استفاده کوي او په اسلام کې دا سې ډولو ته منافقین وایي .

د پیربابا اصلي او لادونو په یو سفزو او نورو پښتني قبیلو کې چې د سرحد په کمربند کې پراته دي زیات تاثیر درلود . داکورنۍ په ټوله نړۍ کې شهرت لري چې رښتینې سیدان دي . مګر اخونددرویزه دده مریدو خو سید نه و ، بلکې تاجک و . درې پیړۍ وروسته د سیداکبر شاه په مشرۍ د سکانو پر ضد بیا وروسته د انګریزانو پر ضد کلکې مبارزې پیل شوې . د دغو سیدانو په منځ کې همیشه یو یو د عزت او قدر وړ شخصیت راپورته کیږي .

بایزید انصاري د روښانیه طریقې موسس په ۱۵۲۵ کال د پنجاب په جلندر کې زیږیدلی و چې مور او پلاریې اصلاً د وزیرستان د مسعودو له کاني‌ـ ګورام څخه راغلي وو چې د پورتنۍ بدروادۍ له یوه کلي څخه وو . دا کلی په ۷۰۰۰ فټه لوړوالي کې پروت دی ، د پلارنوم یې عبدالله و . دده له زیږیدو نه وروسته بې له ځنډه دوی بیرته کاني ګورام ته راستانه شول . تاسو ته څرګنده ده چې کاني ګورام داورمړو سیمه ده ، چې د مسعود و په منځ کې هلته پراته او

په اورمړي ژبه خبرې کوي . انصار اصلاً د مدينې منورې او سيدونکي ووچې له حضرت محمد (ص) سره يې د هجرت په وخت کې مرستې کړې وې او دانصارو لقب ورکړل شوی و. هغه کورنۍ چې ځانونه انصار بولي ادعا کوي چې د مدينې منورې دانصارو او لاده دي عيناً لکه سيدان چې ادعا کوي چې د حضرت بي بي فاطمة الزهرا اولادونه دي . بايزيد پخپله هم دا ادعا کوله او ډيرو نورو هم تائيد کړې ده . که څه هم اورمړ يې نه مني خو داسې ښکاري چې بايزيد اصلاً اورمړ و .

راورتي هميشه ملاتړلې ده چې داسې دودونه و څيړي او حقايق تر لاسه کړي . دی ليکي چې د بايزيد پلار په رښتيا انصار و او په عين وخت کې ليکي چې هغه يو تاجک و چې اورمړو کې اوسيده او زياتوي چې دوی په لومړي سرکې دلوګر دوادۍ په اورمړو کې اوسيدل ،په هغه وطن کې د تاجک مانا دا ده چې هر څوک چې پښتون نه وي نو هغه ته د تاجک خطابت کوي. که چيرې عبدالله اورمړ نه و نو څنګه څوځايه دا ورمړو په منځ کې اوسيده داچې دی په اصل اورمړو ، بايد ډير زيات وپلټل شي ، احتمال شته که چيرې زيات ه پلټنه وشي دا به څرګنده شي چې ډير اورمړ درسوخ خاوندان به ځانته دسيد اوانصاري لقب ونيسي ، عيناً لکه يو پښتون چې په خپل نامه پسې د خان کلمه زياتوي .

دانصاري کلمې فقط د اسلام په ليکو کې د ځان او خپلې طريقې لپاره زيات اعتبار تر لاسه کول دي او بس . نو ځکه ډير اورمړ اوس هم له دې کلمې څخه ګټه اخلي . بايزيد او دده پلار که اورمړ هم نه وو خو ژوند ، ناسته او ولاړه يې له اورمړو سره وه . ددوی دود او دستور يې دژوند برخه وه . بايزيد د پس منظر له مخې يقيناً چې اورمړو ، په ختيه که و او که نه و . زه فکر کوم ده ځکه ځان انصاري باله چې خپل مذهبي ارزښت او خلکو ته دمنل کيدو چانس زيات

کړي.

بایزید او اولادونه یې د نبوغ خاوندان وو او دوه نسله یې د خلکو په منځ کې پوره جذابیت درلود . دوی په دې توانیدل چې لښکرې او پوځونه تیار کړي او د حکومت پر ضد وجنګیږي او خپل دکتورین یې په خپل مشهور کتاب خیر البیان کې منعکس کړي دي . همدارنګه دده بل کتاب خورپان (Khur Pan) دی . دې کتابونو تر یوه وخت پورې ډیر شهرت درلود خو بیا وروسته د اورتودوکس روحانیونو له خوا مصادره شوله ما اوریدلي دي چې ددی کتاب نسخې پټې پټې پیدا کیږي . مګر څرنګه چې دا کتابونه ددین سپکاوی کوي ددوی موندل په کلکو اسلامي حکومتونو کې نه شي تر لاسه کیدای ،د بایزید دکتورین مطلقاً دده شخصي ابتکار او نظر و . مګر ځینې وایي چې دده دکتورین پر پانتیستیک صوفیزم Pantheistic Sufism باندې ولاړ و او دروح الوتنه خاصو افرادو ته دده مفکوره وه .

همدارنګه وایي چې بایزید یو قوت درلود چې د هر هغه چا په امحاکولو به لاس پورې کړي چې ددوی طریقت نه ومني او جایداد به یې ظبط کړي ، چې دا دده مریدانو لپاره د تشویق ډیره ښه وسیله وه .

راورتي او اسلامي دایرة المعارف Encyclopaedia of Islam داسې ادعا کوي چې پیرروښان په اسماعیلیه طریقه روان و . کله چې دی کوچنی و د پنجاب په جلندر کې د ملاسلیمان تر تاثیر لاندې و . ځینې وایي چې ملا سلیمان هم په جلندر کې اوسیده او ځینې بیا داسې وایي چې بایزید له ملاسلیمان سره د سمرقند په سفر کې ملګری او اشناشو . احتمالاً بایزید داسانو پر تجارت بوخت و . محققین نن ورځ اسماعیلیه طریقه له آغاخان سره تړلي بولي. دوی په خپله طریقه کې حشیشو ( چرس) استعمال هم روابولي . او په محاشیشین سره شهرت لري . داروپایي ژبو د اساسینیشن

Assassination کلمه له محاششین څخه اخستل شوې او مروجه شوې ده. د Assassination کلمه په انګریزي کې وژلو او قتل کولو ته وايي.
اسماعیلیه پلویان نورمال دد دولس امامانو پیرو شعیه ګان نه دي، دوی په اووم امام کې بیلیږي او دهغو اولاده داغاخان په وجود کې نمانځي.
راورټي لیکي: کرلاني افغانان په عمومي توګه د پیرروښان پیروان وو. په تیره بیا هغه چې په بنګښو کې اوسیږي لاترنن پورې په پټه یا ښکاره د هغې طریقې مریدان دي.
انګریزي او لویدیز لیکوالان ددوی له طریقې سره بلدیت نه لري نو دوی ټول شعیه ګان بولي او شعیه ګان هم ددین خلاف او د دین دښمن شمیرل کیږي.
ډیر خلک روښانیان ملحدین او اسماعیلیه ګني ځکه چې د بایزید مریدان د حسن صباح (چې ملحد بلل شوی دی) د مانفیسیت پلویان دي، او همدارنګه ایراني شهزاده اغاخان چې په بمبي کې وفات شو دوی ته د مشر حیثیت لري.
دبایزید دکتورین په هکله تیوري داوه چې ده دخوارجو طریقهٔ ژاژوندۍ کوله. خوارج مو په یاد دي چې دعباسیانو په زمانه کې په سیستان کې شهرت ته ورسیدل او پر ۸۰۰ میلادي کال حمزه دعباسي خلیفه پر ضد قیام وکړ. په دې هم خبر یو چې همدا حمزه و چې دګردیز دښار بنسټ یې کیښود چې دلوګر او کاني ګورام تر منځ پروت دی او له واړو ځایو سره بایزید بلدیت درلود. نو دلته خولې له کوپړۍ سره مطابقت کوي خورشمې یې جړ شوې دي، دجړ شوو رشمو خلاصول دمذهب پوهانو کار دی، دومره ویلای شم چې جغرافیوي، تاریخي او دکتوریني تصادفات چې دلته معلومیږي دموضوع خوږوالی او حیرانتیا لا نوره زیاتوي. نو ځکه دڅیړنې او بحث لپاره به ښه موضوع وي. چې دمذهبي توپیرونو ریښې په کې راوسپړل شي.

راوړتې ددې خبرې ټينګښت کوي چې شيعه بنګښ ، شيعه اورکزي او توري چې موږ نن ورځ پيژنو په حقيقت کې د روښانيه طريقې پټ پيروان دي . ما داورکزو او بنګښو شيعه ګانو سره ډيرې اړيکې درلودل مګر دوی هېڅکله په جوته ددې خبرې پخلی نه دی کړی . نن هم که څيرې د موضوع په هکله سوال ورته راجع شي دوی به ټول انکار وکړي . شيعه ګان خپلې خاصې خبرې لري ، چې د سنيانو په شان د خپل دکتورين او دهغه د رېښې په هکله آزاد نه غږيږي او د مذهب په لحاظ ډير مرموز خلک دي ، هغه تحريک چې د روښانيه طريقت د بدنام کولو لپاره يې کار کاوه نن ورځ هم تر يوه حده د سياسي دلايلو تر پردې لاندې کار کوي ، له پورتنيو خبرو څخه د نتيجې په اخيستلو سره ويلای شم چې روښانيه تحريک د تيراپه سرحد کې د شيعه سکتريا نيزم پيل و . داچې په لومړي سر کې د خوارجو يا اسماعيليه په نوم يې حرکت پيل کړی و د سيمې له شيعه ټولنې سره چندان ورته والی نه لري . وروستی خبره داده چې روښانيانو د مغولو په زمانه کې که د شيعه په نوم ځان پوښلی وي هم ښايي حقيقت ولري خو د دکتورين د اصليت په نظر درست نننی پيروان يې ځانونه له شيعه سره ګڼوي .

عبدالله د بايزيد پلار دده له نوي دکتورين سره کلک مخالف و ، تر دې حده چې د دواړو تر منځ جګړه وشوه او په نتيجه کې بايزيد سخت ټپي شو او د کاني ګورام غره ته ولاړ او په يوه غار کې اوسيده . دلته په کور او کلي کې يې مخ نه درلود . بيا د ننګرهار مومندو ته ولاړ او له هغه ځای څخه خليلو ، محمد زيو او د پېښور او هشتنګر شاوخوا يوسفزو ته ورغی او هلته يې ډير مريدان پيدا کړل او ډير خلک يې وروزل. په يوسفزو کې د پيربابا د مريدانو له خوا ورسره مخالفت پيل شو . په تيره بيا اخوند درويزه چې د پير بابا نږدې ملګری و له ده سره سخت مخالف و . پير روښان تيرا ته ولاړ . زيات شمير

اپريدي اورکزي ، خليل مومند او بنګښ پر ده راټول شوي وو. ده لښکر جوړ او جګړې ته تيار و . ده غوښتل چې داکبر امپراتوري را وپرځوي او د ميرزا حکيم خزانه ولجه کړي .دی دفريدون له خوا اسير ونيول شو او دالحاد په نوم په کابل کې بندي شو ، مګر ده برائت واخيست . داسې وايي چې فريدون ځکه خلاص کړ چې دقبيلوي مريدانو او قومي حمايې له کبله له اغتشاش څخه ويريده . بايزيد په ډيرو جګړو کې بريالی شو . خو بالاخره دمغولي جنرال محسن خان له خوا د ننګرهار په باړو کې ووژل شو . دا مړينه په ۱۵۸۵ کې ښيي . مګر دځينو دلايلو له مخې ښايي دامړينه وختي وي .

بايزيد روښان لوی نوم پريښود . که څه هم د يوسفزو له خوا له ده سره مخالفت پيل کيدونکی و خو وروسته د ده زامنو او لمسيانو دقبيلو حمايه تر لاسه کړه . په تيره بيا په غرنيو سيمو کې د آزادۍ په نوم د دوی بلويان بيخي ډيرو وو ، داکبر او جهانګير هر ډول فعاليتونه يې په غرنيو سيمو کې شنډ کړل . که څه هم وروسته مذهبي او طريقتي اړخ يو څه وده وکړه ، خو مخ په مړه کيدو شو . دوينسنټ سميټ په قول د ده برياليتوب په دې کې پاتې شو چې د آزادۍ او خود مختارۍ په روحيه يې خلک په ځان پسې بوتلل او په همدې دليل په ډيرو پښتنو کې په ښه نامه ياديږي .

# څوارلسم څپرکی

## اکبر او قبیلې

پر ۱۹٤۷ کال زه دسوات دایالت له حاکم میا گل شهزاده عبدالودود سره دکارا کار له غاښي څخه تیر شوم چې داغاښی سوات او بونیر سره بیلوي . دې غاښي څخه چې مورږ تیریدو ډیره ښکلې سیمه ده او له برکوټ څخه مخ په لوړه ځي او احتمالاً دا به دلوی سکندر بزیرا Bazira وي . شمالي خوا یانې دسوات غاړه دنښترو له ونو څخه پوښلې ده او هرې خوا ته دځنگلو تو تې پر تې دي ، چپ او شرق ته دایلم لوړه څوکه ښکاري چې دسیمې شمالي اوږې جوړوي . دڅوکې په سرکې دجنوب خوا ته همدا ایلم سم پرې شوی او دبونیر دکاسې خواته ښکته لویدلی دی . دا هغه سیمې دي چې داکبر پوځونو په لومړي وخت کې دیوسفزو له خوا دلته په سوات او بونیر کې ماتې خوړلې وه (۱۵۸٦ میلادي ۹۹۵ هجري) .

ماله میا ګل څخه و پوښتل چې د دغو جګړو په هکله معلومات را کړي . ده ته ټوله کیسه معلومه وه . ده د غازیانو د یرغلونو په هکله خبری وکړې . ده ته ټول قوماندانان معلوم وو. ده د ماتې او بریالیتوب دلیلونه بیان کړل . مګر تر ټولو مهم او د یادونې وړ خبره یوه جمله وه هغه دا چې : ده وویل : هیڅکله اپریدو له اکبر او اورنګ زیب څخه نیولې بیا تر درانیو پورې دچا متابعت نه دی کړی او د هیڅ امپراتورۍ تر اداري لاندې نه وو . دا ادعا سمه ده . د دیر، سوات او بونیر خلکو د هلي یا کابل ته مالیه نه ورکوله . دوی هیڅ پردي او باندیني سیستم ته اطاعت نه کاوه . د میا ګل مفکوره بل ډول فکري تحریک هم لري هغه دا چې پخوانۍ خبرې او د نیکونو کړه وړه باید هیر نه شي او نننۍ مفکورې ته ور نقل شي . دلته دا حقیقت روښانه دی . حوادث په شفاهي توګه له یوه څخه بل ته د کیسو په شکل ویل کیږي او په ذهن کې ساتل کیږي .

دا پوره ارزښت لري چې د پښتنو د آزادۍ د خیال په هکله پخپله د مغولو اسناد و پلټو . له یوې خوا پښتنو هیڅکله ملا نه ده ټیټه کړې او پلار خپل زوی ته دا نصیحت کړی دی چې د پردو پر ضد ودریږي ، لکه چې د اکبر قوتونو په بونیر کې ماته وخوړه . له بلې خوا دا چې امپراتور د سخت دریځو خوانیولې وه او یوسفزي د سخت دریځو په خوا نه وو ولاړ او دوی له اکبر سره مخالفت کاوه .

په دې وخت کې روښانیه یوازینۍ نوې طریقه نه وه ، بلکې پخپله د اکبر « دین آلهي » تر عنوان لاندې یوه مفکوره درلوده چې دی یې باني وا و پوره سیاسي ګټه یې ځینې اخیستله .

اکبر په لومړیو وختو کې خپلې ځانګړې دیني مفکورې د سیاسي ملحوظاتو په مقصد پټې ساتلې وې او په اسلام کې یې د دیني مشرۍ ادعا کوله . ده د خپل دیني بدلون په هکله لومړی پر ۱۵۷۹ کال ده یو فرمان صادر

کړه چې دهغه حکم له مخې امپراتور ټولواک و او دهرې ملکې، نظامي، سیاسي او مذهبي موضوع په هکله دده پریکړه تر ټولو لوړه وه. په دې حساب په ټولو شرعي قوانینو کې دی ترهرچا لوړ و. ټول دیني علما او پوهان مکلف وو، چې د امپراتور پریکړه تائید کړي که څه هم دوی ورسره موافقیت نه درلود. وروسته داسې حدته ورسیده چې په جماعت لمونځونو کې یې دحضرت پیغمبر (ص) دنامه ذکر منع کړ. اکبر بیخي له اسلام څخه لرې شوی و او دالحاد حد ته رسیدلی و.

دا ټول ددې سبب شول چې په لوړو مقاماتو کې قهر او خپګان راوپاروي. په ډیرو ځایو کې بغاوتونه وشول. پر ۱۵۸۰ کال په بهار او بنګال کې خلک داکبر پر ضد پاڅیدل. ددې کال په اوږدو کې خلکو دده پر ضد اغتشاش پیل کړ، دوی زیات عقیده من پاچا غوښتلو او دملحد اکبر پر ضد پاڅون کې یې دحکیم پلوي کوله. اغتشاش کوونکي برلاسي نه وو ځکه چې حکیم په اوسني غربي پاکستان کې و او اغتشاش کوونکي دهند په ختیځ کې په بنګال کې وو. په سلګونه میله یو له بله لرې وو او تر منځ ټوله سیمه داکبر په کنترول کې وه. دوی باالقوه عملیات له کابل څخه پلان کړل او همدارنګه یې په پلازمېنه کې دننه ګډوډي جوړول ددوی دپلان برخه وه، په دې هکله وینسنټ سمیت لیکي: « دوی ته دابې ارزښته وه چې ددوی دخوښې شخص شرابي - ډارن، بې کفایته او بې تصمیمه شخص و. خو مهمه داوه چې دنابغه او هوښیار اکبر ځای ونیسي. دوی ته دا کافي وه چې محمد حکیم دکلکې عقیدې د خاوند په توګه مشهور و. »

د ۱۵۸۰ او ۱۵۸۱ په ژمي کې حکیم دوه واره پر پنجاب یرغل وکړ. دویم وار دی پخپله د پوځ قوماندان و. په دې وخت کې حکیم ۲۷ کلن و او دعملیاتو شاته لا اوس هم دده ماما فریدون اصلي محرک و. ده حکیم ته ویل

چې يوازې په كلو او ښارو كې له چور او چپاول څخه كه ځان وساتي نو په لېوخت كې به ټول خلک ده ته بيعت وكړي . حكيم د روهتاس كلا قوماندان ته ډيرې غورې غورې خبرې وكړې خو گټه يې ونه كړه ، بيا لاهور ته ولاړ او په يوه باغ كې يې واړول او په دې اميد و چې د ښار دروازې به دده پر مخ پرانيستل شي ،مگر د لاهور گورنر د اكبر يو باوري جنرال د كچواها راجپوت مان سنگه The Kachhwaha Rajput Man Singh و چې لا هم اكبر ته وفادار و ، پنجاب بغاوت ونه كړ او د فريدون هيله ، نهيله شوه . حكيم چې د اكبر له لښكر كشۍ څخه خبر شو نو په ډير ډار او ترس سره له ميدان څخه وتښتيده .

د بنگال باغيان پوره بريالي وو .سره له دې چې حكيم وتښتيده خو دوى د امپراتور لپاره پوره دسردرد جوړ شوى و . اكبر چې خورا پوه سړى و په دې پوهيده چې اصلي خطر له شمال غرب څخه و . هر څومره چې مشاورينو ده ته وويل چې د ختيځ او جنوب دښمن بايد وټكول شي ، ده ونه منله او اصلي خطريې له كابل څخه احساساوه ، او ډاريده چې ډهلي او اگره به تل له كابل څخه تهديديږي ، نوځكه دده دا پلان و چې له شمال غرب څخه مداخله او اشغال بايد ژر له منځه يووړل شي . جنوب ختيځ هر وخت په كراره ټكول كيداى شي . حكيم دخپلو حركاتو په واسطه اكبر پوه كړ او ځكه يې سملاسي اقدام وكړ. اكبر ددې سيمې ( نننې پاكستان) پر ستراتيژيک اهميت باندې پوره پوه و . د ۱۵۸۱ دفبرورى په مياشت كې يې دخپل نوي پايتخت فتح پور سكري Fatehpur-Sikri څخه د كابل په لور پوځ وخوځاوه. كله چې دى سرهند Sirhind ته ورسيده ، خبر شو چې حكيم په شاشوى دى ، ده لاهور پر ځاى پريښود او د ۱۵۸۱ په لومړيو كې يې ځان اباسين ته ورساوه او نننۍ اټک فورټ (اټک كلا ) هماغه د اكبر كلاده ، ددې كلا جوړولو ته يې

خپل برهمن دوست راجا بیربل Raja Berbal موظف کړ . له اکبر سره په دې سفر کې جسیوت مانسیورات Jesuit Monserrate هم ملګری و چې مذهبي مناقشې به یې ورسره کولې او په فراغت کې به یې مذهبی بحثونه ورسره کول . مانسیورات یوه لاتیني جنتري (کلیز) ( د پیښور راپورتاژ ) جوړه کړې وه چې هره پېښه یې له نیټې او وخت سره سمه لیکلې وه او ویل کیږي چې له مسلمانو تذکره لیکونکو څخه دده یادښتونه ډیر رښتیني او سم ګڼل شوي دي ، کله چې دوی اباسین ته ورسیدل نو هوا ډیره توده وه او موسمي توپانونه او سیلاوونه رامست شوي وو ، له سیند څخه د تیریدو امکان نه و او هم د پله د جوړولو امکانات نه وو . پوځ دلته پنځوس ورځې وځنډیده او په ډیرو ناوړه حالاتو کې دوی دلته پاتې شول . داوړي تودوخه د تحمل وړ نه وه . حتی د جنرالانو او پوځیانو په منځ کې د بغاوت او خیانت خطره لیدل کیده . مشاورینو له ده څخه د بیرته ستنیدو غوښتنه کوله او ویل به یې چې حکیم و تښتیده زموږ هدف همدا و ،نور نو لازمه نه ده چې په دومره تودوخه کې پاتې شو . د سکندر په شان چې ( ۱۹ ) نولس پیړۍ د مخه په « بیس » Beas کې پر خپل امر کلک ولاړ و او د هیچا مشوره یې نه منله اکبر هم دلته همداسې کلک پاتې شو او د هیچا مشوره یې ونه منله . حتی جسیوت مانسیورات خبره یې هم ونه منله او ورته ویې خندل او د اوړیال Urial ( یو ډول حیوان دی ) په ښکارې وخت تیراوه ، د شپې به یې له مانسیورات سره مباحثې کولې . پوځ په جالو کې بلې غاړې ته انتقال کړای شو او مان سنګ، ته یې دنده وسپارله چې د پیشقراول په شکل مخته ولاړ شي او پېښور ونیسي ، کله چې هغه پېښور ته ننووت ، ویې لیدل چې حکیم پېښور ته اور اچولی او هغه یې په ایرو بدل کړی دی او پخپله هم تښتیدلی دی، اکبر هم ورپسې حرکت وکړ او یوه مفرزه (یو ټولګی ) یې داټک کلا د جوړولو لپاره پریښودله ، اکبر خپل زوی مراد او مان ـ

سنګړ ته امر ورکړ چې د خیبر لار و نیسي .

په همدې وخت کې له اکبر سره د ده سر انجینیر قاسم خان هم و او د خیبر لارې وایستله او د وسایطو د استفادې لپاره یې جوړه کړه . له دې څخه مخکې داسې مشکله لاروه چې حتی حیوانات له هغې څخه په ښه توګه نه شول تیریدلای . دا ، ابوالفضل په ائین اکبري کې ثبت کړي دي . د قاسم خان په هڅو لار جوړه شوه او حتی د سړک شکل یې غوره کړ او ګاډي ورباندې تلای شوې . اکبر د قاسم خان له دغه کار څخه ډیر راضي و او د وخت په تیریدو سره یې هغه د کابل ګورنر مقرر کړ . دی په دې پوه شو چې د متیو په زور هر څه تر لاسه کیدای شي او جسماني پرابلم تر ټولو اسان او ساده مشکل وي .

فریدون د مان سنګړ پر قوتونو باندې دوه واره د کابل په شا وخوا کې برید وکړ مګر له یو څه نږدې جنګ څخه وروسته یې ماتې ورکړه . فریدون او حکیم غرو ته وتښتیدل او اکبر د اګست پر (۹) نهمهٔ نیټه ۱۵۸۱ کال د خپل نیکه پلازمېنه - کابل ونیوه ، کله چې دی کابل ته ننووت د مني پیل و . ده خپل قوت خلکو ته وښود او غوښتل یې چې خپل لښکر ژر تر ژره له کابل څخه وباسي چې په ژمي کې بند پاتې نه شي ، نو ځکه اکبر یوازې یوه اونۍ په کابل کې پاتې شو . مسلمان حوادث لیکونکي داسې لیکي چې ده حکیم وبښلو او بیرته یې د کابل حکومت ده ته ورکړ . مګر د مانسیورات لیکنه تر ټولو سمه ښکاري ، هغه دا چې حکیم ډاریده چې تسلیمۍ ته راشي ، او امپراتور خپله خور بخت النسا د کابل ګورنره مقرره کړه او ورته وېې ویل چې دی نه غواړي چې حکیم وویني او نه غواړي چې بیا یې نوم واوري . زیاته یې کړه چې کابل هر وخت نیولای شم . زه یې پروانه لرم چې حکیم چیرته اوسیږي ، کابل کې اوسیږي یا بل ځای ، خود ومره وایم چې که بیا جنجال جوړ کړي بیا به یې عفو نه کړم . کله چې اکبر بیرته ولاړ ، خوریې د کابل حکومت

بیرته خپل ورور میرزا حکیم ته وسپاره ، اکبر د خپل شرابي ورور جاج واخیست او هغه یې عفو کړ . حکیم څلور کاله وروسته دالکهولیزم له حاد حالت څخه مړ شو او امپراتور په کراری سره کابل تر لاسه کړ . اکبر پر دې قانع و چې د ورور افراط یې تر ډیرې مودې پورې د ده مخې ته نه شي دریدلای ، د ده مفکوره همداوه چې د ورور په مقابل کې داسې تورن نه شي چې یو اورتودوکس مسلمان یې ځپلی دی .

د دغه بریالي قوت ښوونې څخه اکبر د ۱۵۸۱ کال د دسمبر په میاشت کې په هماغه لار بیرته فتح پور سکري ته راستون شو . له اباسین څخه د بیړیو پر پله باندې پورې ووت ، چې داهم د قاسم خان کار و . ده د اټک کلا تهدابونه وکتل چې د ده په زړه پورې اساسي کیښودل شوي وو . کله چې دی په اټک کې و ، پوره خوشحاله و . بنا یې د خوشحالۍ علت یې هم بې ضایعاتو بریالیتوب و . ده له ډیرې خوشحالۍ څخه یو ځوان چې د سولې او امنیت په ویجاړولو تورن و ، عفو کړ . دا ځوان جلال الدین نومیده او په جلاله مشهور و او د بایزید روښان پنځم زوی و . لکه چې څرګنده ده روښانیانو په لومړي سر کې ډیر پرمختګ کړی و په تیره بیا په یوسفزو کې یې پوره لاس درلود ، مګر وروسته یوسفزي هم ور څخه اوښتي وو چې د هغه علت د بونیر د سیدانو د پیر بابا د مریدانو لاسوهنه وه ، مګر اصلي دلیل داو چې یوسفزي تل د چا تر حکم لاندې ډیره موده نه وو پاتې شوي ، په تیره بیا چې د زکوة ، عشر او صدقې ور کول هم په کې راتلل نو ځکه دوی له روښانیانو څخه تر یوه حده ګرځیدلي وو . خان کجو مړ شوی و او یوسفزي بې سره وو او کوم مشر نه وټاکل شوی . د اکبر په زمانه کې د بایزید زامن په خپلو عقیدوي جګړو کې له یوسفزو سره په شخړه و اوښتل ، او د قبیلو خانانو د حسادت له مخې له دوی سر مخالفت پیل کړ . دوی نه غوښتل چې پردي دې د دوی په قبیله کې د ننه

زیات امتیازو لري . ( ددوی حالت داسې شو لکه درې پیړۍ وروسته چې سید احمد باربلي Sayyid Ahmad Bareli پر کړاوونو اخته شو . )
دبایزید روښانڅلور زامن شیخ عمر ، خیرالدین ، نورالدین او جلال الدین داباسین دغاړې دیوسفزو دعیسی زیو داکوزوڅانګې سره په جګړه کې مات شول . داکوزو مشر حمزه و . جګړه دباړې په کلي کې چې له تربیلې څخه دوه میله شمال ته دی ، پېښه شوه . دوه ورونه له دریا څخه آخوا توربیلې (Torbela) ته ولاړل او هلته دیوسفزو امانزیو له خوا ووژل شول . دریم زوی یې محمد زیو په هشتنګر کې مړ کړ . جلال الدین چې تنکی ځوان و سخت ټپي شو او دریا ته یې ځان واچاوه اوبیا د یوسفزو کومې بلی کورنی نیولی و ، اوبیایي اکبر اصلاً هغه دعقیدې له مخې بښلی وي . ځکه چې دی هم د آزادفکر خاوندو ، په هرحال جلاله آزاد شو ، دا دبښنې او عفوې عمل و . مګر ددغو مبارزانو هلې ځلې دوامداري شوې . پخپله اکبر ، دده زوی او دده لمسی پنځوس کاله له شخړو او نا آرامیو سره مخامخ شوي وو .
په همدې وخت کې دنا آرامیو په مقابل کې کلک تدابیر نیول شوي وو ، دجلاله درې ورونه په جګړه کې ووژل شول . دانصاري دکورنۍ غړي ټول اسیران شول په هغه کې دبایزید ښځه او د بایزید تابوت هم و چې دوی به له ځان سره ګرځاوه ، دتابوت دماتولو امرو شو او دبایزید هډوکي وسو ځول شول او ایرې یې په اباسین کې واچول شوې .
دا پیښه پر ۱۵۸۱ کال شوې ده او دا ثابتوي چې بایزید له ۱۵۸۵ څخه دمخه مړ شوی و ، او اکبر لاکابل ته لښکر کشي نه وه کړې . ددې لښکر کشۍ په زړه پورې ټکی دادی چې په خیبر او شاوخوا کې هیڅ یوې قبیلې قیام او بغاوت ونه کړ او دیادولو وړ ټکی دا دی چې سرانجینر قاسم خان دخیبر سړک جوړ او تکمیل کړ او داټک کلا ده ، چې پر ۱۵۸٦ کال یې بشپړ کړه . دلته

اکبر یوځل بیا په صحنه کې راگډ شو .

لکه څرنگه چې ټولو انتظار ایسته ، حکیم د ۱۵۸۵ په جولای کې د دوه دیرش کلنۍ په عمر مړ شو او امپراتور له دې تشویش څخه خلاص شو چې تاج او تخت یې تر تهدید لاندې و . شمال غربي ایالتونه هم تر کنترول لاندې راغلل ، همدارنگه داباسین دشاوخوا ځمکو او سیدونکي چې د کامران او حکیم په وخت کې دهند د حکومت تبعه گڼل کیدل مگر د پنځوس کالو په موده کې معمولاً په آزاد ډول پاتې شوي وو . په رسمي توگه دهغوی د ټړل کیدو سوال نه و راپورته شوی . په تیره بیا د ۱۵۸۱ د جگړې پر وخت ددې سیمې استقلالیت بیخي روښانه شو . اکبر ډیره هڅه کوله چې شمال خواته سرک وباسي ، داددې لپاره نه و چې دخپل قوت په هکله شکمن و او د کابل د متابعت خیال یې درلود ، بلکې ده نور دلیلونه درلودل : لومړی داچې له ډیر پخوا څخه یې د کشمیر دنیولو خیال درلود او په دې وخت کې کشمیر په مستقل ډول د سلطان یوسف خان تر حکم لاندې و . دویم داچې ده غوښتل د سرحد سیمې او سرحدي قبیلې تر کنترول لاندې راولي او له مخالفت څخه یې ځان وژغوري ځکه چې د دې سرحدي سیمې قبیلو له بابر ، کامران او میرزا حکیم سره هم صادقانه تړون نه درلود ، نه د کابل تابع وو او نه د ډهلي تابع و و . د ده محلي مامورینو ورته ویلي وو چې ددې سیمې دملاتیر یوسف زي او مندړ دي . که هغوی مات شي نورې قبیلې ماتیږي او دامپراتور به جال کې به ونښلي .

اکبر ، مان سنگهـ دمخه کابل ته واستاوه چې له کابل څخه ډاډمن شي ، دی پخپله له لودي لښکر سره راول پینډۍ ته او له هغه ځای څخه اټک ته ولاړ او هلته د ۱۵۸۶ په جنورۍ کې ورسیده . کله چې دی اټک ته ورسید دبیربل تر څارنې لاندې داټک کلا مخ په خلاصیدو وه . دلته ده ته خبر راورسید چې مان سنگهـ کابل نیولی دی . د حکیم زامن او د ده جنجالي ماما فریدون یې نیولي دي . فریدون تر څه وخت پورې بندي و ، بیا مکې مکرمې ته واستول

شو . مکي ته استول یو ډول سزاوه . امپراتور ته هرڅه ساده ښکاریدل ، ده ته هم معلومه وه چې قبیلې هم باید ترحکم لاندې راوستل شي خو قبیلې یې بیا نه پیژندلې ، ده فکر کاوه چې د کشمیر له نیولو څخه وروسته ، سرحدي قبیلې په اسانۍ سره نیولی شي . ده دې کار ته اقدام وکړ او کشمیریې د خپلې امپراتورۍ جز کړ مګر د قبیلو په مقابل کې ناکامه شو . د خیبر او بازار په وادۍ کې د یوسفزو او اپریدیو مومندو او خلیلو په مقابل کې ناکامه شو .

جلاله د اکبر په مقابل کې جګړې کولې .
دلته د بایزید زوی [illegible] . جلاله [illegible] ۱۵۸۱ کال د اکبر له خوا عفوه شوی و .

په تاریخ کې دا دلومړي ځل لپاره د ختهکو یادونه کیږي . کله چې اکبر اټک ته راورسید . د پښتنو له ملکانو څخه یو تن چې اکوړه نومیده خپل ځان امپراتور ته معرفي کړ او مان سنګهه دهغه تائید وکړ ، نورو هم د مان سنګهه ننګه وکړه . دی یې امپراتور ته تکړه او د کار لایق سړی وروپیژانده . امپراتور ته یې پیشنهاد وکړ چې که د لارې ساتنه له اټک څخه ترپېښور پورې ده ته وسپارل شي د یوسفزو په مقابل کې به اکوړه او د ده خلک دا لاره وساتي او کاروانونه به ازادانه تیریږي . اکوړه راوغوښتل شو . دوی موافقې ته سره ورسیدل او په مقابل کې ده ته له اټک سیند څخه تر نوښهرې پورې جاګیر ورکړل شو . همدا رنګه ده ته دا حق هم تر لاسه کړ چې حق العبور ټول کړي ، اکوړه ډیر ژر شهرت ته ورسید او د لنډي سیند پر غاړه یې د اکوړي کلی آباد کړ او د سرمیرا غره شمال یې تر نظر لاندې وچې د یوسفزو سیمه یې جنوب ته وه .

اکوړه د خوشال خان غور نیکه وه . کوم اسناد چې موږ ته لاس ته راغلي دي داسې ښیي چې دوی د کوهاټ له تیري څخه دلته راغلي وو . ( اکوړه پخپله هلته ځمکه درلوده ) او د اټک او نوښهرې تر منځ ځای پر ځای شوي وو . داسې نتیجه باید واخیستل شي چې ولې له اکبر څخه د مخه زمانه کې د ختهکو یادونه نه وه شوې . د قبیلو په هکله یادښتونه ښیي چې په دې سیمه

کې دیلازاک او سیدل، ما مخکې په دې هکله څېړنه کړې او دلایل موو وړاندې کړي دي. کله چې د شپاړسمې پیړۍ پر مختیا وې مې تر بحث لاندې نیولې وې د دلایلو له مخې کیدای شي چې ختیک هماغه خلک وي چې پخوا دلته اوسیدل او له بل ځای څخه نه دي راغلي، دا کوره اصل او نسب هر څه چې وي کله چې اکبر پر ۱۵۸۶ کال له دوی سره د خدمت او لار وساتلو تړون وکړ دوی ښایي له پخوا څخه همدلته وو. دا ممکنه نه ده چې له سیمې څخه پردي خلک خپله سپارل شوې وظیفه په ښه توگه په نا آشنا منطقه کې اجرا کړي. دا ښیځي ثابته ده چې د اکبر له تړون څخه دوی ډېر د مخه دلته میشته وو ځکه چې دوی د یوسفزو، خلیلو او مومندو له مخالفت سره مخامخ کیدونکي وو او دا مخالفتونه یې په نظر کې نیولي او له اکبر سره یې د تړون پریکړه کړې وه.

اکبر د دوو قبیلو په مخالفت کې راگیر شو. کله چې اټک ته ورسیده. د ده لومړني لیدونکي ملکان د خلیلو، مومندو او د ختکو استازي وو. مگر دا خانان په نامه نه دي یاد شوي. دوی یوسفزو او منډړ یوسفزو څخه شکایت کاوه. دې جرگې امپراتور ته وویل چې یوسفزي له سیند څخه راپورې وځي او غلا کوي او نوم زموږ بدېږي. که چیرې ته غواړې چې د کابل لاره مصئونه پاتې شي نو ته باید داسې کار وکړې چې بل پاچا تر اوسه نه دی کړي. اکبر لا پخوا دا پلان درلود چې د یوسفزو او منډړو سیمه په خپل کنترول کې روالي نو ځکه ده د جرگې خبرو ته په دقت غوږ و نیوه. ددې لپاره چې خپل پلان عملي کړي نو جرگې ته یې هم څه شک ورواچاوه. اکبر خان خپل جنرال زاین خان ته چې هلته موجود و وظیفه ورکړه چې د یوسفزو په منځ کې د لارې په اوږدو کې وگرځي او د دوی غوښتنې او نظریې معلومې کړي. ابو الفضل په ائین اکبري کې لیکي چې د سوات، باجوړ او د شتې معلومات دې وشي، چې کوم خلک دلته اوسېږي په تیره بیا په سوات او باجوړ کې څوک اوسیږي او څه مفکوره

لري . داسيمه په شنو واښو او شينليو پټه ده او په دې سيمه کې تګ راتګ
دسړي زړه خوشحالوي .

مخکې له دې چې دا مبارزه پر مخ لاړه شي ، اکبر دخيبر په دره کې پر بله
بلا اخته شو . دبايزيد زوی جلاله چې پر ۱۵۸۱ کال کله چې اکبر عفو کړ
څوارلس کلن و ، اوس تکړه ځوان و او تيرا ته يې پناه وړې وه . دلته ده اپريدي
، خليل او مومند په ځان راټول کړي وو . ده دافغانانو د پاچا لقب غوره کړی و .
دا پيښې هغه وخت په پخيدو شوې چې مان سنګهه د حکيم له مړينې څخه
وروسته دکابل دچارو دسمون لپاره هلته تلونکی و ، حتی کله چې مان سنګهه
دمخه پر دې لاره کابل ته تلو ، دجلاله پلويانو لار ورته نيولې وه مګر دومره
طاقت يې نه درلود چې دهغوی مخه ونيسي ، او يرغل ته تيار نه وو . يو ځل
کله چې دی په کابل کې و د پېښور دبګرام پر کلايې يرغل وکړ او دهغه ځای
قوماندان سيد حميد يې وواژه . دا څرګنده خبره وه چې نور له دوی څخه بايد
سترګې پټې نه شي . من سنګهه ته راپور ورکړل شوی و چې دموضوع اصلي
لوبغاړي اپريدي دي او د پېښور خليل او مومند هم ورسره خواخوږي لري . له
امپراتور سره يې داسې پريکړه کړې وه چې دی به پخپله له جلال آباد څخه
د تيرا پخوا راځي او امپراتور دې يو بل قوت له اټک څخه راوستوي او پېښور
دې ټينګ کړي او ترهغه وروسته دې د تيرا پخوا راشي او دده له قوت سره دې
يو ځای شي .

مان سنګهه دننګرهار په پيشبولک کې ناروغه شو او عمليات وځنډيدل ،
مومندو او خليلو دسيد حميد تروژلو وروسته دبري په نتيجه کې لانور جرئت
پيدا کړ او دخيبر په لور وخوځيدل او غوښتل يې چې تنګي وتړي او سنګرونه
يې جوړ کړل . مان سنګهه کله چې جوړ شو ، د خيبر په دره ورننه راغلو او بازار
ته ننووت او پر اپريدو يې يرغل وکړ او څه برياليتوب يې نصيب شو او په ډير

مشکل سره یې علي مسجد ته لاره وکړه . جلاله او ملګری یې د ده شااو څنګو نه و نیول . مان سنګهه په علي مسجد کې محاصره شو . وروسته د اکبر د پښبور د مغرزې په مرسته له تنګي څخه د پښبور خواته ووت مګر زښت ډېر تلفات یې ورکړل . د جلاله قبیلوي قتوتونه د پخوا په شان سره تیت شول . امپراتورونه کړای شول چې په بریالي شکل سره دلویې لارې مواصلاتي چارې تنظیم کړي او یا قبیلې تر نظم لاندې راولي . د خلیلو او مومند و غبرګون په دې جګړه کې داسې شکل درلود چې د یوسفزو په مقابل کې د اکبر مرسته تر لاسه کړای شي. د دوی حقیقي هدف بل هیڅ شی نه و . بې له دې چې امپراتور دیته وهڅوي چې یوسفزي د روښانیه تحریک د پلویانو په نوم وټکوي او په حقیقت کې د دوی غوښتل چې یوسف زي کمزوري کړي ځکه چې د دوی مخالف وو او د پیر بابا ترمشـــــرتابه لاندې د دوی تحریک تر ضربې لاندې و .

د یوسفزو او مندړو پر ضد د اکبر عملیات بیخې خونړي وو . اکبر غوښتل چې شمالي غونډۍ او لوړې له ۱۸۹۵ څخه د مځه تسلیم کړي . د دې تفصیل په زړه پورې دی : ډېر وخت نه و تیر شوی چې زاین خان راپور ورکړ چې باجوړ ته ننوتم . خوده د دې قدرت یې نه درلود چې سوات ته وړاندې شي تر هغو چې مرستندوی قوت د زاین خان تقوې ته ورونه رسیږي او دغه مرستندوی قوتونه همدارنګه د نده ولري چې په سیمه کې مندړ یو سفزي هم وځپي چې دلوړ و سیمو یوسفزو ته کمک ورونه رسوي . اکبر موافقه وکړه او دوه قوتونه یې ورواستول . یو یې د خپل ګران ملګري بیربل تر قوماندې لاندې او بل یې د حکیم ابو الفاتح تر قوماندې لاندې واستاوه ، له دوی څخه یوه هم پخوا کوم قوت په صحرا کې نه و قومانده کړی او کومه جګړه یې هم نه وه کړې . د اکبر د قضاوت په هکله تبصره نه ده شوې چې ولې یې دوه بې تجربې سړي جنګ ته

واستول او د یوسفزو جگړه ایز قابلیت یې هم ضعیف بللی و . دبیربل تر له نظامي تجربه داوه چې دا تیک د کلا جوړول ور ته سپارل شوي وو او حکیم ابو الفاتح هم د بنگال ولایت کړی و اویس . بیربل یو مداح ، شاعر او بذله گوی و . مسلمانانو دی داکبر په زړه پورې برهمن باله . حکیم هم شاعر و او د آزاد فکر خاوند و او اکبر یې ډاور تودوکس خط او کلکې عصبي عقیدې څخه لرې ساته .

له بلې خوا زاین خان داکبر دلومړی دایې زوی او داکبر رضاعي ورور او تکړه جنگیالی و ، زړه ور او غښتلی قوماندان و . دومره زده کړه یې نه درلوده خوله صف څخه لوړې رتبې ته رسیدلی و . ددریو داسې بیلا بیلو ډولونو سړیو دجگړې دسوق او ادارې په هکله تاسې قضاوت کولای شئ . په لومړي سر کې دبیربل قوتونه بریالي نه شول چې لوړو ته لارو کړي . امپراتور خپلو قواو ته امر ورکړ چې دحکیم ابو افاتح له قوت سره یو ځای شي او په گډه فعالیت وکړي . زاین خان چې ددغو مرستندیو قوتونو په راتلو سره د « سمې » له جنجال څخه خلاص شو ، ده فرصت ترلاسه کړ چې د « تلاش » له لارې سوات ته ځان ورسوي ، د « چکدرې » دجالې موضع یې تینگه کړه ، هغه ځای چې هلته نن ورځ پل جوړ شوی دی ، له دغه مرکز څخه یې د ملکنډ غاښې ونیوه او دبیربل او ابو الفاتح قوتونو ته یې زمینه مساعده کړه چې سوات ته ننوځي ټول پوځ له دروقوماندانانو سره په چکدره کې ځای پر ځای شو او دجگړې په هکله د دوئ تر منځ توده څېړنه پیل شوه .

بیربل دزاین خان خیمې ته له ورتگ څخه انکار وکړ او دایې ځانته شرم باله . ده غوښتنه کوله چې ترشاهي بیرغ لاندې دې شورا جوړه شي . زاین خان زغم وښود او خپل غرور یې ترپښو لاندې کړ او دبیربل خیمې ته ورغی او ابو الفاتح هم وروسته له دوی سره یو ځای شو . جلسه دزاین خان او ابو الفاتح په مناقشې سره پیل شوه .مگر دواړه ژر سره آرام شول او اصلي کار پیل شو .

زاین خان پیشنهاد وکړ چې څه قوت دې په چکدره کې پاتې شي او د احتیاطو په شکل دې تیارسی، وي او د امرکزي نقطه به هم وساتي ، او بل قوت دې د بونیر په استقامت راتاو شي او کله چې موقع پیدا شي د دښمن پر قوي نقطه باندې چې هلته یې جوړه کړې ، یرغل وکړي . د ده نظر داو چې نوی تازه دم پوځ د اکار باید پر غاړه واخلي او د ده پوځ ستړی دی په چکدره کې دې پاتې شي ، که چیری دوی په چکدره کې پاتې کیږي ، نو دی چمتو دی چې د کارا کار غاښي ته وروخوځیږي او د بونیر د اشرارو په ځپلو به اقدام وکړي .

بیربل او ابوالفاتح دواړه د ده د پلان مخالف وو . د دوی او امر داوو چې سمه راپاکه کړي او پرې راوګرځي ، نه دا چې هلته پاتې شي . دوی وویل چې د امپراتور له امر سره سم باید ټول قوت یو ځای پر بونیر ( کاراکار غاښي ) باندې یرغل وکړي او باغیانْ وټکوي او له هماغې لارې څخه بیر ته په اټک کې شاهي کمپ ته راستانه شي ، بیربل په ترخه لهجه وویل چې په غرو ختلو کې ګټه څه ده ؟ زیاته یې کړه چې د اکافي ده چې د کاراکار استقامت چې جنوب شرق ته پروت دی وپیژنو او د کور خواته بېــــه لار ده . د پوصلې د استقامت په حساب د ده محاسبه سمه وه خو له توپوګرافۍ څخه بې خبره و .

زاین خان له دوی سره ـــــ په کلکه مخالفت وښود . ویې ویل چې داسې حساس ځای چې په مشکل سره تر لاسه شوی دی باید په مفت پرې نه ښودل شي ،خو که چیرې تاسې زما پلان نه منئ ،نو ښه به داوي چې د ملکنډ له لارې څخه ولاړ شو ځکه چې اراضي یې پراخه ده او قوتونه مو په کې ځائیږي ، دانو بیخي لیونتوب و چې ټول پوځ دې د بونیر خواته بوتلل شي ، چې دا په تلک کې اچول دي ، د ده مقاومت او مخالفت ګټه نه کوله او پوهیده چې بې له ده څخه دوی څه نه شي کولای او دیوه نظامي په شان دا ، ده خپله دنده وګڼله چې امرومني . دایې هم غبرګه کړې وه چې د امپراتور له خاص شخصیت

سره سپريدل پخپله تر ټولو بده خبره ده او چې دوه کسه وي خو بيخي غټ مشکل په مخکې دی ، ښايي اکبر به دا دواړه خاص شخصي ملګري د دې لپاره استولي وو چې دوی يو تر بله مناقشه وکړي او په نتيجه کې به دجګړې کار يوه نظامي ته وړپرېږدي مګر داسې ونه شوه ، بلکې دواړه پر نظامي باندې راوپاريدل .

دا يوه ډراماتيکه صحنه وه . موږ يې ګورو چې مدمغ او قارجن پانډيت دامپراتور خاص شخصيت پر يوه تکړه او غښتلي مسلمان عسکر باندې سترګې راباسي ، ايراني شاعر او ډاکتر داسې اکټ کوي چې دواړو ته په لويه کې ماتې ورکړي او زاين خان ته ځان ښيي چې دوی خو داکبر او امر يوازې پرون اخيستي دي بل څوک حق نه لري دهغه خلاف عمل وکړي ، زوړ عسکر زاين خان چې پر خپل کار ښه پوه دی له دوو غير نظاميانو سره پر جنجال اخته دی او د دې تشويش لري چې وړاندې اراضي به په څه ډول وي ؟ ده نه غوښتل چې دوی قرباني شي . دی ښه پوهيده چې په غرونو کې پرمختګ د داسې جنګياليو په مقابل کې اسان کار نه دی ، ددوی پريکړه فقط دقبايلي جنګياليو په ګټه وه.قبيلوي جنګيالي پر دې پوهيدل چې دولتي عسکر به په شا تګ ته اړشي او بې زړه شوي به ووژل شي ، زاين خان ددوی په مقابل کې څه نه شو کولای . له پانډيت او شاعر سره دی بې ځوابه و . دی له مجبوريته ورته تسليم شو . خو بيا هم مجبور و چې په دې خطرناکه جګړه کې خپل ميړنتوب تمثيل کړي او دوی وژغوري نو ځکه يې هڅه کوله چې وروستی پاتې شي ، برهمن هڅه کوله چې د دغې غرنۍ سيمې له معما څخه ځان وباسي او سمې ته ووځي ، نو ځکه د ټولو په سر کې تلو .

دويمه ورځ چې دوی له چکدرې څخه ووتل او هغه وخت چې له برکوټ څخه يې تګ پيل کړ ، دکاراکار دشمالي لارو په استقامت له سخت قبيلوي

مقاومت سره مخامخ شول . کری ورځ یې تر څوکې پورې د لارو په پاکولو تیره کړه . کله چې پیشقراول د بیریل تر مشرتابه لاندې هلته ورسید ، بې له دې چې نورو ته انتظار وباسي ، په ډیره بیړه د غره له بلې غاړې څخه د بونیربل خوا ته مخ په کوزیدو شول . زاین خان چې د شا له خوا جګړه کوله او په جګړه کې یې څلور تنه قبیلوي مشران په خپل چقمقي ټوپک ووژل دی هم مجبور شو چې د هغوی په لاره دوی تعقیب کړي . دا لاره ډیره شخه وه د هاتیانو او درندو بارونو لپاره د تیریدو وړ لاره نه وه . نو ځکه سخته ګډوډي رامنځته شوه ، یو تکړه بېټني چې حسن خان نومیده او د زاین خان باډي ګارډ و ، په یوازې ځان یوسفزي تر فشار لاندې وساتل ، ټوله شپه او راتلونکې ورځ په همدې تیره شوه چې یو په بل پسې بریدونه دفع کړي او بالاخره اردو بریالي شوه د بونیر خوا ته هوارې سیمې ته ووځي ، دلته تورسک ته نږدې اواره سیمه یې ونیوله او هلته یو ځل بیا د جګړې د راتلونکي پلان پر جوړولو بوخت شول .

زاین خان له اراضي سره بلدو . له ډیرو تلفاتو او مشکلاتو وروسته د بونیر کاسې ته ورسیدل .. ده یو ځل بیا هماغه خبره تکرار کړه چې په چکدره کې یې کړې وه . دوی اوبه او خوراکي مواد درلودل او له غرو څخه هم پر دوی باندې کومې حملې نه وې. دوی په کمپ کې ځای پر ځای شول . دوی چاړ شوي نظم پر بیا جوړولو مصروف شول او همدارنګه د قبایلو پر ضد حملو ته د شکل ورکولو هڅه یې کوله . قبیلوي جنګیالیو په هواره سیمه کې تر ډیرو جګړه نه شوای کولـه . دا یوازیني تکتیک و چې د دوی په ګټه و ، ده خپلو ملګرو ته وویل چې دا د خوشبختۍ ځای دی چې تر دې ځایه راورسیدو . ده وویل چې کراپه او ملاندری غاښی چې لا په مخ کې دي تر دې لا زیات مشکل دي ، له کارا کار څخه په وچو طالعو تیر شو و.

د زاین خان هڅو ګټه ونه کړه . نورو هیڅکله ده ته غوږ نه نیولو . بیربل

چې سخت ویریدلی و په دې امید و چې ژر له سمې څخه ووځي د پوځ په سر کې روان و . مارش پیل شو او زاین خان د همیشه غونډې وروستی و .

د یوسفزو مخالفت او مقاومت تر پخوا زیات و . کله چې پوځ « کړاپی » Karappa ته ورسید . د « ډګر » (Daggar) جنوب ته په کوزیدو زیات خوشحاله وو او په دې فکر وو چې « سمې » ته نږدې شوي دي . ناڅاپه پر دوی ناتار ولوید او سخت نهیلي شول . د دوی مخې ته یوه بله ډیره نرۍ تاره وه چې د هغې بنې غاړې څخه ډیرې سختې نرۍ لارې ملندرې غابنې Malandrai ته اوښتې . هر څه سره ګډوډ شول . قراول او اصلي قوت یو په بل کې سره ورک شول . یوازې د زاین خان په وروستي قوت کې لا نظم موجود و . د قبایلو ځوانانو د لارې دواړه خواوې نیولې وې او له دواړو غاړو څخه یې ډبرې او غشي اورول او پر پوځ باندې یې ړنا ورغ توره شپه کړې وه . کله چې شپه شوه پوځیانو د غونډیو په منځ کې لارې ورکې کړې او تول وارخطا او ویریدلي وو . د دوی دا هیله درلوده چې د لارې په تعقیبولو به سمې ته ووځي ، مګر لاره یې ترلې وه او دوی وارخطاهړې خوا ته منډې اخیستې وې ، ځو ک په کندو کې ولویدل او ځو ک په غشو مړه شول . اسان ، فیلان او پوځیان سره ګډ شوي وو او پانیک ( وارخطایي ) اخیستي وو .

په دې لاس او ګریوان جګړه کې بیربل او ۸۰۰۰ تنو د اکبر پوځ خپل ژوند له لاسه ورکړ او تکړه زړه وربهتیني حسن خان هم وژل شوی و . شاعر ابو الفاتح تریوه بوټي لاندې پټ شو و او زاین خان له ځان سره واخیست ، زاین خان له خپل قوت سره په کراره کراره پر مخ تلو . له سختې جګړې څخه وروسته دی او ابو الفاتح د ملندرې غابنې ته ورنږدې شول . دوی د لته د شپې تیرولو لپاره میشته شول . یوسفزو مرګ ، ژوبله او لوټ وکړ او له درو ورځو وروسته زاین خان له پاتې لښکر سره اټک ته ورسید او اکبر ته یې د وضعیت په هکله راپور

وړاندې کړ .

اکبر دوه ورځې زاین خان او ابوالفاتح خپل حضور ته ونه منل . دا ځکه چې دوی د بیربل مړی د سولو لپاره نه و راوړی . پر دریمه ورځ خبر راورسید چې مندړو او یوسفزو لوی لښکر جوړ کړی او دا ټک پر خوا روان شوي او غواړي چې د مغولو پر امپراتور باندې برغل وکړي . په دریمه ورځ اکبر مجبور شو چې د دښمن مخه ونیسي. دوی بریالي شول چې د یوسفزو یرغل مات کړي . په هواره ځمکه کې قبایلي سرتیرو د امپراتور دا ردو موخې نه وو . که څه هم دوی په غرو کې ماته خوړلې وه او ډیر ستومانه وو. له دې وروسته د دوی ټوله هڅه داوه چې په سمه کې کله نا کله قوت ښکته پورته کړي . د دوی ټول بریالیتوب دا وچې دا هواره چې اوس مردان دی تر کنترول لاندې وساتي او په هسکو او حاکمو نقطو کې یې کلاگانې او تهانې جوړې کړې او قوتونه یې په کې واچول ، یوه کلایې په گهړي کاپورا Garhi Kapura کې چې له هوتي مردان څخه ٦ میله ختیځ ته پروت دی جوړه کړه . او یوه یې په لنگر کوټ کې جوړه کړه . لنگر کوټ نن ورځ نه شته مگر تارو Toru ته نږدې و . او دریمه کلایې په اوهیند یا هوند ( Hund or Ohind ) کې وه چې د اباسین د جالې د پورې کولو ځای ته نږدې وه .

اکبر پر دې ماتو باندې قانع نه و او همیشه په دې لټه کې و چې یوسفزي او تاریکیان ( روښانیان ) ټول وځپي ، پر ١٥٨٧ کال یې مطلب خان د بنگښو سیمې ته واستاوه چې له پلو ( څنگ ) څخه تیرا ونیسي او زاین خان د دغو ټولو جگړو اصلي مسوول و . ده د باجوړ او سوات په سیمه کې پنځه کاله جگړې وکړې . ( ١٥٨٧-١٥٩٢ ) مگر دوی اساسي بریالیتوب تر لاسه نه کړای شو. په دې سیمه کې ښکته او پورته ولاړل او راغلل . مغولي تاریخ لیکونکو په وار وار سره دفتوحاتو خبرې کولې . دوی به ویل چې باغیان تو به گار کړای

شول. ، دسختو جګړو په ترڅ کې زیات فتوحات تر لاسه شول. دخدای تعالی په مرسته باغیان مو وځپل او ټوله سیمه مغولي سرتیرو ونیوله اوداسې نورې.

اخوند درویزه به ویل چې قبیلوي سرتیري ووژل شول او یوسفزي له خپلو سیمو څخه وشړل شول او پس له دوولس کالو جګړو دوی بیخي مات شول.... داخبرې ټولې تبلیغي خبرې وې. پر ۱۵۹۳ کال باغیان دومره قوي وو چې حتی دمغولو قوماندان یې په پېښور کې کلابند کړی و او بیا دزاین خان په مرسته خلاص شو . سوات ،بونیر او باجوړ او نورې غرنۍ سیمې خو مغولو بیخي نه وې تابع کړې دامطلقې ازادې سیمې وې. په«ائین کبری »کې ابوالفضل لیکي چې داسیمې دسوات دسرکار ترامر لاندې دکابل په ولایت پورې تړلې وې.

په« ائین »کې دځایونو ، خلکو او ددوی دشمیر ، دخدمت او مرستې ډول ټول دحاضرۍ په شکل ثبت شوي دي. مګر ددې سیمې په هکله څه نه دي لیکل شوي او خانې یې سپینې دي ، راورټي وایي : حقیقت خو دادی چې دمغلو امپراتورانو په دې سیمه کې دپښنو کېښودلو ځای هم نه درلود . په جګړو کې یې خلک ووژل او ددوی ځمکې یې ویجاړې کړې. دوی هیڅکله پر دې بریالي نه شول چې د«ائین اکبري» ددغو خانو دډکولو لپاره معلومات ټول کړي. مغولو ونه کړای شول چې ددغې سیمې یو انچ خاوره هم ونیسي. دوی دهر حرکت لپاره له زیاتې قوې څخه کاراخیست ، خو سره له دې هم ددوی د ارتباط لارې پرې کیدې او دوی مسلسل ارتباط تامین نه شو کړای. دا څه انکشافات چې مونږ یاد کړل دپېښور وادۍ او شاوخوا دغرو په سلسله کې تر سره شوي دي ، تر ټولو دعلاقې وړتکی دادی چې اکبر دپښتنو په سیمه کې بری تر لاسه نه کړ او دجنوب سیمو بنو ، داوړ ، عیسې خېلو ته ولاړ نه شو

او داسیمې دسوات په شان دکابل دولایت سرکاري سیمې وې ، په «ائین اکبري» کې دجنوبي سیمو دخلکو ، عایداتو او کلیو او ښارونو نومونه ثبت شوي نه دي ، ددوی په هکله ډیر لږ معلومات شته او دسوات په شان دوی هم خپله ازادي درلوده .

اکبر حتی پر دې بریالی نه شو چې جلاله ونیسي ، اکبر درې واره هڅه وکړه خو بریالی نه شو. په درېیم یانې وروستي وار پر ۱۵۹۲ کال اکبر له ډیر قوت سره یرغل وکړ . تقریباً ۱۴۰۰۰ تاریکیان ( روښانیان) یې ونیول . حتی دجلاله ښځې او کوچنیان یې هم ونیول خو جلاله پخپله خلاص شو . دده پای بل ډول و . ده دامپراتور له لښکر و سره جګړې ونه کړې . پر ۱۵۹۹ کال ده جنوب ته مخه کړه او د دیره جاتو اوښنو دلوهاني قبیلوي خلکو په مرسته یې غزني په څه چل سره ونیوه او دغزني ګورنر شریف خان یې وشړلو او تاریکیانو (روښانیانو) ډیر څه په غنیمت ونیول . دوی هڅه کوله چې په باصقین سره غزني وساتي . دی دهزاره و له یوې ډلې سره په جګړه کې په یوه سره مرمۍ ووژل شو او دپاچا لښکرو کلونه کلونه په ده پسې تیر کړل خو په وژلو یې بریالي نه شول . دده پر ځای دده ورارہ احداد دتحریک مشر وټاکل شو.

له اکبر څخه وروسته یوه هم ونه کړای شول چې داسیمې تر حکم لاندې راولي او حتی درانیو هم ونه کړای شول چې سوات ترادارې لاندې راولي . حتی په « سمه » کې یې کنترول کمزوری و . مګر یوازینی کار په سیمه کې داکبر له خوا دویجاړۍ او بربادۍ راوستل وو.

ختک چې مغولو ته وفاداره وو. داکوړي تر مشرۍ لاندې او لههغه څخه وروسته دنورو تر مشرۍ لاندې دکابل دریا شمال ته دیوسفزو زیاتې سیمې ونیولې . داکوړې مقابل ته یې کوم ځایونه چې ونیول هلته یې خپل خلک ځای

ځای کړل او منډېږي له نورو یو سفزو څخه بیل کړل او د اسیمه بایزي (Baizi) نومیږي . دلته د ختکو اصلي ریښه پیل کیږي . د ختکو دلنډ خوږ جمال ګهړۍ او کتلانګ کلي د سوات پولې سره ځای پر ځای شول ، د یو سفزو په مقابل کې د مغولو په جګړو کې ختکو ښه رول ولوباوه ، د دغو جګړو ، رقابتو نو او تربګنیو په هکله خوشال خان ختک ډېر شعرونه لیکلي دي .

د تاریخ په تله کې داسې وینو چې دلته د قوتونو د استعمال او قدرت د ښودلو په مقابل کې ډیر لږ څه تر لاسه شوي دي . د جلال الدین اکبر شان او دبدبې کوم قاطع رول په دې سیمه کې پر ځای نه کړای شو . یوازې هغه چا چې له ده څخه یې ګټه تر لاسه کوله د امپراتور لویه لار ساتله .

# پنځلسم څپرکی

# خوشال خان او ورنګزیب

پر ۱٦۰۵ م (۱۰۱٤ هـ) کال اکبر مړ شو او دمغولو د تاريخ هغې مرحلې ته راڅو چې خوشال خان پخپلو زياتو او درنو ليکنو کې منعکس کړې ده . خوشال - خان (۱٦۱۳-۱٦۸۹) دختيکو مشر او دملک اکوړه کړوسی و . دخوشال - خان هغه کارونه چې زموږ لاس ته راغلي دي زياتره دشعر ، په شکل ليکل شوي دي او دده زياتره قصيدې تر نن پورې د پښتنو دژبو پرسردي . سربيره پر شعر ده په نثر کې هم ډيرې ليکنې کړي دي چې مذهب ، فلسفه ، سپورت ، بازان ، معاصر تاريخ له اکوړي څخه بيا دده تر وخت پورې په کې شامل دي ، ځينې ليکنې يې په پاړسي ژبه هم کړي دي . خو افسوس چې دده زياتره ليکنې ورکې شوې دي ، مګر دده افکار او خبرې تر زياتې اندازې پورې

دمغولو په شکل دده لمسي افضل خان ختک له خوا ليکل شوي چې دده دکتاب نوم «تاريخ مرصع » دی . د« تاريخ مرصع » په لوستلو سره دخوشال - خان داشعارو نمونې او دشعر خصوصيات پوره څرګنديږي . خوشال خان پخپله تر ۱٦٤۱ پورې دقوم مشر توب ته نه ورسيدلی ، او دمشرتابه دوره هله پيل شوه چې پر ۱٦۲۷ کال داکبر زوی جهانګير مړشو . دجهانګير پر وخت ... ، يحی خان دده نيکه او شهباز خان دده پلار په لاس کې وه او دوی په وارسره دختکو مشران وو او ده په خپلو شعرونوکې دهغوی کاروبار منعکس کړی دی .

دسرحد حوادث دپيړی په اوږدو کې داکبر له مړينې ( ۱٦۰۵ ) څخه بيا داورنګ زيب تر مړينې (۱۷۰۷ ) پورې په ډير ثقت سره په دوو فصلونو کې ليکي . لومړی فصل دجهانګير او شاه جهان دحکومت ددورې کړنې ښيې او دويم فصل داورنګ زيب دپاچاهۍ ددورې په هکله دی . په لومړي فصل کې دسرحد له قبايلو سره داکبر له جګړو څخه وروستۍ پيښې ديوسفزو او روښاني تحريک پر ضد فعاليتونه او دکندهار دنيولو لپاره دهندوستان دمغولو او دايران دصفويانو تر منځ شخړې په کې راغلې دي . دپيړۍ دويمه نيمايي دخوشال خان دژوندانه د پيښو او دده بغاوت دمغولو پر ضد هغه څه دي چې ليکل شوي دي . همدارنګه دځينو نورو قبيلو کړه وړه چې داورنګ زيب پر ضد جنګيدلي دي په تفصيل سر يادشوي دي او خوشال خان پخپله ددې زمانې ژوند او روح و .

دکندهار دنيولو لپاره هڅې که څه هم زمونږ دبحث له جغرافيوي ماحول څخه دباندې دي . موږ ته دافغانانو او پښتنو اړيکی او توپيرونه بيا نه ي چې په دې لحاظ په لږ څه تفصيل سره دهغو مطالعه ضرور ده . له دې سره

دابدالیانو ( وروسته دراني ) دراپیداکیدو کیسه هم تړلې ده . ددې لپاره چې
په موضوع پوه شو لازمه ده چې یوڅه شاته دهمایون او اکبر زمانې ته مراجعه
وکړو . موږ تاسو ته څرګنده ده چې بابر دهرات دحسین بایقرا تر مړینې
وروسته له یوڅه سرګردانیوپس په ۱۵۲۲ کال دکندهار په نیولو بریالی شو.
پر ۱۵۳۰ کال بابر مړ شو او کندهار دده زوی میرزا کامران ته ورسیده .
دکامران کندهار له دهلي سره په نامه تړلی و . مګر په اصل کې آزادو ، کله
چې همایون دهلي له لاسه ورکړ دپارسیانو په مرسته یې کندهار له خپل ورور
کامران څخه پر ۱۵٤۵ کال ونیوه . دا دهمایون دهغو هڅو یوه لړۍ وه چې
دهندوستان دنیولو لپاره یې کولې هندوستان ته دده بیا راتګ عملاً په
۱۵۵۵ کې و . همایون کندهار دخپل سلطنت دیوه ولایت په شکل خپل
وفادار ترکمن دوست بیرم خان ته وسپاره ، بیرم خان وروسته داکبر مربی او
مشاور شو . همایون کندهار دصفوي پاچا په مرسته ونیوه او هغه ته یې وعده
ورکړې وه چې کله دی هندوستان بیرته ونیسي دکندهار ولایت او
دکندهار ښار به صفوي پاچا ته ورسپاري .

همایون کله چې دهلي ته راستون شو ژر مړ شو او دغه وعده یې تر سره نه
کړه . ده یو سړی د شاه محمد په نوم دبیرم خان دمرستیال په توګه ټاکلی و .
کله چې همایون مړ شو . دزمینداور حکومت ګورنر پر کندهار برید وکړ . شاه
محمد فکر وکړ چې اکبر بیخي ځوان او زیات مصروف دی ، اکبر او بیرم خان
دکندهار په هکله څه نه شي کولای . شاه محمد له صفوي پاچا څخه مرسته
وغوښته او دهمایون دقرارداد یادونه یې ورته وکړه . صفوي پاچا زیات شمیر
لښکر ورواستاوه او کندهار یې له محاصره کوونکو څخه ازاد کړ او دکندهار
داشغال لپاره یې ځان چمتو کړ مګر شاه محمد دکندهار له ورکولو څخه انکار

وکړ او د پارس پاچا په غصه شو او پریکړه یې وکړه چې د کندهار ښار محاصره کړي . دا ۱۵۵۸ کال و او اکبر یوازې شپاړس کلن و . د ده لپاره ډېر زیات کارونه وو چې ورباندې مصروف پاتې شي ، تر ټولو مهمه داده چې دی د بیرم خان له لارښوونې او څارنې څخه هم یو څه ستړی شوی و او لږ څه پخپله د کارو په خوی او بوی بلد شوی و احتمالاً دې ته هم تیار و چې پخپله قضاوت وکړي او تصمیم ونیسي ، چې دې کار هرومرو پر بیرم خان څه ناځه بده اغیزه کوله .

په هرحال ده شاه محمد ته خاص امر واستاوه چې د همایون د قرارداد مطابق دې کندهار ډېر ژر صفوي پاچا ته وسپاري او همدا رنګه دې ور څخه عذر وغواړي او دربار ته دې حاضر شي . شاه محمد همداسې وکړل کندهار اوه دیرش کاله د صفویانو د سلطنت یوه برخه شوه . کندهار د سلطان حسین میرزا ، صفوي شهزاده ، ولایت شو او له ده څخه وروسته د ده زوی مظفر میرزا ته ورکړل شو .

پر ۱۵۸۷ کال چې راجا بیربل مړ شو ، د صفوي تاج او تخت په اصفهان کې لوی شاه له عباس ته ورسید . کندهار لاهم د صفویانو د سلطنت یوه برخه وه . دوه کاله وروسته ملک سدو د کندهار د شاوخوا ابدالیانو مشر وټاکل شو .

د سدو کورنۍ له ده څخه وروسته په سدوزیو مشهور شول . دا لومړنۍ تاریخي استشاره ده چې ابدالیانو ته شوې ده که څه هم وروسته دود ونه ښیي چې ابدال د ترین د ریم زوی و او د محمود غزنوي هم عصر و او زیرک د دوی نیکه و ، پوپلزي او بارکزي یې اولادونه دي . ( سدوزي د پوپلزیو یوه څانګه ده ) .

بارکزي د ګوډ تیمور هم عصر بلل کیږي . لکه ملک اکوړه چې له اکبر سره د اټک او پیښور تر منځ د لارې ساتنه پر غاړه اخیستې وه په همدې ډول ملک سدو د کندهار هرات د لارې ساتنه د شاه عباس سره پر وتو کول کړې وه .

په بل عبارت ختیک او ابدالیان د تاریخ په یوه مرحله او یوه وخت کې میدان ته

راوتلي دي ، لومړنی دمغولو استازي او دویم یې د پارسیانو استازي وو .

پر ۱۵۹۵ کال اکبر د کندهار پر بیا نیولو بریالی شو . باید ووایم چې کندهار یې په تیګۍ سره ونیوه . ده دمظفر میرزا او دهغه دورونو تر منځ بې اعتمادي او بد ګماني ایجاد کړه او یویو یې دې ته اړیوست چې په هند کې پناه واخلي ، دوی ته یې داسې ویلي وو چې ازبک غواړي پر کندهار یرغل وکړي . بالاخره مظفر میرزا اکبر ته ولیکل چې خپل وکیل راواستوي او دکندهار سرپرستي پر غاړه واخلي . امپراتور دخپل پلار پروتوکول هیر کړ اوسملاسي یې یو وکیل چې شاه بیګ نومیده او پخوا دمیرزا حکیم په وخت کې د پېښور والي و ، کندهار ته واستاوه ، کندهار تر ۱۶۲۲ پورې له مغولو سره پاتې شو . وروسته جهانګیر له لاسه ورکړ . شاه عباس دښار تسلیمیدل اکبر ته نه ووهیر کړي . اکبر کندهار ۲۷ کاله دمخه نیولی و ، شاه عباس پر ۱۶۲۹ کال مړ شو ، او مغول شاه جهان پر ۱۶۳۸ کال کندهار یوځل بیا ونیوه . ده هم په تیګۍ سره ونیوه ( داخل یې دصفوي ګورنر علي مردان خان په غولولو سره ) . مګر پر ۱٦٤٩ کال یې بیا له لاسه ووت . دشاه جهان زامنو اورنګ زیب او داراشکوه زیاتې هڅې وکړې چې کندهار بیا ونیسي ، مګر داخل یې کندهار دتل لپاره له لاسه ووت . دا په زړه پورې ده چې مغولو دوه واره په تیګۍ سره کندهار تر لاسه کړ او پارس دوه واره په زور ونیوه .

ددغو جګړو تیتو مسابقې زمونږ له موضوع څخه دباندې دي . دکندهار ښه او بد زیاتره لهپارس سره تړلي دي او له مغولو څخه لرې پاتې دي ، دکندهار افغاني قبیلو په ځانګړي شکل پر مختیا کړې وه ، تول وخت چې کندهار دبابر ، همایون ، اکبر ، جهانګیر او شاه جهان په لاس کې و جمله څه ناڅه پنځوس کاله کیږي . له ۱٦٤٩ څخه بیا دغلجو تر قیام پورې ( ۱۷۰۸ )

دپارس په لاس کې و . کندهار تقریباً دیرش کاله له غلجو سره آزاد پاتې شو او له هغه څخه وروسته کندهار بیا دنادر افشار تر مشرۍ لاندې په پارس پورې وتړل شو .

دلوی شاه عباس په وخت کې ملک سدو نه یوازې دپارس دشاهنشاه لپاره لویې لارې ساتلې ، بلکې له جهانګیر څخه دکندهار په نیولو کې یې پر ۱٦۲۲ کې ستره قهرماني وکړه او شاه عباس ده ته دامیرا فاغنه لقب ورکړ . دسدو خان قبیلې تر پایه پورې دډهلي او کابل پر ضد د اصفهان پلوي کوله او صفوي کورنۍ هم دوی ته په درنده سترګه کتل ، دا حیرانونکې خبره ده چې افغانان سني مذهبه او ایرانیان شیعه مذهبه وو نو باید چې له مغولو سره چې سني مذهبه وو ډیر نېږدې واي . ( یوازې اکبر دآزادې مفکورې خاوندو او مذهب ته یې توجه نه وه . ) راورتې پر ځای نظر ورکړی و ، داچې دصفویانو تر اداري لاندې دوی تر تهدید او مذهبي فشار لاندې نه وو له مغولو سره دیو ځای کیدو او دهند دقوماندانانو آمریت یې ځانته شرم باله ، دوی شیعه تسلط دهندو ترحاکمیت غوره شمیره .

دکندهار لپاره دصفوي کورنۍ مبارزه او له سدو خان سره اړیکي ددې سبب شو ل چې یوه پیړۍ وروسته ابدالیان دصفویانو دپوځ غبنتلي او ترسرتیر عسکر پاتې شي ، دنادر شاه افشار په پوځ کې احمد خان ابدالي دسدوخان له تیر څخه هغه شخص دی چې دنادر شاه افشار له ماتو څخه وروسته یې دافغانانو مستقل حکومت جوړ کړ ، ښایي دابدالیانو نیکه ګانو به هم له لوی شاه عباس څخه لادمخه له پارس سره اړیکي درلودل .

دکندهار دنیولو لپاره دهڅو پر سر ځینې نورې خبرې هم راپیدا شوې وې . د ۱٦۳۸-۱٦٤۹ کلونو په لنډه موده کې کله چې شاه جهان دعلي مردان خان

په درغلۍ سره کندهار ونيوه مغولو ډيره هڅه وکړه چې دابداليانو په شاوخوا کې خپل خواخوږي وروزي . تر ټولو ښه هدف دسدو خان مخالفين وو . عليزيو او ځينو سدوزيو دځانګړيو مخالفتونو له کبله دسدوخان او اصفهان په خلاف دمغلو پلوي کوله ، کله چې دويم شاه عباس پر ۱٦٤٩ کال کندهار تصرف کړ دمغلو پلويان وتښتيدل او داورنګ زيب په لښکر کې ګډ شول . دشاه جهان له خوا اورنګ زيب دده زوی دکندهار نيولو ته توظيف شوی و . ددوی په يرغلونو کې عليزيو او ځينو سدوزيو ګډون کړی و . يو يرغل داورنګ زيب له خوا او بل بريد دده دورور داراشکوه له خوا تر سره شو .

دا يرغلونه د ۱٦٤٩ او ۱٦٥۳ تر منځ شوي وو چې خپل بخت يو ځل بيا دکندهار په هکله وآزمويي ، دکندهار دنيولو وروستی قصد چې ناکام شو دابداليانو دغې ډلې وطن پرېښود خو دپارس حکمراني يې ونه منله .

کله چې اورنګ زيب پاچا شو ددوی احسان يې هير نه کړ او په ملتان کې يې دوی ته جايدادنه ورکړل او له دوی سره نور خپلوان هم ورو ، ورو يو ځای شول . داخلک دوخت په تيريدو سره په ملتاني افغانانو مشهور شول . دملتان او ديره جاتو حکومت هم ددوی په لاس کې و او دسيمې په سياسي چارو کې ذيدخل وو . دمغولو په دوره کې سياسي قدرت څه ناڅه کمزوری شو . ددغو ملتاني افغانانو او لادونو نن ورځ هم دغربي پاکستان په سياسي ژوند کې ډير برجسته رول لوبولی دی که څه هم دوی پښتو هيره کړې ده مګر پر خپلو تاريخي سوابقو باندې ډيرویاړ کوي .

دکندهار دنيولو مبارزې داکبر ځای ناستې له کورنيو نړدې قبيلوي شخړو څخه خلاص نه کړ . دجهانګير لومړنی عمل دسرحدي منطقو په مقابل کې پر ۱٦۰۷ کال وشو دا هغه وخت دی چې دی کابل ته راغی او دخپل

غورنیکه مقبره یې په مرمرو وپوښله ، جهانګیر که څه هم پر عیش او عشرت اخته و او ښه ژوندیې کاوه ، خو بیا هم د سیاسي چارو او پیښو په مقابل کې بیتفاوته نه و . دده لپاره تر ټولو بریالي او تکړه سړی دده د پلار منصبدار شاه بیګ و چې دولس کاله د مخه یې کندهار نیولی و . جهانګیر ، دی د کابل د سرکار ، تیرا ، بنګښ ، سوات او باجوړ او د افغانانو د ټولو سیمو عمومي ګورنر مقرر کړ او ده ته یې د ( خان دوران ) لقب ورکړ . تیرا او بنګښ یې هم د ضرورت له مخې ده ته ورو سپارل ځکه چې روښانیانو دلته بیا شر راپورته کړی و او جنجالونه یې جوړول .

کله چې جلاله مړ شو د روښانیه تحریک مشر توب د بایزید د مشر زوی شیخ عمر زوی احداد ته ورسید . احداد د جلاله دلور بي بي الايي سره واده کړی و . بي بي الايي ډیره ښکلې ، پوهه او د ښه کرکتر خاونده وه . خوشال خان هغې ته په ټولو روښانیانو کې د ښایسته میرمنې او په ټولو ګرانې میرمنې خطاب کړی دی . دواړو احداد او الايي په تیرا ، اپریدیو ، اورکزیو او بنګښو کې زیات شمیر مریدان او مینه وال درلودل او دوی هم همیشه له یوه ځای څخه بل ځای ته تلل ، شاه بیګ په ډیرې خوارۍ سره هڅه کوله چې په جګړه کې راګیر نه شي . پر ۱۶۲۰ کال ټولې پیښې د ناچارۍ حد ته ورسیدې . په دې وخت کې دده پر ځای محبت خان ، د کابل ګورنر مقرر شو . محبت خان هغه څوک دی چې وروسته د ملکې نورجهان په خلاف ودریده او هڅه یې کوله چې امپراتور د جهلم په غاړو کې توقیف کړي او ده د روښانیانو په مقابل کې هم له همداسې تکتیک څخه کار واخیست . ده اوریدلي وو چې د احداد اصلي پلویان د دولت - زیو اورکزي دي چې کوهاټ ته نږدې او سیږي . محبت خان دوی راوغوښتل او میلمستیا یې ورته وکړه . له ډوډۍ څخه وروسته له دوی څخه وغوښتل شو ل

چې وسله کېږدي چې دوی ته نوې جامې ( خلعت ) ورکړي. کله چې دوی وسلې کېښودلې د محبت خان وسله والو پر دوی یرغل وکړ او ټول یې ووژل او د دوی شمېر دري سوه تنه وو. کله چې دی پر دې قانع شو چې د روښانیانو د ملا تیر یې مات کړ غیرت خان ته یې امر وکړ چې احداد تعقیب کړي او له منځه یې یوسي. احداد د تیرا په « مستوره وادۍ » کې موضع نیولې وه.

د مغولو قوتونه د خانکې وادۍ له لارې د سمپاګه غاښې خوا ته وختل، ځکه چې مستورې ته له خانکې څخه دا تر ټولو اسانه لار ده. ( پر ۱۸۹۷ کال انګریزانو د تیرا د نیولو لپاره لومړی د سمانا او درګۍ څوکې ونیولې ). په خپله غاښې دومره مشکل نه دی او د سمانا له جنوبي خوا څخه ورتلونکې لارې د استفادې وړ دي، خو ختل لږ څه مشکل په دې دي چې لار ډېره اوږده او ستړې کوونکې ده او څوکه ۶۰۰۰ فټه لوړ والی لري. د ګړې کیسه هم خوشال خان خټک او هم جهانګیر پخپلو یادښتونو کې یاده کړې ده. دغره لوړ اړخ اپریدیو او اورکزیو نیولی و. د دوی مشران احداد او داورکزو ملک تور وو. غیرت خان یرغل وکړ او د مغولو عسکر د اړخ خوا ته وړاندې تلل او لاس تر لاس جګړه پیل شوه، یرغلګر پوځ تر ۳۰۰۰ فټه لوړوالي پورې ختلی و او ساه لنډي شوی وو. داورکزو د فیروزخیلو یو ځوان چې پنځو نومیده غیرت خان په نښه کړ او وریاندې یې برغل وکړ. دواړه ولویدل او د غره تر لمنې پورې لاندې ورغړیدل او پنځو په ډېر غیرت سره خپلو خلکو ته غږ کړ چې ما هم وولئ خو چې د ښمن خلاص نه شي. نو ځکه دوی ډزې وکړې او دواړه مړه شول او تر پایه یو په بل سره غاړه غاړې وو، خو نرۍ جګړه پیل شوه. داچې مغول له یوې خوا له دې اراضي سره نابلده وو او له بلې خوا پورته ختلو ستړو مانه کړي وو په تاوان کې وو او د قبیلو د جنګیالیو تاب یې نه درلود،

جنگیالیو خپل کار وکړ . جهانګیر لیکي : « غیرت خان چې ډیر تکړه او وینه یې هم په جوش وه د دښمن د پرځولو لپاره هره ګړۍ چمتو و . ده مرګې او سوله ییزې خبرې نه منلې او همیشه تیارو چې برید وکړي . ده په ختلو پیل وکړ مګر افغانان د میړیو او ملخو په شان له هرې اخوا دوی را ایسار کړل ، دوی د غیرت خان آس وواژه او دی یې له آسه راښکته کړ . دی او دده ملګري یې ورپسې واخیستل . هغه وخت چې غیرت خان یرغل وکړ ، جلال خان د مرګې او خبرو پیشنهاد کړی و . دوی له خپل مرګ او ماتې څخه ویریدل . دوی له کوتل څخه هرې خوا ته وتښتیدل . افغانان د کوتل له نورو برخو څخه راوپاریدل او داقوتونه یې په تیږو وویشتل او ډیر بیرحمانه یې ووژل . جلال خان او غیرت خان دواړه په دې جګړه کې ووژل شول . د آخساره او تلفات د غیرت خان د میړانې او تودې وینې په نتیجه کې پېښ شول . »

له دې فتحې څخه شپږ کاله وروسته احداد د نوي ګورنر دزوی مظفر خان سره په مقابله کې د کوهاټ دلواغر (Lowaghar) په لمنو کې ووژل شو . دی کله چې له یوه سنګر څخه بل سنګر ته خوځیده ولګیدو او مړشو . دده سر ، بیرغ او د مهر ګوتې جهانګیر ته وړاندې کړای شول . دا هغه وخت و چې پر ۱۶۲۶ کال امپراتور کابل ته د تلو نیت کړی و او د روښانیه پلویان په تیرا کې را ټول شول او داحداد د ښایسته کونډې په مشرۍ ددې زوی عبدالقادر د روښانیه تحریک مشرو ټاکل شو . یو کال وروسته جهانګیر مړشو او دده زوی شاه جهان پر تخت کښیناست .

داحداد قاتل ، مظفر خان مقام د پلار له مرستیالۍ څخه د ولایت ګورنرۍ ته لوړ شو . د شاه جهان پر لومړي کال مظفر خان پریکړه وکړه چې له پېښور څخه کابل ته مارش وکړي ، که څه هم ده ته مشوره ورکړای شوه چې د یوه پاچا

دمړینې په وخت کې هلته همیشه ناآرامي جوړېدې نو د آرامۍ تر وخت پورې
باید ولاړ نه شي. ده چاته غوږ ونه نیوه او دخیبر په دره کې له زیات کړاو سره
مخامخ شو دشاه جهان بادشاهنامه داسې وایي: « یوه ناځاپه لکه وحشیان
اورکزي او اپریدي چې دافاغنه له ډېرو قبیلو څخه قبیلې دي پر لښکرو
راولویدل ، داخلک په ظاهر کې مطیع او په پټه جنګ جوړوونکي او چپاولګر
خلک دي ، دلښکر شاته دتجربې خاوند منصبدار نه و موظف شوی . دلښکر
لوژستیکي برخه تالا شوه . دده مخه هم نیول شوې وه . لښکر زیات تحقیر
شو. ده څه ونه کړل چې یا دبې نظمۍ مخه ونیسي او یا دورکې او ویجاړې څه
چاره وکړي ده نه په شاتګ وکړ او نه ودریده. بلکې مخ په وړاندې یې خپل
تګ ته دوام ورکړ او وروستۍ برخې سره یې هیڅ مرسته ونه کړه . »
دابرید دبې بې آلایي او عبدالقادر له خوا شوی و . مظفر وتښتیده او
خپلې ښځې یې هم پرې ایښې وې او روښانیانو نیولې وې . یوازې یوه ښځه
دکوهاټ دګورنر مرستیال سیدخان له خوا ـــــ ژغورل شوې وه . سیدخان
بل نوی نوم دی چې دمغولو دبایللي نوم دګټلو لپاره یې هڅې کولې .
دمظفر خان ددغه شرمندګۍ په مقابل کې ټول پښتانه دعبدالقادر تر مشر
تابه لاندې پاڅیدل ،مګر دپېښور دشاوخوا خلیل ، مومند ، داودزي او
دشهبازخان تر مشر تابه لاندې زیاته برخه ختک ددوی ټر څنګ ودریدل.
اپریدي ،اورکزي ، بنګښ دغرو مومندله میچنۍ څخه تر لعلپورې پورې ،
یوسفزي ، محمدزي ګیګیاني او ترکلاني حتی دبنو او دداوړو قبیلې ،
توري، ځاځي ټول شول او په ایلم ګودر کې چې دباړې سیند پېښور ته نتوځي
لوی لښکر جوړ کړ . دوی غوښتل چې پېښور ونیسي . د ۱۶۳۰ کال دجون پر
۱۲ مه نیټه دوی دې یرغل ته چمتو شول لکه درې پېرۍ دمخه چې دجون په

کومه ورځ د پېښور دښار دیوالونو ته ددوی د ځای ناستو لښکرې رسیدلې وې او ترمحاصرې لاندې نیول شوی و . دښار داوړدې کربښې ساتنه مشکله خبره وه .

خوشال خان څه چې لیکلي دي ، هغه ټولو خلکو ته د پښتنو داستعداد ، پوهې او غیرت په هکله خبرداری ورکوي. دی لیکي :« د پېښور دګار نیزیون مغول مجبور شول چې ځانونه په بالاحصار کې خوندي کړي او پېښور ښار ټول نیول شوی و . سیدخان په دې وخت کې دبنګښو فوجدار و او د پېښور دخلاصون لپاه یې له کوهاټ څخه حرکت وکړ په لومړي سرکې عبدالقادر او دده قوت پېښور په یوازې توګه تر محاصرې لاندې نیولی و . خو کله چې نورې قبیلې دې ته چمتو شوې چې دده سره مرسته وکړي د پښتنو دذات البیني حسادت او بدبینۍ له کبله ځینو سره دافکر پیدا شو چې داټول کریدت به دعبدالقادر وي . دوی دبدبینۍ له مخې مغولو ته میلان وښود . عبدالقادر په دې پوه شو او ددې لپاره چې دخیانت په نتیجه کې دمغولو لاس ته ورنه شي، یوه شپه پاتې شو او بله ورځ بیرته تیرا ته په شاشو . ځینې نورې قبیلې هم پرشا تګ باندې سلاشوې وې . سیدخان له کوهاټ څخه راورسید او دځینو قبیلو له بیرته تګ څخه هم خبر شو . له بالاحصار څخه دسید خان تر قوماندې لاندې دبرید امر صادر شو . زیات شمیر وروسته پاتې خلک ووژل شول. زیاتره داخلک دښار دننه په کوڅو کې اخوا دیخوا ګرځیدل . حتی له بیرته تګ څخه هم بې خبره وو . په دې پیښه کې زیات شمیر یوسفزي او ګیګیاني وژل شوي وو . ».

خوشال خان زیاتوي چې له دې پېښې څخه وروسته دې ولایت کې دمغولو حاکمیت وپیژندل شو .

شاجهان له سیدخان څخه ډیر راضي و او دی یې د کابل والي مقرر کړ او همدارنګه د ۵۰۰۰ نفرو سپرو قومانده یې هم ده ته وسپارله ، دادکار پای نه و. د سید خان پر ستیږ ډیر لوړ و . ده دبي بي آلایي او عبدالقادر د تسلیمیدو لپاره د عفوې غوښتنه هم وکړه . سیدخان نه یوازې زړه ور سړی و، بلکې ډیر عادل او د ښه قضاوت خاوندهم و . عبدالقادر څو میاشتې وروسته له مشقت څخه مړ شو ،مګر مرګ یې طبیعي مرګ و ، بي بي الایي او دهغې ورور رشیدخان او ځینې خپلوان او د پېښور او کوهاټ د سیمې روښانیه پیروان د سیدخان له خوا دهلي ته واستول شول او د امپراتور حضور ته وړاندې شول . امپراتور پر دوی باندې مهرباني او شفقت وکړ او دوی ته یې په درنده سترګه وکتل او بیا یې دوی د دکن ایالت ته ولیږدول . دوی ته یې اجازه ورکړه چې خپل خپلوان هم راوبولي او د امپراتورۍ لپاره خدمت وکړي . په عمومي ډول د پیر روښان او لادونه د شاه جهان له خوا په ښه توګه وپالل شول . رشیدخان د ګنګا دغاړې فرخ آباد نومي ځای ته ولاړ او وروستۍ شپې یې تیرولې چې پر ۱٦٤۷ کال مړ شو . بل پاتې شوی یې میرزاانصاري متصوف شاعروچې پر ۱٦۳۳ کال د امپراتور په پلوۍ په دکن کې په یوه جګړه کې ووژل شو . میرزا انصاري د خپل نیکه بایزید روښان دازادې مفکورې مخالف و او د کلکې مذهبي عقیدې پلوی و . حتی نن ورځ هم دده احترام کیږي . په تیره بیا د روحانیانو له خوا په عزت یادیږي ، سره له دې چې دده له شعر څخه داسې ښکاري چې دی هم د آزادې مفکورې خاوند و .

هرولې چې آغاز وکا ښرګند کړی یې برهان دی

د میرزا ګومان فاني شو هرچه وایي میاروښان دی .

او دده دبې وخته مړینې په هکله وایي :

« څرنگه چې گلاب غوړیږي هماغسې ژرمړاوې کیږي - لکه د گل عمر چې کم دی زما عمر هم لنډ دی ، خو ماته له ژوند څخه مرگ ډیر ښه دی ځکه چې دخپلې مینې لپاره مې خپل روح ورک کړی دی . » داصلي شعر په پیدا کولو بریالی نه شم نو ځکه مې دهغه منثوره ژباړه راوړه ( ژباړن ) .

تردې وروسته دروښاني تحریک او تنظیم په مفکوره څوک پاتې نه شول. مگر په تیرا کې یې آزاد پلویان ډیر وو . آزار میر یو اورکزی او یوسف اپریدي هغه دوه تورىالي وو چې د تحریک لاره یې پرې نه ښوده ، دوی ملي قهرمانان شول او په بدلو کې یاد یږي . پخپله طریقت او تحریک هم مړاوی شو ، مگر په تیرا کې د اپریدو د آزادۍ غوښتنه ددود په شکل ژوندۍ پاتې شوه چې دروښاني تحریک له خوا روزل شوې وه .

د پېښور په محاصره کې د عبدالقادر دښي لاس مرستیال کمال الدین و . هغه له انصاري کورنۍ څخه نه و ، بلکې پښتون و چې پلار یې د جهانگیر له درباریانو څخه و . څرنگه چې دی دروښاني کورنۍ لیډرانو ته منسوب نه و ، دیوه بې عقیدې سړي په نوم د جلاله له نامه سره یوځای دده نوم یادیده او داټک کلا ته نږدې داباسین او لنډي سیند دگډیدو په ځای کې دوه ډیرې غټې تورې ډبرې داباسین په بستر کې پرتې دي چې په خلکو کې دکمالیه او جلالیه په نومونو شهرت لري ، دتوپان پر وخت ډیرې بیړۍ له دغو ډیرو سره ټکر شوي دي ، روحاني او دکلکې عقیدې خاوندان وایي چې دپیر تاریک په طریقه ددوی ارواوې له منځه ولاړې . همدارنگه دختکو په غرو کې یوه لوړه څوکه ده چې جلاله سر ئې بولي او داباسین ددوو ډبرو په اندازه یې خلک په بده سترگه نه گوري . دروښانیانو عقیده هرڅه چې وي ، وي به ، مگر دپښتنو دازادۍ دروحیې روزونکي شمیرل کیږي . دپښتانه کهول ازاده روحیه ددوی

داوړدې مبارزې حاصله ده ، دوی دومره څه تر لاسه کړي دي چې ددوی دمخالفینو منفي تبلیغ چندان اثر نه لري . ددوی کړه وړه دپښتنو زړونه راپاروي . دبایزید روښان دکارنامو په مقابل کې دده ددښمن اخوند درویزه تبلیغ دومره کاري نه دی . خوشال خان دده دعقیدې له مخې د میرزا خان انصاری او اخوند درویزه په هکله داسې لیکي :

له چانه په پښتو کې ما میزان لیدلی نه دی
میرزا په دې زبان کې ویل کړي دي تللي
مخزن مې داخند تمامي په نظر کېښود
په ده کې نه عروض شته نه یې بحر ماموندلی .

دی دخپلې عقیدې په هکله هم داسې لیکي : ( سره له دې چې داخوند درویزه مخالف و . )

چې دښنه یې داصحاب اود اولاد دی
په وښکنه یې دبیخ او دتبار یم
دمذهب څښتن څلور دي پنځه نه دي
حنفي سني مذهب ددین په کاریم .

خوشال خان همیشه دجهانګیر او شاه جهان ستاینه کړې ده . جهانګیر هغه وخت مړ شو چې خوشال خان لامیراني نه وو هلی او پر هغه مهال څوارلس کلن و . دده خاطرې به له شکه هغه څه وو چې له خپل پلار شهباز خان څخه یې اوریدلي وو ، او په خپلو یادښتونو کې به یې یو څه رنګ ورکړی وي. لکه چې ده لیکلي وو چې دجهانګیر په وخت کې هند لکه جنت غوندې و . ده شاه ـ جهان شخصاً پیژنده او دهغه خدمت یې کړی و . دخیبر له لارې دشاه جهان له امر سره سم څو واره تللی و او دشاه جهان تدبیر درانه کتل . ده به همیشه

«قدردان شاه جهان» لیکه. په څو ځایو کې یې یادونه کړې ده چې د شاه جهان دستاینې لپاره زما لیکنې خورا کمزورې دي. پر ۱٦٤۱ کال دده پلار شهباز دده نیکه یحیی خان او غورنیکه اکوړه په شان له یوسفزو سره په جګړه کې شهید شو. شاه جهان، خوشال خان د ختکو د مشر په توګه ومانه، او د پښبور دلویې لارې امنیت یې دده په غاړه کړ، دی د ډهلي دربار ته ولاړ او هلته یې د امانت خان او اصالت خان سره اړیکې ټینګ کړلې. د دوی په اړیکو خوشال خان په کانګره، بلخ او بدخشان کې جګړې وکړې او زیات شهرت یې وموند.

د خوشال خان کورنۍ باید د پښبور په وادۍ کې د ختکو او یوسفزو ترمنځ د همیشنیو جګړو په درشل کې وڅیړل شي. اکبر د بیربل له مړینې څخه وروسته د یوسفزو سیمه اشغال کړه او د یوسفزو د ټکولو قصد یې کړی و. ختکو د اکبر له دغه موقف څخه ګټه واخیسته. په نتیجه کې د دوو قبیلو تر منځ دښمني یوه پیړۍ اوږده شوه. د دغو جګړو په اوږدو کې د خوشال خان غورنیکه او پلار ووژل شول. د اکبر له زمانې څخه بیا تر اورنګزیب پورې له مغولو سره مخالفت همیشه د یوسفزو له خوا و او د مغولو پلویان اکوړه او دده اولادونه وو. نو ځکه د یوسفزو او ختکو جګړې کورنۍ، قبیلوي او دولتي پس منظر لري.

د ۱٦٤۹-۱٦٥۲ کلونو تر منځ موده کې خوشال خان د ختکو مشر و کله چې له باندینیو جګړو څخه راستون شو، پریکړه یې وکړه چې د یوسفزو په خلاف خپله کورنۍ جبهه ټینګه کړي او ددې مقصد لپاره یې شاه جهان دې ته مجبور کړ چې د لنډي سیند شمال ته د یوسفزو ځینې کلي دده جاګیر ته ور زیات کړي. یوسفزي په دې کار ډیر په قار شول خو د مجبورۍ له مخې دې ته

راضي شول چې څه ناڅه ماليه دډهلي حکومت ته ورکړي ، ديوسفزو مشر بهاکو خان دډهلي دربار ته ولاړ او دامپراتور د زوی حمايت يې تر لاسه کړ. داراشکوه خپل پلار شاه جهان دې ته وهڅاوه چې يوسفزي عفو کړي او ددوی کلي دخوشال خان له جاگير څخه وباسي او بهاکر خان پورې يې وتړي .په دې ډول ديوسفزو او خټکو رقابت په دربار کې هم پيل شو او هريوه هڅه کوله چې دمخه شي ، په دې درباري جګړو کې بهاکو په وظيفه کې ډير پابند او وفادار و او داراشکوه يې پلوي کوله . داراشکوه هڅه وکړه چې خوشال خان هم خپل کړي مګر هغه انکار وکړ او يوسفزي يې وهڅول چې ده ته په سمه کې پناه ورنه کړي ځکه چې ديوسفزو لښکر يې دسيند بلې غاړې ته وشاړه . کله چې اورنګزيب له مبارزې څخه بريالی راووت ، په لومړي سرکې يې خوشال خان ته ښه نظر درلود او هغه يې دخټکو په مشر تابه تائيد کړ .

په دې وخت کې محبت خان دکابل ګورنر و ، داهغه محبت خان نه دی چې دجهانګير دخاطر وکتاب دده له کړو وړو څخه ډک دی . هغه محبت خان پر ۱۶۳۴ کال په دکن کې مړ شوی و . دکابل ګورنر مُحبت خان دصفوي عليمردان خان زوی و چې کندهار يې شاه جهان ته تسليم کړی و . دا هغه محبت خان دی چې دپښور لوی جومات دده په نامه يادېږي . دی خوشال خان ته هم ورنږدې دوست و .مګر پر ۱۶۶۱ کال اورنګ زيب هغه دکن ته واستاه او دده پرځای يې سيدا مير خان دکابل ګورنر مقرر کړ او عبدالرحيم نومی يې دده مرستيال په توګه په پښور کې وټاکه ، دمغولو په زمانه کې به دکابل ګورنر له موسم سره سم په اوړي په کابل او ژمي کې په پښور کې حکومت کاوه او مرستيال به يې تل په پښور کې چې ژمنۍ پلازمېنه وه پاتې کيده او دپښور مسووليت به يې پر غاړه و .

داسې معلومیده چې عبدالرحیم دیوسفزو پلوی و او له بهاکو خان سره یې ملګر تیاوه ، ده له امپراتور څخه داباسین د حق العبور داخیستو دلغو کیدو فرمان تر لاسه کړ . اورنګ زیب په عمومي ډول د ټولو لارو د حق العبور اخیستل وبنېل خو داامر لا تردې وخت پورې د خاصو شرایطو له مخې سرحد ته نه ورسیدلی . داکبر له زمانې څخه د اټک دسیمې حق العبور دملک اکوړه او دده د کورنۍ حق و . داورنګ زیب په دې فرمان سره خوشال خان ته زیات تاوان ورسید او له امپراتور سره یې کینه پیدا شوه . دوی هڅه وکړه چې د ټولو عامو خلکو لپاره عادلانه تدابیر عملي شي او خوشال خان هم په استثنا کې نه شو راتلای . خوشال خان او ختکو ډیره موده داګټه تر لاسه کړې وه او په مقابل کې یې ډیرې قبیلې حتی خطرناکې قبیلې ددې کار په نتیجه کې قربانې کړې وې .

خوشال خان ددې عمل پر ضد په ظاهر کوم غبرګون ونه ښود ، مګر پر ۱۶۶٤ کال سیدامیر خان دی پېښور ته راوغوښت او دی یې زنځیر او زولانې کړ ، بیا یې په بدرګه ډهلي ته واستاوه او دیوپنځوس کلنۍ په عمر یې د رانتامبور Ranthambhor په کلاکې تر دوو کالو څخه زیاته بند یخانه ورباندې تیره کړه . حتی چې له جیل څخه خلاص هم شو ، هملته په کور کې تر نظارت لاندې و او خپل وطن ته دبیر ته تګ اجازه ورته نه وه . سیدامیر اوه کاله نورهم ګورنر پاتې شو . مګر دسیمې شرایط بیخي کړکیچن وو . په تیره بیا دیوسفزو تر منځ حالت ښه نه و . خوشال خان له نظارت څخه هم خلاص شو او دده په قول امپراتور پخپله وروغوښت او د سرحد دحالاتو او دیوه مناسب سړي د ټاکلو په هکله یې دده مشوره غوښتې وه . سیدامیر خان پر ۱۶۶۸ کال لرې شو او محبت خان یو ځل بیا ګورنر مقرر شو . دمحبت خان په غوښتنه

خوشال خان آزاد شو او لهٔ ده سره ولاړ . مگر لږه موده وروسته محبت خان لرې
او په عوض کې یې محمد امین خان مقرر شو چې پخوا دلاهور گورنر و. محمد-
امین د دکن د گلکنډې دیوه الماس پلورونکي زوی و . اورنگ زیب پخپله
خاصه توجه سره هغه لوړ و مقامونو ته ورساوه دی بې کفایته او بې کرکتره
سړی ثابت شو . هیڅ چا د ده مخالفت نه شو کولای ، مگر ډیر وخت لا نه و تیر
شوی چې دخپل تکبر سزا یې ولیدله .

دمحمد امین یو شمیر عسکر دحسین بیگ نومي تر امر لاندې په کونړ
کې وو . هلته څو تنو عسکرو دساپي قبیلې پر یوه ښځه باندې تیری کړی و
چې په نتیجه کې ساپیانو درې تنه عسکر و وژل ، حسین بیگ په قار شو او
دقاتلانو غوښتنه یې وکړه . مگر ساپي مشرانو انکار وکړ . دنورو قبیلو
مشرانو او ملکانو ته یې هدایت ورکړی و چې دهغوی کلي وسوځوي . داکار
دوی دورکړ شوی جاگیر په مقابل کې کاوه ، مگر په پټه سره یې ساپي خلکو
ته خبرورکړی و . دامسئله دپښتو او غیرت دپر ځای کیدو مسئله گڼل شوې وه او
په نتیجه کې ټول قومونه له کونړ څخه تر تیرا پورې راپاڅیدل .

حسین بیگ د دې وضعې راپور پېښور ته ورکړی و او امین ډیر په قار
شوی و . ده پریکړه وکړه چې له ټاکلي وخت څخه دمخه دکابل پر خوا حرکت
وکړي او دلارې په اوږده کې ساپیو ته هم مجازات ورکړي . مومندو او ساپیو
ټینگه غوټه وکړه چې دمغولو مخه ونیسي ، اپریدي او شینواري هم په گڼ
شمیر له دوی سره ملگری شوي وو . د دې مقصد لپاره یې دلوا ړگي دسیمې
ټولې څوکې نیولې وې . دا څوکې دخیبر د درې حاکمې نقطې داوسني لنډي
کوتل او لنډي خانې تر منځ وې او هغه اړخونه یې نیولي وو چې سړک
دافغانستان خوا ته مخ په ځوړ کیږي . داهغه ځای دی چې د ۱۹۴۶ کال په

مني کې پر پنډيت نهرو باندې دلته بريد شوی و .

امين خان د ۱۶۷۲ د پسرلي په پيل کې د کابل په لور حرکت وکړ . په دې سفر کې له ده سره دهوارو سيمو د مومندو ملکان، داورکزو ملکان او همدارنگه خوشال خان د مجبوريت له مخې په جبري شکل ملگري وو . داسې ښکاريده چې خوشال خان د برمتې په څير په زور بيول کيده . گورنر ته خبر راغی چې د آزادو قبايلو خلکو لار نيولې ده . ده په جمرود کې کمپ جوړ کړ او ځنې مشران يې په جرگه ورولېږل چې لار پرېږدي . دوی ونه منله او امين هم وغوښتل چې په زور سره لار خلاصه کړي . امين علي مسجد ته ورسيده او دلته کومه جدي خبره نه وه مگر کله چې لواړگي ته راورسيد گوري چې کوتل تړل شوی دی . سنگرونه جوړ شوي او تولله لاره نيول شوې ده . پوځ د جگړې لپاره تياري ونښود او لومړی دهاتيانو قوت ته د بريد امرور کړل شو.

د قبايلو مقاومت پر اساسي ډول د ايمل خان او درياخان تر قوماندې لاندې و ، خوشال خان پخپلو شعرونو کې د دوی هميشه ستاينه کړې ده ، او دوی يې د پښتنو قهرمانان بللي دي . ډېرې او کمرې تولې کړای شوې وې چې پر لښکرو وروغورځول شي . په دواړو غاړو کې د مغولو مشران ووژل شول او پوځ له ډيرو تلفاتو سره په شاتگ ته مجبور شو . د قبايلو جنگياليو تورې په لاس په مغولو ورگډ شول. توله ورځ جگړه وشوه ، مگر سنگرونه ډير کلک وو او لار خلاصه نه شوه .

امين خان ته چاوړانديز وکړ چې بايد لار بدله شي او ښه به داوي چې د تاترې د غرونو په لمن کې د سيند په اوږدو کې واوړو . مگر دا هم د دغه توتې توتې شوي لښکر تباهي وه . د لارې په اوږدو کې يوه سړي ده ته په پټه وويل چې د تاترې په غرو کې د ده دورکيدو احتمال شته ، ښه به داوي چې بيرته

پښتونخوا ته ستون شي ، دهمدې سړي په مرسته له څلوروتنو سره په پټه پښتونخوا ته ستون شو . هر څه يې له لاسه ورکړي وو . پوځ ، خزانه ، هاتيان ، کورنۍ ، ذامين دښځې ، مور ، خور ، لوڼو او دده دا فسرانو کورنيو د ښځو په شمول ټول دقبيلوي جنګياليو په لاس کې اسير شوي وه . وروسته اکثره ښځې دپيسو په مقابل کې بيرته ورواستول شوې . مګر دامين ښځه بيرته ولاړه نه شوه ، دشرم اوحيا له کبله پاتې شوه . او په انزوا کې يې ژوند غوره کړ . دخوشال خان په قول قبيلوي سرتيرو مغولي پوځ ٤٠٠٠٠ کسه له منځه وړي وو . داچې خوشال خان پخپله ددې جګړې په وخت کې څه کول څرګنده نه ده او داسې ګمان کيږي چې له جمرود څخه وړاندې نه و تللی .

بيا پر ١٦٧٣ کال په ګنداب کې او پر ١٦٧٤ کال په خيبخ غابښي کې ذمومند و په غرنۍ سيمه کې چې دشبقدر شمال غرب ته پروت دی دمغولو پوځ ته زيات تاوانونه ورسيدل . البته محمد امين خان له وظيفې څخه لرې کړای شو او محبت خان بيا ګورنر مقررشو . اورنګ زيب فکر کاوه چې محبت خان يوازينی سړی دی چې دسرحد داقبيلې آرامې کړي . پر ١٦٧٤ کال امپراتور پخپله شمال خواته ولاړ ، چې عمليات شخصاً اداره کړي . دامين خان له ماتې څخه وروسته محبت خان فکر وکړ چې يوازې دخوشال خان په مرسته کولای شي چې دسرحد سيمې آرامې کړي ، نوځکه يې خوشال راوغوښت ، مګر خوشال خان دده ته ليک واستاوه چې : « دمغلو لړکړو وړو څخه بيخي ستړی يم » او خوشال خان دمغولو په مخالفت راپور ته شو . پر ١٦٧٤ کال دخيبخ غابښي دنيولو او داورنګ زيب پوځ له ټکولو څخه دمخه خوشال خان ختک او ايمل خان اپريدي په ګډه دنو ښهرا پر کلا بريد وکړ او دمغولو قوت يې تار و مار کړ . ده دقبيلې مشرتوب هم پريښود او دده مشر

زوی اشرف خان دختکو خان شو او ده د مغولو پر ضد بغاوت وکړ . دده متباقي
ژوند په جنگونو او سفرونو کې تیر شو همیشه د پښتنو په سیمو کې گرځیده
ترهغه چې د مغولو پر ضد یې لښکر جوړ کړ . کله کله زړه نا زړه له مقاماتو
سره پخلا و او کله هم پر بګړه و . حتی له خپلو زامنو سره هم په مخالفت کې
و . دده یو زوی بهرام د پلار پر ضد د مغولو پلوی شو ، اورنگ زیب بهرام د
سروزرو په زور خپل کړ او د پلار پر ضد یې وهڅاوه .

خوشال خان ختک پر ۱۶۸۹ کال مړ شو . دده زوی اشرف خان هم په خپل
وار سره بندي شو ، او پر ۱۶۸۳ کال بیجا پور ته واستول شو . اشرف خان هم
پس له تبعید او جیل څخه مړ شو او څو قصیدې او شعرونه یې د خپل قسمت په
هکله لیکلي دي ، اشرف خان هم تکړه شاعرو ، په وروستــه کالونو کې په تیره
بیا د اشرف خان د زوی افضل خان لیکنې ښیي چې اورنگ زیب د خپل سلطنت
په وروستــیــو لسو کـالو کـې پر کـــوهاټ او بنو هیڅ ډول تسلط نه درلود .
افـضل خـان د اورنگ زیب د زوی شـاه عـالم چې لقب یې بهـادر شـاه و دیاور په
توگه دنده اجرا کوله . پر ۱۷۰۷ کال کله چې د اورنگ زیب د مړینې خبر اټک ته
راورسید ، افضل له شاه عالم سره په اټک کې و او ده ته یې سملاسي د پخوا په
شان د پېښور د لویې لارې د امنیت مسئولیت ور په غاړه کړ ، تردې وروستــه تر
ډیر وکالو پورې کابل د پېښور په شمول گورنر نه درلود او دا د حیرانتیا خبره
نه وه چې پر ۱۷۳۹ کال نادر شاه افشار دیرغل لپاره چمتو شو ، دلته د ډهلي
حکومت اراده نه درلوده چې د قبـایلو په چارو کې ځان مصروف کړي . ځکه
حتی د مغولو د امپراتورۍ د مطلق قدرت او طاقت په وخت کې لا هم قبایل تر
حاکمیت لاندې نه وو . راورتي لیکي چې د اورنگ زیب د سلطنت د منځنیو
کالونو راهیسې او حتی د اکبر له زمانې څخه راهیسې پر قبایلو باندې کنترول

تش په نامه و . همدا دليل و چې نادر شاه افشار پر دې دبريالی شو چې دقبايلو سيمه ونيسي . که کوم مقاومت هم و هغه دځانګړو قبيلو له خوا و . مقاومت او اپوزيسيون تنظيم شوی نه و . په خپله هند کې دننه ګډوډي او بې کفايتي دومره زياته وه چې دپردي يرغل او اشغال لپاره يې ټول شرايط برابر کړي وو .

دخوشال خان حماسي اشعارو دوه اساسي عوامل درلودل . يو دا چې له اورنګ زيب شخه يې نفرت درلود او دويم دا چې پرملي ننګ باندې اودپښتون او افغان پر نومو وياړ دده اساسي انګيزه بلل کيږي . دميړانې او ننګ په هکله دده شعرونه خورا زيات دي . دنمونې په ډول يوه قصيده چې مطلع يې ده : ( بيا له کومه راپيدا شو دا بهار -- چې په هر لوري يې ملک کړلو ګلزار ) راواخلو .

## قصيده د بهار

بيا له کومه راپيدا شو دا بهار
چې په هر لوري يې ملک کړلو ګلزار
ارغوان دي ضميران ، سوسن ريحان دي
ياسمين دي نسترن ، نرګس ګلنار
دبهار ګلونه ډير دي په هر رنګ شته
ولې سره لاله دي لا په کې اوخار
ځوانه موتي موتي ګل ږدي په ګريوان کې
دځوانانو ګلدستې دي په دستار
مغني په چغانه دلينديو کښيږده
په نغمو په پردو غواړه هر هر تار

ساقي راشه ډکې پيالې راکړه
چې د ميو په مستۍ شمه سرشار
ښتنو زلميو بيا لاسونه سره کړه
لکه باز منګلې سرې کا په ښکار
سپينې تورې يې ګلګونې کړې په وينو
په اهار کې شګفته شو لاله زار
ايمل خان دريا خان دواړه مرګ يې مه واى
هيڅ تقصير دواړو، ونه کړ وار په وار
دخيبر دره يې سره کړله، په وينو
په کړپه يې هم روان کړ دندوکار
ترکړپه تر باجوړه سمې غرونه
په لړزه په زلزله شول په باربار
په هغه لوري چې کيږي پنځم کال دی
هره ورځ د سپينو تورو خړپهار
چې په دالوري زه راغلم هبطه شوم
زه مردار يم که داخلک دي مردار
په لښکر لښکر نارې شوم ورته سترى
داکانه راته نه مرګ واىي نه جار
چې احوال ديوسفزيو را معلوم شو
لواغرومانه ښه و نه دمغار
دختکو سپي بهتر تر يوسفزيو
که ختک دي هم په خوى تر سپي بې کار

درست پښتون له کندهاره تر اټکه
سره یو دننګ په کار پټ او آشکار
ګوره څو جنګونه وشول په هر لوري
ولې هیڅ دیوسفزیو نه شته عار
اول جنګ دلوړې شا د تهترو
چې څلویښت زره مغول شول تار په تار
خو یندې لونه یې په بند د پښتنو شوې
آس او ښان هاتیان ولجه قطار قطار
دویم جنګ د میر حسین په دوآبه کې
چې یې وتکیده سر لکه د مار
بیا له پسه د نوښار د کوټ جنګ و
چې مې وکینښ تر مغولو خپل خمار
بیا له پس جسونت سنګه شجاعت خان و
چې ایمل یې په ګنداب ویوست د مار
شپږم جنګ مکرم خان، شمشیر خان دواړه
چې ایمل کړل په خپاپښ کې تار په تار
چې زما په یاد دي لوي جنګونه دادي
د هلکو په هر لوري نه شته شمار
همیشه فتح و نصرت دی لا تر اوسه
پس له داده بیا تکیه پر کردګار
اورنګزیب راته یو کال وشو چې پروت دی
په صورت حیران پریشان په زړه افګار

کال په کال امرا يگان دي چې پريوزي
چې توپان شولې لښکرې کوم يې شمار
خزانې د هندوستان دي را خورې شوې
سره مهران دي ننوزي په کوهسار
دا دهيچا په اتلس فکره نه وه
چې به داکار ونه شي په دا ديار
د بادشاه د بدنيتى کمى نه شته
په بد نيت يې آزار واخيست د خپل پلار
ځکه اوس د چاباور وربانديې نه شي
هم بدنيت دى هم بدقول هم مکار
بله هيڅ ليدله نه شي به دا منځ کې
يا مغول له مينځه ورک يا پښتون خوار
که گردش د آسمان دادى چې ليده شي
که دخداى په دار صناوي راغى وار
اسمان هر کله پيرې يک رنگه نه کا
گاه په کام د گل جار وزي گاه دخار
په دا هسې وخت چې وخت د نام او ننگ دى
دابې ننگه پښتانه کا څه رفتار
پښتانه چې نور څه فکر کا نا پوه دي
بې له تورې خلاصى نه شته په بل کار
تر مغولو پښتانه په توره ښه دي
که په پوهه پښتانه واى څه هوښيار

ولسونه چې خپل دسند ويله وکا
بادشاهان ورته سجود کاندي اختيار
که نفاق که اتفاق که جهل پوهه
د هرچا دخداى په لاس ده هره چار
اپريدي مومند شينواري گوره څه کا
دمغولو لښکر پروت په ننگرهار
زه تنها په کې په غم د نام وننگ يم
يوسفزيه فراغت په کښت وکار
اوس چې هسې بې ننگي بې ناموسي کا
عاقبت به ورښکاره شي خپله چار
مرگ زما په پوهه ښه تر داژوندون دى
له عزت سره چې نه وي زيست روزگار
همېشه به په جهان کې ژوندى نه وي
دخوشال خټک به پاتې شي يادگار
ددرېيمې خور او ل کال دغفووه
ما چې ووې په برمول کې دااشعار .

دا شعر دستاينې وړ او ډېر لوړ شعر دى ، په دې شعر کې پخپله دخوشال خان شخصيت او د پښتون کرکتربيان شوى دى . دا شعر د پښتانه حماسه ، ننگ ، ميړانه او غيرت ښيي . خوشال خان سازشونه غندي . په توره او ميړانه برياليتوب خوښوي . خداى تعالى ته معتقد او وفادار ملگري ستايي بې ننگه دښمن سره نه پخلا کيدونکى او ورڅخه نفرت ښيي .

دشاعر او قوماندان خوشال خان ختک زيات کينه او کرکه له اورنگ زيب

سره وه . تر شلو ډېر شعرونه یې داورنګ زیب په هجو کې ویلي دي ، دبنداو جیل په هکله یې حماسي شعرونه لیکلي دي او دمذهب ترجامې لاندې داورنګ زیب ریا کاري غندي او په اصل کې هغه یو خونخوار او ظالم انسان بولي . داورنګ زیب دغندنې او دهغه دظلم او بې عدالتۍ په هکله دده لاندیني شعر ښه مثال کیدای شي.

رام علوم شو داورنګ عدل وانصاف
دده ښه مسلماني ښه اعتکاف
سکه وروڼه وار په وار واړه وژلي
پلار په بند کې اچولی په مصاف
که هزار ځله څوک سر وهي په ځمکه
یا په صوم تر شم څي ورولي ناف
څو یې نیت له ښه عمل سره جوړ نه شي
عبادت طاعت یې واړه دي خلاف
چې دژبې لاریې یوه دزړه یې بله
په چاړه یې شه ځيګر شګاف شګاف
مار په تن دپاسه ښه ښایسته روغ دي
ولې ننه اندرون لري ناصاف
میړني په کرده ډیر ، ویل یې لږ وي
دنامردو لږ عمل وي ډیر یې لاف
که دلي دخوشحال لاس په ظالم نه شته
دقیامت په ورځ یې خدای مه کړه معاف .

ډېر مورخین پر دې ټینګار کوي چې اورنګ زیب خپل نفس بیا جوړ کړی

او عقیده یې ټینګه وه او متقي سړی و . د اکبر او جهانګیر له لارې څخه یې ځان بیل کړی و . ځینې یې پیر بولي چې پر تخت ناست او د خالص اسلام دعوی یې کوله ، خپل ورونه یې د شریعت مطابق د ځان په دفاع کې له منځه وړي دي . ځینې نور لکه خوشال خان دی انګریزي پروتستانت بولي . دهسپانیې د دویم فیلیپ په شان چې په ظاهر مذهبي ، روحاني او پرهیز ګار او په باطن ظالم او خونخوار و ، اورنګزیب هم همداسې شمیري ، دهر ظاهري ښه . عمل شیایو ناوړه مرام لري . موږ دلته د دوی له عقاید و سره کار نه لرو ، خو ګورو چې دامپراتور کړو وړو پر سرحدي چارو باندې او دقبایلو پر افکار و باندې څه اغیزه درلوده .

ددې مسئلې په نظر کې نیولو سره دوه شیان په ځای دي چې یادونه یې و شي : لومړی دا چې دخوشال خان دسیمې ټول اختیار اخیستل او دجالې دپورې وتلو او دلویې لارې دتګ راتګ دمالیې لغوه کول چې له پیړیو پیړیو راهیسې دده کورنۍ ته ورکړل شوي وو ، پوره دلیل ګڼل کیږي چې خوشال خان دې له اورنګ زیب سره مخالفت وکړي. هغه څوک چې داورنګ زیب پلوي کوي استدلال کوي چې دحق العبور لغوه کول عمومي امر و او پر ټولو لارو او جالو باندې دامپراتورۍ په حدودو کې دننه یو شان د تطبیق وړو . په حقیقت کې دا حکم دعام سړي په ګټه و او دایو مثبت ګام و . نو ددې پر ضد مبارزه کول خودغرضي ده . که خوشال خان مخالفت کوي او یا بل څوک ، دا به دځاني ګټې په مرام وي . دویمه نقطه داده چې دخوشال خان او ختکو خپګان دنورو قبایلو له بدبینۍ سره تړلی و . په تیره بیا خټک او یوسفزي خپلو کې خپه وو . له یوسفزو سره پخلاینه دختکو دزیاته خپګان سبب شو . مامورینو دسیدامیر خان په شمول غوښتل چې هرڅه ددوی په ګټه تمام شي او

پردې باندې دوی پوره بريالي شول . په بل عبارت بايد خوشال خان پر هوښياراو خير خواه امپراتور باندې خپله غصه نه وای را پارولې ، ځکه چې دهغه فرمان دخلکو په گټه و ، بلکې پر يوسفزو او محلي مامورينو باندې يې غصه ښکاره کړې وای چې امپراتور ته يې غلطه مشوره ورکوله .

په دې کې څه استدلال شته ، خو پته دې نه وي چې دخوشال خان لپاره هم په کې خبره نغښتې ده ، خوشال خان دلويې لارې دټکس دلغوه کيدو په خلاف هيڅ کوم منفي عمل ونه ښود او نه يې کوم مقاومت وکړ . خو سره له دې چې شل کاله يې دپاچا خدمت کړی و او پلارېې - نيکه يې او غور نيکه يې دمغولو شاهي خاندان ته وفادار او صادق وو . پر ١٦٦٤ کال دی په پېښور کې بندي شو او په زنځير او زولانو کې ډهلي ته واستول شو او بيا په رانتمبور کې تر دوو کالونو زيات موده بندي پاتې شو . تر هغه چې پر ١٦٦٨ کال دمحبت خان ( مهابت خان ) په شخصي مداخلې سره له بند څخه خلاص شو ، نو داورنگ زيب پلويان دې ته څه ځواب لري ؟ ولې بې گناه بندي شو ؟داچې خوشال خان داورنگ زيب دغندنې لپاره ډير شعرونه ليکلي دي او مونږ په دې هم پوه يو چې خوشال خان طالع مند و چې له څلور کاله بند او نظارت څخه وروسته ازاد او ژوندی پاتې شو او که نه بايد اورنگ زيب دی اعدام کړی وای . داچې اورنگ زيب دی له بند څخه آزاد کړ ، دادامپراتور لويي او سخاوت ښيي .

دخوشال خان دخيانت لپاره دثبوت استدلال کوي چې دخيبر له جگړې څخه دمخه خوشال خان له امين خان سره و خو کله چې امين ماتې وخوړه ، خوشال خان نه يوازې دامين پر ماتې خوښي څرگنده کړه ، بلکې نيغ په نيغه يې دپاچا پر ضد بغاوت او مبارزه پيل کړه او پاتې عمر يې په مبارزه کې تير

دي.

خوشال خان يقيناً چې د پرديو پر ضد په خپله وينه کې تضاد درلود او دادتولو پښتنو نژادي خصلت دی خوشال خان دهريل پښتانه په شان دپرديو منت او جگ غړ پر ځان نه مانه ، داسې خلک يوازې په دوستۍ او احترام کې وفادار پاتې کيږي . وفاداري ددوی شخصي ملکيت دی . له چا سره يې کوي، هغه هم ددوی دزړه غوښتنه ده . دا بيخي گرانه خبره ده چې دسړې وينې امپراتور او سرزوري قبيلوي خان دې سره جوړ شي ، د پښتو نولۍ وياړ دې ترپښو لاندې کړي او امپراتور ته دې سرټيټ کړي . درې سوه کاله د مخه په ډيره عادي خبره قبيلوي خلک را پاڅيدل او دخپلې آزادۍ لپاره يې هر ډول ترون او ساخت وبافت له منځه يوړو . دوی پخپله قانون وو او ددوی يو ازينې اطاعت ننگ او پښتو ته و اوس؛ ننگ پښتانه شرف او عزت و .خوشال خان بله لار نه درلوده بې له دې چې دخيبرله جگړې څخه وروسته يې دامپراتور پر ضد بغاوت کړی و . ځکه که خوشال خان ارام پاتې وای او دامپراتور ساړه منطق به دا ښوولې چې خوشال خان ريا کاري کوي .

هر څه مو چې وويل : ددوو سړيو تر منځ خبرې دي بايد ورباندې قضاوت وکړو . کوم يو غږډير سم او پر ځای دی ؟ دامپراتورغږ ؟ هغه څوک چې ورونه يې ووژل ، پلار يې بندي کړ چې تاج او تخت ته ورسيږي ، هغه څوک چې له تول نبوغ او پوهې سره سره يې امپراتوري دزوال خواته بوتله اويا دهغه چا غږ چې شاعر او جنگيالی و او حماسې يې تل پاتې دي او دده خبرې نن هم پښتانه په جوش راولي او دزړه لمبې يې اسمان ته خيژوي . پر پښتون مين سړی په هيڅکله شک و نه لري . دا هم څرگنده ده چې پښتو ن همېشه جنجالونو ته اطاعت هم نه کوي ، خو خوشال خان په وار وار دخپلو قبيلوي پلويانو له

بې دسپلين شخه شکايت کړی دی اکثراً له نورو سره همکاري نه کوي او شخصي گټې يې هم د عمومي هدف لپاره کله کله خنډ واقع کيږي . يوه موضوع بيخي ثابته ده . هر هغه خوک چې داورنگ زيب په شان عمل وکړي هيڅکله به د پښتون وفاداري تر حکم او قوماندی لاندې رانه ولي .

مخکې مو وليدل چې د ختکو او يوسفزو دښمني له همدی پورتني خپگان څخه رامنځته شوه . داکبر له زمانې څخه ختک هميشه تشويق شوي وو چې د يوسفزو په مقابل کې ودريږي . يوسفزو دامپراتور پوځونه په وار وار ځپلي وو ، او تاوانونه يې ورا ړولي وو . په قوت او طاقت کې د موازنې بدليدنه د ختکو دبغاوت سبب شوه . د آمو په ياد دي چې له خوشال خان سره ټول ختک او حتی دده ټوله کورنۍ هم ولاړه نه وه . دخوشال خان کشر زوی بهرام د مغولو تر څنگ ولاړ و او د پلار پر ضد جنگيده او حتی هڅه يې کوله چې خپل پلار ونيسي او د مغولو حکومت ته يې وسپاري . داخر گنديږي چې د خلکو تر منځ يو نظر موجود نه و . د يوسفزو په ارتباط بايد وايم چې خوشال خان خپلې پخوانۍ دښمنۍ هيرې کړې او د سوات او « سيمې » يوسفزو او نورو پښتنو دوحدت لپاره يې ډيرې هڅې وکړې چې د مغولو پر ضد يو مشترک موقف غوره کړي . لکه چې دده له اشعارو څخه معلوميږي په اپريديو کې ده پوره پلويان درلودل . ايمل خان او دريا خان له ده سره يو ځای شوي وو، خو په يوسفزو کې دی بريالي نه شو . دده ناکامي د تاريخي سابقې پر اساس حتمي وه کومه چاره يې نه وه . کله چې مغولو له يوسفزو سره پر جگړه بوخت وو ختکو له مغولو سره پوره مرسته کوله . ختکو د مغولو د پلوی په نتيجه کې د يوسفزو زياتې ځمکې نيولې وې . اوس چې ختک د مغولو له شفقت څخه محروم شوي وو يوسفزو کوم دليل نه درلود چې له ختکو سره مرسته وکړي

برعکس ددوی په زوال خوښ وو . خوشال خان دې سابقې ته نه کتل خو یو سفزي یې همیشه ډارن او ابن الوقت ګڼل . دده شعرونه په دې هکله خورا خوندور او په زړه پورې دي مګر دلوستلو په وخت کې باید ددوی پخواني اړیکي په نظر کې ونیول شي .دخوشال خان په نظر دوی دوه غاړي ( دوه ژبي ) بدماشان وو . لومړی ځکه چې دوی میراثي دښمنان وو . دویم داچې که خوشال خان دوی ته رجوع هم وکړه دوی په لویه کې ورسره ګډ نه شول . دی لیکي :

زه تنهــــا په کــــې په غم دنام وننګ یم
یوســفــزیه فــراغت په کــښت وکــار

بیا وایي :

لویه چار د پښتــــانه له لاســــه نه شي
مګر چاریې اســمــاني ده کــمــه کــوزه
کــه هر څــویې ســمــوم را نه ســمــیږي
چې کــاږه دي دبدبخــتــو څــو وربوزه
یوســفــزیه ننګیــالي پښتــانه نه دي
دبې ننګو پښتــنو له مــینځــه ووزه

خوشال خان د یوسفزو د مرستې د تر لاسه کولو لپاره ډیر سفرونه وکړل ، حتی سوات پورې ولاړ ، چې دا په هغه وخت کې د یوه ختیک لپاره غیر معمول کار و ځکه چې قبیلې له خپل حد څخه نه وتلې . دسوات په هکله یې ښکلي شعرونه لیکلي او دسوات تعریف په زړه پورې دی ، له یوې خوا دسوات خلک غندي او له بلې خوا دسوات دښکلي طبیعت ، ګلانو ، شنو چمنونو او ښکلې هوا په هکله لیکي ، دا د خوشال خان زیاته مینه له طبیعت سره ښیي . په

طبعیت او ښایست پیژندنه کې دي بابر ته ورته دی او هر پښتون په دې کې ځانته د مینې خوند ګوري :

دسوات په هکله خوشال خان داسې لیکي :

تر کابل نه یې هوا داوړي ښه ده
د کابل هوا تر خه دده خوږه ده
په هوا کې د کشمیر په آب ورنګ دی
حیف دا چې کشمیر ارت دی ، دی تنګ دی
هرهر ځای دسوات دملک ، ملوکانه ده
بې سرداره بې حاکمه ، کوه خانه ده
دسوات ملک چې درست لایق دی دباغونو
یوسفزیو برابر کړ ، له راغونو
په هر لوري فواري دي ، ابشارونه
ښه نهرونه ، ښه سرایونه ، بازارونه
هسې ملک هسې هوا هسې جویونه
نه ځایونه ، نه باغونه ، نه بویونه
یوسفز په ډیر چرکین لري ځایونه
آلوده ، ګنده ، بدبوی لکه سرایونه .

ددې په مقایسه شاعر دخپلې سیمې ، وحشي ، لغړ ختک غره په هکله شعر وایي چې دختک غر پراباسین او لنډي سیند باندې سیوری اچوي او ده په هندوستان کې دبند یخانې پر مهال شعر لیکلی و :

رحمت په اکوړه شه چې یې وښوه ځای سرای
حم ، ښه فهم یې وکړې که باور کړې ځای دی ځای

تورغـــــريې دهوډې دی تر تيـــــــراه پورې سم تللی
نيـــــلاب ، ولنډی دواړه عـــجب ســـــر اينبی په پای
پر ســــازه لويه لار د هندوســـــتــــان دخــــراســـــان ده
گـــــذريې داټک دی چې تړې ترس کــــا شــــاه گـــدای
هر فـــيض دجـــهـــــان چې څـــه يادېږي پرې رادرومي
کـــه ملک يې باراني دی څـــه بهـــــار لري های های
کـــه سوات کـــه اشنغـــر کـــه پيــښــور دی داملکونه
رجـــــوع لري وده تـــه فـــــيض وردرومي دهر ځــــــای
په هر لوري يې ښکار شـــــتـــه دشـــاهين دباز دهر څــــه
واه واه «کـــــــالا پانی » چې يې څه ښکاردی دلربای
ځـــوانان يې چاق تندرست چست ُچالاک دي په هر کـــار کـــې
خــوړ ســــتــــرگي ســـپــــين اوســـره بلند بالادي په نمای
په کـــې مـــبشـــتـــه مـــې زويه خـــيلخـــانه ده کـــه ، ولس دی
چې څـــو ک په کـــې مـــيشـــتـــه دي په امـــان او ســـه دخـــدای
آســـــمـــان ځـــيني جـــدا کــړ لاس د چا رسی اســـمـــان تـــه
خـــوشـــال لـــه ســـرايه نـــه دی جـــداشـــوی په خـــپـل رای .

خوشال خان له ارمان ډک شعر لري چې له کور څخه دلرې والي او دکلي په ياد يې ليکلی دی :

کـــه گـــذر په خـــيـــر آباد وکـــړې نســـيـــمـــه
يا دې گـــشـــت وشي دســـرای دســـيند په ســـيـــمـــه
په باربار زمـــا ســـــلام ورتـــه عـــرضـــه کـــړه
ورســـــره زمـــا دلـــور يه څـــو تسليـــمـــه

ابا سین وته ناره وکړه په زوره
ولنډي ته وینا ووایه حلیمه
ګوندې وي چې بیا مې ستاسې جام نصیب شي
په ګنګا جمنا به نه وله قدیمه
که د هند له هوا زار کړم څو به زار کړم
داو بلایې لا بده عظیمه
که د نهر او به څښې کلمې پریباسي
هم د هر کوهي او به نه دي بې بیمه
چې سرې او به دغه نشته په هند کې
ترې تویه که واړه ډک دي له نعیمه
تل به هیڅوک ناامید په جهان نه وي
په کریابو کرم کیږي له کریمه
دویشتلي وصحت وته امید شي
د پرهار چې څه کمې وشي له ریمه
خدایه زړه مې په وصال دغه خوښ کړه
دا چې اوس ورځنې لبرې دی دوزنیمه
عاقلان به هیڅ انکار ورباندې نه کا
هر افعال چې صادر کیږي له حکیمه
همیشه به په هند نه اوسې خوشاله
عاقبت په عاصي ووځې له جحیمه.

خوشال خان د مینې او عشق ډیر شعرونه ولیکل او په رښتیا سره یې د مینانو په منځ کې ځان بهرام ګور باله ، ده له ډیر شوخه زیات زامن درلودل

او دلونیو شمیر یې نه دی ثبت شوی .

دده دالاندې شعرونه ډیر مشهور دي ، او زیاتره مصرعې یې د پارسي په دود کښلي دي ، یو شعر یې دا پریدیو پیغلو د ښایست او کرشمې په هکله دی :

آدم خیلې اپریدۍ دي سرې او سپینې
په کې شته دي ښایسته په رنګ رنګینې
غتې سترګې لوی بانه پراخې وروځې
شکر لبې ګل رخسارې مه جبینې
تنګې خولې لکه غوټۍ هوار غاښونه
سرېې ګرد په ترو زلفو عنبرینې
په وجود کې لکه ها له ویښتو خلاصې
ښې کمکۍ غونډې پنډۍ پهن سرینې
تر نخې ګیډې ، سینه ورې ، ملابار یکې
قدېې سم لکه الف په تن سمینې
که د باز غوندې مې ګشت په غرونو کیږي
ښکاري هم شوې ښایسته زړکې ثمینې
باز که چوزوې که کرچ طلب د ښکار کا
لا تر چوزوې د کرچ غوټې مهینې
یا اوبه د لنډې سیند یا د باړې دي
چې په خوله مې تر شربت لګې شیرینې
د ماترې غاښې نیغ د رومې اسمان ته
په خاته خاته ویلیږي باندې سپینې
ادم خیلو سره زه په تیرا راغلم

نور رخصت ورکړی خوږ په زړه خوږینې
مینه واړه کار داور لري خوشاله
که لمبه یې پټوې لوګې یې وینې
دده یو بل شعر په دې ډول دی :
توره چې تیرګیږي خو ګذار لره کنه
زلفې چې ول ول شي خو خپل یار لره کنه
ولې راته وایې چې په ښکلو نظر مه کړه
سترګې چې پیدا دي خو دیدار لره کنه
شیخ دې لمونځ روژه کا زه به ډکې پیالې اخلم
هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره کنه
تاوې چې دما دخولې بوسه لکه دارو ده
غواړم دا دړو دزړه پرهار لره کنه
وینې مې دزړه خوري مګر نور څه لره نه دی
زړه زما پیدا دی تا خونخوار لره کنه
څه ژړا فریاد کړې دښهی له تورو زلفو
ته ورتلې پخپله دې تومار لره کنه
خود به ستا ترمخ پورې ګیاه غوندې څرګند شي
ګل دلاله راوړه خپل رخسار لره کنه
می شته چنګ ونی شته اوس خپل یار سره خوشاله
خپل بیاض په لاس کې څه ګلزار لره کنه .

دده یو شعر د رابرت بریج Rabert Bridge له سندرې سره کټ مټ ورته والی لري چې دښځو دجذابیت او مکر په هکله دی . ( په انګریزي متن

کې دده دشعر پر ځای درابرت بریج بدله لیکل شوې ده . )

که چیرې خوشال خان ختک ژورو پلټو ، پر الله تعالی (ج) باندې ډیر کلک متعقد مسلمان وپرخدای مین او دپاکې عقیدې خاوند و او دپروردګار رحم یې تل غوښته او خپله مینه او هیله یې نه پټوله . دده عقیده وه :

دیوه بادشاه په حکم شوم اګاه
امر ،نهی مې قبول دي دبادشاه
یا مهدي یې ، یا عیسی چې راښکاره شوې
په جهان دي غلغله وشوه ناګاه
دمهدي او دعیسي دوراندې څه دي
هم دجال هم ددجال واړه سپاه
خیرآباد لره دې رایشي لښکرې
چې احوال دغلیمانو شي تباه
چې خیبر لره مابولي ، قضا کیږي
ډیر کارونه په دا ملک د خیرخواه
دریا خان ، درویزه دواړه په حضور دي
ګویا زه هم په حضوریم ددرګاه
خواه ناخواه که امر دادی چې رادرومه
دابنده به در روان شي خواه ناخواه
دارنده دعریضې زما دلوریه
زباني خبرې هم لري همراه .

نوټ ( په انګریزي متن کې :« دریاخان ، ایمل خان دواړه په حضوردي » )

په پورتني شعر کې داپریدیو توریالي مشران اوجنګیالي پښتانه چې دده

پر خوا وو دده په مخکې ولاړل . دی په دوی پسې ارمان کوي او غواړي چې له دوی سره یوځای شي .

دا دارزښت وړ ده چې دخوشال خان ژوند په غور سره لې څه ژور وگورو . ځکه چې دی دپښتنو پښتون دی . دده له کمزورتیا او نیمگړ تیا وسره سره دایو لوی شخصیت دی ، دی مینه او محبت راپاروي . هر څوک چې خوشال خان وپیژني دنورو پښتنو پیژندلو ته به لاره پر انیزي .

تیر کال دپسرلي په وروستیو کې یوه ورځ چې له پېښور څخه پنجاب ته تلم دلویې لارې ( خراسان هند لویه لار ) څخه څلور میله لرې دخوشال خان ختک کلي ته وگرځیدم چې دده مقبره ووینم . هلته دوه واړه کلي دی چې دغره په لمن کې پراته دي . داکلي دبر سرای کلي دي . په نقشه کې په غلطۍ سره ایسوري Isori لیکل شوی دی . یو کلی دهغې چینې په نامه یادیږي چې دقبر له پاسه ډلوړ ي څخه راوځي . دمقبرې انگړ شمال ته پروت دی اوپوره لوړوالی لري چې تر لنډي سیند پورې تر له منطقه او سیمه ور څخه ښکاري چې دستر گو نظر دبونیر او سوات تر غرو پورې رسیږي . کومه سیمه چې لیدل کیږي ،هغه ځمکې دي چې خوشال په کې جگړې کړي دي ، او دیوسفزو سیمه ده چې له ده سره یې هیڅ مرسته ونه کړه او دی په کې ډیر ښکته او پورته دمرستې په خاطر وگرځیده .

په هغه ورځ دمازیگر په وخت دلمر وړانگې پر غرو او سیمه خورې وې چې دواورو ډ ک غرونه دلمر په وړانگو کې ځلیدل ، دختکو غرو جنوب ته بادلگیده خو دوړې نه وې . له چینې څخه داوبو دتوریدو غږ راتلو چې دمقبرې شاته روانې وې . څه شیبه وروسته موزن دمازیگر لمانځه لپاره اذان ورکړ . دده مقبره

کوچنۍ گونبزه لري چې داډیره موده وروسته دده دمعتقدو پاتې کسانو له خوا جوړه شوې وه .

ولې دده قبر په داسې گوښې ځای کې دی ؟ دامې له مجاور څخه وپوښتل ، ده وویل چې دا دخوشال بابا وصیت و . ده له میرو او گلانو سره ډیره مینه درلوده . ترټولو مهمه داده چې ده ویلې وو چې داسې ځای کې مې ښخ کړئ چې دمغولو داسانو دپښو گرد پر ما ونه لوېږي . دده قبر په ساده مرمرو سره پوښل شوی دی او دابیت یې پر قبر لیکل شوی دی .

دافغان په ننگ مـــې وتړلـــه توره

ننگیالی دزمـــانې خوشـــال خټک یم .

دده له هر اړخیز خیال څخه یوبل شعر دنمونې په ډول رااخلو :

| | |
|---|---|
| ساقـــی راکړه ماله می | یو څـــو جامـــه پیاپی |
| داهم ظلـــم دی که گورې | چـــې بې میو ځي سپرلی |
| هغه ځای چـــې گل او مل وي | ورځ ځو کانـــدي سړی |
| گوره څه وایـــي پرې غور کړه | چې اواز کاچنـــگ اونی |
| بیا به تـــیر ساعت رانه شي | آه ارمان ارمـــان هی هی |
| ددنیا ژونـــدون هم ښـــه دی | که تر تله همـــیش وای |
| چې تر تلـــه همیـــش نه دی | نور یې وگڼـــه لاشي |
| ډیر مین یې وبلـــه تیر کړل | فلک نـــه لري زړه سوی . |

# شپاړسم څپرکی

# احمد شاه درانی

دافغانانو تاریخ چې سرې راوسپړي داسې پیښې او چارې پکې ښکاري چې له بل هیچا سره مقایسه کیدای نه شي، موږ تاسې خوولیدل. الفنستون داسې لیکي چې پښتانه دقبیلوي کامنویلتې په شان دي چې هر فاتح ته لښکر جوړوي او دخپلو متبو په زور نور امپراتورۍ ته رسوي. مګر ددې توان نه لري چې په خپل وطن کې دولت جوړ کړي. حتی دیوې کنفدراسۍ دجوړولو قابلیت هم نه لري. مګر هر پردي چې دپاچاهۍ د نیولو او جوړولو هوس کړی دی له همدغو پښتنو څخه یې ګټه اخیستې ده او یو شمیر له همدغو پښتنو څخه په پردۍ خاوره کې دپاچاهۍ پر جوړولو بریالي شوي دي. دمثال په توګه ځینو پښتنو په شمالي هندوستان کې کلونه کلونه پاچاهي کړې ده.

دهند په تاريخ کې درې واړو خلجيانو ، لوديانو ، او سوريانو دډهلي پر تخت باندې د پښتنو حاکميت چلولی او له مندو ( Mandu ) څخه ناربادا Nar badda ته نږدې بيا تر بنګال پورې ټولو د پښتنو متابعت کاوه.

دډهلي ټول پښتانه حاکمان په ختمه غلجي وو. په عين وخت کې دلرې پښتونخوا پښتنو په تيره بيا د هسکو سيمو او سيدونکو دامپراتورۍ تسلط پر ضد تر پايه مقاومت کړی او دهيڅا حاکميت يې نه دی منلی ، حتی په اوه لسمه پيړۍ کې يې ، مغولو دزيات طاقت په وخت کې هم خپله آزادي ساتلې وه.

په دې وخت کې چې دا تلسمې پيړۍ پيل ته رسيږو کابل لاهم ددهلي مغولو امپراتورۍ پورې تړلی او اورنګ زيب لاژوندی او پر تخت ناست و. کندهار پر ۱٦٤۹ کال شاه جهان له لاسه ورکړ او دهند خواته دصفويانو وروستی سرحدي ښار بلل کيده که څه هم مغولو ډيرې هڅې وکړې چې ويې نيسی خو بريالي شول. دپېښور وادۍ او د روه غرونه دسليمان دغرو او داباسين تر منځ سيمې په نامه سره دمغولو تر حاکميت لاندې وې. خو عملاً يې پر خلکو نفوذ نه درلود او دغرو خلکو خو پوره ازادي درلوده او دمغولو دمرکزي حکومت اطاعت يې نه کاوه. حتی لويې لارې او ارتباطي کرښې چې له خيبر او نورو سرحدي سيمو څخه تيريدې په مسلسله توګه تر فشار لاندې وې او لارې به نيول کيدې . ماليې او ټکس يوازې دسړکونو او لويو لارو په اوږدو کې له موجودو کليو څخه اخيستل کيدل. پېښور هم تش په نامه دکابل ولايت پورې تړلی و او دهغه مرستيال به تل په پېښور کې و.

پر ۱۷۰۷ کال اورنګ زيب مړ شو. پر ۱۷۰۸ کال دسکانو لسم او وروستي « ګورو » چې ګوروګوبيند نوميده له منځه ولاړ او دآسانو ديوه

پښتانه سوداګر زامنو دخپل پلار دوژنې په غچ کې له منځه یووړ. پر ۱۷۰۷ کال دغلجیو مشر حاجي میرویس خان په کندهار کې دصفویانو پر ضد راپاڅیده . په دغو دوو کالو کې داسلام دوه ډیرې غټې امپراتورۍ دهند دمغولو او دایران دصفویانو امپراتورۍ مخ په زوال شوې . دایران ختیز هیوادونه ددغو امپراتوریو تر منځ ددوو پیړیو لپاره ویشل شوي او ښکته پورته شوي وو . ددواړو امپراتوریو سرحدي ولایتونه ټوټې ټوټې شوي وو . په دې مینځ کې دوه نوي هیوادونه راپیدا شول چې یو یې افغانستان او بل یې دسکانو سلطنت و. بالاخره افغانانو په خپل هیواد کې دولت جوړ کړ .

له اسلام څخه دمخه زمانه کې ساکانو او کوشانیانو په پارس کې قدرت تر لاسه کړ او ننني افغانستان هم ددوی په قلمرو کې شامل و . مګر له ۱۰۰۰ میلادي څخه وروسته افغانستان ( له هرات څخه تر اباسین پورې ) هیشه دترکانو او ترکي مغولو دامپراتورۍ یوه برخه پاتې شوی او همیشه دهند او پارس تر منځ ویشل شوی و . دلومړي ځل لپاره دمیرویس خان قیام په کندهار کې دراتلونکي مستقل هیواد افغانستان لپاره دبنسټ ډبره شوه . لکه څرنګه چې په ډهلي کې غلجې پښتنو پاچاهي کوله ، دلته هم دغلجي پښتنو له خوا قیام پیل شو .

داد پارس ریکارد او ثبت نه دی . لکه چې تر داسلام د مخه دسرحد سیمې بر خ لیک دایران او د دجلې دغاړې پورې له وقایعو سره تړلی و . په اتلسمه پیړۍ کې هم دا ډول کیسه وه . ځکه چې دمیرویس کیسه له نادر شاه افشار سره غوټه کیږي او نادر شاه هغه څوک دی چې دایران تاج او تخت یې غصب کړی ؤ او دافغانستان دراني امپراتورۍ په حقیقت کې دنادر شاه په دربار کې دودې په حال کې وه . داد درانیانو دپښنو تاریخ هم نه دی ، خو په دې باید

پوه شو چې د درانیانو له تاریخ څخه پرته د روه د پېښو او واقعاتو پوهیدنه ممکنه نه ده . درانیانو پر دې سیمه باندې تر اباسین پورې حتی له اباسین آخوا تر ډهلي پورې حکومت کړی دی ،هغه فشار چې په دې سیمه کې پرنړیوالو سیا ستونو باندې اغیزه ښیي حتی نن ورځ هم دهغو قوتونو د تحرک نتیجه ده چې د صفویانو او مغولیانو دسقوط په نتیجه کې په اتلسمه پیړۍ کې دلته پر کار لویدلي وو .

میرویس خان په ختمه هوتک غلجي او ډیر غښتلی جنګیالی و چې د کندهار ښار ته نیږدې یې استوګنه کوله . ده د پارس د حاکم پر ضد پاڅون وکړ . دا سړی چې ډیر ظالم او خونخوار ګرجستانی ( Georgian ) و د افغانانو له خوا د ګرګین په نامه یادیده ، دافغانانو په تاریخ کې ډیر ظالم او مستبد حاکم یادشوی دی او تر ستالین څخه لا دی زیات منفورو. میرویس خان ډیر هوښیار سړی و . دچال ، فریب ، تدبیر او زور په یو ځای کولو سره یې ګرګین له پښو وغورځاوه او دده له وژلو سره یې سم کندهار ونیوه . دقدرت تر نیولو دمخه یې له صفوي پاچا سره ملاقات وکړ او دصفوي دربار توپلې کمزورۍ او درژیم دسقوط نښې نښانې یې ځانته څرګندې کړې وې . میرویس خان او دده زوی میر محمود دصفوي دربار پر هر څه پوه شول . له هماغه وخت څخه دا دود پاتې شوی دی چې افغانان، ایرانیان فساد پیشه ګڼي او دوی افغانان زشت او ترخه شمیري .

دمیرویس خان له مړینې ( ۱۷۱۵م ) څخه وروسته دقدرت نیولو لپاره کورنۍ شخړه پیل شوه . عبدالغزیز دمیرویس خان ورور او محمود دمیرویس خان زوی و ، دواړو دقدرت لپاره هڅې کړې ، په نتیجه کې پر ۱۷۱۷ کال عبدالعزیز خان دخپل وراره محمود خان له خوا ووژل شو او دا شخړه پایته

ورسیده .

د تره له وژلو څخه وروسته محمود خان خپل غلجي قوم راټول کړ او پر پارس باندې يې يرغل وکړ . پر ۱۷۲۰ کال يې کرمان ونيو او پر ۱۷۲۲ کال يې د صفويانو پلازمېنه اصفهان ترمحاصرې لاندې راوسته او بيا يې ډېر وينوله تويولو څخه وروسته لاندې کړ . شاه طهماسپ يې اسير و نيوه . محمود خان هغه څه وکړل لکه چې دويم الغ بيگ د يوسفزو په مقابل کې په کابل کې کړي وو . دی پوهيده چې ايرانيان يوازې دبرچې په زور تابع کيدل او بله لاره نه وه . نو ده ميلمستيا جوړه کړه او د اصفهان مخور يې ټول دخپل بري دجشن په نامه ميلمستيا ته راوبلل . ټول ۱۱٤ تنه راغلل او غلجي په شاهي باغ کې شاوخوا ځای پر ځای شوي وو . دلته د ميلستيا په ځای ټول له تيغه تير شول او يو هم ژوندی پاتې نه شو .

قدرت طلبي او انسان وژنې پر ده باندې زيات تاثير وکړ او د ډهلي پاچا علاوالدين خلجي په شان ظالم طبعيت انسان ور څخه جوړ شو . محمود له ورو - روژنې څخه خوند اخيست او حتی پر خپل ټبر او قبيلې يې هم مخ راواړاوه . هغوی دده دهر ډول ظلم او تعدی تحمل کنوله خوله قوم سره يې د خيانت زغم نه شو کولای . دادده پای و او دده سر يې وځړاوه او دده تره زوی اشرف خان پاچا شو . اشرف خان دخپل پلار په غچ اخيستلو سره د قوم مشر توب په غاړه واخيست . اشرف خان ډير تکړه او هوښيار جنگيالی و . د ترکيې عثماني امپراتوري غوښتل چې د صفويانو دسقوط په نتيجه کې پارس ونيسي ، مگر اشرف خان يې مخه ونيوله ، او دده دمتانت او ښه سياست په نتيجه کې پر ۱۷۲۷ کال پارس باندې دده حکومت د ترکانو له خوا په رسميت وپيژندل شو .

غلجي په جګړو کې غښتلي دي . همیشه جګړه ګټې خو حکومت نه شي کولای . دوی دنړۍ یو ډیر لرغوني تمدن دخپل قلمرو په برخه کړ خو دهغه داداري سیاست یې نه وزده . نادر قلي چې دافشار و دقبیلې ترکمن و ، دافغانانو له کمزوري سیاست څخه یې ګټه واخیسته او دپارس خلک یې پر ځان راټول کړل . پر ۱۷۳۰ کال اشرف خان په دوو سختو جګړو کې ماتې وخوړه . یوه جګړه په « مهماندوست » او بله جګړه شیراز ته نږدې په « زرغون » کې وشوه . بالاخره دغلجیو د کورنیو رقابتونو او غچ اخیستلو په نتیجه کې دی دتېښتې په حال کې دخپل تره زوی حسین له خوا ووژل شو . شاه حسین تر ۱۷۳۸ پورې دکندهار پاچا و . کله چې نادر شاه افشار پر هند یرغل کاوه لومړی یې کندهار سقوط کړ . افغانان پخپله داکورنۍ دایران پاچاهان نه بولي او یوازې د « میر » خطاب ورته کوي .

په داسې حال کې چې غلجیو یوه غیر منظمه لاره نیولې وه ، یوه بله افغاني قبیله چې ابدالیان نومیدل دایرانیانو دمخ په ځوړ حالت څخه په ګټې اخیستې سره دمشهد او هرات تر مینځ سیمو کې په پوره فعالیت لاس پورې کړی و . ابدالیان چې دشمیر ، ځمکې او شتمنۍ له مخې بنایي له غلجیو سره مساوي او حتی په مخ کې وي . لومړی ځل دلوی شاه عباس (۱۵۸۷-۱۶۲۹) په وخت کې یاد شوي دي . ددوی مشر ملک سدو دشاه عباس له خوا دکندهار دسیمې مشر ټاکل شوی و . اوس دصفویانو او نادر شاه افشار له سقوط څخه وروسته یو ځل بیا ځلیږي . تر ټولو افغاني قبیلو څخه دوی زیات دغرب خواته مایل وو او له پارس سره په نږدې اړیکو کې وو . هم دادلیل و چې مشرانو یې زیاتره دایرانیانو لباس اغوستلو او دایرانیانو خوی او عادت یې درلود . سره له دې هم دغلجیو په شان یې ایرانیان

« ښځه نوکې » بلل . دابدالیانو له دوی سره اړیکې دو مره ګډ شوي وو چې حتی خپله ژبه پښتو یې هم هیره کړې وه او په پاړسي به غږیدل ، کله به چې په پښتو غږیدل نو په پسته لهجه به غږیدل چې ددوی نیکه ګانو څخه ورته میراث پاتې شوې وه . مخکې مو دالفنستون تعریف لیدلی و . پر ۱۸۰۹ کال کله چې ده ابدالیان لیدلي وو دوی یې له لرغونو هیرودوتیانو سره دسګارتیوي په باب مقایسه کړي وو . دهخامنشیانو په نقشه کې دسګارتیوی ( Sagartioi ) مرقعیت روښانه نه وخوښایي د آریا ( Aria ) په ایالت کې له هرات سره نږدې کوم چیرته وي ، چې تقریباً دابدالیانو ننني سیمه ده چې له کندهار څخه تر ګرشک او فراه څخه ترهرات پورې سیمه ده ، دهیرودوت دسګارتیوي غوندې ، ابدالیان په پاړسي خبرې کوي او په لباس کې نیم پاړسیوان او نیم افغان دي .

دمحمدزمان خان او حاجي جمال خان تر مشرۍ لاندې ابدالیانو هم په یوه وخت کې مشهد له ایرانیانو څخه نیولی و . هغه وخت نادر له غلجیو سره په جنوب کې ډیر مصروف واو ددې فرصت یې نه درلود چې له ابدالیانو سره څه عمل وکړي . مګر پر ۱۷۲۹ کال له څلورو خونړیو جګړو څخه وروسته بریالی شو چې شیراز ته نږدې غلجي اشرف ته ماتې ورکړي . داشرف له ماتې څخه یې وروسته ابدالیانو ته مخه کړه او له سختو جګړو څخه وروسته یې هرات خواته په شاکړل او هرات یې لومړی تر محاصرې لاندې ونیو او بیا یې پر ۱۷۳۲ کال تسلیم کړ . دري واره یې له ابدالیانو سره دسولې تړون وکړ . مګر ابدالیانو په مناسب فرصت کې پر نادر شاه افشار باندې یرغل وکړ ، خو ماتې یې وخوړه ،نادرشاه له دوی سره ډاوسیلې نښه کار واخیست او سپکاوی یې ونه کړ . ښایي نادر به فکر کړی وي چې دابدالیانو نیکه ګانو له

شاه عباس سره صادقانه خدمت کاوه . او ددوی ا ړیکي یې ددوستۍ ا ړیکي بلل . نادر ته ددوی باتوري او شجاعت ثابت و ، نو ځکه یې دوی ځانته جذب کړل او په خپله اردو کې یې داخل کړل. نادر هڅه کوله چې دابدالیانو زړونه وساتي ، په دې توګه ددې کار په تر سره کولو سره یې زیات سیاسي بری وموند . ددوی اعتماد یې تر لاسه کړ او ددوی په توره یې زیات فتوحات وکړل او همدارنګه یې دغلجو شخړه پای ته ورسوله . ده کندهار محاصره او پر ۱۷۳۸ کال یې دهوتکو له وروستي پاچا شاه حسین څخه ونیوه . ده دلته دابدالي ملک محمد زامن ذوالفقار او احمد خان پنځلس کلن ځوان چې له غلجیو سره یې پناه اخیستې وه بیا موندل ، ددوی کړه وړه یې خوښ شول او له دوی سره یې خورا ښه رویه وکړه او مازندران ته یې واستول . ا حمد خان په کم وخت کې غښتلی ځوان شو او دافسر په توګه له نادر افشار سره یو ځای شو او د افغان اجیر وسر تیرو دقوماندان په حیث وټاکل شو . نادر افشار هر څه غضبول او شهرت یې ورځ په ورځ زیاتیده .

دافغانانو پوځ دنادر شاه افشار تکړه او غښتلی قوت و . دوی دهخامنشیانو له نه پناه کیدونکو عسکرو سره مقایسه کیدل . ابدالیان دنادر- افشار دحمایې اصلي قوت و او له بلې خوا نادر شاه افشار له غلجیو سره سختې جګړې کړې وې ، خو سره له دې هم غلجي هم دده په پوځ کې وو . داسې تخمین کیږي چې دافغانانو پوځ د ۴۰۰۰ او ۱۶۰۰۰ تر منځ و . شمیر یې هر څو مره چې وي ، وي به ، خو مهمه داده چې دا پوځ دنادر افشار نږدې ګارد او دباور وړ پوځ و ، ددغه قوت قوماندانان اته کسان ابدالیان او دوه تنه یې غلجي ملکان وو . له ټولو لوی قوماندان دعلیزیو دقبیلې ابدالي و چې نور محمد خان نومیده . دافغانانو پوځ له نادر افشار سره تر هندپورې تللی او

په ټولو جګړو کې یې برخه اخیستې ده ، په ټولو خوږ و او ترخو کې ورسره وو .
یو شمیر افغانان چې په ډهلي کې دشورشیانو له خوا وژل شوي وو ، نادر شاه افشار ډیر په غصه کړی و او دغچ لپاره یې قتل عام وکړ او دده نوم د شمالي هند په ژبو کې د قتل عام په مانا اوس هم استعمالیږي . بنایي ددوی تر ټولو لوی خدمت نادر شاه افشار ته داو چې له هند څخه دبیرته تګ په وخت کې دخیبر په دره کې داپریدیو له غلچکي برید څخه یې دده اردو له بیخي محو کیدو څخه ژغورلې وه . ایرانی نادر افشار په ډیر خطر ناک حالت کې واقع و چې دځان دخلاصون لاره یې لټوله او همدا افغانان وو چې دی یې وژغوره . سره له دې چې ډغو غرنیو جنګیالیو ته یې پر یمانه نغدې پیسی ورکړې او لاره یې ورته خلاصه کړه . له دې څخه وروسته ده افغانانو ته خاصه توجه وکړه او دده دخپلو ترکمنو دحسادت سبب شو . همدا حسادت دده دمړینې سبب شو . قزلباش ( سره سري = سورسري ) پاڅیدل او دمحمد خان قاجار له خوا نادر- شاه افشار ووژل شو . محمد خان قاجار دیوې نوې قاجاري کورنۍ دپاچاهۍ دبنسټ ډبره کیښوده .

نادر شاه افشار پر ۱۷۴۷ کال په خپله خیمه کې وژل شوی و . دابدالي پوځ قوماندان په دې وخت کې ځوان احمد خان و . کله چې له دې پیښې څخه خبر شو ، له خپلو عسکرو سره یې د شاهي کمپ پر خوا ودانګل . ددوی مخه ډیرو قزلباشو نیولې وه ،خو په ډیره میړانه احمد خان کمپ ته ننوت او په خیمه کې یې دنادر خان تنه بې سره بیا مونده چې په وینو کې لته پته وه ، دوی له نادر افشار سره صادقانه وفاداري درلوده او په دې موقع ددوی احساسات سره ګډ شوي وو . دنادر شاه په مړینه خواشیني وو او دخپلې وظیفې له مخې یې دشرمندګۍ احساس کاوه . دوی په میړانه وجنګیدل او ځانونه یې

دقزلباشو له منځ ځخه راوایستل او پر اسانو سپاره شول او مخ پر کندهار رهي شول .

کله چې احمد خان مخ پر کندهار روان شو نو په چټکتیا سره یې فکر کاوه .
نادر شاه افشار مړو ، خوده دنورو ایراني حاکمانو په شان دفارس امپراتوري ختیز ته پلنه کړې وه . کندهار له یوې پیړۍ ځخه دمخه دفارس دامپراتورۍ برخه وه او له شاه جهان ځخه یې نیولی و . مگر کله چې نادر ونیوه کابل دمغولو دامپراتورۍ یوایالت و او پېښور هم په کابل پورې تړلی و . ملتان او دیره جات هم دمغولو دامپراتورۍ برخه وه ، مگر نادر ټول ترلاسه کړي وو . دسولې په قیمت کې یې دډهلي له نیولو ځخه وروسته یې نه یوازې دطاووس مشهور تاج تر لاسه کړی و ، بلکې دکوه نور مشهور الماس یې هم له ځان سره پارس ته راوړی و . داباسین شاوخوا ټولې سیمې دپېښور په شمول نادر شاه نیولې وې . پر ټسربیره دهند دامپراتور ټولې کمزور تیاوې او نیمگړتیاوې ور ته ښرگندې وې ، احمد خان له ځان سره فکر وکړ چې دصفوي امپراتورۍ ختیزې برخې ولې و نه نیسم ؟ او دمغولو ټولې هغه سیمې چې نادر نیولې دي هم باید وساتم ، په دې مفکورې سره احمد خان دغلجیو دیوه نسل دمخه بریالیتوب او ورپسې خونړی سقوط ته هم سوچ کاوه .

لومړی ټکی خو دا و چې داحمد خان پوځ په ټوله جنوبي اسیا کې جنگیالی او نومیالی پوځ و . دویم دا چې له غرب ځخه ده ته ختیځ په گټه و او ختیزه خوا یې په اسانۍ سره ساتلې شوه . ده فکر وکړ چې په ختیځ کې له مغولو سره سرحد معلوم مول نه دي او دپارس زړه ته نیت کول بې وخته دي . دده دجاه طلبۍ مرکز پارس نه و ، امیر عبدالرحمن پخپله اتوبیو گرافي کې لیکي چې دافغانستان دپاچا په توگه داحمد شاه غوره کول خورا پر ځای

کارو. دا خبره د کابل په جریدو کې ثبت شوې ده . د پاچا کیدو کیسه داسې وه چې حاجي جمال خان بارکزي د ټولو قبیلو خانان راوغوښتل او کندهار ته نږدې د شیر سرخ په زیارت کې سره راټول شول . له هر یوه څخه پوښتنه وشوه او هر یوه خپله مفکوره بیان کړه . یو هم دې ته تیار نه و چې بل چا ته حق ورکړي هر یوه د خپلې قبیلې مشر تر ټولو مستحق شمیره . احمد تر ټولو ځوان و او وروستی له ده څخه پوښتنه وشوه . دی چوپ شو او هیڅ یې و نه ویل . د لته یو روحاني سړی چې صابر شاه نومیده د غنمو وږي سره راغی او هغه یې د احمد-خان په سر کې وټومبلو او هغه یې مشر اعلان کړ او ویې ویل چې دی یوازینی شخصیت دی چې د پاچا په حیث حکومت کولی شي . احمد خان یوازې ځلیرویشت کلن و او د قبیلو مشرانو پوسخند کاوه . مګر یوه شیبه وروسته دوی په دې فکر شول چې سدوزي د پوپلزیو یوه کمزورې پښه ده . که چیرې احمد خان سم حکومت و نه کړای شي، نورې معتبرې قبیلې کولای شي چې دی را پرځوي . ټول په دې قانع شول خپل پټوګان یې په غاړه راتاو کړل او ده ته یې بیعت ورکړ او په مرګ او ژوند سره یې ده ته خپله وفاداري اعلان کړه .

وروسته حاجي جمال خان د خپلې قبیلې په ګټه ورزیاته کړه چې وزیر باید له بارکزو څخه وي . بارکزي تر ټولو غښتلي وو او جمال خان د بارکزو د قبیلې مشرو .

احمد خان زیړیدلی رهبرو او ټول کارونه په ډیرې سادګۍ د ده په ګټه پرمخ تلل . ده ځان احمد شاه وباله او په کندهار کې یې د پاچا تاج پرسر کیښود . ده د ( دردران ) لقب غوره کړ . ده د مرغلرو غوږوالې په غوږ کوله او خوښیده یې . نو ځکه دا لقب یې خوښ کړ . تردې وروسته د ابدالیانو کورنۍ په دراني کورنۍ شهرت وموند . دیوې پیښې په راتلو سره د ده پښه لا نوره ټینګه شوه

او د پیښو لیکونکي دا پیښه د ده ښې طالع بولي . داسې ویل کیږي کله چې کندهار ته روان و په لاره کې له ده سره د نادر شاه افشار یو لوی کاروان مخامخ شو چې په خزانو او غنیمت مالونو بارو . حتی د کوه نور الماس هم په دې کاروان کې و . دا کاروان احمد شاه راوګرځاوه او د خپل نوي دولت د بنسټ پخولو لپاره یې یو اقتصادي بیز شو . په دې توګه شاهي خزانه وار له واره ډکه شوه او پر خپل تخت کښېناسته یې هم تجلیل کړل . که څه هم په دې هکله څه نه دي ویل شوي خو دا څرګنده ده چې خزانه تر ډېر تېنګ امنیت لاندې بدرګه کیده او ډېر زیات احتمال شته چې امنیتي قوت به یې هم افغانان وو او دا امکان نه لري چې د نادر په شان حریص پاچا دې خپله خزانه بې بدرګې راوغواړي او دښتې او بیابانو نه دې ولېږي . سربېره پر دې د هند له فتحې څخه اته کاله تیر شوي وو . دا ټوله پیښه یوه قبیلوي واقعه وه . دلته د وفادارۍ سوال را منځته کیږي . قبیلوي وفاداري د ملګرتیا او مینې سرحد ته رسیږي . د دې خلکو زړونه که څوک تر لاسه کړای شي بیا تر مرګ پورې وفادار پاتې کیږي . افغانان همیشه پر خپل هوډ ولاړ خلک دي ، خو کله کله چې د دوی ځانګړې ګټې په خطر کې وي بیا د چا پراوئه نه ساتي ، کله چې یې مشر لسرې شي ، بیا نو دوی فقط ځانګړې ګټه ګوري . احمد شاه کله چې خزانه راوګرځوله دا ثابته وه چې د دوی صمیمي دوست نادر شاه افشار ژوندی نه و . په دې عمل سره ټولو ده ته شاباشي ووایه او دده دا کارې د سیاسې پوهې یوه نښه وبلله . دا عمل بریالی شو او په دې کې شک نه شته چې احمد شاه دا عمل د عملي سیاست له مخې تر سره کړی و . دا یو تصادفي کار نه و چې جنګیالیو تر سره کړی وي .

احمد شاه د ۲۶ کالو ( ۱۷٤۷-۱۷۷۳ ) پاچاهۍ په دوره کې اته واره له

اباسین څخه تیر شو ، پنجاب یې تر ډهلي پورې گزکړ . دده دوه لومړي سفرونه
دپاچاهۍ په اولو دوو کالو کې وشول چې دمغولو څخه د پښتنور اونورو
ماورای سند سیمو رسمي پیژندنه دافغانستان په خاورې پورې تړل ومني ،
دده د ۱۷۵۲ لښکر کشي دزیاتې خاورې نیولو لپاره وه . ملتان او لاهور یې
دافغانستان دامپراتورۍ برخه وبلله او غربي پنجاب یې دامپراتورۍ جز
وباله او دننني غربي پاکستان سرحد آخواهې دسند شاوخوا سرحدي حدود
تعین کړل . درانیانو په دې وخت کې کشمیر هم خپل کړ ، چې د کشمیر په
نیولو کې یوسفزو اود پښنور شاو خوا پښتنو زیاته مرسته وکړه . له هغې
زمانې څخه ترنن پورې افغانان داښکلې سیمه دخپل وطن نه بیلیدونکې
برخه بولي . غربي افغانانو ته داسیمه ډیره لرې ښکاریده او ددوی مینه
دخراسان خواته په زیاتیدو وه . مگر ختیز افغانان او کرلانۍ قبیلې کشمیر
خپله ناوې بولي او په دې هکله لا اوس هم دمینې په سترگه ورته گوري خو
بیا هم خپل کور ورته ډیر گران دی ، دکشمیر دمینې په نوم پښتانه یوډیر عام
متل لري .« هر چاته خپل وطن کشمیر دی . »

په ۱۷٦۱ کې احمد شاه دمیاشتو میاشتو اوږدو جنگونو په لړ کې دډهلي
۵۰ میله شمال ته په پاني پت کې دمرهټه کنفدرسۍ ته سخته ماتې ورکړه او
ټول لښکر یې تارومار کړ . ددې جگړې په هکله په تاریخ کې تل یادونه شوې
ده ځکه چې داپریکونې جنگ و چې دشمال خواته یې دمرهټه دپراختیا
مخنیوی کړی دی او په نتیجه کې انگریزان په کرار کرار دډهلي خواته راغلل
او بیا یې دپنجاب خواته لارپیدا کړه . داحمد شاه بابا جگړې باید په پراخ نظر
وکتل شي ، په حقیقت کې هر څه چې وشول هغه ټول دمغولو دورکیدو سبب
شول . دمغولو ورکیدل دنادر شاه افشار له وخت څخه راپیل شول او په نتیجه

کې پنجاب په انارشۍ بدل شو ، ددې انارشۍ له منځه نوی قوت راووت او هغه دسکانو قوت و . احمد شاه بابا لاهور ، ملتان ، ډېره جات او پېښور ته نوی استقامت ورکړ او هغه داچې داځایونه یې له ختیځ څخه بیل او په غرب پورې یې وتړل . تر دا اسلام دمخه او همدارنګه دمحمود غزنوی په وخت کې هم دا ځایونه غرب ته منسوب وو . مګر ترمحمود وروسته دپورتنیو سیمو اړیکې همیشه له ډهلي سره وو . دا یقیني ده چې داډول فکر په شعوري ډول پر دې ولاړ و چې داسیمې په غرب پورې تړلي وي او دغربي پاکستان احساس هم په دې شان دی ، په بل عبارت سره د ۱۹٤۷ کال بیلتون له هند څخه یوازې ددین پر اساس نه و ، بلکې د تاریخې پس منظر له مخې هم و . له سکانو سره د جګړو او مبارزو ډېره اوږده دوره تیره شوه ترهغه چې پریکړه عملي شوه . داپریکړه ددوو پیړیو دریښو او تاریخي پس منظر له مخې وشوه .

هغه وخت چې احمد شاه دمرهټه په ماتې له پانې پت څخه راستون شو او کابل ته راوسید ، سکانو سرپورته کړ او قوت یې وموند . پنجاب باندې همیشه اردوګانې تیریدې خو شعاته یې منظم اداري سیستم نه پریښود . دسکانو مشرانو او دهرې توپې (مسل Misl ) ارباب کلکې کلاګانې جوړولې چې له هغه ځای څخه پنجاب دفاع کړي او داحمد شاه استازي رد کړي . ددوی تر منځ یو هم رنجیت سنګهه نیکه چرات سنګه Charat Singh و . هغه وخت دسکانو قار په نظامي قوت بدل شو ، چې پر ۱۷۵۷ کال شهزاده تیمور امر تسر دسکانو مقدس ښار ونیوه .

داحمدشاه وروستۍ درې جګړې (۱۷٦۲-۱۷٦۷) دهمدې لپاره وې چې سکان مات کړي او ترکنترول لاندې یې راولي . دوی مات شول ، دامرتسر معبد یو ځل بیا ویجاړ شو . دسکانو دهغو عملونو پر ضد چې دجوماتونو

ورانول وو ددوی معبد ویجاړ او مردار شو . مګر احمد شاه هلته پخپله ډیر پاتې نه شو . دده روغتیا ښه نه وه او سکان هم کرار کښېناستل او دشیرشاه مشهوره کلا «روهتاس » یې ونیوله او تر راول پنډۍ پورې یې شمالي برخې ونیولې .

ددغو نظامي عملیاتو په دوران کې احمد شاه همیشه په پېښور او شاو خوا سیمو کې ربړونه وګالل . کنډوونه او کوتلونه به همیشه نیول شوي وو دارتباط لارې او کرښې همیشه ویجاړیدې او دوی به له جنجال سره مخامخ وو. داډول کارونه دنادرشاه دزمانې په شان همیشه جاري وو. الفنستون لیکي : احمد شاه بابا ختیز و قبیلو ته د« بردراني » Bar Doranis لقب ورکړ. مګر دانوم نن ورځ دچا له خولې نه دی اوریدل شوی . دافغاني اصلیت او ریښې د پرستیژ له مخې احمد شاه بابا ددې سیمې له خلکو څخه ګټه تر لاسه کړه . هغوی یې په خپل پوځ کې شامل کړل او په دې توګه یې ددوی دخطر مخ نیوی وکړ . مګر دغرو اوسیدونکي کرلاني ، احمد شاه چې ډیر قوی پښتون پاچا وهم تابع نه کړای شول . حتی دسوات سیمه هم پوره تابع نه وه . احمد شاه دبابر په شان دقبیلو دخانانو دلونو او خویندو دواده لپاره هم تیارو ، چې قبیلې په خپلوۍ سره تابع کړي . مګر اپریدو او شینوارو ته یې حق العبور ورکاوه . ډیرو یوسفزو ، اورکزو . خلیلو او مومندو مشرانو ته یې جاګیرونه ورکړي وو. هرې قبیلې ته یې دنظامي قوت دازمېښت لپاره برخه معلومه کړې وه . دوزیرو او مسعودو خلک حتی نن ورځ هم داحمد شاه په لښکر و کې خپل قوتونه په یاد لري . ددوی لښکر په دې ډول وو :

احمد زي وزیر -- ۳۰۰۰۰ تنه

اتمانزي وزیر -- ۳۰۰۰۰ تنه

| | | |
|---|---|---|
| مسعود | -- | ۱۸۰۰۰ تنه |
| بیتني | -- | ۱۲۰۰۰ تنه |
| داوړ | -- | ۱۲۰۰۰ تنه |
| ټول | -- | ۱۰۲۰۰۰ تنه . |

حتی نن ورځ هم د جګړ و لپاره د تیاري په مقصد هماغه پخوانی شمیر اساس بولي . مګر په نني حساب سره د مسعودو شمیر باید دوه برابره تخمین شي چې وکولای شو رښتیني عدد ته ورنږدې شو . د احمد دلنډې پیژند ګلوی په خاطر د « سکانو » د مورخ کنینګهم ( Cunningham ) لیکنه رااخلو . هغه احمد شاه د روم د امپراتور ګالبا Galba سره پر تله کوي او د امپراتور په هکله د تاسیتوس Tacitus لنډه مقاله (اپیګرام Epigram ) منعکسوي. هغه ته دافغان نابغه خطاب کوي . کلک سړی او د ټینګې ارادې خاوندو او په جګړه کې فاتح ګڼل شوی مګر د امپراتورۍ جوړولو وس یې نه درلود . ولایتونه به یې یو په بل پسې نیول او له لاسه به یې ورکول او بیا به یې نیول ، د پنجاب د سکانو او خالصه تحریک له نظره بیخي پر ځای خبره ده . مګر احمدشاه لوړ شخصیت او د توان وړ پښتون پاچا و . ده د پښتنو حکومت جوړ کړ او تر نن پورې یې ژوندی وساته.

د سلطنت واګې یې په کورنۍ کې پاتې شوې ، پوپلزي دراني حتی ده یورنډ د کرښې په دواړو غاړو کې د دې ویاړ ساتي ، حتی د غربي پاکستان د جوړیدو مفکوره له ده څخه اخیستل شوې وه . احمد شاه یو متین او د کلکې ارادې نابغه و . ده د قبیلو او سړیو په اداره کې خاص مهارت درلود . که څه هم تکړه قوماندان او د جګړه ییز قابلیت درلودونکی و خو تل د سولې قهرمان ، نرم او د عفوې خاوند و . دی په روغه ، جوړه او پخلاینه مین و او پخلاینه یې تر

جگړې بنه بلله . دی داسې پاچا و چې ټول کارونه یې د درانیو او غلجیو مشرانو په مشوره کول . الفنستون لیکي چې ده له خانانو او ملکانو سره هماغه پخوانی رویه ساتلې وه چې تر پاچا هۍ د مخه یې درلوده . ځان یې تر نورو لوړنه باله . احمد شاه ډیر ښه کرکتر درلود . پرهیزگار او متقي سړی و . ده په پښتو ژبه ډیر شعرونه ولیکل . ده دیوه نیک او خیر خواه او صالح سړي کرکتر درلود .

شیر شاه د پښتنو په تاریخ کې لوړ مقام لري . د حکومت او اداري اصول یې طرح او پلي کړل . خوسره له ټولو غوره صفاتو د احمدشاه بابا د انسان دوستانه او له مهربانیو ډک زړه یې نه درلود .

احمد شاه بابا کله چې مړ شو پنځوس کلن و . د ده مخ درد کاوه . ښایي د سرطان ناروغي به یې درلوده . د دغې ناروغۍ له کبله د اڅکزیو د « تو به دغره » په « مرغه » کې مړ شو .ده به داوړي د تود وخې شپې هلته تیرولې . د ده قبر په کندهار کې دی او ډیر خلک زیارت ته ورځي .

د احمد شاه بابا پر ځای د ده زوی تیمور شاه پاچا شو ، تیمور شاه تر ټولو مشر نه و ، خود احمد شاه بابا غوره زوی و . دی بل ډول سړی و . تیمور شاه د نورو درانیو لوړرتبه خلکو په شان په پښتو ژبه نه پوهیده . دی پر ۱۷٤٦ کال په مشهد کې زیږیدلی و . د پلار په وخت کې یې زیاتره وخت په پنجاب کې تیر کړ . د ده له ډیر و ښځو څخه یوه هم مغولي شهزادګۍ وه . بیا له پنجاب څخه هرات ته ولاړ او د هرات والي مقرر شو . د هرات د خلکو رسمي ژبه پاړسي وه . د پاړسي ژبې په پوهیدو سره د ده ټول کړه وړه د ایرانیانو په شان وو . د ده کلتور هم له پښتنو سره توپیر درلود . ده د پښتنو او درانیو زیږوالی نه درلود او د دوی کلتور یې هم نه خوښیده . د ه پخپل دربار کې هغه څوک د منشیانو او

مامورانو په توگه مقرر کړي وو چې پارسي يې ژبه وه او په پارسي يې ليک کاوه . دپلار دوخت خانان او مشران يې په نوم ساتلي وو. ده دفترونو او ديوانونو ته بدلون ورکړ. ده قبيلوي امتيازات او قبيلوي شاهي پوځ لغوه کړ. يوازې قزل باش يې خپل باډي گاردان مقرر کړي وو. چې په « غلام شاهي » سره يادېدل . دوی ده ته وفادار وو. دده ژوندېې وساته او په پلازمېنه کې سوله چلېده مگر لرې پراته ولايتونه ورځ په ورځ نړېدل او نږدې وچې داحمدشاه بابا جوړه شوې امپراتوري ړنگه شي . دده دشلو کالو حکومت په دوره کې داحمد شاه بابا جوړې شوې امپراتورۍ نطفه لا ژوندۍ پاتې شوه . مگر پر ۱۷۹۳ کې چې تيمور شاه مړ شو په ډېر لږ وخت کې دړنگېدو نښې راڅرگندې شوې .

تيمورشاه ډېره لويه کورنۍ درلوده . ده دوۀ يشت زامن او بې شميره لوڼې درلودې ، تيمور شاه ډېرې ښځې واده کړې وې . دپلار دپاليسۍ مطابق يې له هرې قبيلې ښځه واده کړی وچې په دې ډول قبيلوي همدردي او دوستي تر لاسه کړي . دقبيلو همدردي او دوستي بايد دودونو له لارې ژور وڅېړل شي . دا مو هيره نه شي هغه شهزادگان چې له يوې مور او هغه چې له بلې مور ښځه وي بايد په پام کې ونيول شي . دا قاعده ده په ختيځ کې ميرنی ورونو هميشه دمخالف او سرسخت دښمن رول لوبولی دی ، دلته نه يوازې دميندو حسادت رول لري ، بلکې هغه ميندې چې ځوانې دي هميشه دپاچا ترنظر لاندې وي . او دهماغو ميندو زامن هم دميندو په قدم پښه ږدي او دبغاوت اړخ نيسي . دلته يو بل تکی هم شته . قبيلوي واده . څومره چې تيمور شاه فکر کاوه دده لپاره گټه ورنه و . قبيلو هم هميشه دهماغه شهزاده خوا نيوله چې ددوی خوريی کيده .

د تیمور له ډیرو زامنو څخه یو همایون و چې تر ټولو مشر د پوپلزو د قبیلې له سدوزۍ مور څخه و . د عمر په لحاظ او د مور له خواتر ټولو مستحق و چې پاچا شي مگر دی په دا موقع په کندهار کې نه و . بل یې محمود وچې هغه هم له پوپلزۍ مور څخه و مگر سدوزۍ نه ، بلکې له کومې بلې پلرینې څخه و . دی هم نه ویلکې په هرات کې و . بل یې عباس و چې مور او ماماخیل یې دومره مشهور نه وو او د پلار د مړینې په وخت کې په پېښور کې و . عباس چندان شهرت او تسلط نه درلود . وروسته زمان او شجاع دواړه د یوې مور زامن دي چې د یوسفزو له قبیلې څخه وو او د تیمور شاه تر ټولو قدرمنه میرمن وه . د پاچا گردۍ ( سپینه کودتا ) په موقع شاه شجاع د پېښور له قبیلو څخه یوې قبیلې ته پنا وړې وه او په دې ترتیب د یادولو وړ شاهزاده گڼل کیده .

تیمور د یوسفزۍ ملکې سره کوم خاص اړیکي درلودل ، یو دلیل یې هم دادی چې له درانیو سره د یوسفزیو ډیر مضبوط اړیکي وو . او د ده دامینه له سیاسي اړخ څخه هم خالي نه وه .

راورټي له اصلي منابعو څخه نقل کوي او دا حقیقت څرگندوي چې اصلاً یوسفزي له دراني حکومت څخه مطلق آزاد وو او دوی د عسکرو دورکولو مکلفیت نه درلود او دوی هیچاته هم مسؤل نه وو او یوازې خپلو ملکانو ته یې مسوولیت درلود . ( د یوسفزویو څو کورونه دا باسین ختیځ ته په چچهه Chachh کې اوسیدل او له اصل یوسفزو څخه لرې وو ) . د « سمې » مندړ هم د یوسفزو په شان وو . نه یې مالیه ورکوله ، او نه یې بیعت کاوه . د جنگ په وخت کې به پاچا ځینې علما ورولیږل چې دوی ته واعظ وکړي او جهاد ته یې تیار کړي او څه ناڅه ځوانان جگړې ته په خوښمرزۍ سره حاضر شي ، تر ډیر و وارو یوسفزي او مندړ د شجاع او زمان د ماتې سبب شول . حال دا چې د یوسفزۍ

مور له لارې دوی دوفا دارۍ اوحمايت مکلفيت درلود .

داحمد شاه بابا پلازمېنه کندهار و . دعسکري عملياتو په وخت کې يې کله ناکله له کابل څخه استفاده کوله مگر ددې فرصت يې نه درلود چې هوساينه او تفريح وکړي . پېښور ده ته دعملياتو دټوپ تخته ، اودنظامي بيز حيثيت درلود چې دپنجاب او يانورو ځايونو عملياتو لپاره به يې ورڅخه گټه اخيستله . کله چې احمد شاه ددوبي له تودوخې څخه ځان خلاصوه نو دکويټې او کندهار تر منځ د« توبه » غروته به تلو او دغرنيو اڅکزو تر مينځ به يې شپې تيرولې او دراني پاچا به ددغو ساده او اطرافي اڅکزو سره دخوښې وخت تيراوه .

تيمور هرڅه بدل کړل . په اوړي کې يې دکابل او په ژمي کې يې له پېښور سره زياته مينه درلوده . او داپې دژمي او اوړي پلازمېنې شوې او ده له موسم سره سم حرکت کاوه . په دواړو ځايو کې يې قصرونه جوړ کړل . دکابل قصرونه دافغان ، انگريزتر لومړي جنگ پورې هم ولاړوو . له بده مرغه هغه اوس نه شته او په خاورينو کنډوالو بدل شوي دي . پخواني صنعت يې نه ښکاري . دتيمور شاه دپېښور ښکلي قصرونه او باغونه په بالاحصار کې دننه اود بالاحصار دلاندې ټول دسکانو له خوا پر ۱۸۲۳ کال ويجاړ شول.داهغه قصرونه چې شجاع پسر . ۱۸۰۹ کال منستيورات الفنستون دلته خپل حضور ته منلی و ، اوبيا الکساندربرنيس پر ۱۸۳۲ کال دا قصرونه وليدل چې دخاورو په ډيران بدل شوي وو . سکانو حتی باغونه هم له بيخه ايستلي وو او ټولې ونې او بوټې يې سوي وو . په دې نږدې وختو کې دپېښور ځينې تاريخي ځايونه بيرته ترميم شوي او ښار څه ناڅه شکل پيدا کړی دی ، ښکلي باغونه يې هرې خواته په گلانو پټ دي او يو ځل يې بيا اروپايان ځانته راجذب

کړي دي .

دسدوزايي شهزاده ګانو او سدوزايي نوم په پېښور کې نن ورځ هم په احترام سره ياديږي ، ډير سدوزايي اشراف د تيمورشاه له زامنو سره تبعيد ته ولاړل او د پاچا ګردشی له ناوړه پيښو څخه يې ځانونه وژغورل . دا خاطرې د تيمورشاه دزوی شاه شجاع په هکله تازه کيږي او خپله د تيمور په هکله څوک څه نه وايي . د يوسفزو او آپريديو تر منځ دده خاطرې ځکه بيخي ژوندۍ دي چې دده مور يوسفزۍ وه او بله داچې ده هلته پناه غوښتې وه او دميلمه په توګه يې عزت کيده .تيمور شاه په خپله د پښتو او پښتونولۍ دود مات کړ . ځکه چې د مومندو ملک ارسلاخان چې ده ته په اعتبار پناه ورووړې وه په بي ننګۍ سره دده دښمنانو ته وروسپاره او په نتيجه کې هرڅه دارسلاخان په مړينه ختم شول . د پښتنو د پت او عزت له مخې له دې څخه لويه ګناه بله نه شته . نو ځکه د تيمور شاه په تندي د بې غيرتۍ او بې ننګۍ داغ و ګنډل شو . سره له دې ارسلا په رښتيا سره بغاوت کړی و مګر د تسليميدو په صورت کې دهغه د تسليمول دهغه دښمنانو ته لويه بې غيرتي وه . .دی په دربار کې هم محاکمه کيدای شو او په هغه صورت کې به د داوطلبانه تسليميدو له کبله د مرګ د سزا ور نه بلل کيده . دا ډيره بده خبره ده چې تيمور شاه پناه اخيستونکی د مرګ په خوله کې ورکړ،له خپلې او ړې څخه د قومي دښمنيو دبار دلرې کولو لپاره يې له پښتني عزت او حرمت څخه لرې عمل وکړ. حتی دارسلا دښمنانو تمسخر کاوه او دا د بې عزتۍ کار يې د پښتنانه له شان څخه لرې شميره . تيمور شاه کله چې له پېښور څخه کابل ته راتلو سخت ناروغه شو او پر ۱۷۹۳ کال د پسرلي په موسم کې مړ شو . ده د پېښور سره ډيره مينه درلوده خو د پېښور د پښتنو په منځ کې يې د بې ننګۍ نوم پرې ايښی دی .

نوځکه چې حتی نن ورځ هم دی په بد نامه یادیږي او خلک یې وایي چې هغه کله پښتون و هغه خو یو پارسیوان و . مګر په دې کې هم شک نه شته چې د پښور ښار په پایتخت کولو سره ډیره اوږده کیسه پیل شوې چې دده په مړینې سره پای ته ورسیده .دننني عصري افغانستان د توټې توټې کیدو تاریخ هم له ده څخه پیل کیږي .

دده له مړینې څخه وروسته د تیمور شاه د یوسفزی قدرمنې ملکې زوی زمان میرزا د شاه زمان په نوم پاچا شو .

# اوه لسم څپرکی

## سدوزیان او مونتستیوارت الفنستون

داحمد شاه او تیمور شاه په زمانه کې دګورو ګوبیند پلویانو ورځ په ورځ قوت موندہ او په پنجاب کې یې حرکت پیل کړی و . پر ۱۷۹۳ کال کله چې تیمور مړشو د پنجاب ایالت ازادي او استقلالیت تر هندبحر پورې په درانیو پورې تړلی او لاهوریې مرکز و . مګر عملاً دکابل تسلط تر اباسین پورې و . لاهور اوراول پنډۍ دسکانو په لاس کې وو او د سرحد کنترول دسکانو دخالصه تحریک دخانانو په قبضه کې و او مشرتوب یې درنجت سنګهـ دپلار موهانسنګهـ په لاس کې و او تر «حسن ابدال» او «مرګا له غابني» پورې یې کنترول کاوه . دروهتاس څنډوته نږدې دسکانودرمسال Dharmsala نخښې نښانې ددې ښکارندوی دي چې سکانو دمالګې دغرونو (Salt Range) په سیمه کې څومره تسلط درلود . سره له دې داباسین غرب ته دسکانو دخطراحساس نه کیده . پېښور او دیره جات دافغانانو خاوره

وه اود درانیانو حکومت په کې چلیده . په دې حاصل خیزه سیمه کې دهارو (Haro) دسیند تر غاړې پورې داړې او دداړوضد حرکات جاري وو . رنجیت سنګهـ چې لادیارلس کلن هلک و په دې جګړو کې په وینو سور شوی و .

کله چې شاه زمان په کابل کې پاچا شو . درباریانو همیشه داویل چې : ویاړ په دې کې دی چې دخپل نیکه پر پله قدم کښیږدي او پنجاب تصفیه کړي. احمد شاه یورښتینی جنګیالی و او خپله میړانه یې ثابته کړې وه . د محمود غزنوي چې په بُت ماتوونکي یې شهرت موندلی و لوی لوی کارونه دنوې بُت پرستۍ په وسیله په دوړو پټ شوي وو. په امر تسر کې معبد بیا فعال شوی و.

دوی دې ته فکر نه کاوه چې د اسلام د توحید تر کلمې لاندې سکان دځان د تباهۍ بندوبست کوي . دهندوستان مسلمان شهزادګان هم دمرهټه تر زیات فشار لاندې وو . آصف الدوله د اوډ (Oudh) شهزاده وزیر دحرکت په راس کې هم درانی پاچا دې ته هڅاوه چې پر پنجاب یرغل وکړي . دهند مسلمانان دمرهټه له ظلم څخه آزاد کړي او د اسلام دمقدس دین نوی قهرمان له ځانه جوړ کړي .

شاه زمان ټولې خبرې واوریدې ، مګر د احمد شاه بابا له زمانې څخه وروسته د اباسین دجلګې موقف ډیر بدلون موندلی و. اوس یې له دې چې هلته دوامدار عملیات دوام ولري او څه قوت همیشه پروت وي له پنجاب څخه څه ګټه نه تر لاسه کیده . زمان په دې پوه نه و چې ډهلي کې څه نه شته او خزانې یې ټولې نادرشاه افشار وړې وې. همدارنګه په پنجاب کې دده نیکه اته واره عملیات کړي وو او دلاهور پاتې شته یې غنیمت کړي وو. ددوی دایمي هدف څه شی و - که دپنجاب نیول او ځپل یې هدف و خو دا په دې ډول چې ورشه اوځینې راووځه نه ترسره کیده . داپلان د احمد شاه په مقابل کې سکانو په

کاراچولي و . کله به چې داحمد شاه لښکر ي پنجاب ته ورسيدې ، سکان به
لاد مخه وتلي وو او کله به چې هغه بیرته ستون شو دوی به بیرته خپلو کورو
ته راغلل . که زمان داکار وکړي نو په حقیقت کې د خپل نیکه د عملیاتو
تکرار به وي . که چیرې سدوزی پاچا غواړي چې په رښتیا سره پنجاب د تل
لپاره تر کنترول لاندې راولي نو باید چې خپل پایتخت له کابل څخه لاهور ته
بدل کړي او هلته دایمي پاتې شي .
ددې پالیسۍ تطبیق دشاه زمان له ظرفیت څخه لوړه مفکوره وه . ده
یوازې داليده چې سکان په روهتاس کې زیږ بیرغونه رپوي او د حسن ابدال بې
حرمتي کوي . نودی ، زړه نازړه پر ۱۷۹۵ کال له اباسین څخه تیر شو .
په دې لومړنۍ لښکر کشۍ کې یوازې قانع و چې په حسن ابدال کې
دسکانو معبدونه ونړوي او د روهتاس کلاتر محاصره لاندې ونیسي . دی
وروسته مجبور شو چې ژر کابل ته راستون شي ځکه چې دده میرني
ورور محمود له هرات څخه دده پرضد حرکت کړی و . پر ۱۷۹۷ او بیا پر
۱۷۹۸ کال ده هڅه وکړه چې په لاهور کې خپل تسلط وساتي او په دواړو وارو
کې دقصور Kasur دخویشګي Khweshgi مشر نظام الدین خان له ده
سره پوره مرسته وکړه . دا پښتون دده یو منځګړی قوماندان و چې له سک
مشرانو سره درنجیت سنگهه په شمول جدي عمل وکړي . نظام الدین هوښیار
او زیرک سړی و . ده فکر کاوه چې دشاه زمان لښکر کشي داحمد شاه په
مقایسه څنګه کیدای شي چې دایمې شکل غوره کړي اودومره قوي هم نه
دی ، ده فکر وکړ ښه به داوي چې له ګاونډیانو سره په راتلونکي کې په
دښمنۍ وانه وړي ، نوځکه یې له سکانو سره په هوښیارۍ عمل کاوه . چې په
راتلونکي کې دی دسکانو ښکارنه شي . کنینګهم Cunningham ددې
نتیجه ښه بیان کړې ده : څه سپک غونډې جنګونه وشول مګر محمود چې
دپارس حمایت ترلاسه کړی و ، دابدنصیبه پاچا دې ته مجبور کړ چې دغرب

خواته ولاړ شي نو ځکه يې د ۱۷۹۹ په پيل کې لاهور پرېښود . په دويمه لښکر کشۍ کې رنجيت سنگهـ نه يوازې د سک په مشرانو کې ځان او چت ومونډ بلکې پر دراني شاه باندې يې هم دا اغيزه وليده . رنجيت سنگهـ لاهور په چل سره ونيو او خلکو داسې فکر کاوه چې په قوت سره يې نيولی دی. ځرنگه چې جهلم زيات توپاني و ، شاه زمان دراندہ توپونه له سيند څخه نه شول پورې ايستلی او ملک ته يې وويل چې د توپونو مرسته به دده ډير لوی خدمت وي . څومره درانده توپونه چې ده تيار ولی شول د پاچا شاته يې ورولېږل ، مگر رنجيت سنگهـ څه چې غوښتل هغه يې تر لاسه کړل او لاهور يې ونيو .

رنجيت سنگهـ په دې ډول خپل زور او قوت تمثيل کړ او د کابل پاچا دې ته حاضر شو چې په لاهور کې سک وايسرای ومني . تر دې وروسته د پنجاب تاريخ پر مهاراجا - رنجيت سنگهـ باندې څرخيږي . دده تر مشر تابه لاندې سکانو نه يوازې د اباسين کرښه ټينگه کړه ، بلکې د ارتباط او سوداگری تولې کرښې يې په مرکزي اسيا او د اسلامي طاقت پر مخ وتړلې ، د شاه زمان ۱۷۹۹-۱۷۹۸ وروستی لښکر کشی په نتيجه کې په دې سيمه کې د مسلمانانو ۸۰۰ کلن تاريخ وتړل شو . د دغو پيړيو په موده کې د هندوستان شهزاده گان به د سليمان د غرو له شاو خوا هيواد څخه خپل لښکر جوړاوه او خپل ژوند به يې اوږدوه . کله چې د سکانو حکومت جوړ شو ، نو دا يو خنډ جوړ شو ، د هندوستان د شهزادگانو او د پښتنو د سيمو تر منځ ارتباط يې پرې کړ ، د نوې کورنی دژوندانه د ادا مې دوينې لين يې په ډهلي او لاهور کې د تل لپاره لنډ کړ . په پنجاب کې د شاه زمان هڅې نه يوازې د پنجاب د بېليدو سبب شوې بلکې په هيواد کې د ننه د دې سبب شوې چې د دراني خاندان لمر په وريځو پټ شي او د افغاني پاچا هی امپراتوری طاقت کمزوری شي . داسې سپينې کودتا گانې پيل شوې چې په مرکزي اسيا کې يې ساری نه و او د افغان دولت يې تر بنسته پورې ولړزاوه . دقوت د نيولو لپاره هڅې ډيرې شوې . پاچاهی

بدلیدل عادي خبره شوه خو پروسه یې پیچلې ښکاري ، مگر وروسته به هرڅه روښانه شي او په موقع سره به د ټولو مسایلو په هکله بحث وشي . سدوزیي پاچاهان تر ډیره حده پخپله په گوډاگیو بدل شوي وو او بارکزي مشرانو دوی دخپل زړه په غوښتنه څرخول .

دشاه زمان له راستنیدو څخه لا کال نه و پوره شوی چې میرني وررورمحمود را وپرځاوه او سترگې یې ځینې وایستلې . دادترکانو عادت و او افغانانو هم عملي کړ . مگر غاصب ته یې گتهه ونه کړه . محمود یوازې درې کاله په لومړي ځل پاچاهي وکړه. پر ۱۸۰۳ کال ده باندې فشار راغی چې کابل باید دشاه زمان سکني وررورشجاع ته پرېږدي . شجاع چې له یوسفزۍ مورڅخه پیدا شوی و . دسترگو په ایستلو عقیده مند نه واودایې دبري لار نه بلله . ده لومړی محمود په بالاحصار کې بندي کړ او بیا یې غرب ته تبعید کړ . محمود دهرات په شاوخوا کې اوسیده ، ترهغه چې شپږ کاله وروسته یانې پر ۱۸۰۹ کال یوځل بیا موقع په لاس ورغله اوشاه شجاع یې مخلوع کړاو پخپله بیا پاچا شو. تر۱۸۱۸ پورې په کابل کې و او ډیر بد کارونه یې وکړل . پر دغه کال کې یې دخپل لیوني او سادیست زوی کامران په غوښتنه خپل بارکزی وزیر ، فتح خان په ډیرو دردناکو عذابونو سره ووژه .حال داچې دده دواړه واره پاچاهي دفتح خان دزیار محصول وه . دده دغه ظالمانه وژنه په خوله نه شي راتلای ، بارکزي دوزیر فتح خان په مړینه سخت خواشینی شول او دده پر ضد یې قیام وکړ او دفتح خان یو ویشت وروڼه راپاڅیدل . دوی هغه محمدزیان دي چې په تاریخ کې وروسته په پاینده خیلو باندې مشهور شول. محمود هرات ته وتښتیده او هلته دی او کامران تر ۱۸٤۲ پورې پاتې شول او پر هرات باندې یې پوره کنترول هم نه درلود . دوی بیا دکابل او کندهار په لیدو بریالي نه شول ، پېښور خو لا پرځای پرېږده .

# دراني شاهي کورنۍ

## ۱۹۵۷ - ۱۷٤۷

### ۱ - لومړۍ کورنۍ - سدوزي پوپلزي

محمدزمان خان

احمد شاه
۱۷۷۳-۱۷٤۷

ذوالفقار

تیمورشاه
۱۷۹۳-۱۷۷۳

(۲٦ زامن)

له بلې مېرمنې څخه

شاه محمود
۱۸۰۳-۱۸۰۰
۱۸۱۸-۱۸۰۹

کامران میرزا

له یوې مېرمنې څخه

شاه شجاع
۱۸۰۹-۱۸۰۳
۱۸٤۲-۱۸۳۹

تیمور میرزا

شاه زمان
۱۸۰۰-۱۷۹۳

**نوټ:** دا لست خاص خاص شخصیتونه ښیي او د افغانستان پاچاهان په غټو تورو لیکل شوي دي.

# ۲- دویمه کورنۍ - محمدزي بارکزي

حاجي جمال خان

پاینده خان

( ۲۲ زامن )

کوندل
شیردل
(دکندهار سرداران)

دوست محمدخان
(دکابل سرداران)
۱۸۲۶-۱۸۶۳

سلطان محمدخان
( دپېښور سرداران )
دریمه کورنۍ

محمداعظم خان
مړینه ۱۸۲۳

وزیر فتح خان
مړینه ۱۸۱۸

شیرعلیخان
۱۸۶۳- ۱۸۶۵
۱۸۶۹- ۱۸۷۸

اعظم خان
۱۸۶۷- ۱۸۶۹

افضل خان
۱۸۶۵- ۱۸۶۷

عبدالرحمن
۱۸۸۱- ۱۹۰۱

وزیرمحمداکبر خان
مړینه : ۱۸٤۷

سردارمحمدایوب خان

یعقوب خان
۱۸۷۸- ۱۸۷۹

نصرالله

حبیب الله
۱۹۰۱- ۱۹۱۹

عنایت الله
۱۹۲۹ (پنځه ورځې)

امان الله خان
۱۹۱۹- ۱۹۲۸

# ۳- دریمه کورنۍ - محمدزي بارکزي

سلطان محمدخان

( ۵۰ زامن )

یحیی خان

یوسف خان

شاه ولیخان | شاه محمود خان | محمدهاشم خان | محمدعزیز خان | محمدنادر شاه

محمدنادر شاه ۱۹۲۹-۱۹۳۳

محمدظاهر شاه ۱۹۳۳-۱۹۷۳

محمدعزیز خان: نعیم خان | داود خان

که وګورو د تیمور شاه د زامنو تر منځ څلور بدلونونه رامنځته شول. لومړی شاه زمان او ورپسې محمود پاچاهان شول. بیا شاه شجاع او بیا دویم ځل محمود پاچاهان شول او بالاخره له مکملې کورنۍ څخه پاچاهي واوښته یانې له سدوزیو څخه بارکزو ته انتقال شوه. دراني امپراتوري ب لکل له منځه ولاړه او امارت پیل شو. د نولسمې پیړۍ په پیل کې څلور و بدلیدونکو پاچاهیو افغانستان ولړزاوه، رنجیت سنګهه دومره قدرت ترلاسه کړ چې د سلیمان دغرو او اباسین تر منځ د احمد شاه بابا د امپراتورۍ ټوله خاوره یې ونیوله.

حاجي جمال خان چې د ټولو بارکزو مشرو، د نادر شاه افشار په را پرځولو کې یې لویه برخه درلوده، او د ابدالیانو په مبارزه کې یې د نادر پر ضد زیاته ونډه اخیستې وه. الفنستون پر ۱۸۰۹ کال څو کاله تر هغه د مخه چې بارکزو

دسدوزو ځای ونیو ، دځینو راټول شوو معلوماتو پر اساس لیکي چې بارکزي ترپوپلزو بیخي زیات دي . (دسدوزو شاهي کورنۍ دپوپلزو یوه برخه ده ) . او دافغانانو په منځ کې اوچت ځای لري . « دوی غښتلي او جنګیالي خلک دي، اوس چې فتح خان ددوی مشر دی په ټولو چارو کې فعال رول لري او تر ټولو مخکې دی . په اوس حالت کې لوی وزیر او دولتي لوړ رتبه مامورین اکثر بارکزي دي ، دوی خپل پر مختګ دخپلې قبیلې په غښتلتوب پورې تړلی بولي . »

داچې ددرانیو قبیلوي جوړښت څه دی اوله افغان مشر سره څه اړیکې لري او دکورنیو بدلولو،پاچا ګردشۍ او داسې نورو باندې څه اغیز لري ، فعلاً ددغه کتاب له مرام څخه دباندې موضوع ده ، دهغو تفصیلات دلته نه ځاییږي ، دابه ډیره ښه وي چې افغان دولت وګورو چې په نا مستقیم ډول دسرحد پر قبیلو باندې څه اغیزه لري . دوروستیو سدوزو په شان دبارکزو مشران په تیره بیا ددوی یوه ښانګه له نږدې څخه له پښتنو سره اړیکې لري او ځانونه له پښتنو سره تړلي بولي . دااړیکې لا نن ورځ هم په درنښت کتل کیږي . نو ځکه لازمه ده چې دبارکزو مشران ټول وپیژنو . موږ او تاسو ته به څرګنده شي چې ددرانیو مستقیم طاقت له لرې کیدو څخه وروسته دوی دپښتنو په سیمه کې پر قبیلوي احساساتو باندې څومره مسلط دي . دحاجي جمال خان زوی پاینده خان دبارکزو مشر وټاکل شو او تیمور شاه ده ته دسرافراز لقب ورکړی و . په همدې دلیل الفنستون او ځینې نور داصلي نوم او لقب تر منځ غلط شوي دي . همدا پاینده خان (سرافراز خان) و چې د یوسفزۍ ملکې دتوجه وړو ، چې شاه زمان پاچاهۍ ته ورسوي . وروسته چې زمان خان پاچا شو ، یوسدوزی ملګری یې راپورته کړ چې وفادار یې بللو او

داحمدشاه بابا د پاچا کیدو کیسه یې هیره کړه ،ده وغوښتل چې پاینده خان او بارکزي درباریان مخلوع کړي او په عوض کې یې ډیر تابع او حکمفرما درباریان مقرر کړل . پاینده خان په قار شو او یو شمیر خلکو ته یې داخبره په خوله کې ورکړه چې وفادار باید له وزارت څخه لرې کړای شي او باید زمان خان وپرځول شي او شجاع یې په عوض کې پاچا شي ، پاینده خان پخپله په توطئه کې شامل نه و خو خپل نفرت یې دشاه زمان په نسبت ښودلی و .

یو افسر مؤظف شوی و چې پاینده خان ونیسي او کورته ورغلی و . کله چې هغه کورته ورسیده د پاینده خان له مشر زوی فتح خان سره مخامخ شو فتح خان دښو صفاتو خاوند او په سیاست پوه سړی و ، دهمدې لپاره ډیر مشهور شو . ده هیڅ بدگماني ونه ښودله او د پلار د نه موجودیت له کبله یې عذر وغوښت او ورته ویې ویل چې اجازه راکړه چې پلارمې ولټوم او راپیدا یې کړم. فتح خان چې پلار ته ورغی د صاحبمنصب له راتگ څخه یې خبر کړ . ده خپله پریکړه ورته بیان کړه چې صاحبمنصیب باید ووژل شي او محافظین ونیول شي او موږ باید له کندهار څخه وتښتو . مگر پاینده خان داونه منله . ده فکر کاوه چې ددراني دغښتلي قبیلې مشرتوب مې په غاړه دی ، ماته څوک څه نه شي ویلای ، نوځکه له صاحبمنصب سره د پاچا حضور ته ولاړ . بل سهار پاچا ټول اصلي توطئه کوونکي ووژل او دهغوی په ډله کې یې دی هم وواژه.

د پلار له وژنې سره سم فتح خان گرشک ته ولاړ او خپلې کورنۍ کلا ته ننووت او له هغه ځای څخه یې دبارکزو دوطن ځار کاوه او دغچ اخیستلو پلان یې جوړاوه . محمود په هرات کې و او پنځه کاله یې هلته په دې امید تیر کړل چې له قاجار څخه مرسته ترلاسه کړي او کابل خپل کړي . فتح خان ده ته توصیه وکړه چې په ماتوډیلو (کړکي /نی) باندې تکیه نه کیږي ، باید چې

کندهار ته رامارش کړې او پر درانیو اعتماد وکړې چې مرسته درسره وکړي .

محمود له هرات څخه راووت له پنځو سوو تنو سپرو څخه یې زیات نه درلودل . مګر فتح خان هم دقبایلو احساسات په رښتیا سره درک کړي وو او قضاوت یې پر ځای و . بارکزي ټول د محمود تربیرغ لاندې ودریدل چې کندهار ونیسي . وارله واره محاصره بریالۍ نه شوه ، مګر فتح خان بیا له یوه خاص تکتیک څخه کار واخیست او په یوازې ځان د نورزیو خان عبدالله خان ته په ننواتې ورغی ، هغه د پوځونو قوماندان و . دغه ننګ پوره کاري وخوت. عبدالله خان پښتو پرځای کړه. د ه محمود ته بیعت وکړ او په دې توګه ښار تسلیم شو .

زمان په پېښور کې ډیر زیات مصروف و ،دهندوستان دبل یرغل لپاره یې ځان چمتو کاوه چې د کندهار له سقوط څخه خبر شو .خپل وروړ شجاع یې دلوی قوت سره په پېښور کې پریښود او پخپله یې د کابل خواته حرکت وکړ چې خپل میرنی وروړ له منځه یوسي . د پیښو او واقعاتو اصلي حالت دده پر مورال باندې تاثیر وکړ . د پنجاب فتح یې له یاده ووته او دکور پیښې وارخطا کړ . په دې پوه شو چې افغان حکمران یوازې دافغانانو د تکړه او غښتلي قبیلې په ښه نیت اوښې ادارې سره حکومت کولای شي اوبس . پر ټولو درانیانو بې اعتماده شو نوله ځان سره یې پریکړه وکړه چې غلجیو ته مراجعه وکړي . مګر غلجیو ته دده مراجعې هم لازمه ګټه ونه کړه . هغه پوځ چې ده روزلی وټول محمود ته تسلیم شو ، احمد خان چې د قراول دخاصې قطعې قوماندان و ، هم دفتح خان تر نظارت لاندې و . عبدالله خان هغه څوک و چې کندهار یې هم محمود ته تسلیم کړی و . احمدخان چې پوه شو چې وروړ یې عبدالله خان دفتح خان له خوا نیول شوی دی او د مرګ خطرېې تهدیدوي ،

دخپل ورور دژوندي پاتې کیدو په مقصد مجبور وچې تسلیم شي او فتح خان په دې پوهیده چې احمد خان له خپل ورور سره څومره نږدې اړیکي لري . فتح خان په خپل تکتیک او ستراتیژي کې بریالی شو .

شاه زمان بیرته وتښتیده چې له خپل ورور سره په پښور کې یوځای شي . دی په شینوارو کې دخپل نږدې دوست ملا عاشق کلاته ورغی چې له خیبر څخه یو منزل لرې ده . عاشق دده ډیره میلمه پالنه وکړه خو په پټه یې داسې ترتیب ونیو چې شاه زمان ونشي تښتیدلی ، شاه محمود ته یې هم یو ایلچي ورواستاوه . زمان پوه شو چې لاره یې تړل شوې ده نو کوشش یې وکړ چې خپل دوست قانع کړي او له ده سره خیانت ونه کړي او ټولې مهربانی یې ورپه یاد کړې . مگر گټه یې ونه کړه ، شاه زمان مجبور شو چې له زوره کار واخلي مگر په هغه کې ناکام شو . بالاخره تسلیم شو او داچې وروسته څه ورته پیښې شول په صبر او قدردانی سره یې تحمل کړل . دمحمود استازي له دوی سره دکابل په لار کې مخامخ شول ، دشاه زمان سترگې یې په تیرې چاړې سره ړندې کړې ، کابل ته یوووړل شو او په بالاحصار کې بندي شو .

نه کاله وروسته الفنستون له شاه زمان سره په روال پنډۍ کې ملاقات وکړ . دی دخپل ورور شاه شجاع دپاچاهۍ په دوره کې ازاد کړای شوی و . مگر کله چې محمود دویم ځل پاچا کیده شجاع هم مجبور شوی و چې وتښتي . یوځل بیا پاچا جوړونکي فتح خان خپل کار کړی و . دالفنستون دملاقات جریان په لاندې ډول دیادونې وړ دی :

« موږ له پاچا سره ولیدل چې یووخت یې شهرت په هند او پارس کې خپور شوی و . نن موږ هغه ته مخامخ ودریدو تر څوېې چې دناستې اجازه راکړه . ډیر ساده کالي یې اغوستي وو ، خودده کړه وړه کټ مټ یوه پاچا ته ورته وو .

داحالت دلېږي علاقمندۍ ور نه دی ، ده ښایسته مخ او ښایسته ځواني درلوده ، دده غږ او قواره بیخي شا شجاع ته ورته وو ، مګر دی یو څه لوړ و . مخ یې لږ شانته او ږدو او ښایسته ږیره یې درلوده . دی بیخي ړوند نه ښکاریده . که څه هم دده سترګې ژوبلې شوې وې مګر دسترګو توریې پوره پاتې وو له هریوه سره به چې غږیده سترګې به یې دهغه خواته اړولې . که چیرې دټولې اسیا پرتاریخ غږیدلي وای نو دپاچاهانو دبدبختۍ مثالونه به یې درکړي وای . بالاخره ده پر ځان ختمه کړه . ویل یې ګوره : زه ړوندیم . دپاچاهۍ له تخت څخه راغور ځیدلی یم . تبعید شوی یم ، هغه هم په داسې هیواد کې چې دوه واره مې فتح کړی و . »

بدنصیب شاه زمان او دهغه ورور شجاع خاطرې دډیرو ختیزو پښتنو په تیره بیا داپریدیو په زړونو کې ژوندۍ پاتې دي . یوسفزي دوی ته ډیر درانه ګوري ځکه چې ددوی مور یوسفزۍ وه ، شاه زمان او شاه شجاع دوی ته پاچاهان او واقعي پښتانه ښکاري . په ښو ورځو کې یې خلک ونازول او په بدو ورځو کې یې د هغوی له بدو څخه سترګې پټې کړې . داځکزي درانیو ملک ګلستان خان دزمان او شجاع لپاره ټول ژوند و جنګیده . ګلستان دخواجه عمران لاندې کلی جوړ کړ اونوم یې ورباندې ګلستان کیښود . ګلستان زیات شهرت درلود . دده میړانه ، پوهه ، غیرت ، او وفاداري ترنن پورې هم په پېښور کې یادیږي . دشاه شجاع په وخت کې دی دپېښور ګورنر و . اپریدیو څوواره شاه شجاع ته په چورا Chora کې پناه ورکړه او دوه واره ټولې قبیلې دده لپاره جګړه وکړه . که څه هم فعالیت ناکام شو خو سدوزو پاچا ته ددوی وفاداري ربښتینې وه . نږدې یوه پیړۍ وروسته هلته یوه سدوزي نواب سر اسلم خان Nawab sir Aslan khan دخیبر رایفلز چې ترنن

پورې سرحدي مليشه ده ،جوړه کړه .

دمحمود او له پاچا هي يوازې درې کاله وه . دفتح خان له برکته دادوره لااوږده هم شوه . د غلجيو درې حملې چې شجاع له پېښور څخه پيل کړې وې شنډې کړې او غلجيو ته يې ماتې ورکړه .

شجاع پر ۱۸۰۱ کال د پېښور څخه له لس زره لښکرسره د کابل په لور حرکت وکړ . دده پوځ له ختيز و يوسفزو او اپريدو څخه جوړ شوی و . دده لښکر له فتح خان سره په سره رود کې مخامخ شو . دده لښکر په لومړۍ مرحله کې بريالی ښکار يده او د « بردرانيو » پوځ په ميړانه جنگيده کـه څه هم دوی له قبيلوي جنگوسره پوره بلد وو خو د منظم پوځ په مقابل کې عاجز پاته شول او دخزانې دلوټ او چور خيال يې له سره ووت . فتح خان له دې گډوډۍ څخه پوره گټه واخيسته او دبارکزيو پوځ يرغل وکړ او ورغ يې لنډه کړه . شجاع داپريديو خاورې ته وتښتيده او په « چورا » کې يې پناه واخيسته .

يو کال وروسته شجاع بيا د جنگ ميدان ته راواخيست او دولس زره اپريدي لښکر يې جوړ کړ او پر پېښور يې يرغل وکړ . پېښور محمودد سره رود له بري څخه وروسته نيولی و . داحمله پرپېښور باندې په سره اوړي کې وشوه . دخيبر درې قبايلي جنگيالي زښت ډيرو وژل شول او زيات شمير له تودوخې او تندې څخه مړه شول . کم شميرې بيرته غرنيو سيمو ته ورسيدل . شجاع بختور و چې « چورا » يې بيرته تر لاسه کړه او له هغه ځای څخه د « تيرا » ميدان » ته ولاړ . ( پر ۱۹۳۰ کال دسروکميسو (Red shirts) دتحريک په موده کې اپريديو دوه واره پر پېښور بريد وکړ او دواړه واره يې ماتې وخوړه اوزيات تلفات يې ورکړل . څو مياشتې وروسته ماځينې ملکان وليدل چې داجگړه يې داپريدو د شجاع له حمايې سره مقايسه کوله او ددواړو عمليا تو

تر منځ نږدې يوه پيړۍ وخت تير شوی و . ) اپريدي کوم ليکلی سند نه لري خو کيسه يو بل ته نقل شوې ده .

داپريديو ډماتې څخه وروسته فتح خان پخپله پېښور ته راغی او خلک يې کلک جريمه کړل او له شاوخوا قبيلو څخه يې هم جريمه واخيسته . بيا يې دبابر د ١٥٠٥ م کال دلومړي بريد نقشه ټکي په ټکي عملي کړه .دکوهاټ اوهنگو له لارې دټل او بنو خوا ته ولاړ اوبيا « دامان » ته ووت او دلارې په اوږدو کې يې خلک جريمه کول . دټل او بنو تر منځ يې دوزيرو او نورو قومونو په ځپلو لاس پورې کړ او دلته دی تر بل هرچا د مخه او يا په دې وخت کې زيات بريالی نه و . دلته ددايمي نظم دپاتې کيدو لپاره ده څه نه دي کړي چې وروباندې ياد شي . يوازې يې ( ١٨٠٢-١٨٠٣ ) ترمنځ دپېښور په جنوب کې ديوه باغ نقشه واچوله چې نن ورځ هم د « وزيرباغ » په نامه يادېږي ، دلارو په دواړو خواو کې يې دسروې ( صبر ) ونې ولاړې دي ،دقبيلو دخانانو او مشرانو دغونډو لپاره يې دپرې په کې جوړې کړې وې چې دجگړو او ميلو په وخت کې هلته په کې راټوليدل . دلته دفتح خان کشر ميرنی ورور سلطان محمد خان تل پاتې شو . کورونه ،اپارتمانونه او حرام سرای يې په ټول ژوند کې دلته په پېښور کې ساتل .

دپېښور دپيښو له کبله فتح خان وځنډيدو او محمود هم زيات بې حوصلې شوی و او په پلازمېنه کې يې يوازې پر « شاهي غلامانو » باندې اتکا کوله . دشاه غلامان ( غلام شاهي گارد ) ټول قزلباش وو او دوی د طبيعت له مخې په هر شورش کې شامل وو . سربيره پردې دوی شيعه مذهب وو ، په ښکاره يې تبليغات کول او دکابل دمتدينو سنيانو په مخکې دالويه گناه گڼل کيده . محمود پر خپلو شاهي باډيگاردانو باندې دزيات باور له کبله دنور ملت په

مخکې له کرکې او نفرت سره مخامخ شو . مختار الدوله دراني په دې برخه کې زيات رول لوباوه او شاه شجاع يې د تاج او تخت خواته هڅاوه . پاچا که هوښيار واى نو به يې وزير فتح خان ته انتظار ايستلى واى چې هغه له کندهار څخه راروان شوى و . مګر عقل يې په کار وانه چاوه . ده فکر وکړ چې مختار-الدوله بندي کړم نو ټول خطرونه به له منځه ولاړ شي . مګر مختارالدوله چې پوه شو ، فرار يې وکړ او له شجاع سره يو ځاى شو .

شجاع پر ۱۸۰۲ کال چورا پر پېښور ده ځکه چې د وزير فتح خان موجوديت په پېښور کې ده ده لپاره لوى خطر و او دا پريديو په غرو کې يې ځان مصئون نه بللو ، نو ځکه دژوب له لارې د کوټې « شال » ته ولاړ او د ملک ګلستان په مرسته يې له يوه کاروان څخه ډېرې پيسې په زور د پور په شکل واخيستې . ( بايد ووايو چې شجاع دا پور اداکړ . ) شجاع دوزيرو په سيمه کې له مختارالدوله سره وليدل او هغوى د کابل خواته مخه کړه . په کابل کې شورش جوړ شوى و او محمود په بالاحصار کې محاصره و . شجاع او مختارالدوله په هوښيارۍ سره د ښار د باندې خيمې ووهلې او د فتح خان د ۱۰۰۰۰ کسانو قوت د يرغل انتظار يې يوست . فتح خان په اول کې بريالى و ، مګر د محمود بدبينۍ او له ده څخه د خلکو کرکه د دې سبب شوه چې دوى فرار ته مجبور کړي او د بارکزيو بخت او طالعو دى فرار ته مجبور کړ .

بل سهار شاه شجاع پاچا شو . له محمود څخه ټول خلک بېزاره وو او رټل شوي و . دى بندي شو خو د شاه زمان په شان دده سترګې چاونه ايستلې . د نوي پاچا لومړنى کار دا و چې خپل ړوند ورور زمان له جيل څخه آزاد کړي او د حکومت د بدليدو يو ارزښتي اعدام ملاعاشق و چې پخواني پاچا شاه زمان سره يې خيانت کړى و . د شاه شجاع عفو او تيريدنه د ده د ښه نوم او د درانيانو

د نیکنامۍ سبب شوه . مگر د کورنۍ نوم د نورو د ظلمو او غچ اخیستو په نتیجه کې ونه ساتل شو . ځکه په عمومي ډول د ظلم تله درنده شوه .

شپږ کاله وروسته شاه شجاع د هماغه میرني وروړله خوا وشړل شو چې یو ځل یې بیا ځان د فتح خان بارکزي په غېږ کې اچولی و . د دغه وخت په پای کې د ۱۸۰۹ کال د پسرلي په وخت کې مونتستیوړ ت الفنستون پېښور ته راورسید او د کابل د پاچاهۍ دربار ته د سفیر په توگه مقرر شوی و . الفنستون یو پوه او سیاست پوه و ، دالومړی ځل و چې انگریزي دیپلومات دیوه دراني شهزاده او داباسین آخوا مشرانو سره گوري . کله چې الفنستون دلته راورسید د سکانو پراختیا غوښتنه له اباسین څخه نه وه تیره شوې . رنجیت سنگهـ په پنجاب کې د خپل قدرت په ټینگولو بوخت او د زمان له وخته بیا تر ۱۸۰۹ پورې دلسو کالو په موده کې د دراني پاچاهۍ او د سکانو د مهارجا تر منځ په ډاگه کومه نښته نه وه شوې .

خو د ۱۸۰۹ کال داوړي په وخت کې کله چې الفنستون بیرته ستنیده . د سکانو قوتونه یې په حسن ابدال او راول پینډۍ کې ولیدل ، احتمالاً د « مارگلاغاښۍ » یې سنگرو . الفنستون ر پوټ ورکړ چې رنجیت سنگهـ ټول پنجاب نیولی دی ، پر ۱۸۰۵ کال دی یو عادي مشر و او دده په شان نور مشران هم ډیر و و . دی لیکي : کله چې موږ له پنجاب څخه تیریدو ټول پنجاب دده ترحکم لاندې و او د پاچا لقب یې غوره کړی و . دی شا و خوا گاونډي په زور تابعوي او په همدې زور او چال سره یې د خپل سک قوم مشران ځانته تسلیم کړل .

کله چې رنجیت سنگهـ له شاه زمان څخه رسمي پیژندنه تر لاسه کړه . دده هڅه داوه چې لاهور او امرتسر له څه ناڅه کمزوري « بنگي میسل »

Bhangi Misl ځخه ونیسي . دی د « کونیا میسل » Kuneia Misl او « الووالیا میسل » Ahluwalia Misl په مرسته بریالی شو چې امر تسر او « گورداس پور » ونیسي . بنگي میسل که څه هم د قصور Kasur د پښتون خان نظام الدین له خوا حمایه کیده خو څه یې له لاسه ونه شول . د ملتان او د مالگې د غرونو جنوب سیمې یې هم ونیولې . دده وروستی پریکړه داوه چې د قصور Kasur آزاده سیمه هم تر قبضې لاندې راولي ځکه چې « دخویشکي » پښتنو کورنی چې اوس یې قطب الدین مشرو دده پلازمېنې ته نږدې خطر شمیرل کیده . پر ۱۸۰۷ کال قطب الدین پس له یوې میاشتې محاصرې ځخه تسلیم شو او د کورنی دلگښت لپاره یې د « سوتلیج » په جنوب کې څه ځمکه تر لاسه کړه او هلته یې نوې کلا او کلی جوړ کړ چې جلال آباد نومیږي او ممدوت Mamdot د کورنی زانگو شوه . تر دغه بریالیتوب وروسته رنجیت د ملتان د کلاشوي (دیوال شوي ) ښار د نیولو قصد وکړ مگر ښار دده مقاومت وکړ او خلکو خپله میړانه وښودله . په دې مرحله کې دانگریز حکومت چې ډهلي یې نیولی و ، په دې فکر کې شو چې د ناپلیون پلانونه په یاد کړي . ناپلیون غوښتل چې حتی هندوستان ته هم لښکرې ورسوي . انگریزانو ته هم هوس پیدا شو ، او ویې غوښتل چې شاه شجاع او رنجیت سنگھ ته استازي ورولیږي او یو دفاعي سیتم جوړ کړي او یو د بل په کار کې مداخله باید ونه کړي ، الفنستون د افغان دربار ته د سفیر په توگه مقرر شو . ده فکر کاوه چې لومړی په کندهار کې د پاچا لیدل ضروري دي نو ځکه د بهاول پور او ملتان له لارې یې حرکت وکړ . بیا د ۱۸۰۸ په دسمبر کې خبر شو چې پاچا په کابل کې وي ، نو ده هم خپله لاره بدله کړه او له اباسین ځخه تیر شو . اباسین لوی نوم او د هندوستان سرحدي پوله گڼل

کیده . ددې مقصد لپاره د ۱۸۰۹ کال په جنورۍ کې دیره اسمعیل خان ته راورسید . دلته الفنستون ته د شاه شجاع یو استازی راغی او خبر یې ورکړ چې پاچا به له ده سره په پښبور کې ګوري چې دژمي پلازمېنه وه . پاچا دخپلو درباريانو مشر ملاجعفر دده هرکلي ته ورلیږلی و . او له هدایت سره سم یې الفنستون د « پهاړپور » له لارې « پنیالې » Paniala ته بوته .

پنیاله دلودیانو دبیلوټ کورنۍ ( Biluts ) سیمه ده چې مشران یې په میلمه پالنه کې زیات شهرت لري . دوی ادعا کوي چې اصلاً سیدان دي ،الفنستون د پنیالې تعریف په خپله کوي او دهغې دښایسته چینو او سیوري لرونکو ونوستاینه کوي .

« زموږ کمپ د پنیالې کلي ته نږدې پروت و . د کمپ ځای ډیر ښایسته ځای و . سړی فکر کوي چې د عربو دشګلنو وادیو په منځ کې دې نوی دچینې پر غاړه ناست وي . دلته په کوچنۍ ویاله کې رنې اوبه بهیږي او دخجیرې (کجورې =خرما ) ونې یې په غاړو ولاړې دي او دشنو جواریو پټیې هم شاوخوا ښکاري . کلی په خپله دخرما دونو په منځ کې پروت و او دغونډۍ په څنډه موقعیت لري او له دې څخه ډیرې ویالې روانې وې چې دځنګل په منځ کې یې لار جوړه کړې وه . »

له دې منظرې څخه ټول خوښ و و . د کلاباغ له لارې وړاندې ولاړ وو او دبلې سیمې دښایست ستاینه یې هم کړې ده ، چې د قیمتې ډبرې په شان سره خاوره لري او د مالګې ډبرې یې ښکلی خاص رنګ لري . اباسین هم دګګو غرو په پرخو کې غورځنګونه وهي او ددغه ځای له کلي څخه تیر شوو ، بیا د بنګي خیلو له غونډیو څخه واوښتو او دلومړي ځل لپاره مود سپین غره

دواورو ډ کې څوکې ترسترګو شوې او دلته ديوې کوچنۍ ويالې له څنګه «ډوډې» Dodah او کوهاټ ته ورغلو ، کوهاټ له خوشحالۍ ډک ځای دی.

دهربل مسافر په شان هر څوک چې کوهاټ ته د لومړي ځل لپاره هم راشي ،ځان په کور کې بولي او خوښ وي.

په پسرلي کې دکوهاټ شاوخوا غونډۍ رنګا رنګ او ښايسته وي ، له ښار څخه په لرې واټن کې په واورو ډ ک غرونه ښکاريدل ، هواره ځمکه شنه او په اوبو مړه وه . هلته او دلته دونو شنه ټوپي ښکاريدل . دکوهاټ په کاسه کې هوا خورا ښه وه . په کوهاټ کې منې ډيرې دي او د آم ( مينګو Mango ) ونې هم په کوهاټ کې دجوړې شوې غونډۍ دپاسه ښکاريدې او څنګ ته يې درنو اوبو وياله بهيده چې دجنګل خيلو له چينې څخه سرچينه اخلي او هرچاته چې کوهاټ ګران دی ، داچينې پيژني ، دلته يو ښايسته باغ وچې زړه وړونکې منظره يې تشکيله کړې وه ،دلته داسې انګريزي بوټې هم وو چې دهندوستان له آب وهوا سره يې اوس مطابقت کړی و .

دابڼ خورا ښايسته و. شاوخوا يې دغنمو ، ګورګوريو او سپنګرو کتاره جوړه شوې وه . په دې بڼ کې د آلو ، شفتالو مجنون ولې اونورې زياتې ښايسته ونې ، دهغو په څنګ کې موجودې وې چې تازه يې پاڼې او ګلان کړي وو . ميوه لرونکې اوبې ميوې ونې ټولې يو شان ښکاريدې ، ځکه چې پخوانۍ پاڼې يې رژيدلې وې اونوې پاڼې ايله ټوکيدلې وې . همدارنګه دتاکونو څانګې په نورو ونو راتاوې شوې وې .داسې ښکلې ښکاريدې چې وحشي بوټي وي او خاصه منظره يې جوړه کړې وه . لارې او ګودرونه په نوي ټوکېدلې برو (کبل) سره شنه ښکارېدل او دانګلستان دنوی پسرلي دشنو چمنونو يادې تازه کاوه ، دلته ډول ډول وحشي واښه لکه ډيلی ، ګنډير

،تیکلۍ ، گورگورې ، شوتله او نور شینیلي بریښیدل ، دسیمې ښایست خو داو چې ونې که څه هم له پانو څخه لغړې وې خونوي غونځک یې راسپړلي وو.

دلته یوه ښایسته مرغۍ وه چې سايرې (Goldfinch) ته ورته وه او دهمدغې مرغۍ په غټوالي یوه بله مرغۍ هم وه چې بڼکې یې ډیرې ښایسته وې ، یوازې سر او وزرونه یې تور وو . ( دامرغۍ په کوهاټ کې بیخي ډیرې دي . ) ځینو ښاغلو فکر کاوه چې دنورو مرغیو او مړزانو آوازونه یې اوریدل . دلته د« بیدمشک » بوټی ددغه باغ له خاصو بوټو څخه و . الفنستون ته داخرگنده شوه چې دابوټی یو ډول « وله » ده چې ښه بوی لري او ښایسته زیړ گلان یې دمچیو ډیر خوښیږي او انگریزانو دې بوټي ته پام«Palm» وایي .

دویالې په غاړه ښایسته گنبدي کور دی چې ډیپوټي کمشنر په کې اوسیږي . داکور « کیوناري »Cavagnari جوړ کړی و . داکور په ایتالوي ستایل ( سبک) آباد شوی و . دې کور له موسم سره دومره مطابقت درلود چې خاطره یې نه هیریدونکې ده .

درې میله دکوهاټ شمال ته دیوه جگ او لوی کوتل بیخ ته راورسیدو ، دختیز غاښي په سرلار ، یو نیم میل اوږدوالی لري خو داسړک په کوتل کې نیغ پورته ځي او دغټو غټو ډیرو له منځه تیریږي . دکوتل په سر کې ددغه هیئت دهرکلي لپاره دبنگښو ځینې مشران راغلي وو او دټولو لپاره یې میله جوړه کړې وه چې دغرمې ډوډۍ لپاره یې سره کړي چرگان او ډوډۍ تیاره کړې وه . ټول گرد چاپیره کیناستو ، دوی ټولو په لاس ډوډۍ خوړله . دادومره ښایسته نقطه ده چې هر سرحدی قبیلوي ځوان یې پیژني ، دانقطه لکه نری هسکه غاړه بریښي او پنځوس میله جنوب ته یې دختکو په غرونو کې جگه

کلانښکاري ، داغرونه بیا داباسین او دبنو جلګې خواته غزیږي . شمال ته یې داپریدیو دادم خیلوچې درې پرتې دي ، دلته اپریدي دټوپکو جوړولو وړې دستګاوې لري . دلته یو یادګاري ځلی له تیږې څخه جوړ شوی دی چې دهانډي ساید Handyside یادونه کوي . هغه له خپل پولیسي قوت سره د باغیانو په ځپلو کې نه هیریدونکي خدمتونه کړي او په همدې لارکې یې خپل ژوند له لاسه ورکړی دی .

دمیلې په پای کې مخ په ځوړ شو او دبوستي خیلو Bostikhel وادۍ ته په ورکوزیدو شوو . دادخیبر د اپریدیو دیوې کورنۍ سیمه ده . داهغه ځای دی چې له کوهاټ څخه پر ۱۹۲۳ کال مولي ایلیس Molly Ellis دلته تښتول شوې وه . دالفنستون په ورځو کې دغاښي او لارو دساتنو مسوولیت په قبایلو پورې نه وتړلی ، بلکې قوي بدرګه په کاروه چې مالونه وساتي . ډیر لاره نیوونکي ولیدل شول . له دې ځای څخه زرغون خیلو ته ورسیدو . زرغون خیلو کې هر ډول ټوپک جوړیږي . په دې لاریون کې غرونه لوړ او وادۍ ډیرې ژورې وې ، دغرمې په وخت دلمر لیدل ګران وو . د« درې » Darrah شمال ته چې ورسیدو ډیر لرې دواورو ډک غرونه ښکاریدل چې د هغوی دمنظر ښکلا په خبرو کې نه راځي . داغرونه دهندوکش دغرو یوه څانګه ده .

موږ پېښور ته د ۱۸۰۹ کال دفبروري پر۲۵ مه نیټه ورسیدو » . دا نیټه دیادولو وړ نیټه ځکه ده چې تاریخي اهمیت لري . دادیوې اوږدې رابطې پیل وچې لاتراوسه پای ته نه دی رسیدلی . ددې محفل اکتوران په ځای او په زړه پورې شخصیتونه وو .

« هغه څوک چې دالفنستون په هکله بې میني لیکل یا لوستل کوي پخپله په خسته کن شخصیت لري .دده په لیکنو کې پوره خوند اوخوږ پروت دی . په

ده کې ځان غوښتنه ، عیب او غرض نه شته . دی ظرافت لري ، دامکان تر حد پورې ساده او ځانته دی ،خو سره له دې دیوه ځوان په شان احساساتي دی.

دکابل پاچا شاه شجاع ښکلی او ښایسته سړی و ..... دده خبرې له دبدبې او شان څخه ډکې وې او دده خطاب دیوه شهزاده په شان و .....دا به دباور او منلو وړ نه وي چې ده څومره دیوه عزتمن او ښاغلي کړه وړه درلودل او څرنګه ده خپل حیثیت او پرستیژ لوړ ساته ..... سره له دې هم ده هغه کوله چې نور خوشحاله وساتی . »

**دیوه افغان د ځانګړنو په هکله :**

« افغانان د غچ اخیستنې ، حسادت ، کینې او نه زړه سوي عیبونه لري . خو له بلې خوا دوی په آزادۍ مین دي خپلو دوستانو ته وفادار دي . پر خپلو کشرانو باندې مهربان دي . میلمه پال دي . زړه ور دي ، خواریکښ او زیار ایستونکي دي ، رښتیا ویونکي دي ، دوی نسبت خپلو ګاونډیو ملتونو ته لږ تګی او غلطۍ لري .

دالفنستون لیکنه د میلمه پال ملاجعفر په هکله :

« هغه ډیر ژور ، زوړ سړی و ، ډیر زرنګ ، حکاکه او خوش طبعیت و ،مګر څه ناڅه پخ او له مینې ډک و . »

دالفنستون « کابل » Caubul ښايي تر ټولو خوندور رسمي سند وي چې په انګریزي ژبه لیکل شوی دی . ده دا کتاب پر ۱۸۱٤ کال پای ته ورساوه. دا هغه وخت و چې پنځه کاله تر وظیفې وروسته یې په « پونه » Poona کې ولیکلو ، دا سند نن هم ډیر لوستونکي لري او د سرحد د کړو وړو او د دود او رواج په هکله تر ټولو دقیق او موثق کتاب دی ، چې تر نن پورې لیکل شوی دی . ده د هر ځای نوم او هرې قبیلې میشت سیمه بالکل سم

لیکلي دي . دی دغره او ددښتې مقایسه دشګو او ډبرو ، اقلیم او موسم ډیر ښه انځور کړی دی . هغه څوک یې دزړه په سترګو کتلی شي چې له دې سیمې سره مینه لري . پاچا ، خان ، سوداګر ، کسب ګر ، ملا او بزګر هر یو ده ته خپل ځای لري او پخپلې موقع سره یې دستاینې وړبولي . حتی ددوی اشتباهات دبښنی وړګڼي ، ده دا خلک دجګړو او لښکرکشیو له ترخو شیبو څخه دمخه پیژندل او هغوی یې د دوستۍ او اشنایۍ وړګڼل ، ده له دې خلکو سره ددوستۍ دکړۍ ټینګول ضروري بلل . که چیرې انګلستان دسرحد ساتنه حتمي بلله نو ددغو خلکو په دوستۍ کې نغښتې وه . مګر ډیر مو وروسته له لاسه ورکړل ، چې په نتیجه کې ټول هغه څه مو له لاسه ورکړل چې باید له لاسه مو نه وای ورکړي .

دایدوارد ز Edwards رښتینوالی ، د نیکلسن Nicholson قهرماني ، دکیوناري Cavagnari زړه ورتیا ، دروس کیپل Keppel -Roos سره سینه ټول ډیر خام او بې ارزښته ښکاري ؛ کله چې سړی دالفنستون ژورې انسان دوستۍ او زړه سوي ته دقیق شي .

الفنستون داباسین دیخوا ته ترشپږو میاشتو (د ۱۸۰۹ د ۷ جنوري - ۲۰ ... کمه موده تیره کړه او له هغې جملې څخه یې تر څلورو میاشتو (۲۵ فبروري - ۱٤ جون) کمه موده په پېښور کې تیره کړه . مګر سره له دې ده دومره معلومات او زده کړې دخلکو او سیمې په هکله له ځان سره راوړل چې ډیر پوه او استعداد لرونکي خلک به یې په ډیره اوږده موده کې ترلاسه نه کړي ، که څه هم ده له پېښور څخه دباندې شمال خوا ته سفر ، ونه کړ مګر دټولې سیمې ، کابل او دهغې دباغونو او وادیو ، دغلجیو وطن ، دوزیرو او اپریدیو اوبدل شویو غرونو دبلوچستان او دهغه شمال خوا ته حتی دهغه وخت کندهار

او بلخ په هکله يې خورازيات معلومات راټول کړي وو. ده پخپله ويل چې دې وظيفې ده ته تواضع ورپه برخه کړه ، له جاه طلبۍ څخه يې زړه موړ شوی و . حتی ځومره وروسته ده ته ډير لوړ مقامونه وړانديز شوي وو خو ده نه وو قبول کړي ، ځکه چې دی استاذ او مؤرخ و . که څه هم دوی غوښتل چې له ده څخه ګورنر جنرال جوړ کړي .

دا ډيره په زړه پورې خبره ده چې دغه ښه ، متواضع او ظريف انسان بايد تر ټولو لعمری شخص وي چې دبرتانيې حکومت به دپښتنو په هکله له ده څخه معلومات واخلي ، دده پوهه اومعلومات سرحد نه لري . ده سانسکرت او پارسي په کلکته کې زده کړې مګر پردې قانع نه و . دی زيار کښ او متشبث انسان و . ده عقيده درلوده چې يو انسان که مسلمان وي او که مسيحي ددې لپاره ژوند کوي چې نورو ته يې خير ورسيږي . « يو انسان يوازي دځان لپاره ژوند نه کوي او نه يوازې دځان لپاره مري . » دی داسې څوک و چې له هندو څخه يې دمذهب اوعقيدې پوښتنه نه کوله . خو په دې فکر کې و چې دوظيفې په چوکات کې آمر تر لاس لاندې خلکو ته هر څوک چې وي مسؤليت لري . دی زيرک او دخلکو له زړونو څخه خبرو . ددوی دکار او صلاح لپاره يې کار کاوه . هغوی که وپوښتل شي بل هيڅ باندينی به دده په عوض ونه غواړي .

الفنستون دبرتانيې درول په هکله پخپله ويل چې په اسيا کې دبرتانيې مرينه هغه وخت مناسبه ده چې پخپله خلک دحکومت کولو لياقت پيدا کړي او دباندنيو څخه خپله ازادي تر لاسه کړي . بنايي په دې هکله کوچنی اشتباه وي چې ده ويل چې : هغه څوک چې ماليدلي دي او شمال کې حکومت کوي که څه هم لا تراوسه زمونږ په ډله کې نه دي شامل شوي خو ددوی داهليت له تحليل او ارزيابۍ څخه داخرګنديږي چې دحکومت کولو لياقت لري او آزادي

اخیستلی شي .

لکه چې دی لوړی سړی و . همدارنګه وروستی سړی و چې په پېښور کې ددرانیـانو حکومت وګـوري ، اوبې له دې چې درنجیت سنګهـ ترتاثیـر لاندې راغلی وي . راځئ چې دلتـه لږ تم شو او پر هغې صحنې باندې یو ځل بیا نظر وځغلوو ، مخکې له هغې نه چې سکانو جارو کړې وه :

کـوم بیـان چې هیئت د پېښـور په هکله کړی و . نن ورځ هم زیاتره همـاغـه شانتـه دی . دده بیان د هرې بلې جریدې یا دنوي سیاح له کیسې څخه دقیق او ډېر ښـه دی . تر ده وروستـه هم ډیر و خلکو لیکل کړي دي او دده تشریحات تائیدوي . دی لیکي چې دا هواره سیمه تقریباً دیوې دایرې په شان پرته ده او په ښکلو غـرونو احـاطه شـوې ده ، چې شـمـال تـه دهندوکش دغـرونو لړۍ ده او غـرب تـه دسپین غـرلوړې څوکې ښکاري . کله چې هیئت په فبرورۍ کې دلتـه راورسیـد ، دچاپیریال ددغو غـرونو زیاتره پورتنۍ برخـې په واورو پټې وې . حال دا چې هواره سیمه تکه شنه او تازه معلومیده ، اقلیم ډیر خوندور او په زړه پورې و . دزیاترو ونـو پاڼې رژیدلې وې ، خو سره له دې هم دومره ونې په شنو پاڼو ډکې وې چې دشاوخوا منظرې ته یې خاص رنګ ورکړی و . دراټولونکو لسو ورځو په اوږدو کې انګریزي ښاغلو ټول باغـونه یو په بل پسې وپلټل او له خوشحالۍ نه په کالیو کې نه ځائیدل ، ځینو ونو نوی غونځک کړي وو . داسې ښایستـه موسم او ښایستـه سیمـه دوی دهند د دوامدار اوړي له کبله چیر تـه کله نه وه لیدلې . شنې ویالې هرې خوا تـه بهیدې او د ولو او ګز ونې یې په غـاړه ولاړې وې . دمیوو باغونه هرې خوا تـه تیت وو . چې آلو ، شفتالو ، ناک ، بهي او دانارو ونې په کې پریمانه وې . دې ونو رنګارنګ ګلونه کړي وو او دسیمې ښـایست یې لازیات کـړی و . دهیئت غـړو پخـوا دومره ښـایستـه منظره نه وه

ليدلې . د کرنې ځمکې هم په تېرو کيدلو فصلونو پټې وې ، داسې بريښېدې لکه چې فرش پرې غوړول شوی وي . د جلګې زيا تره سيمه د کرنې وړ ځمکه وه او د کانالونو او د وياليو په واسطه اوبه کيده . « برا کانال » Bara « جوی شيخ » او « جوی زرداد » دالفنستون له زمانې څخه لا د مخه جوړ شوي وو . کلي دنن په شان ډير لوی لوی جوړ شوي وو ، هميشه پاک او منظم وو . په هر کلي کې شنې ونې ولاړې وې . د وياليو د پاسه د مغولو خښتو څخه پلونه جوړ شوي وو. د ډبرو لار و او سړکونو په غاړو د توتانو ونې وې او ځای پر ځای د چنار او بنيان ونې لوړې او هسکې ولاړې وې . د پېښور د شمال برخې په استثنا په نورو ځايونو کې د خرماونې هم وې مګر د هغو په خيدو لپاره د پېښور ژمی سوړ غوندې دی ، مګر په قبرستانو نو کې د ( ګز Tamarisk ) ونې ډيرې وې . چې پاڼې يې د سروې په شان شنې او تور بخونې غوندې دي .

« لاپخوا د پېښور د ښار کوړونه له اومو خښتو څخه دوه پوړيز يا درې پوړيز جوړ شوي وو. کوڅې يې تنګې او پخې دي ، کوڅې د ګودر خواته ځوړنده جوړې شوي دي چې په لنده هوا کې ډيرې ښويې وي . دوه ، درې ويالې د ښار له منځ څخه تيرېږي ،دولو او توتانو ونې يې پر څنډو ولاړې دي ، د پېښور کوڅې د مختلفو قومونو او ژبو د خلکو له خوا ډکې ښکاري او هر ډول لباسونه اغوندي . دکانونه په لومړي پوړ کې دي او هميشه په کې بير او بار ليدل کيږي . وچې ميوې ، چارمغز ، ډوډۍ ، غوښه ، څپلۍ ، د آس د سپرلۍ سامان د تکو توپونه ، درانه شيان ، مسي لوښي ، کتابونه او پوستينونه په خپل خپل ځای کې د خر ځلاو لپاره ايښول شوي وي . تر ټولو ښايسته دکانونه د ميوو پلوروونکو د کانونه دي چې ډول ډول ميوې يې په ټوکريو کې ايښي وي. د پخلي د کانونه ډول ډول خواږه شيان پخوي او په خاورينو لوښو کې يې

وړاندې کوي ، ددغو لوښو باندېني خوا کاشي رنګ شوې وي چې ښایسته او دچیني لوښو په شان بریښي . .

« لاس ګرځوونکي دخپلو مالونو دخرڅلاو چیغې وهي . دښار خلک په سپینو پګړیو کې له ایرانیانو او افغانانو سره ګډ شوي دي چې هغوی ځینو لنګۍ او ځینو خولۍ ( قره قلۍ پوټکی ) په سر کړي دي . دخیبر خلک په څپلیو اوملي کالیو کې دخپل غرني ماحول فضا ښيي ، هندوان هم خپل خاص لباس لري او له ورایه پېژندل کېږي . هزاره هم داوږدو مخونو . لنډو پوزو او تنګو سترګو په درلودلو له نورو څخه بیلیږي . ددغو خلکو په منځ کې کله ناکله هلته او دلته ښځې هم لیدل کیږي چې په بورقو ( بغراوې ) کې سر تر پایه نغښتې وي . کله کله نظامي رساله تیریږي او داسانو دکوړمو ټکاری اوریدل کیږي . او ښان هم په نظامي قطار کې لیدل کیږي . سره او شنه بیرغونه رپیږي . بلخي اوښان په خاص شان سره په ورو او متانت سره قدم اخلي ، غاترې ( کچرې ) هم لس ، اته یو ځای په بارو بارروانې وي . کله چې څښتنان په سما وارو کې چای ته کیني ، هغوی هم په یوه ځای کې غونډ کړي . په دغه هیاهوی کې پرنګیان هم بې له کومې خاصې توجه څخه تیریږي ؟ یو نیم هلته او دلته السلام وعلیکم ورسره تبادله کوي . ګدایې ګر هم دخیر او صدقې لپاره خلک دېته تشویقوي چې مرسته وکړي . « دنیا تیر یدونکې ده قیامت نږدې دی . دابدي جنت دګټلو لپاره کومک وکړی ، خیر او صدقه وکړئ. » داددوی چیغې دي .

له ښار څخه دباندې له کلیو او اطرافو څخه داسانو دسپرو او پلیو ډلو ځي اوراځي ، په ډله کې داسې څوک هم وي چې ښکلې بدلې وایې او خپل سفر لنډوي ، ځینو خلکو بازان په مړوندو کینولي وي . ځینې ځوانان بیا د شپې

مېزان نيسي . داځوندوره لويه ده . څوتنه ځوانان د پټي په يوه سر پوځ جوارو باندې جال وغوړوي او دوه کسه له بلې غاړې څخه اوږده رسۍ پر جوارو کشوي چې مېزان د جال خواته ورټول کړي او بيا جال ور باندې واچول شي او زيات شمېر مېزان ونيول شي . »

الفنستون زياتوي چې د دې وطن ، طبعيت خوشحالوونکی دی ، منظرې او ورځنۍ پېښې او کاروبار د دغو حيرانوونکو آزاد طبعيته او وحشي خلکو تر منځ بې شميره وي . دسهار له خوا تګ راتګ په زړه پورې دی . زموږ د آس مازيګرنۍ سورلي هم بيل خوند لري ، د باغونو او بڼونو شاوخوا کې چکر وهو ، شاوخوا غرونو ، شنو جلګو ، ونو او باغونو ، داوبو ويالو د دغې سيمې ښايست بيخي زيات کړی دی . »

دا ټول شيان الفنستون په خوند سره بيان کړي دي او د بصيرت خاوندان يېويني . دالفنستون په زمانه کې بالاحصار پر ځای ولاړ و او د پاچا قصر هم په هغه کې د ننه و مګر رنجيت سنګهه پر ۱۸۲۳ کال هغه له خاورو سره يوشان کړ . د بالاحصار لاندې شمالي اړخ ته شاهي باغونه وو . چې سکانو ټول لنډ کړل اوسنی شاهي باغ يو وخت هلته رښتينی شاهي باغ و مګر نن ورځ په هغه شان نه دی يوازې نوم لري او بس .

د هيئت دليدنې ، کتنې او پاچا ته د ور پيژندنې جريان ته غوږ شئ :

« پس له ډير انتظار څخه ( خاص باشي Chaous Boushee ) موږ ته راغی او زموږ د نوموړو په زده کولو يې ځان ستړی کړ . له ډيرې نوميدۍ وروسته يې وويل چې د خاصو مراسمو په وخت کې څه بايد وکړي ؟ او زياته يې کړه چې کله مې لاس درولګيده نو خپل نوم به په وار سره راته په کراره شانته تکرار کړئ . بيايې ديوه مخ په ځوږ دهليز له لارې په يوه دروازه وردننه کړو او

ديوې پردې شانته حايل څخه دننه يوه لوی انګړته داخل شوو. په پورتنۍ برخه کې په يوه وادنۍ کې پاچا ناست و.

دربار اوږدو او جګ ديوالونه يې درلودل او دسروې ونې يې په ديوالو رسم شوې وې. دانګړ په منځ کې يو ډنډ و چې داوبو فوارې يې درلودې. دديوالو په خواکې په درې ليکو کې دګارد پوځيان ولاړ وو، منصبدار هم ليکه ولاړ و درتبې او مقام له مخې دهريوه ځای معلوم و، ددربار په پای کې يوه جګه ودانۍ وه چې په هغې کې پأيې ولاړې وې. دروازې او کړکۍ يې درلودې، ددې پرسر باندې بل پوړ و چې دستنو او کاخونو (Arch) په واسطه دريدلی و او ډير ښايسته جوړشوی و. په مرکزي طاق (قوس) کې پاچا پر لوی تخت ناست و، چې دسرو زرو رنګ يې درلود او يا ښايي دسروزرو به وي. دده منظره ډيره په زړه پورې او شاهانه وه. دده تاج او ټول لباس په غميو کې پټ و او له ورايه ځليده. ټول غلي او بې حرکته ولاړ وو. کله چې موږ دپاچا ترسترګو لاندې شو. خولۍ مو له سره جګې کړې او تعظيم مووکړ. موږ بيا اسمان ته لاسونه پورته کړل او پاچا ته مو دعا وکړه. بيا دفوارو خواته ورنږدې شو. بيا خاص باشي په وار سره زموږ نومونه تکرار کړل او زموږ القاب اورتبې يې يادې نه کړې. اوويل يې: اعليحضرتا! دوی له اروپا څخه ستاسې حضور ته سفيران راغلي دي.» ده زياته کړه: «اعليحضرتا! ستاټولې بدبختۍ دې زما پرسروي»........پاچا په لوړ آواز سره ځواب ورکړ. «دوی ته ښه راغلاست وايم» په دې خبرې سره مو بيا پاچا ته دعا وکړه او دامراسم بيا تکرار شول.

داچې الفنستون دشاه شجاع تر تاثير لاندې راغی دخپلو احساساتو بيان يې دمخه کړی دی، دی دپاچا د ظاهري کړووړو او لباس په هکله داسې

لیکي :

« موږ په لومړي ځل فکر کاوه چې پاچا د غمیو د که زغره اغوستې ده . مګر له نږدې ځخه متوجه شو چې غلط کړی مو دی . د ده لباس عبارت و له شنې چپنې ځخه چې د سروزرو لوی ګلان یې درلودل او قیمتي غمي په کې ګنډل شوي وو . تېتر یې په الماسو پېیلي شوی و ، په لستونیو کې یې د زمردو لاس پندونه لرل او هلته او دلته نور ډول ډول جواهر په کې ښکاریدل . په یوه لاس بند کې د نړۍ مشهور الماس « کوه نور » هم ځای په ځای شوی و . ویل کیږي چې د نړۍ د غتېو الماسو له جملې ځخه یو هم کوه نور و . تاج نږدې نهه انچه جګ و . دا دومره پېیچلی وچې زه یې ټولې برخې نه شم تشریح کولای......... کوټه شاوخوا خلاصه وه او په څلورو پایو سره یې منځ تکیه شوی و ، په منځ کې یې د مرمرو یوه فواره وه . پر فرش باندې ډیرې قیمتي غالۍ غوړیدلې وې . شاوخوا چاپیره دوریښمو نري اوږده فرشونه دخانانو او ملکانو د دریدلو لپاره هوار شوي وو . د دې سالون منظره ډیره ښایسته وه . دماڼۍ لاندې یو اوږد باغ و چې د سروې او نورې ونې په کې ولاړې وې ، دهغه شاته یوه لویه هواره شنه ځمکه ښکاریده . هلته او دلته شنې ویالې ښکاریدې او لرې لرې غرونه بریښیدل چې ټوله جلګه یې احاطه کړې وه . ځینې غرونه تور او ځینې په واورو پټ وو سپین ښکاریدل .

د شاهۍ شان او شوکت په وخت کې پېښور په دې ډول و او د باغونو په هکله : « دا باغ شاه لمان Shauh Lemaun بولي . شکل یې مستطیل دی ، ځینې ښایسته ودانۍ د بالاحصار جنوبي برخه جوړوي ، او همغه غونډۍ چې قصرېې د پاسه ولاړ دی هم په باغ کې راځي . نورې خوا وې په دیوالو سره ترل شوي دي . شمال برخه له نورو ځخه بېله ده او غیر منظم شکل لري ، په ونو

ډکه ده . نو دا باغ څلور کنجي ( مربع ) شکل لري چې په ښکلو سړکونو بېل شوی او ویشل شوی دی او دباغ په منځ کې یو بل سره غوځوي . هغه سړک چې له شرق څخه غرب ته ځي ( منځ کې یې ) دګلانو پټې دي . له شمال څخه جنوب ته سړکونه هم دسرو او چنار په ونو ښکلي کړی شوي دي ، تر ونو لاندې ښایسته سره سپین ، ژیړ او چینایي ګلاب ( مرسل ) لیدل کیږي . سپین او ژیړ یاسمین او نور ډول ډول دګلانو بوټي موجود دي چې ځینې یې ما په انګلستان او هندوستان کې لیدلي وو او ځینې را ته بیخي نوي ښکاریدل . په شمالي برخه کې لوی پاویلیون Pavilion (سرخلاصې ماڼۍ) دي ، دا برخه په مساوي ډول پرشپږو ډنډونو ویشل شوې ده او یو ه بل ته نږدې دي ، او به په دوامداره توګه له یوه څخه بل ته دفوارو په واسطه تویږي ، او دباغ په منځ کې په لویه کاسه کې راټولیږي . ددې کاسې په منځ کې په یوه خط جوړې شوې دي . ټولې ۶۹ فوارې دي چې زموږ په شته والي کې ټوله ورځ بهیدې او او به یې غور ځیدې چې ډیره ښکلې منظره یې جوړه کړې وه . دغو فوارو داوړې پر راتلونکې هوا باندې لږ څه اغیزه اچوله . پاتې باغ ټول په میوه . لرونکو ډک وچې ما دهغو یادونه مخکې کړې ده . ځینې ونې دومره ګڼې وې چې دغرمې لمر له هغو څخه نه تیریده . دغو ونو سوړ او تیاره سیوری جوړ کړی و . له غرمې ډوډۍ څخه وروسته موږ یوه پاویلیون ته داستراحت لپاره ننوتلو چې پر ډیرو ښایسته غالیو فرش شوی و . دلته یې موږ ته میوې راوړې او ماسپښین مو دهغو شعرونو په ویلو تیر کړ چې دلته په دیوالونو لیکل شوي وو . داشعرونه ځینې دژوندانه دناخوالو او نابرابر یو په هکله وو چې حتی دپاچا له واقعي ژوندانه سره یې مطابقت کاوه . تقریباً د دریو بجو په شاوخوا کې چکر ته ولاړو . دغربي او شرقي سړکونو چکر په زړه پورې و او دواړو

خولتـه غـرونه ښکاري ، جنوبي او شمـالي منځ انګړ دومـره ښايسـتـه و چې داسيا په باغونو کې تر ټولو ممتاز و . مونږ دبالاحصار لاندې ودريدو چې داغاړه بيـخـې ښکلې ده . فـوارې دلمر پـه وړانګو کـې ځليـدې او دلمر وړانګې په ونو اوبوټو کـې لـه ورايه ښکاريدې چې دباغ ښکلاييې لازياتـه کـړې وه. ودانۍ هم ډيرې ښايسته جوړې شوې وې او ډباغ سره ښايسته ناستې وې ( مطابقت يې کـاوه ) . ډباغ څـخـه دباندې سيـمـه ټولـه شنه او پـه ځـينو برخو کـې يې لـه ورايه ځـانګړې او ياټوپۍ ټوپۍ ونې ښکاريدې . غـرونه چې ډير جګ دي دمنظر پای يې تشکيـلاوه . داغــرونه څـولړۍ دي چې پـه مــخـتـلفـو واټنونو پراته دي.......مونږ لـه لمر پريو تو څخه لږ د مخه لـه باغ څخه ولاړو. »

هره تيـږه ، هر خښتـه او هره ونه چې دلتـه وه دسکانو لـه خوا ويجاړه شوه . دپېښور کلا چې نن د بالاحصار پـه سيمه کې ښکاري دسکانو دپوځ بارکونه وو چې انګريزي نظامي انجينـيـرانو وروستـه ترميم کـړل . نننی شـاهي بـاغ چې دپخوانی شاه لمان يوه برخـه ده پـخوانی خوند ، رنګ ، سحر او جادو نـه لري . مګر هغـه انګريزانو ، چې ډسک شاهی څخـه وروسته راغلي وو ، پښور يو ځل بيا دباغونو پـه ښار بدل کـړ ، مګر يوه ساده او اطرافي مزه لري . هغـه پخوانی دولتي او شـاهانه رنګ او بوی يې نـه شتـه . انګريزانو څومره چې توان او پوهه درلوده هغـه يې جوړ کـړ او پاکستان يې هرو مرو پـه دوديز شکل ساتي .

کله چې الفنسـتـون لـه پـېښـور څـخـه وتلو . دپـېښـور پاتې کـيدو دارمـان خپـګان يې پـه سـتـرګـو کې و . درې ورځې وروسـتـه يې پـه نوښهـره کې کـمپ وواهه. دلتـه دکابل سيندتر لوړ سرک پورې رارسيږي . دغـه ځای شين چمن دی او دسـيـوري ونې دويالې پـرغــاړو ولاړې دي . دغــه نقطه دده ډيره خوښيده . وړاندې دغرب خواته دتاترې څوکه ښکاري چې پر خيبر باندې پهره

کوي .یوه اوني تیره شوه او هیئت حسن ابدال ته ورسیده . عیناً لکه پښتانه چې له دې ځای څخه شمال ته ځي د کور هوا پرې لګیږي . پر ده باندې دهند بوی لګیده چې دا ، انګریز جنوب خوا ته ورروان و . دایران دا تمسفیر تاثیرات تر دې ځای پورې وو . دحسن ابدال باد او هوا دهغه هیواد ښایست وریاداوه چې دڅوورځو په موده دمخه هلته و . حسن ابدال دمغولو دکشمیر دسفر دوروستې استراحت تم ځای و . حسن ابدال هغه وروستی پړاو دی چې دلمر وړانګو کې یې دهغو باغونو هوا لګیږي چې دایران دهوا بوی په کې شته .دده ته دکوهاټ خوندوره او خوږه هوا وریه یاد شوه . دلته په واهه (wah) کې حسن ابدال ته نږدې باغ وریه یاد شو چې لیدو ته یې ورغی مګر داباغ مخ په وچیدو او ړنګیدو و دلته دباغ کاسې درنو او پاکو اوبو په واسطه ډکې شوې وې چې نن ورځ هم په هماغه شکل دي . ودانۍ یې ویجاړې شوې وې او ځینې نورې یې مخ په ړنګیدو وې . دچنارونې هم خال خال هلته او دلته پاتې شوې وې ، چې دلویدیز و باغونو یوه په زړه پورې ونه وه .

الفنستون ته دواهه دباغ ویجاړې ودانۍ دده ورسپارل شوې وظیفې په خاطر دراتلونکي بریالیتوب لپاره سمبول بلل کیدې . ده هیله درلوده چې دده هر کلي دده د وظیفې بری پاو دسرحد لپاره یې منظره انځور کړې وه چې ده ورته زیاته خواري وایستله . مګر دا وروستی پوسته وه ، چې ده پرینښووله . یوازې او بې ځښتنه ښکاریده . دده فکر او خیال دیخوا ته وګرځیده چې مخ په مړاوي کیدو وه. ده د خپل فعالیت ناکامي لیدله ، او یا یې دشاه شجاع ناکامي لیدله . ښایي په خپل خپګان کې یې دننه یو څه آرامي احساس کوله . دی هرومرو پوهیده چې دراتلو نکي لپاره یې څراغ بل کړ چې دهغه څراغ په رڼا کې به دده له ملت او نژاد څخه نور دده په پله مخ په وړاندې ولاړ شي .

# اتلسم څپرکي

# احمد شاه بریلوي او سکان

الفنستون لا په پېښور کې و چې د ۱۸۰۹ میلادي کال د پسرلي په وروستیو کې شاه شجاع ته خبر راورسید چې میرنی وروریې محمود د کابل د نیولو نیت لري او وزیر فتح خان ورسره کومک کوي. شاه شجاع ډیر خپه او شرمنده وځکه چې دا ردوزیا ته برخه یې د کشمیر د باغیانو په مقابل کې له منځه تللې وه.

دغې ماتې د ټول رژیم پر ستیژ او مورال کمزوری کړی و. په دا سې حساس وخت کې استازي د محمود د کابل د نیولو خبر راوړ. او سربېره پردې د محمود لښکر د پېښور په خوا روان و. له الفنستون سره د دفاعي تړون د خبرو اترو په جریان کې شاه شجاع او ملګرو یې دا هیله وکړه چې د داخلي اړودوړو په کرارۍ کې هم د دوی مرسته تر لاسه کړي. مګر الفنستون دا وعده ورنه

کړه. دده وظیفه داوه چې د کابل پاچا هې په خارجي سیاست کې د یفکتو Defacto پاچا سره مرسته او دفاع په نظر کې ونیسي . دوی نه غوښتل چې په داخلي چارو کې ځانونه ورگډ کړي او نه یې غوښتل چې یو پاچا د بل په مقابل کې حمایه کړي . الفنستون لیکي چې زما انکار دده له خوا په ډیر متانت او درنښت سره ولیدل شو . ده خپله مایوسي وزغمله ، خو د پاچا او شورا له خوا زموږ په میلمه پالنه کې هیڅ ډول کمی رانه غی .

دالفنستون ترنظر لاندې زیاتی هڅې وشوې چې د کشمیر تباهي جبران کړي او دجگړې لپاره نوې اردو جوړه کړي . تقریباً په عین ورځ چې الفنستون خدای پاماني وکړه شجاع له خپل لښکر سره د جگړې میدان ته وخوځید ، الفنستون په حسن ابدال کې و چې دشاه شجاع د ماتې خبرې تر لاسه کړ . څو ورځې وروسته یې په راول پنډۍ کې د پاچا ړوند ورورپخوانی پاچا شاه زمان ولید چې کورنۍ او کډه یې هلته راوستل . هغه دفاعي معاهده چې ده له پاچا سره کړې وه ، دداخلي اغتشاش په مقابل کې یې ارزښت له لاسه ورکړ . په دې مانا چې دده وظیفه ناکامه شوه ، مگر په اوږده موده کې دالفنستون هڅې او حوصله مندۍ تر کلونو پورې دیادونې وړوې. ډیر و به دده پر پله قدم ایښی وای خو که چیرې ځینې کوچنیو خلکو فضا په دوړو او وریځو نه وای تیاره کړې . له بلې خوا حتی نن ورځ هم دډیرو خلکو په ماغزو کې چې د پېښور په شاوخوا کې اوسیږي دالفنستون په هکله افسانې لري . هغه ته د یوه پوه او دښو اخلاقو دخاوند په سترگه گوري .

دشاه شجاع دماتې خبر رنجیت سنگهـ ته په وزیر آباد کې ورسید ، چې هلته یې له یوه باغي سک ورور څخه سیمه تصفیه کوله . ده اوریدلي وو چې پېښور لاهم دشاه شجاع په لاس کې دی او له اباسین څخه په دې امید راپورې

وتلي دی چې ډانګريزانو څخه مرسته ترلاسه کړي او له دفاعي معاهدې څخه ګټه واخلي . رنجيت سنګهـ په دې هيله وچې له دراني قدرت څخه يو څوک په خپل موټي کې راولي او ويې ساتي . نو پخپله د پاچا ليدو ته رادمخه شو او غوښتل يې چې هندوستان ته د ده دتګ مخه ونيسي . دواړو پاچاهانو په ساهيوال Sahiwal کې سره وليدل . رنجيت سنګهـ دشاه شجاع هرکلي وکړاو ده ته يې دملتان او کشمير دبيا نيولو دمرستې وعده ورکړه. څرنګه چې شاه شجاع ديوسفزيو دمرستې وعده تر لاسه کړې وه ، درنجيت سنګهـ ډمرستو او وعدو سره يې چندان علاقه ونه ښودله . ده دبريا ليتوب څه اميد درلود او دسکانو په وعده او اخلاص يې باور نه کاوه . دباور نه کولو دليل يې درلود ، ځکه رنجيت سنګهـ خپل مقصد درلود .

ددوی کنفرانس پرنګ شو او شجاع بيرته اټک ته ولاړ او هلته دی دځينو قبايلو د مرستې په راجلبولو بريالی شو . څه قوت يې هم له کشمير څخه ترلاسه کړ ( دکشمير ګورنر محمود بيعت نه و ورکړی او شاه شجاع ته وفادارو ) او دا قوت ددې لپاره کافي وچې پېښور د ۱۸۱۰ ترپسرلې پورې ځان ته وساتي ، داوړي په مياشتو کې يې دا ښاروساته . وروسته محمد عظيم خان دفتح خان د دوه ويشتو ورونو له جملې څخه يو ورور وچې شاه شجاع يې دديره جاتو خواته په شاکړ او ويې غوښتل چې دملتان دراني ګورنر دځان په خوا کړي، مګر بريالی نه شو . هغه ده ته دپاتې کيدو او اوسيدو اجازه ورنه کړه مګر له ده سره يې په عزت او احترام چلندوکړ . که څه هم دښار ددروازې په خوله کې يې کمپ جوړ کړ خو ګټه يې ونه کړه . دی دشمال په لوري وخوځيده او ددغو منطقو په خلکو کې يې لاهم دوستان او پلويان درلودل . پس له دوو جګړو يې پېښور يو ځل بيا خپل کړ . په لومړی جنګ کې مات شو خو په دويم

جنگ کې یې بریٰ تر لاسه کړ . مگر دده شاوخوا خاینانو او منافقانو موضع نیولې وه. داسې خلک وو لکه رنجیت سنگهـ چې هغوی دده د شخص د تسخیر اراده درلوده . د حوادثو په جریان کې پر ۱۸۱۲ کال د اټک گورنر جهانداد خان ، دی په پښبور کې ونیولو. لومړی یې د اټک کلا ته یوړه او بیا یې کشمیر ته واستاوه او هلته تریوه کاله زیات پاتې شو .

کله چې شاه شجاع په ملتان کې سر گردان و . شاه محمود دده بریالی حریف د لومړي ځل لپاره پښبور ته راغی او بیا له اباسین څخه پورې ووت چې د کشمیر گورنر ونیسي ځکه چې د کشمیر گورنر لاهم شاه شجاع ته وفادار و. رنجیت سنگهـ د « پیرپنجال » Pirpanjal د غرو په لمنو کې ، کشمیر ته د مغولو د زړې لارې په اوږدو کې د بیمبار Bhimbar ، راجوري Rajauri او ددې سیمې د نورو ځایونو په نیولو او تسلیمولو مصروف و . ده شمال ته بیړه وکړه . ظاهراً په دې مقصد چې دده هر کلی وکړي او په حقیقت کې دده مرام داو چې د دراني سردار په کشمیر کې د پښې ځای ورک کړي او د ځان لپاره یې تر لاسه کړي ، دواړو شهزادگانو پر ۱۸۱۱ کال په راولپنډۍ کې سره وکتل . له دې کتنې څخه کومه مثبته نتیجه را ونه وته . مگر رنجیت سنگهـ په غوره - مالۍ ، چل او فریب سره د خپلو مرستو وعدې وړاندې کولې او غوښتل یې چې په دام کې یې ونښلوي او په فریب او غولولو سره اصلي مقصد تر لاسه کړي .

ده له داسې تخنیک څخه کار اخیسته چې د دراني شهزاده د تسخیر لپاره په هغه کې د بریالیتوب چانس بیخي ډیر و . په لومړۍ مرحله کې ده ځان داسې وړاندې کولو چې له اسانو سره سخته مینه لري او آس ساتل یې مسلک دی . دا د دې لپاره چې درانیان پر اسانو مین وو او د دې خبرې په مقابل کې یې

هرو مرو ښه اس وربخشش کاوه ، افغان شهزاده به فکر کاوه چې داس په ورکولو يې رنجيت سنگهـ ترمنت او احسان لاندې شو . حتى فکريې کاوه چې دی مې واخيست . په دې توگه ددوی ترمنځ څه ناڅه اعتماد او باور پيدا کيده ، په دې پسې دويمه مرحله داوه چې د محبت او دوستۍ دفضا د پراخيدو لپاره پگړۍ يو بل ته ورکول کيدې چې دوستي په وروري بدليږي . دې کار دا ځل نتيجه ورکړه او محمود بهر ته ولاړ .

د ۱۸۱۲ په پای کې د شاه شجاع او شاه زمان ميرمنې او کورنۍ لاهور ته د پناه اخيستلو په مقصد راورسيدې . کشمير که څه هم لرې و د محمود د دښمنانو لپاره چندان مصئون ځای نه و ، وزير فتح خان شخصاً ديوه قوت په تيارولو او دهغه په گمارلو بوخت وچې داسيمه دابدلپاره ترخپل حکم لاندې راولي . رنجيت هم غلی نه و چې فرصت له لاسه ورکړي . دد د کشمير دغرنيو سيمو خانان او ملکان يو په بل پسې تکول چې دتولې وادې دنيولو فرصت ځانته مساعد کړي . دد هميشه دخپل برياليتوب لپاره له نورو سره دهمدردۍ په شکل ځان صحنې ته گډولو ، او دنورو په چارو کې يې دځان لپاره برياليتوب لټوله . دد دشاه شجاع ميرمنې ته وعده ورکړه چې د کشمير حکومت به ددې ميره لپاره تينگ کړي ، خو په دې شرط چې ددوی له برياليتوب او پاچا کيدو سره سم د کوه نور الماس دد ته ورو بښي .

رنجيت سنگهـ دوه هدفونه درلودل . يو داچې کشمير دد د پاچاهۍ برخه شي او بل داچې شاه شجاع شخصاً دد په تسخير کې راشي ، دلومړي هدف لپاره لاره هواره شوې وه ، ځکه د رنجيت سنگهـ زوی « کرک سنگهـ »Kharak Singh نيولې و . مگر په دې مرحله کې وضع يو څه پيچلې شوه ځکه وزير فتح خان د ۱۸۱۲ په پای کې راغی او په خپله يې

غوښتل هغه څه تر سره کړي چې شاه محمود تيرک ورباندې بريالی شوی نه و. دواړه حريفان يو بل سره برابر وو او قوتونه يې هم مساوي وو. مګر رنجيت سنګهـ د فتح خان ليدو ته هم تيارو. دوی سره وليدل، خو نه پګړی تبادله شوې او نه داسانو په هکله خبرې وشوې. رنجيت ويلي وو چې داټک ګورنر ته به هم سزا ورکړي ځکه چې شاه شجاع يې توقيف کړی و. همدارنګه د ملتان ګورنر ته به هم سزا ورکړي د دې لپاره چې هغه نه شجاع ته اطاعت کاوه او نه يې محمود ته اطاعت کاوه. فتح خان چې د کشمير نيولو خيال درلود په دې مرحله کې يې نه غوښتل چې د رنجيت سنګهـ له مخالفت سره مخامخ شي نو ځکه هر ډول وعدې ورکولو ته تيار و. هريوه دا اميد درلود چې له بل لوري څخه ګټه واخلي او په ګډه سره د کشمير نيول پيشنهاد شول. يو هم په مکمل ډول سره د خپل هدف په تر لاسه کولو بريالی نه شو. د ۱۸۱۳ کال په پسرلي کې کشمير اشغال شو. مګر درانيانو سکان څنګ ته کړل او فتح خان داوښوو له چې کشمير يې په ګوښي ځان نيولی دی. رنجيت له غنيمت څخه محروم شو. د ه شاه شجاع هم هير کړی و پخواني پاچا د خپلو سترګو د ساتنې په خاطر دا ښه ګڼله چې له سکانو سره يو ځای شي. نو ځکه د محمود له ويرې له رنجيت سره لاهور ته ولاړ. داوارکه څه هم کشمير د سکانو له ګوتو څخه ووت مګر وروسته نورې خبرې راپيدا شوې چې د رنجيت خواته تله درنده شوه. داټک باغي ګورنر چې د فتح خان له بريالیتوب څخه په کشمير کې خبر شو نو له خپل ډاره يې داټک مشهوره کلا رنجيت سنګهـ ته ور تسليم کړه. فتح خان ته قهر ورغی او جګړه يې پيل کړه. د ۱۸۱۳ د جولای پر ۱۳ د سکانو او درانيانو تر منځ د «منسار» Mansar په سيمه کې جګړه (لومړی جګړه) وشوه. منسار داټک کلا شمال شرق ته پروت دی. د سيمې قبيلو له فتح خان

سره هیڅ مرسته ونه کړه ، داخلک دشاه شجاع پلویان وو ا و په نتیجه کې فتح
خان د « موکم چند » Mu Kam chand په لاس ماتې وخوړه . داجګړه
دیوه بل دلیل له مخې هم دیادونې وړ ده ځکه چې د فتح خان ورور دوست ـ
محمد خان چې دپاینده خان په زامنو کې پنځلسم زوی و اوپه دې وخت کې
اتلس کلن ځوان وهم په دې جګړه کې شرکت درلود .

ظاهراً شاه شجاع په لاهور کې درنجیت سنګهـ معزز میلمه ومګر ده ډیر
زیات پلانونه درلودل چې عملي یې کړي . دده لومړی مرام دا وچې دده په
موجودیت کې کشمیر ځانته ونیسي ، داشک هم کیږي څرنګه چې مخلوع
پاچا شاه شجاع د پېښور په قبایلو کې زیات پلویان درلودل ، رنجیت غوښتل
چې ددراني پاچا دنامه تر پوښ لاندې پیښور هم ونیسي . همدارنګه ده کوه ـ
نور هم نه و هیر کړی چې دمغولو دتاج قیمتي الماس تر لاسه کړي . دسکانو
مورخین لیکي چې : په لومړي سر کې شاه شجاع له تولو خبرو څخه ډډه کوله
او نغدې پیسې یې هم نه منلی . مګر وروسته رنجیت سنګهـ پخپله له ده سره
لیدنه وکړه او پګړی یې سره تبادله کړې اود دوستانه اړیکو اعلان یې وکړ او
شاه شجاع ته یې جاګیر ورکړ . چې په پنجاب کې ځان او کورنی وساتي
اوهمدارنګه یې دکابل د نیولو وعده هم ورکړه . کوه نور رنجیت سنګهـ ته
ورکړل شو . مګر افغاني مورخین په پورتني نظر نه دي . امیر عبدالرحمن
خان داسې لیکي : » رنجیت سنګهـ له شاه شجاع سره ظالمانه چلند وکړ او هغه
یې بندي کړ . ده دکوه نورالماس چې اوس له ملکې ویکتوریا سره دی په زوره
له شاه شجاع څخه واخیست . مورخین لیکي چې دکوه نور داخیستو په وخت
کې دشاه شجاع رنګ والوت او ډیر خواشینی شو حال داچې مقابل لوری ډیر
خوشحاله ښکاریده او ددغې قیمیتي تحفې په تر لاسه کولو یې ډیرې چک

چکې کولې ، دانیمګړې نړۍ همیشه داسې ده دځینو په خپګان کې ځینې نور خوښیږي . یوه خوا په جګړه کې بری مومي او له مقابل لوري څخه انسانان وژني او له خپل بریالیتوب څخه دخوښۍ اظهار کوي . برعکس بل لوري چې ماتې خوړلې وي ، انسانان یې له لاسه ورکړي او تلفات یې لیدلي وي خواشیني ښکاري او دخپلو مړو په رویر ژاړي . »

دسکانو مورخین لیکي چې کوه نور الماس په وړیا او په زور نه دی اخیستل شوی او رنجیت سنګهـ پرخپل عهد باندې ټینګ ولاړ و چې د کابل په نیولو کې به مرسته کوي . یانې نه یوازې د ۱۸۳۸ معاهدې چې دانګریز حکومت هم په کې برخه اخیستې وه ملاتړ کاوه ، بلکې د عسکرو په لیږلو او دجګړې دمادي مرستو لپاره یې هم خپل چمتوالی ښودلی و او دلارو دساتلو وعده یې هم ورکړې وه . ځواب دادی چې رنجیت سنګهـ ډیر زرنګ و او دافغان حکومت یې دغرونو په منځ کې داباسین آخوا ټینګ کړ . دا دکوه - نور له غصبولو څخه دباندې معامله ده . ده کشمیر هم تر لاسه کړ . کله چې داتولې خبرې ویل کیږي او کوربه په دې ډول ځان بریالیتوب ته رسوي که څه هم چې په چال او فریب سره وي . خو دکوربه په کورکې میلمه ځان نه په زندۍ کوي .

داباسین آخوا هرډول تبادلې ته چې په هغې کې چال او نیرنګ وي دسکانو میتود یې بولي او داترنن پورې چانه ده هیره کړې . دسکانو دواکمنۍ دغه تجربې څوکاله وروسته لاهم کیدې . رنجیت سنګهـ په چل ول سره غوښتل چې ددراني امپراتورۍ ختیزې سیمې خپلې کړي او هلته خپله پاچاهي قایمه کړي . پر ۱۸۱٤ کال دشاه شجاع میرمنې فرار وکړ او له سوتلیج څخه تیره شوه ، په لودیانا Ludhiana کې یې دانګریزانو سرحدي پوستې ته ځان

ورساوه . څو میاشتې وروسته شاه شجاع هم وتښتیده ، مګر رنجیت سنګهـ څه چې غوښتل تر لاسه یې کړل نوریې ده ته ضرورت نه درلود ، نو ځکه داسې ویل کیږي چې رنجیت سنګهـ له فرار څخه خبرو او دده په هدایت سره دفرار زمینه برابره شوې وه . معـــــزول پاچا دکشـــــــمیر دغرو لمنو دکیشتوار Kishtwar خان ته ورغی او نږدې وچې دکشمیر ګورنر دفتح خان له ورور محمد عظم خان څخه کشمیر ونیسي ، مګر په وروستۍ شیبه کې ناکام شو. شاه شجاع د « کولو » Kulu له لارې چې سیملې Simla ته نږدې دی دلودیانا خواته تیر شو چې دانګریزانو په اسارت کې له فامیل سره یوځای شي ، داکار پر ۱۸۱٦ کال دمني په وخت کې وشو . شاه شجاع لاهم ۲٦ کاله درلودل چې په سیاست کې لوبې وکړي .

پر ۱۸۱۵ کال رنجیت سنګهـ هم هڅې وکړې چې کشمیر ونیسي مګر بریالی نه شو . له ګجرات څخه دده قوتونه دمغولو دپخوانۍ لارې له خوا له پیرپنجال څخه بیمبار ته تیر شول او دی بریالی شو چې دکشمیر ددرې دلومړي کلي شپینان Shupiyanan پورې ورسیږي چې دوادۍ په شمالي لمنو کې پروت دی ،دلته په شاوتمبیده او ضایعات یې هم ورکړل . په دې موقع محمد عظیم خان سخته میړانه وښودله او حتی پرسکانو یې زړه سوی وښود .

داټک ددوو کالو مخکیني فاتح قوماندان « موکم چند » دلمسي پیشقراول یې له عام قتل څخه وژغوره یانې ژوندي یې پریښودل . رنجیت پر ۱۸۱۸ کال دا جبران کړه او ملتان یې ونیو . دی اوس اباسین ته څېرمه شو . له اټک څخه دپنځو دریابونو د یوځای کیدو نقطې پورې دشمال جنوب خط په امتداد یې له ملتان څخه لاندې دپوځ ځای ونیوه .

داباسین شرق ته درانیان په کشمیر او یو شمیر دهزاره په سیمه کې قید

شول . له کابل او پښور سره دارتباط ساتلو په مقصد دوی مجبور وو چې دجالو په واسطه له اټک څخه شمال ته له ابا سین نه تیر شي . داټک کلا درنجیت سنګهه په لاس کې وه .

دتیمور شاه له مړینې څخه (۱۷۹۳) بیا تر ۱۸۱۸ پورې دافغانانو داخلي تاریخي بهیر له سپینو انقلابونو ( دقصرونو انقلابونه) څخه ډک دی. داحمد شاه بابا دلمسیانو سدوزي ورونو تر منځ پادشاه ګردي (پاچا بدلیدنه) کال په کال جاري وه . پر ۱۸۱۸کال پادشاه ګردۍ دومره جدي شکل ونیو چې دسدوزیو کورنۍ څخه پاچاهي محمدزیو کورنۍ ته واوښته . لکه چې سدوزي کورنۍ پوپلزیو ته ګډیږي . محمدزي پر بارکزي درانیو ورګډیږي . دمحمد زیو مشهوره کورنۍ پاینده خیل دي چې دنادر شاه افشار او احمد شاه بابا دزمانې دبارکزیو لوی مشر حاجي جمال خان ته یې شجره ورګډیږي . دپاینده خان مشر زوی وزیر فتح خان و .

که څه هم شاه محمود دویم ځل پر ۱۸۰۹ کال پاچا شو خو له هماغه وخت څخه عملاً دمملکت چارې ټولې د وزیر فتح خان په لاس کې وې . محمود به په میاشتو میاشتو ورک و ، کله به له ځان نه خپه و او کله له خلکو نه . په عیش او عشرت کې ډوب و . کله کله به ناڅاپه راپیدا شو نو دظلم ، تعدی او بې ګناه خلکو دربړولو قوماندې به یې صادرې کړې .

ده دمخه ډیر وخت له ترکي قاجارو سره تیر کړی و او دتاج او تخت دعوی یې کوله همدارنګه دمنځنیو پیړیو بخارایي محکمه کې یې دظلم او سزا ډول ډول شکلونه لیدلي وو د زجر او تکلیف ورکولو مهارت یې عملاً تر لاسه کړی و . څه چې وحشي شهزاده ګانو کول ده هم ورڅخه زده کړي وو . ده دسزا ورکولو او دانسانانو له زجر څخه دخوند اخیستلو لپاره شهرت درلود . دده

زوی کامران تر پلار هم ډیر ظالم و او مطلق سادیست و . کامران د هرات والي مقرر شوی و. پر ۱۸۱۸ کال کله چې رنجیت سنګهـ ملتان ونیو. وزیر فتح خان په هرات کې و چې د پارس له خوا کوم برید چې شوی و شنډ کړي . د ده خپل ځوان ورور دوست محمد خان چې پنځه کاله د مخه دا تېک په ماتې کې هم ورسره و ، داخل هرات ته هم له ځان سره بیولی و . فتح خان د پارسیانو په ماتولو کې بریالی شو او د ده تدابیر پوره مؤثر ثابت شول او د ده د شاباسي سبب شول . په هرات کې له بریالیتوبونو سره سره د کامران له مخالفت سره مخامخ شو . کامران بدنیتی او ځان غوښتونکی انسان و د خزانې او شتمنۍ له شتوالي څخه یې انکار وکړ ، نو ځکه وزیر فتح خان خپل کشرورور دوست محمد خان ته وظیفه ورکړه چې قصر ته ننوځي او که مجبور شو حتی له زور څخه دې کار واخلي . دوست محمد خان د جي سنګهـ Jai Singh په مرسته قصر په زور سره ونیوه . جي سنګهـ د « اټاري » کلي خان و چې امرتسر ته نږدې دی . څرنګه چې ده له رنجیت سنګهـ سره دښمني درلوده نو له وزیر فتح خان سره یو ځای شوی و او په دې موقع د افغانستان آخیرینې کرښې پورې رسیدلی و . دوست محمد خان او ده سک ملګری بریالی شول خو په یوه تور تورن شول . هغه دا چې کامران د وزیر فتح خان د لرې کولو لپاره توطئه جوړه کړه او یا بنا یې حقیقت وي . په هر حال کامران خپل پلار ته شکایت وکړ چې یوه مشرک دده خور ته لاس وا چاوه او بې عزتې یې وکړه .د ه تینګار کاوه چې باید وزیر فتح خان ډیره سخته سزا وویني او مړ شي . کامران د وزیر فتح خان پر مړینې باندې سخت تینګار کاوه د غچ اخیستلو لپاره وزیر فتح خان دربار ته غوښتل شوی و . داسې وایي چې له وزیر فتح خان څخه یې په ژوندوني غوښې او پوستکي پریکول او دده د وجود غړي یې یو یو لنډول تر هغه چې مړ شو .

شاه محمود او دده زوی کامران ورته نا ست وو . داوحشیانه سزا ددوی په حضور کې پر وزیر فتح خان باندې عملي شوه . تر ټولو سم راپور هغه دی چې اتیا کاله وروسته امیر عبدالرحمن لیکلی دی .

دی لیکي : چې پر ۱۸۱۸ کال ، وزیر فتح خان دکلونو کلونو خدمت او وفادارۍ سره سره د محمود له خوا ووژل شو ، دده مستبد زوی کامران چې له وزیر فتح خان سره یې حسادت درلود او ځینو نورو شیطانانو محمود دې ته وهڅاوه او وزیر فتح خان یې ډیر ځوراوه ، ړوندیې کړ او ویې واژه . ده محمود دوه وا ره سلطنت ته رسولی و . فتح خان یې مجبور کړ چې خپل ورونه وشړي او له هغوی څخه بیزاره شي مگر فتح خان قبوله نکړه او ورته تسلیم نه شو . شاه محمود امر وکړ چې وزیر فتح خان بند په بند جلا کړي . دوزیر فتح خان دوجود غړي یې دپاچا په مخکې یو یو لنډ کړل . په دې ډول افغانستان په تاریخ کې یو نومیالی ، پوه ، باتور او په آزادۍ مین پښتون په ډیر زجر سره ووژل شو . دده شهرت او عزت دده کشر ورور دوست محمد خان سره زیاته مرسته وکړه او په نتیجه کې دکابل پاچا شو .

په پښور کې وزیر باغ دفتح خان دلاس ننبه ده او دده دسروونې دده یاد تازه کوي . داډیر غمگین ځای دی دلته دوزیر فتح خان روح همیشه ناآرامه گرځي ، فتح خان خپل ژوند په جگړو کې تیر کړ او په دې باغ کې به دده عسکرو دجگړې لپاره تیاری کاوه .

داظالمانه قتل دپاینده خیلو لپاره دانقلاب زیگنال و . اعظم خان له خپلو ډیروښوسربازانو سره له کشمیر څخه راوخوځید او خپل ورور « جبار » یې هلته پریښود . په څو میاشتو کې یې محمود له کابل ، غزني او کندهار څخه ویوست ، محمود او دده بدنام زوی مجبور شول چې دهرات ولایت ته په شا

شي ، بیا کله کله جګړې وشوې او څو کاله یې دوام وکړ . دسرحد قبایلو له پخواني رژیم څخه لاس واخیست اونوی حکومت یې هم په رسیمت نه پیژنده او په دې ترتیب اته کاله په ټول وطن کې ګډوډي روانه وه . له ۱۸۲٦ څخه وروسته کله چې اعظم خان مړشو دوست محمد خان پردې بریالی شو چې په کابل کې قوتونه تحکیم کړي او محمود یې په هرات کې محاصره کړ . ډیر کلونه په کار وو چې کندهار هم تر کنترول لاندې راولي .

رنجیت سنګهـ هم داسې فرصت ته منتظرو . ۱۸۱۸ لاپای ته نه ورسیدلی چې رنجیت سنګهـ دا اټک د پاسه له اباسین څخه تیر شو او تر پېښور پورې ورسید . دلته له پاینده خیلو ورونو څخه یو تن د یار محمد خان په نوم ګورنر و . ګورنر عسکر نه درلودل ، ټول منظم عسکر محمداعظم خان د شاه محمود مقابلې ته بیولي وو . نوځکه دي مجبور و چې له پېښور څخه ووځي . مګر رنجیت سنګهـ زیات احتیاط کاوه . دی پوهیده چې موقف یې دومره قوی نه دی نوځکه یې خپلې طالعې ونه ازمویلې . دده د بریالیتوب یوه نښه داوه چې ده هیڅکله بیړه نه کوله او تل په بنستیز ډول مخ په وړاندې تللو او زیات احتیاط یې کاوه . په دې لحظه کې ده ته د پېښور نیول ګټه ور نه ښکاریدل او له نوتلو څخه یې صرف نظر وکړ او په خیر آباد کې یې اټک ته مخامخ د کلا په جوړولو پیل وکړ . د خیر آباد نسیم ډیر تازه کوونکی و او خوشال خان هم په خپلو شعرونو کې دهغه یادونه کړې ده . اوس د خیر آباد نسیم دسکانو بیرغ رپاوه . دا باسین په دواړو غاړو کې له یوې کلا څخه بلې کلا ته دسکانو زیګینالو نه استول کیدل او اخیستل کیدل .

رنجیت سنګهـ له پېښور څخه په شا شو او غوښتل یې چې هغه هدف تر لاسه کړي چې ډیره موده یې په زړه کې و . داعظم خان تګ او دوروردمړینې غچ

اخیستل بله پلمه شوه چې پخوانۍ هیله تر سره کړي . نوځکه پر ۱۸۱۹ کال بې د گلاب سنگهـGulabSingh په مرسته کشمیر ونیوه او داعظم خان ورور جبار خان یې له کشمیر څخه وایسته . دراني حکومت په کشمیر کې ۶۷ کاله دوام وکړ احمد شاه بابا کشمیر له مغولو څخه پر ۱۷۵۲ کال آزاد کړ . تقریباً ۲۰۰ کاله کشمیر د مغولو دامپراتورۍ برخه وه او له هغه نه دمخه د ۱۳۴۱ م کال راهیسې د مسلمانانو په لاس کې و . تقریباً پنځه پیړۍ افغانانو او پښتنو په دې هیواد کې برجسته رول درلود . دوی نه یوازې په حکومت کې کارونه درلودل ، بلکې په زیات شمیر میشته شوي هم وو ، نو دا د حیرانتیا وړ خبره نه وه چې د سرحدي قبایلو پښتانه هلته خاصه مینه بښيي . د دغې پښتنې مینې موجودیت به د دغې درې پرراتلونکي بې تاثیره نه وي . داباسین ختیځ ته د درانیانو پوله خاوره د دوی له لاسه ووتله او سکانو دافغانانو پلو ته داباسین په غاړه کلکه اډه جوړه کړه . په دوو راتلونکو کالوکې یې ، دیره غازي خان او دیره اسمعیل خان هم ونیول ( دیره اسمعیل خان باج ورکاوه ) او د حسن ابدال شمال ته یې هزاره قبیلې هم وټکولې او د کشمیر لارچې د دې خلکو په لاس کې وه ، پاکه کړه او داسیمه د رنجیت تر حکم لاندې شوه . درانیانو ته کوم چلینج چې متوجه و باید دهغه ځواب وویل شي : پر ۱۸۲۲ کال اعظم خان له سک مشر « جي سنگهـ » سره پېښور ته راغی او اراده یې کړې وه چې پر خیر آباد یرغل وکړي او رنجیت د اباسین پورې غاړې ته مجبور کړي . مگر تر دغه برید دمخه کورته نږدې جنجالونه پېښ شول او رنجیت هم بیره وکړه د پېښور گورنر یار محمدخان څخه یې باج وغوښت ، یار محمدخان چې د خپل ورور له غوښتنې څخه خبرو ، او همدارنگه یې له رنجیت سنگهـ څخه کرکه او ویره درلوده . د رنجیت سنگهـ باج یې ښه

وباله . ده ځو بنايسته او مجهز اسان د تحفې ، په ډول ورولېږل. مهاراجا ډېر
خوښ شو او ظاهراً په شاشو او له خپلې خوابنې سره يې چې دستيلج پر غاړه
ديوې کلا پر سر شخړه درلوده ، ځان مخامخ کړ ، ددې شخړې لړې کولو څخه
وروسته يو ځل بيا داباسين خواته راغی . دی خبر شو چې اعظم خان داسانو
د تحفې له کبله سخت په قار شوی او د پېښور خواته راروان و . يار محمد خان
دسوات يوسفزيو ته پناه يووړه او د خپل ورور له قار څخه يې ځان بچ کړ .
داڅرگنده ده چې پېښور ډېر مهم ځای دی ، نو دنوښهرې مشهوره جگړه پيل
کيدونکې وه .

د ۱۸۲۳ د مارچ په مياشت کې چې باران نه کم شوي وو په اباسين کې اوبه
لږې وې . رنجيت وغوښتل چې هغه څه عملي کړي چې نورو کړي وو. احتمالاً
دسکندر ، محمود غزنوي او بابر په شان دهوند له کلي سره چې پخوانی
ويهند ( اوهند ) دی د تاريخي جالو پورې وتلو ځای څخه اباسين پورې
وځي .له « غازي » او پيهاړ « Pihar » څخه لاندې دهزاره په غونډيو کې له
خيرآباد څخه بر دلنډې سيند دګډيدو په سيمه کې داتک له تنګې څخه
مخکې اباسين ديوسفزو « دسمې » او« چاچ »Chachh تر منځ نالې نالې
بهيږي او پراخه سيمه يې نيولې وي . لږ تر لږه درې يا څلور کاناله ورڅخه
جوړوي .

په برابر موسم کې تکړه سپاره له دې ځای څخه تيريدلی شي. دجهاد نارې
پيل شوې او يو شمير ديوسفزيو غاړه ونيوله او دسکانو سپاره يې تهديدول .
دوی زيات په جوش کې وواو په اوبو ورګډشول . ځينې په اوبو کې له منځه
ولاړل او يو شمير ورپورې وتل . رنجيت له اصلي قوت سره په کراره مخ په
وړاندې تلو ، بيړۍ يې له ځان سره اخيستې او توپونه يې دهاتيانو پر شا له

اباسین څخه پورې ایستل . دیوسفزو او ختټکو لښکر چې شمیر یې شل زرو تنو ته رسیده د « پیر بابا » داولادسیداکبر شاه تر مشرۍ لاندې راټول شوي و .دوی په یوه قوي موضع کې د « پیر سباک » Pir Sabak په شاوخوا کې چې دادلنډي سیند پرچپه غاړه (شمالي غاړه) دننني رسالپور ختیځ ته ځای پرځای شوي وو . ددوی یو شمیر ملاتړی قوت یو میل غرب خواته په هغه نقطه کې ځای پرځای شوی و چې پښتانه یې تره کۍ Tarakai بولي او انگریزان یې دمرمر وډبرې Marble Rocks بولي . اعظم خان دکابل له منظمو لښکرو سره دسړک په امتداد له پښور څخه حرکت وکړ مگر ده پر قبایلي لښکرو باندې پوره باور نه درلود او له خپلو ورونو څخه یې هم څه ناڅه کرکه کوله . ده دسړک په اوږدو کې دننني نوښهرې چاونۍ څخه درې میله شرق خواته موضع ونیوله . البته هغه وخت داچاونۍ نه وه . خو یو کوچنی کلی وچې نوښار ( نوخار ) نومیده او داسیمه په هماغه نامه یادیږي ، داکلی دلنډي سیند پر چپه ( شمالي ) غاړه پروت دی ، څرنگه چې اصلي جگړه دپیر سباک دغونډۍ په شاوخوا کې وه نو داسیمه کله پیر سباک هم بولي . په دې ډول داعظم خان قوت دلنډي سیند په واسطه له قبیلوي لښکرو څخه بیل شوی و .

مهارا جا یوه کوچنۍ قوه داباسین ښۍ غاړې ( جنوب غاړې ) ته واستوله چې اعظم خان په خپلې موضع کې مصروف وساتي او خپلو توپونو لپاره داقوت بدرگه شي . دده توپونه داصلي سړک په اوږدو کې لیږدول کیدل په دې نقطه کې ددریا پرغاړه په حرکت کې وو . ده خپل اصلي سپاره او پلي قوتونه دقبیلوي قوتونو په مقابل کې چې په پیرسباک او تره کۍ غونډۍ کې ځای پر ځای وو تنظیم کړل . دی ښه پوهیده چې مهم دښمن څوک دی ؟ ده

داعظم خان د دراني قوتونو لپاره خاص تدابير نيولي وو . دقبيلوي غازيانو او سکاکالي تر منځ دلاس او ګريوان جګړه پيل شوه . دامرتسر دمتعصبو سکانو مشر پولا سنګهـ Phula Singh ووژل شو . دسکانو سپاره دقبيلوي پلي غازيانو په مقابل کې عاجز پاتې شول . دوی په سختو مورچلو کې ځای نيولی و . جګړه دسکانو په تاوان پرمخ تله . ديوسفزو او ختکو توري لښکرې در نجيت سنګهـ پر منظم پياده قوت باندې راولويدلې او هغه تيت وپرک شول . مګر په يوه اړخ کې در نجيت سنګهـ يوه ګورکه (ګورخه) Gurkha کنډک ودمربع په شکل کلک ودريدل او دقبيلوي لښکر مخنيوی يې وکړ او توپچي هم خپل رول ولوباوه او دپښتنو پر مختګ يې ودراوه .

قبيلوي غيرت او ميړانه لا په جوش کې وو او غازيان دډبرينو غونډيو په منځ کې بيا ځای پر ځای شول . سکانو پر پيرسباک باندې درې ځله بريد وکړ مګر بريالي نه شول او درې واړه بريدونه په شا وتمبول شول ، مګر په څلورم وارېې غونډۍ ونيوله . په دې بريد کې پخپله رنجيت سنګهـ « دګورکه » قوت او خپلو باديګاردانو په راس کې و . رنجيت سنګهـ څو موده وروسته دګروال « ويد » Colnel wade دبرتانيې ايجنت ته په دربار کې وويل چې د ده يوازينې روزل شوی او ددسپلين خاوند قوت « دګورکه » قوت وچې تر پايه يې مقاومت وکړ .

په دې وخت کې اعظم دسيند پر بله غاړه غير فعال ولاړو . دده هڅه ونه کړه چې له سيند څخه پورې وځي . او يا دسکانو د توپچي فعاليت خنثی کړي . حال دا چې دده قوت هملته نږدې ځای پر ځای وو . په هغه ماښام دی په شاشو . دی په جګړه کې بوخت نه و او دخپل شاتګ لپاره يې هيڅ پلمه هم نه درلوده . نهه کاله وروسته الکساندربرنيس Alexander Burnes په

پېښور کې داسې اوريدلي وو چې اعظم خان دخپلې خزانې تشويش کاوه چې چورنه شي . ښايي د ده لښکر دا کالي سکانو دچيغو ترتاثير لاندې راغلی وي .

دقبيلوي لښکرو تلفات بيخي ډير وو او د تره کي، غونډۍ جنوب ته نوشهرې ته نږدې له قبرستان څخه معلوميدای شي . دا ډيرې لويې قربانۍ مثال دی . له دې ډېرو وژنو سره سره په راتلونکي سهار غازيان بيا سره ټول شول او دخپل پيرزاده سيد اکبر تر مشرۍ لاندې جګړې ته تيار شول مګر اعظم خان تللی و او دوی بې حمايې پاتې شول نو ځکه داورځ درنجيت سنګه دبري ورځ شوه .

اعظم خان په زړه مات شو او تر جګړې لږه موده وروسته بې له کوم تپ مړ شو . تردې وروسته په پښتو کې دا مثل پاتی شو . يوسفزي يو ختک او يو اپريدي به بيا د محمدزي سردار پر خبره باور ونه کړي . ځکه دا به شکمنه وي که په بده ورځ کې به دی په ميدا ن کې حاضر وي » شاه شجاع سدوزی و . په اپريديو او يوسفزيو کې د ده په درنده سترګه کتل کيدل او پرده باندې دوی هميشه باور درلود ، دشاه شجاع ښې خاطرې له دوی سره پاتې دي . مګر له نيکه مرغه چې قبيلوي پښتنو قاتل او مستبد محمود سدوزی او دده خونخوار ، ساديست زوی کامران سدوزی نه پيژندل ، ځکه چې ددوی پر لاره نه وو تير شوي .

داعظم خان له مړينې سره دشل تنو ژونديو ورونو تر منځ وحدت له منځه ولاړ . دوست محمد خان په کابل کې داعظم خان پر ځای کيناست او يارمحمد خان پېښور ونيوه . له يار محمد خان سره درې نور ورونه هم و و چې مشر يې سلطان محمد خان و او دده په هکله ډير څه شته چې وويل شي ، او پنځه نور

ورونه پردل . کهندل ، شیردل مهردل او رحم دل چې دغلجي سورزامن وو په کندهار کې پاتې شول . په هرات کې سدوزي محمود په قوت کې پاتې و او له خپل زوی کامران سره یې په جبر حکومت کاوه .

له دې جگړې څخه وروسته رنجیت سنگهه دپېښور پر خوا حرکت وکړ او هر څه یې لوټ او تالان ویجاړ کړل . بالاحصار یې دړې وړې کړ ، قصرونه یې وسوځول ، دسروو ونې یې لنډې کړې . ځوارلس کاله پخوا دلته شاه شجاع له الفنستون سره لیدنه کړې وه . دشاه لمان Shah Leman باغ یې هوار کړ او ونې یې لنډې کړې ، دپېښور شان او برم یې له خاورو سره برابر کړ . دسک شاهي نوم تر نن پورې له بدبختۍ او چپاول سره مترادف دی . دمحبت خان مسجد یې رنگ کړ ، چې دادښار جامع جومات و . دجومات بنسټ داورنگ-زیب دگورنر په لاس پر ۱۶۷ کال کې ایښودل شوی و . ددې جومات نقشه دلاهور دبادشاهي جومات په شکل وه . اوسنی مسجد هم له مرمرو او چونې څخه په غریبانه شکل جوړ شوی دی . دانگریزانو په وخت کې بیا ترمیم او جوړ شوی دی . اوس چې په پېښور کې هیڅ تاریخي ځلي او یادگارونه نه لیدل کیږي ، سبب یې دادی چې پر ۱۸۲۳ کال رنجیت سنگهه هر څه له منځه وړي وو . مگر رنجیت سنگهه په پېښور کې پاتې نه شو . یار محمد خان یې هلته مقرر کړ او پخپله جنوب ته بیرته ولاړ . دی پوهیده چې خلکو له ده څخه څومره کرکه کوله او داکرکه ورځ په ورځ زیاتیده .

دفتح خان دمړینې (۱۸۱۸) او دنوشهرې دجگړې (۱۸۲۳) تر منځ موده کې شاه شجاع یو ځل کلک اقدام وکړ چې بیا خپل تاج او تخت تر لاسه کړي پر ۱۸۱۶ کال یې دځان لپاره آبرومند موقف په لودیانا کې تر لاسه کړ مگر دده خیال دکابل او لږ تر لږه دپېښور په هکله و او دانگریزانو استشاره یې چې

پناه اخیستونکی دی ، نادیده وشمیرله ، په پیل کې اعظم خان ده ته د مرستې وعده ورکړې وه مگر وروسته یې خپله خبره بیرته اخیستې او شاه شجاع د سند او دیره غازي خان په لور خپل تخت و از مویلو . یو وخت پورې یې داځایونه په لاس کې لرل او مخ په شمال ولاړ او پېښور یې یوازې دځوورځو لپاره بیا ونیوه . مگر له هغه ځای څخه وشړل شو . بالاخره درېیم ځل یې له اپریدو څخه په خیبر کې پناه وغوښتله ، مگر چورا Chora عمومي سړک ته نږدې وه . ده دامنیت په هکله تشویش درلود ، بیا د سند خواته ولاړ او یو کال یې هلته تیر کړ . اعظم خان د حیدر آباد پر مشرانو باندې فشار واچاوه او هغه مجبور شو چې له سند څخه ووځي . پر ۱۸۲۱ کال بیا لودیانا ته ولاړ او هلته میشته شو .

رنجیت سنگهه پېښور ، کوهاټ ،بنو او دیره جات تش په نامه تر خپل حکم لاندې راوستل مگر عملاً یې په موثر شکل سره داولایت تابع نه کړای شو . د رنجیت سنگهه قوتونه په مسلسله توگه له قبایلو سره پر جگړه بوخت وو . حتی که درانی گورنران یې هم رعیت کړي وو ، خو قبایل یې رعیت نه کړای شول . دخپل اشغال په لومړیو کالو کې حتی پر دې بریالی نه شو چې د اباسین په شمال شرقي برخو کې له اټک څخه تر هزاره سیمې پورې خپل حکم تطبیق کړي او امن راولي . پر ۱۸۲٤ کال یوازې یو کال د نوشهرې له جگړې څخه وروسته د اباسین په دواړو غاړو کې یوسفزیو د پیرزاده سید اکبر شاه تر مشرۍ لاندې پاڅون وکړ .

دا هغه څوک و چې یو کال وړاندې یې د پیر سبا ک مقاومت او مقابله تنظیم کړي وو. دی له هغې مشهورې سیدې کورنۍ څخه و چې موسس یې سید علیشاه ترمذي دی او ټول یوسفزي یې د پیربابا په نامه پیژني او په دې

سیمه کې ډیر لوړ روحاني شخصیت و . دپیربابا په اولادو کې یو هم سید زمان ـ شاه و چې دمغولو پاچاهانو ده ته په سوات او بونیر کې جاګیر ورکړی و او هزاره سیمه یې تر قوماندې لاندې وه . دا سیداکبر شاه دهغه لمسی و . ددې کورنۍ نوم او شهرت دسوات او بونیر دسیمې په ... او ژوند چارو کې او ـ بدل شوی دی . درنجیت له زمانې څخه بیا تر شلمې پیړۍ پورې دانګریزانو او سکانو په مقابل کې یې کلک دریځ درلود ، دوی د مجاهدینو په نامه یادیدل او دوی به هندوستاني متعصبین بلل کیدل . په هزاره سیمه کې له « دیر » Dir څخه تر « پخلي » Pakhli پورې دوی مذهبي او سیاسي تسلط درلود .

دسیداکبر شاه دورور لمسی سید عبدالجبار شاه اوس هم ژوندی دی (دلیکونکي په وخت کې ) او داباسین په غ... ره په سیتانا Sitana کې اوسیږي ، دخپلې کورنۍ دود او دستور ساتي او دسوات او بونیر په قبیلوي سیاست کې دلوړ آواز خاوند دی . داکورنۍ په ډیره لوړه توګه ترنن پورې بریالۍ شوې ده چې دسیمې دخلکو دژوندانه او سیاست لپاره فکر وکړي او خلک پرځان را ټول کړي . دوی همیشه داقابلیت درلودلی دی چې دپښتنو احترام ځانته جلب کړي .

دسکانو له غاړې هري سنګهه نلوا Harisingh Nalwa چې تکړه عسکر ، دباور وړ مشاور او نابغه و او رنجیت سنګهه پرهغه حساب کاوه او په ټولو جنرالانو کې یې لوړ مقام درلود . رنجیت سنګهه کله چې پر ۱۸۲۳ کال بیرته لاهور ته ولاړ ، دی یې په پښور کې پریښود او داډیره خطر ناکه او مشکله دنده وه .

دسیداکبر شاه کلا په سیتانا کې تور بیلا ته مخامخ هغه ځای کې پرته ده چې اباسین له غرو څخه هلته راوځي او دسوابۍ دهوارې سیمې او چچ

Chachh تر منځ پرته کانالونو بيليږي. داهغه سيمه ده چې بابر به دلته دګرګدن Rhinoceros ښکار کاوه. دمندړ يوسفزو اتمانزي په دې سيمه کې اوسيدل او تراوسه هم داباسين ددواړو غاړو سيمه ددوی په لاس کې ده. دوی دسيداکبر شاه تر حکم لاندې راټول شوي وو او په پير سباک کې نږدې و چې دسکانو منظم قوت ته ماتې ورکړي. هري سنګهه داباسين دغاړو په دې منطقه کې خپل نظامي قوت تر فشار لاندې حس کاوه او دنفوسو له پر له پسې دښمني څخه ويريده نو دهزاره دلرې منطقې پښتانه يې وغوښتل چې تابع يې کړي. ددوی دارتباط کرښې هميشه دمشوانيو له لاسه تر ضربې لاندې وې او ارتباط يې تل مختلا وه. مشوانې ديوسفزو همسايه دي، چې په ګندغر Gandghar کې تر توربيلا پورته ژوند کوي. ددې لپاره چې د کالاباټ Kala bhat يوسفزي تش په نامه کنترول لاندې هم ونيسي، دده، ننني هريپور ته نږدې يوه کلا جوړه کړه چې نن هم دده په نامه يادېږي. سيتانا له هريپور څخه يوازې پنځلس ميله لرې ده مګر ددغه طبيعي خنډ په واسطه يې ښه ساتنه کيږي نو ځکه دقبيلوي مقاومت مرکز و. هري سنګهه په نارړه Nara کې پر قبيلوي غازيانو بريد وکړ مګر له ماتې سره مخامخ شو، زيات تلفات يې ورکړل او پخپله هم تيپي شو. بې لاسه، بې پښو (بې حرکته) هلته پروت و. يوه يوسفزي غازي ته يې زارۍ وکړې او هغه هم دده زړه ور توب ته درانده وکتل او هريپور ته يې ورساوه. دې عملياتو رنجيت سنګهه مجبور کړ چې جبري مارش وکړي، دسيداکبر خلک تار او مار کړي او سيتانا لوټ کړي، مګر رنجيت ناکام شو. په دې ځای کې اباسين ډېر ژور او تيزبهېدونکی ده. رنجيت دخپل طاقت بل نمايش په کار واچاوه، هغه دا چې خپل سپاره په سرعت سره د پيهر Pihur په سيمه کې له دريا څخه تير کړي او

دخپل فرانسوي جنرال General Allafd تر قوماندې لاندې چټک عمليات ترسره کړي. بيا يې بو دوراني حرکت وکړ د « توپي » Topi او « کوټه » Kotha له لارې جهانګيرې ته ولاړ او له هغې لارې څخه اټک ته راوګرځيد. دده داطاقت ښوونه ديار محمد خان له خوا چندان د توجه وړ نه شوه. ده يار محمد خان ته تازه د دوستۍ لاس ورکړی و.

دې جګړې نوی بحران رامنځته کړ. ټول مسلمانان په جوش راغلل او دعقيدې احساسات وپاريدل. پښتانه يو ځل بيا په شور راغلل. داهغسې شور و چې له يوې خوا څخه يې د دښمن په څارو کولو لاس پورې کړ. دا ديوه سره اور په شان و چې ځنګل سو ځوي، دوی ته پخوا هم عکس العمل ښودلی شوی و. خودا اور چانه و مړ کړی. ورو، ورو يې دود کاوه تر هغه چې لمبې يې يو ځل بيا راپورته شوې.

دډيرو اړخوله خوا داحرکت داکبر دزمانې دروښاينه تحريک په شان و. دواړو داسلام دنوښو تعبيرونو خبرې کولې او دواړو وسله وال مسلمانان دقبيلې او قوم تر نامه تنظيمول او جګړې ته يې هڅول. دواړه په لومړي سر کې بريالي وو خو وروسته يې چې جګړه کوله په مړينه ور ته تمامه شوه، مګر ددواړو توپير شته، بايزيد له مغولو سره په جګړه بوخت و مغول سني مسلمانان وو او دحنفي مذهب پيروان وو. نو په مذهبي لحاظ اکبر اقلاً دکلکې عقيدې خاوند په توګه ادعا کوله. دده « دين آلهی » شعارو. بنايي په ديني لحاظ به يې له بايزيد سره زړه سوی و خو د سياست او دولت داری حکم بل څه و. مګر نوی مذهبي شخصيت دسکانو پر ضد جنګيده او ده وکولای شول چې د کفر، شرک او اسلام دجګړې په نوم غازيان او مجاهدين دجهاد په نوم راوپاروي. ده داسلام په نوم مبارزه کوله خو دده رقيبانو پر ده باندې

دوهابیت ته په وهلې او دی یې دوهابیزم پیرو باله . مګر ډېرو نورو ده ته په درنده سترګه کتل او دی یې واقعي مجدد بللو . دی متقي او پرهیزګار شخص و او خلک یې د حق لارې ته رابلل .

دا مجدد سید احمد شاه و . دی باید له سید اکبر شاه سره ګډنه شي . خو دوی کیسې سره او بدلې دي . د سید اکبر شاه په هکله مو مخکې څه ناڅه معلومات درکړي دي . سید احمد شاه هندوستانی و او په باریلي Bareli کې زیږیدلی و ، ځکه نو تذکره لیکونکي ده ته د احمد بریلوي خطاب کوي . سید اکبر شاه لکه څنګه چې تاسو ته څرګنده ده د پیربابا له اولادو څخه و . د پیر بابا کورنۍ له ډېرې زمانې څخه راپه دیخوا د یوسفزیو په منځ کې اوسیدلې او یوسفزي یې مریدان دي . سید احمد بریلوي له امیر خان نومي سره و چې په مرکزي هند کې یې د انګریزانو په پلوی د داړه مارو پر ضد چې په پینډاري Pindaris مشهور و جنګیده . کله چې پینډاري مات شول د امیر خان پوځ هم مغول شو او امیرخان په راجپوتانه کې « د ټانک » Tonk د مشر په توګه مقرر شو او سید احمد بریلوي بې کاره پاتې شو . دی ډهلي ته راغی او دلته یې په تقوی او زهد وخت تیراوه او ډیر مریدان یې پیدا کړل ان ډیر پوه خلک یې هم مریدان شول . ده پر توحید باندې ډیر ټینګار کاوه ، له قرآن کریم څخه د باندې هر شکل اسلام یې رداوه او د قران کریم احکامو ته یې خلک رابلل . ډیرو پوهو خلکو د ده پیروي کوله . د ډیرو بې سوادو او غریبانو لپاره ده د ولایت مقام درلود . حتی خیاطانو سره به که د ده د مریدانو د کالیو ټوټې پاتې وې هغه به یې هم وروړې چې پیر دوی ته بښیرا ونه کړي . ده په سفر پیل وکړ او عقیده یې درلوده چې د واعظ او لاربښوونې لپاره لومړی حج ضرور دی . پر ۱۸۲۲ کال کلکتې ته ولاړ ، د ده سفر له بریالیتوب څخه ډک و . دی له

کلکتې ځخه عربستان ته ولاړ ، څلور کاله یې هلته تیر کړل او کله چې ډهلي ته راستون شو خپلو مریدانو ته یې وویل چې د کفر پر ضد باید جهاد پیل شي.

پر ۱۸۲٦ کال دی له ډهلي ځخه ووت . ځو شپې یې په « ټانک » کې له خپل پخوانې ملګري امیر خان سره تیرې کړې او د سند له لارې کندهار ته ولاړ . په کندهار کې د کندل خان او د ده دورونو له خوا خاصه توجه ورته ونه شوه ، مخ په شمال د غلجو سیمې ته ولاړ او له هغه ځای ځخه پر ۱۸۲۷ کال پېښور ته ورسید. په پېښور کې دیار محمد خان له خوا ځخه هم خپه شو ځکه هغه دوه واره له رنجیت سنګهـ سره د دوستۍ تړون کړی و . ده ته یې اهمیت ورنه کړ ، خو د انقلاب وینه یې په رګونو کې خوټیده او دیو سفزو خوا ته ولاړ . دی له لنډي سیند ځخه تیر شو او له « سمې » ځخه پنجتار ته ولاړ او د فتح خان کلاته ورسید. فتح خان د سوابۍ شمال ته د « خودوخیلو » نومیالی ملک و . دلته ده د خالص اسلام تر نامه لاندې تولنه جوړه کړه او دوی د مجاهدینو دوډې او پراختیا شرایط برابر کړل . انګریزانو په هغه وخت کې دغه مجاهدین د هندوستاني متعصبینو په نامه یادول .

د سیداحمد د حلقې داړیکو په ارتباط شک موجود دی . د ده مخالفین وايي چې دی کله چې په سعودي کې و دی وهابي شوی او حنبلي مذهب یې خپل کړی و . حال دا چې د ده پلویان ادعا کوي چې دی حنفي مذهب ته پوره وفادار و . د نړۍ په دې منطقه کې حنفي مذهب ډیر پراخ او کلک رول لري . ده ته د واقعي مجدد په سترګه ګوري . دا مناقشه د مذهب پیروانو لپاره ده او حل نه لري ، د مناقشې او مباحثې وړ ده ، هرڅه چې وي د ده تبلیغ او وعظ ډیر مؤثر و . قبایلو دا غوره کولې چې دوی هیڅکله بل ته نه وو تسلیم شوي ان مغولو او درانیو ته تش په نامه تسلیم وو . دا خوبیخي د منلو وړ نه ده چې

دکفر تر امر لاندې به ژوند کوو . دسکانو قدرت نور دزغملو نه دی . قبیلوي خلکو ددرانیو له منظمو قوتونو څخه هم څه مرسته نه وه لیدلې ، ددوی کرکه او بدبیني دهري سنګهـ او دسکانو دبریدونو په مقابل کې بیخي راپاریدلې وه . نوی پیغام او نوی لازښود په کار دی چې دوی سره تول کړي ، هغه وچې سید احمد شاه او دده غازیانو ته ښه هر کلی وویل شو او په جوش سره ددوی استقبال وشو.

مذهبي جوش او قبیلوي میړانې او غیرت تول خلک وهڅول چې دسید احمد هندوستاني په شاوخوا راتول شي . دده خپل هندوستاني مریدان هم یو زرکسو ته رسیدل. ددوی په شا وخوا نوې اردو جوړه شوه . سربیره پر دې دپېښور له بارکزي مشرانو څخه یې هم په پته څه مرسته تر لاسه کوله . دپېښور شهزاده ګان چې پخوا مستقل وو اوس یې رنجیت سنګهـ ته باج ورکاوه .

ددوی لومړنی فعالیت داوچې دهغو سکانو پر ضد وجنګیږي چې بود سنګهـ سیند نوالیه Budh Singh Sindanwalia په مشری داکوړي خواته راستخته شوي وو . دسکانو قوماندان داکوړي او جهانګیری تر منځ په « شیدو » Snaidu کې مدافعوي موضع ګانې جوړې کړې وې ، سربازان یې په خزو ( موضع = سنګرونه ) کې ځای پر ځای شوي وو . دغازیانو برید یې په شاوتمباوه خو دیر زیات تلفات یې ورکړل ، په خپله بود سنګهـ هم دجګړې په جریان کې ووژل شو . سید احمد شاه دبري ادعا وکړه اوله یار محمد خان سره یې تړون وکړ چې دیوسفزو له سیمې څخه به مالیه نه اخلي اوددوی آزادی ته به په درنه سترګه ګوري ، یو کال وروسته پر ۱۸۲۹ کال سید احمد شاه دپېښور پر ګورنر تور ولګاوه چې دده دوژنې مقصد یې درلود او زهریې

ورکړي وو. خو الله تعالی وساته ، ده پر پېښور برید وکړ او په نتیجه کې
یار محمد خان ووژل شو ، خو که دفرانسوي جنرال وینتورا Ventura پوځ په
تصادفي ډول هلته نه وای پېښور به یې هم له لاسه وتلی وای او دیار
محمد خان کشر ورور سلطان محمدخان ، به هم قدرت ته نه وای رسیدلای.

وینتورا وظیفه اخیستې وه چې درنجیت سنګه لپاره مشهوره اسپه
« لیلې » له پېښور څخه راولي او درنجیت دمشهور آس کلهار Kulhar سره
یې جوړه کړي چې ښه نسل ور څخه واخلي ، په همدې مقصد دی له خپل پوځ
سره پېښور ته راغلی و. له دې حادثې څخه دی بیرته داباسین ختیځ ته په
شاشو.

سیداحمد شاه له اباسین څخه تیر شو او دهزاره سیمې ته ولاړ. دهري
سنګه او فرانسوي جنرال آلارد Allard پر پوځونو باندې یې برید وکړ. ده
ماتې وخوړه او بیرته ستون شو. دویم ځل بیا له اباسین څخه تیر شو پر پېښور
یې یرغل وکړ ، بارکزي مشر ته یې ماتې ورکړه. د ۱۸۳۰ کال داوړي په
وروستیو کې یې پېښور ونیو او دوه میاشتې پېښور دده دغازیانو په لاس کې
و. په دې وخت کې سیداحمد شاه دمستقل واکمن ادعا وکړه او دسید احمد شاه
عادل ، توریالي او ددین دمحافظ په نوم یې سکه ضرب کړه.

په لومړي نظر کې داخورا حیرانوونکې خبره وه چې سیداحمد شاه دې ځان
پر قبایلو دومره مسلط کړي په تیره بیا پر جنګیالی یوسفزي قبیلې باندې ،
هرڅه چې و ، خو بیاهم دی له هند څخه راغلی و. دی هندوکی و. ( دپنجاب
یا هند مسلمان ته به یې هندوکی وایه ) او پر پښتانه باندې دهندوکي مشر
کول دزغملو نه وو. دابیخي غیر متحمله وه چې دغرو یوسفزي دې یو پردی
سړی په مشرتابه قبول کړي که څه هم دسمې منډړ یوسفزي پې شاید ومنې ،

نو په څه ډول ده وکړای شول چې ارتباط ټینګ کړي .

دی دخپل موقف او غیرت په حساب بالکل د سید اکبر شاه مدیون بلل کیږي . سید اکبر شاه نه یوازې پیژندل شوی جنګیالی قوماندان و ، بلکې د ده ټوله کورنۍ له پیر بابا څخه رانیولې تر ده پورې د یوسفزو پیرخانه شمیرل کیږي . داهندوستاني چې دلته راغی دزهد ،تقوی او د اسلامي غیرت شهرت یې درلود اوهمدارنګه څلور کاله یې په حجاز کې تیر کړي وو چې دده پر کریدت یې تولهاچوله ، هرو مرو سید اکبر شاه یې په خپل اخلاص سره ځانته جذب کړ . اکبر او ده کوم دخپلوۍ رګ نه درلود . یوازې دواړه سیدان وو . ښایي بل ځای کې به دوی د یوه بل رقیبان وای . داچې دوی دواړه رقیبان نه وو بلکې ښه دوستان وو ، نو د دواړو پر ښه سریتوب دلالت کوي . داچې دواړو له سکانو څخه کرکه او نفرت کاوه او دسکانو وحشیانه عملونه یې غندل ، داددې سبب شول چې دواړه یوځای دسکانو پر ضد عمل وکړي ، تردې لازیات ښایي هریوه په بل کې ځینې صفتونه لیدل چې په ځان کې یې نه لیدل داعالي صفت په دواړو کې وو . دوی ځان غوښتونکي او نفساني نه وو .

په بل عبارت سید اکبر شاه د سید احمد شاه بریلوي مربي و . دا بیخي جوته ده چې ده د کورنۍ وروستیو غړو داخبره په ډاګه کړې ده چې سید اکبر شاه په خپله او د ده کشر ورور سید عمرشاه خپل غرور او ویاړ تر ښو لاندې کړي وو او ده تر قوماندانې لاندې جګړې ته تیار وو . دوی سید احمد شاه ته ډیر دقدر په سترګه کتل . دوی ده ته وفادارو و او واقعي دوستي یې ورسره کوله . سره له دې چې د پیر بابا اولادو پوره شهرت ، نوم او نښان یې درلود خو سره له دې یې هم ځانونه ده ته تسلیم کړي وو . سید احمدشاه راغلی و چې مظلومان د ظالم له منګولو څخه وژغوري . دوی په ده کې دولایت نښې لیدې

نو ځکه يې دی په خوشحالۍ سره منلي و .

تر يوه وخته پورې دغې انگيزې پوره وده وکړه . مگر حساد تونه پيل شول. دا حساد تونه دسيداکبر شاه او سيداحمد شاه ترمنځ نه وو،بلکې دسيدانو او قبيلوي ملکانو ترمنځ وو. ځاني گټې پر عقيدې باندې برې شوې او له ده سره مخالفتونه پيل شول . ده عشراو زکوة دجگړې دادامې او مصارفو لپاره ټولاوه . دې کاريو څه نارضايتي راپيدا کړه ځکه چې دقبيلوي مشرانو په کې څه برخه نه وه . کله چې سيداحمد شاه دخپل وعظ په وخت کې پر دې ټينگار وکړ چې پيغلې دې بې له ولور ( دواده مصارف) ژرواده شي ، او دپيسو په مقابل کې بايد خرڅې نه شي . پر خلکو يې ښه تاثير ونه کړ ځکه چې دقبيلې ددستور خلاف خبره وه . ديوسفزو تر منځ دا دود ترننه پورې ډير کلک دی . دقبيلې دباندې خلک او غير پښتانه خلک دادود نه شي درک کولی .زيات ولور دخوراولور ددرنښت او قدر علامه ده . خور اولور په وړيا يا لږو پيسو ورکول دشرم او غريبۍ خبره ده او پرديو ته خوراو لور نه ورکوي . البته دبابر مسئله يوه ځانگړې خبره وه . هغه يو خاص حالت و ، نو دزيات ولور غوښتل له پردي سړی څخه په دې دليل هم ده چې هغه له خپل اقدام څخه منصرف کړي . دلته سيداحمد شاه پوړې تورن شو چې دخپلو هندوستاني مريدانو لپاره يې لارجوروله چې اپريدۍ پيغلې بې له ولوره واده کړي . خلک په قارشول او ده ته يې توطئې جوړې کړې د ۱۸۳۰ په نوامبر کې ده غوښتل چې پېښور سلطان محمدخان ته وروسپاري او څه امتيازات ورڅخه واخلي او دی دهزاره سيمې نه ولاړ . څو مياشتې يې هلته واړه واړه جنگونه وکړل او بالاخره د ۱۸۳۱ کال په مې کې دی دسکانو په باصقين کمين کې راگير شو او په بالاکوټ Balakot کې دکاگان ( کاغان) Kaghan Valley

وادۍ په بيخ کې په شهادت ورسيده .

دا کيسه ډير تريخ پای لري . کله چې دی د هزاره خواته په تلو شو ، نو خپل معاونان يې ديوسفزو په اکثرو کلو کې پريښودل . ديوسفزو « سمې » په غټ منځ کې يوه ځانګړې او ګوښې غونډۍ ده چې ټوله په ونو پټه ده او کارامار Karamar نوميږي . دا غونډۍ تر مردان پورې ليدل کيږي . دا يو مقدس ځای دی او په همدې دليل دا څوک هميشه په ونو پټه وي او څوک يو کوچنی شاخ هم له دې ونو څخه نه پرې کوي . يوه شپه دڅمي په وخت کې له دغې څوکې څخه رڼا ښکاريده او دا يو زيګنال و . د دغه زيګنال په خپريدو سره دسيداحمد شاه هر يوغړی ووژل شو . په يوسفزو کې ديرش کاله پخوا (دمؤلف له وخته نه ) يو شاعر و چې امان اخوندنوميده ، يوه ښکلې مرثيه يې دقصيدې په شکل جوړه کړې وه او ددغې پيښې تريخ بيان يې دشعر او سندرې په ژبه کړی و چې ما پخپله هم واوريده . دا سندره (ټپې) دسړې دځان ويښتان راجګوي او دهغوی غرور ، وياړ او ميړانه منعکسوي . دا ټپې دهماغه سيداحمد شاه په ياد ويل شوي چې قوم ورڅخه مخ ګرځولی و او له ده سره يې دښمنی پيل کړې وه . دمجاهدينو هغه ټولګي چې د ده روزلي و وتر ډيره همدلته وو او د ده خاطره د پير بابا دسيدانو له خوا همداسې ژوندۍ ساتل کيده او د پير باباسيدان په دغه سيمه کې د ده وفادار پلويان وو .

دسيداحمد شاه کيسه يوځل بيا دشيرشاه سوري هلې ځلې را په يادوي دواړو د پښتنو قبيلو ښې اوبدې قوي او کمزورې نقطې را په ګوته کړې دي يو لاربښود را پيدا شي او ټولې قبيلې را پاڅوي او په اتفاق يې کړې احساسات يې راژوندي او متحد کړي خو بيا داخلي حساد تونه او ځانځانی ددې سبب شي چې هر څه په سيند لاهو کړي . ځانګړي افراد او اشخاص را پيدا

شي او هر ډول قرباني ته تيار شي او د مصرف حساب نه وي . د قرباني مفکوره په هوا کې وي ، ځپې ځپې مخ په وړاندې ځي او سوبه په برخه شي . بيا لاربنود د برياليتوب لارې ته ګوري . او په ورو ورو له حقايقو سترګې پټوي او بالاخره وحدت له منځه ځي او خود خواهي راپاځيږي هر څه ويجاړ وي . دا زيار او زحمت چې ډيره موده يې په غيږ کې نيولې ده او ډير مشکل او ناشوني کار پای ثابتوي ، په يو دم د حسادت او ځانځاني په اور کې وسوځي . نيول شوې ځمکې له لاسه وځي ، لاربنود باور او اعتماد له لاسه ورکوي او ټول يې وشړي . خوشحال خان ختک وايي

هره چار د پښتانه تر مغول ښه ده
اتفاق ورځخه نه شته ډير ارمان
د بهلول او د شير شاه خبري اورم
چې په هند کې پښتانه وو پاچاهان
که توفيق د اتفاق پښتانه مومي
زوړ خوشال به دوباره شي په دا ځوان .

# نولسم څپرکی

## دوست محمد خان او د پېښور سرداران

کله چې یار محمد خان پر ۱۸۲۹ کال له سیداحمد شاه بریلوي سره په جگړه کې زخمي شو، نو له تپونو څخه مړ شو او دده ورور سلطان محمد خان د پېښور او اړونده سیمو مشر توب تر لاسه کړ . له ده سره دوه نور ځوان وروڼه پیر محمد خان او سیدمحمد خان هم تړلي دي ، دادرې پاینده خیل بارکزي د پېښور د سردارانو په نامه شهرت لري . دوی به له دوست محمدخان څخه چې داعظم خان له مړینې وروسته یې کابل نیولی و بیل کړو او همدارنگه دغلجۍ مور دزامنو کندل خان اونورو « دل » وروڼو څخه به یې هم بیل کړو .
داد پېښور سرداران وروسته بیا د مصاحبان په نوم هم یاد شوي دي او د یحیی خیل په نوم هم یاد شوي دي . یحیی خان د سلطان محمدخان زوی و .سلطان محمدخان نه یوازې د دې لپاره دیادونې وړ دی چې د پېښور په تیاتر کې یې

دسکانو په وخت کې رول لوبولی دی ،بلکې دافغانستان داوسنی شاهي کورنی نیکه هم دی . نادرخان د افغان شاهي کورنی موسس اود اوسني پاچا محمد ظاهر شاه ( دمولف دلیکنې په وخت کې ) پلارو . محمد ظاهر شاه دافغانستان اوسنی پاچا دسلطان محمد خان کودی و ، ټول دپېښور او کندهار سرداران له دوست محمد خان څخه مشران وو خو دی دکابل په نیولو سره له دوی څخه مخکې شو ی او ددوی حسادت یې راپارولی و . ددوست محمد خان د بریالیتوب یو دلیل دوزیر فتح خان باور او اعتماد و چې پر ده یې درلود او همدارنګه ځرنګه چې دده مور قزل باشه وه نو قزل باش ګارد هم ټول له ده سره و . په دغو امتیازاتو سره ده د کابل حکومت جوړ کړ . سره له دې دحکومت جوړښت دده په ټینګښت او ثبات پورې تړلی و ، ځکه چې دده ورونه په خپل سیاست کې بدلیدونکي وو .

دوست محمد خان ددې لپاره چې دخپلو ورونو حسادت یې نه وي راپارولی دشاه له لقب څخه یې ډډه وکړه . دی په قانع و چې دبخارا دمشرانو په شان ( Mangit chiefs ) ځانته د « امیر » لقب غوره کړي . مګر دده مشرانو ورونو په تیره بیا هغه څوک چې په پېښور کې وو ، موضوع ته بل ډول کتنه کوله . دوی دی ته تیار نه وو چې دده دیفکتو (defacto) رول ته ځانونه تسلیم کړي . دافغانانو خاطرې اوږدې دي، خبرې نه هیروي ، دغو حسادتونو خپل تاثیر پرې ایښی دی . یوه پیړۍ وروسته کله چې دسلطان ـ محمد خان کړوسي نادرخان ته موقع برابر شوه ددوست محمدخان دکړښې امیر امان الله خان په وتلو سره یې تاج او تخت ځانته خپل کړل .

انګریزي لیکوالان دسلطان محمدخان دکرکتر او کړو وړو په هکله بیل بیل نظریات لري . لومړی انګریزچې دی یې ستایلی دی الکساندر برنیس

Alexeuder Burnes دی ، هغه د پېښور له لارې بخارا ته روان و او د ۱۸۳۲ په پسرلي کې يې دلته د ژمي په پلازمېنه پېښور کې يوه مياشت تېره کړه . دی د سردار سلطان محمد خان ميلمه و . دی په خپل کتاب ( په بخارا کې سفرونه Travels into Bukhara ) کې د پېښور ټولنه ، د ښار د باندې ښايسته سيمې ، ميلمه پالنه ، او هغه قدر داني چې د سلطان محمد خان او د هغه له ورونو څخه يې تر لاسه کړې وو . ټول يادوي . ده په پښتو ژبه ځانته د « سکندر برنيس » په نوم مهر جوړ کړی و چې ده ته له خوشحالۍ او حيرانتيا څخه ډک کار ښکاريده . دی د پسرلي د ښکلې او تازه هوا په هکله ليکي . همدارنګه د ميلو او کمپونو په هکله د شفتالو دونو ګلان او سيورې ستايي ، دی د خپلو کوربه ورونو صميميت ، اخلاص او ويال تندی بيانوي ، دی د افغانانو د آزاد طبعيت توصيف کوي . دا ټول د لوستلو وړ مواد دي ، مګر کله چې الکساندر برنيس له الفنستون سره مقايسه کړو ، نو برنيس ډېر خام او کمزوری ښکاري ، دی له پس منظر څخه بې خبره او توازن نه شي ساتلی ، د ده خبرې او د ده ليدنې ، کتنې د ده د راتلونکي برخليک ښيي .

د پېښور د ميرمنو په هکله ليکي چې : « مخونه يې پټ دي مګر تر پردې لاندې ښايسته پيغلې دي چې بې له ليدو څخه يې مخونه له شرم او حيا څخه سره اوړي ......... لې بدګماني د قتل سبب ګرځي . » يو ځل بيا کله چې له ملک سره په کلي و داسې ليکي : « زما وينه وچه شوه کله چې مې تاوشوي جسدونه وليدل او مېړه يې چې له دې ښځې څخه درې کوچنيان درلود ل د خپلې ميرمنې مړينه عادلانه ګڼله . د ملک عدالت هم روښانه و ، او په تېريدو کې يې هيڅ پروا ونه کړه .

دا کلمات د ليکوال خپل ځانګړی احساس و چې په دې ليکنو کې دی

دناکامۍ خواته روان و او دده تقدير هم دده له ژبې او قلم سره ترلی و . شپږ کاله تير شول او ميسن Masson ليکي چې سکندر څه ډول د دوست محمدخان په دربار کې په سفارتي چارو مامورشو . دده حريفانو کوم چاالفنستون پيژنده ، دده په کړو وړو حيران او حتی په قار وو . دوی داتوقع درلوده چې انگريزي هئيت په ډير عزت او شرافت گذاره کوي . مگر افسوس چې سکندر برنيس په داسې ښار کې چې له تورو ، کينو ، او ايلچيانو څخه ډک و ، کور يې له موسيقۍ ،ساز او آواز او په رانجو تور سترگو پيغلو څخه ډک و . دده څو کاله د مخه د پېښور خاطرې هيرې کړې وې ،دشپې شهوت بازۍ ته به يې ډورځي د درواغو جامې په داسې هنر وراغوستې چې گواکې ترده شريف انسان به بل هيچېرته نه وي . د دوست محمدخان په حضور کې به يې په مبالغه آميز شکل سره تواضع او اخلاق ښودل او د تولو په مخکې به يې امير ته د « غريب نواز » خطاب کاوه او لاس په نامه به ولاړ و . برنيس د ښار په کوڅو د « غريب نواز خان » په نوم مشهور شو . له ډيرې تواضع ښودلو څخه به کله کله په قار شو او خلکو ته يې ځان ښودلو چې څومره نجيب انسان دی . دده اکټ او تمثيل ډير عالي و . خو کور بار تر منز له نه رسيږي . سکندر برنيس هيڅکله د خپل هيواد اواز پورته نه کړ او لارې موندلې دافغان جنگ سبب شوې . په پای کې حتی دې پر دې هم بريالی شو چې ځان بری الذمه کړي . ځکه چې له هغه مرگ سره مخامخ شو چې دی ورڅخه ويريده او ديوې ډلې له خوا په بدمرغه توگه ووژل شو . ده په ميړانه دفاع وکړه او زگيروی يې ونه کړ . بالاخره ، ښه سړی له دنيا ولاړ . سکندر دبابر په شان دصحنو په انځورولو کې ماهرو . دی دفکر او خيال له لوړوالي څخه خبرې کوي . کله چې د پيرپايي Pirpiai او پابي Pabbi تر منځ د پېښور خواته درومي د ښکلې او

معطرې هوا او شنو چمنونو او شفتالو په هکله خپل نظر بیانوي ، پښور ته نږدې دمیوو باغونه په دې وخت کې له منځه تللي و و ځکه چې سکانو ټولې ونې لندې کړې وې او باغونه یې ویجاړ کړي وو . مګر له ښار څخه لرې په دوآبه Doaba او نګمان Naguman کې لا هم ښایسته ځایونه وو . دنوي کال په لومړۍ ورځ (نوروز) د مارچ ۲۱ مه نیټه کې « دی شبقدر » ته نږدې یوې میلمستیا ته بللی شوی و . دده کوربه دحکمران کشر ورور پیر محمد-خان و . په یوه باغ کې چې دونو ګلان نوي غوړیدلي وو میلمه شوی و . دګلاب او مرسل په منځ کې ښکلې ښکلې غالۍ غوړول شوې وې . مخکې له دې څخه چې میلمانه راورسیږي دونو شاخونه ځنډل شوي وو او هرې خواته دښایسته ګلانو پاڼې تیتې شوې وې . دزرد الو او شفتالو ګلانو دځمکې مخ نیولی و . دلته سندر غاړو له رباب سره پښتو او پارسي نغمې او بدلې ویلې . کوچنیان هرې خواته پر لوبو بوخت وو او ډول ډول خواړه یې خوړل . له ګلانو او پاڼو سره یې مستۍ کولې . سکندر لیکي : « زما هیڅ نه په یاد یږي چې بل چیرته دې مادومره ښایسته ځای لیدلی وي . » پښور په دې موسم کې ډیر ښایسته دی . اقلیم ډیر په زړه پورې وي . باغونه او ګلان دانسان حواس تازه کوي . دی لیکي له دې ټولو سره سره زموږ غټه نیکمرغي داده چې زموږ کوربه ډیر میلمه پال او مهربان خلک وو .

دسردار سلطان محمد خان په هکله لیکي : « دی لوړ قدلرې او غنم رنګی سړی دی . زما د توقع خلاف ذی بې سواده نه دی ، ښه زده کړه لري او ربښتینی ښاغلی دی . دده آزاد او بې الایشه کړو وړو پر مازیات تاثیر کړی دی . داسې یو شخصیت دی چې ترهوښیار تیا لازیات عصري او ښاري سړی دی . دی ټولې خپلې تجارتي معاملې پخپله سمبالوي اودی یو زړه ور

عسکر دی ........ زموږ استو ګنځی دده په کور کې و . دلته کوربیخي آرام نه و .

ده هم پلان درلود چې له موږ څخه ګتـه واخلي ، دی له خپل مشر میـرني وروږ دوست مـحـمـد خـان سره جوړنه و او ددوی تر منځ پوره دښمني وه . ده غوښتل چې موږ په دې قانع کړي چې له کابل څخـه پټ تیر شو او له دوست۔ محـمـد خـان سـره ونه وینو . ده دسکانو په هکله هم خبـرې کـولې ، دسلطان محمدخان نرمې خبرې پر ماښې لګیدې ، ده درنجیت سنګهـ په هکله بې پردې خبرې کولې او له ده څخه زیات خواشینی و . ځکه دده زوی درنجیت سنګهـ په دربار کـې په لاهور کـې یرغـمل و . دروسانو په هکله خبـرې وشـوې . دلتـه یو ایرانی موجود و . په خوشحالۍ سره یې وویل چې شکر دی پارس له روس څخه آزاد دی . سردار سلطان محمدخان دپښور حکمران په ظرافت سره وویل چې دپارس آزادي له روس سره داسې ده لکه زموږ آزادي چې له سکانو سره ده . دمقاومت او مقابلې طاقت نه شته دمجبوریت کامهرومایز (جوړجاړی) دی . پنځلس کاله وروستـه پر ١٨٤٧ کـال کله چې جـارج لارینس George Lawrence دهنری Henry او جـان John مشـروروږ دسکانو له لومړۍ جګړې څخه وروسته پښور ته راغې له سلطان محمد خان سره به یې دیر لیدل ، دسکانو او ددوو جګړو ترمنځ لا هم دسکـانو دولت و مګر دهند دبرتانوي حکومت تابع و او یو دایمي استـازی دمـهـاراجـا په دربـار لاهور کـې همـیـشـه موجود و . کشمیر د جمو ګلاب سنګهـ ته سپارل شوی و . نوموړی ددوګرا Dogra کورنۍ موسس و او په عـوض کـې یې څه نغدې پیسـې باج ورکـاوه مګر شمال غربي سرحدي سیمې چې دسکانو او افغانانو دجګړې موضوع وه او ددوی ترمنځ لاکـرکـه مـوجـوده وه ، دسک دربار تر اداري لاندې وه مګر

دبرتانوي افسرتر کنترول لاندې وه چې مقرېې په لاهور کې و او دشمال غربي سرحدي سيمو دارامۍ او کنترول مسئوليت يې درلود . داهغه وخت دی چې جورج لارينس Guorge Lawrence ابوټ Abbot ايدواردز Edwardes ، نکلسن Nicholson او ځينې نور د پښتنو منځ ته ورګډشول . جورج لارينس کله چې لاهور ته ورسيده دسکانو دربار ته يې ټينګار وکړ چې سردار سلطان محمد خان بيرته پېښور ته ستون شي او دی تقريباً اوه کاله دلته يرغمل و . په پېښور کې حکمران او په وزير باغ کې ځای پرځای شو چې پر ۱۸۱۸ کال دده مشر ورور وزير فتح خان دهغه بنسټ اېښی او دلته يې داوړي استوګنځی جوړکړ چې دکورنۍ غړي او ميرمنې يې هلته اوسيدې . دهٔ ډيره لويه کورنۍ درلوده . ددغه استوګنځي اسکليت اوس هم شته مګر په ډير غريب حالت کې دی. سلطان محمد خان دلارينس په قدر دانۍ کې له حده زيات افراط کاوه . کله چې دسکانو دويمه جګړه پر ۱۸٤۸ کال په ملتان کې وشوه . اګنيو Agnevo او اندرسن Anderson وژل شوي وو. سردار دتسليت لپاره لاهور ته ورغی او ده ته يې ډاډورکړی و چې تراسمان لاندې دانګريزانو هر خدمت وي دی به يې وکړي ځکه چې دانګريزانو په واسطه له يرغمل څخه خلاص شوی و . ده وويل : يوازې فرصت غواړي چې دخپل ممنونيت ثبوت په عمل کې وښيي ، متعاقباً ده له سک جنرال چترسنګه Chattar سره اړيکي پيدا کړل اوسکانو ته يې دجورج لارينس په ورکولو کې يې هم لاس درلود ،چې بالمقابل ده ته دپېښور دحکمرانۍ وعده ورکړ شوې وه . لارينس پر حکمران باندې اعتماد کړی و . آن تر دې حده پورې چې دده ښځه او کورنۍ بايد له پېښور څخه هند ته ورسوي او ده حکمران دانګريزانو دمرستې له کبله مديون باله ، مګر سلطان محمد خان غولاوه . کله

چې ده ته د دې خبرې بیا یادونه وشوه . حکمران د پخوا په شان د معاملې په خیال کې و . برنیس وایي چې حکمران هیڅ شی نه و . سربیره پردې د ده میرمن لارینس د مقصد منزل ته ونه رسوله او له میړه سره یې سکانو ته وسپارل او په پای کې پخپله سلطان محمدخان هم سکانو ته ورغی .

دا ښایسته کیسه نه ده . که چیرې سلطان محمدخان د خپلو خلکو د خلاصون او ښه والي لپاره دالویه کوله ، نو کیدای شوه چې ده ته دوطن دوست خطاب وشي . ځکه لکه چې متل دی . « په جګړه کې هرڅه روادي » مګر متاسفانه له ده سره دامفکوره نه وه . ده یوازې پېښور او خپله کورنۍ غوښتله . ده فکر کاوه چې سکان برې مومي نو ځکه یې ځان له سکانو سره وتړه . دا د حیرانتیا وړ نه ده چې د پېښور سردارانو دا ډول کارونه کول . ابوټ Abbott د هزاره په خاطراتو کې لیکلي دي چې په پښتو نخوا کې له سکانو څخه زیات له درانیو څخه کرکه کیده . ځکه چې پښتنو ته دوی معلوم شوي وو ، چې د قوم احساس له دوی سره نه و . دوی یوازې د خپلې کورنۍ ښیګنې غوښتې . سیداحمد شاه ددې لپاره مبارزه کوله چې وطن او سیمه د رنجیت سنګهـ له ظلم څخه آزاد کړي .

حقیقت دادی چې د پېښور سرداران همیشه له سکانو سره وو چې له خپل کشر ورور دوست محمد خان څخه مستقل پاتې شي او که وکولای شي د کابل له تخت څخه یې را وپرځوي . داسې پیښه شوه چې د سکانو له لومړي جنګ څخه وروسته انګریزان صحنې ته داخل شول . جورج لارینس سردار سلطان محمد خان د سکانو له یرغمل څخه خلاص کړ او هدف یې داوچې د حکومت اوخلکو تر منځ عادلانه اړیکي وساتل شي ، نو هماغه سردار چې له انګریزانو څخه یې ځان قربانا وه د انګریز لاس وچیچه . دوست محمدخان په

دې هکله وروستي وچې زيدخل شي . ده هم هڅه کوله چې د سکانو په دويم ، جنګ کې له سکانو سره همکاري وکړي مګر چې د سلطان محمدخان له بې حرمتۍ څخه خبر شو ، نوزيات په قار شو او خپله کرکه يې له سلطان محمدخان سره وښودله . خپل ورورته يې په قار سره وويل .« آياتا نه وو اوريدلي چې خوګياڼي دلوی احمدشاه بابا په مقابل کې دوحشي خنځير په سرتوره ايستلې وه ؟ ځکه چې خنځير دده خيمې ته پناه ور وړې وه . »

مورو او تاسې يو ځل بايد ١٨٣٢ شاته نظر واچوو . په هغه وخت کې پرېښور باندې ډول ډول حالات په جريان کې وو . هغه وخت چې سيداحمد شاه راپيدا شو ، شاه شجاع ته هم نوي اميدونه پيدا شول او له رنجيت سنګه سره يې مذاکرې پيل کړې چې ده ته تاج او تخت ونيسي . رنجيت هم خپلې نظر يې درلودې ، ده پېښور غوښت او شاه يې يوازې اميدوار ساته ، چې پر ١٨٣٢ کال له يوې خوا ډيرو ايرانيانو پر هرات بريد وکړ او دسند اميرانو هم ده ته بلنه ورکړه . شاه شجاع بيخي اميدوار شو او سکانو ته يې جدي ورانديز وکړ او د رنجيت له غوښتنې سره سم يې وعده وکړه . دسند اميرانو دانګريزانو استازي نه غوښتل نو ځکه يې شاه شجاع دخپل پاچا په توګه مانه او ده ته يې دکندهار خواته لار ورکړه . شاه شجاع بالکل اميدوار و چې اوس به دکندهار له لارې کابل ونيسي او پوره باوري و چې پېښور به بيا دده خپل شي .او کوه نور ته به هم قيمت پيدا شي دی تږلو ته تيار و چې رنجيت سنګه ته يې تسليم کړي او له هغه څخه پيسې او سړي تر لاسه کړي چې کابل ونيسي ، د ١٨٣٣ کال د اګست په مياشت کې ددوی ترمنځ تړون لاس ليک شو . پېښور او شاوخوا سيمې يې رسماً رنجيت سنګه ته وسپارلې او په مقابل کې دوی دشاه شجاع ملاتړي وو. پر ١٨٣٣ کال په کراره دسند خواته ولاړ ، له اباسين

ځخه تیر شو او په شکارپور کې یې دسند امیرانو ته ماتې ورکړه ځکه چې دوی له خپلې وعدې ځخه اوښتي وو. کله چې دلته ځای پر ځای شواو خپل بیز یې پوخ کړ دبولان له لارې کندهار ته ولاړ . دلته یې څو میاشتې ځان ټینګ کړ . مګر بالاخره دولت محمد خان له ده سره جګړه وکړه او د ۱۸۳٤ په جولای کې یې ماتې وخوړه : د ۱۸۳۵ په پسرلي کې یوځل بیا لودیانا ته ورسیده . پېښور یې له لاسه ورکړ او په مقابل کې یې هیڅ ترلاسه نه کړل . رنجیت هم خورا چابک و چې پېښور به تسلیمیږي ، دسلطان محمد خان لاس به له پېښور ځخه لنډیږي او پېښور به باالفعل سکان اشغالوي . څرنګه چې شاه شجاع کندهار ته وررروان و ، دوست محمد خان دجنوب خوا ته ولاړ چې شاه شجاع سره ووینې . دوست محمد خان ددې قدرت نه درلود چې خپل میرنې ورونه حمایه کړي او نه یې غوښتل چې مرسته ورسره وکړي ، دسکانو لوی لښکر دهري سنګهـ ترمشر تابه لاندې له خیرآباد ځخه مخ په پېښور رهي شو . تردې وخته پورې پېښور دسردارانو ترحکم لاندې و خو باج یې ورکاوه ، او د ۱۸۳٤ مې کې پېښور دپنجاب دسکانو رسمي تړل شوې سیمه شوه .هري سنګهـ دسکانو لومړی ګورنر شو .سلطان محمدخان او دده ورونه یې جبراً کابل ته دپناه په مقصد ولیږل ، دهزاره او اباسین دسیمو داس دسپرلی مشهور سک جنرال دپېښور ګورنر شو . کور په کور دهري سنګهـ خبرې کیدې ، میندو به چې خپل کوچنیان ویده کول او ژړل به یې نو په دې به یې ډارول . «غلی شه هري سنګهـ راغی . »

دپېښور نیول او دسکانو دپاچاهۍ برخه کیدل دافغانانو دغرور لپاره سخته ضربه او دشرم خبره وه . پېښور دتیمور شاه اوشاه شجاع دژمي پلازمېنه وه ، ددوست محمد خان عکس العمل داو چې دانګریزانو مرسته تر

لاسه کړي . دمخه تر دې چې شاه شجاع ته د کندهار تر رسیدو دمخه ماته ورکړي . په واقعیت کې دوست محمدخان دانګریزانو تحت الحمایګۍ ومنله . کله چې دی پرشاه شجاع بریالی شو نو له انګریزانو څخه یې د پېښور د نیولو مرسته وغوښته او خپل زړه ته نږدې وراره دجبار خان زوی یې دزده کوونکي او غیر رسمي استازي په شکل لودیانا ته واستاوه ، خو انګریزانو تردې وخته پورې دافغانانو په چارو کې مداخله نه وه کړې او د دوست محمدخان مشورې ته یې مستقیم ځواب ورنه کړ ، نو ځکه دوست محمد خان او رنجیت په خپلو امکاناتو یو بل ته سره پاتې شول . رنجیت خپل سړی پیژنده او دده سړی سلطان محمد خان و ، ده پیل وکړ چې سلطان محمد خان له دوست محمد خان څخه جلا کړي او سلطان محمدخان پېښور ته دهري سنګهـ په راتلو سره په کابل کې پناه اخیستې وه . پر دې هم پوهېږو چې سلطان محمدخان له دوست محمدخان سره حسادت درلود او دسکانو ماتې ده ته دامانا درلوده چې پېښور به تل له دوست محمد خان سره پاتې شي ، نو له همدې کبله ده د رنجیت خبرو ته غوږ نیوه . دوست محمدخان تر جمرود پورې راورسیدا او رنجیت سنګهـ له ده سره لوبې کولې او مصروف یې ساتلی و تر هغه چې خپل ټول قوتونه یې ځای پر ځای کړل . پر ۱۸۳۵ کال دمې پر ۱۱ نیټه امیر دوست محمد خان نږدې له هری خوا څخه محاصره شوی وا و رنجیت پلان درلود چې په راتلونکې ورځ برید وکړي .دوست محمد خان دا ښه وګڼله چې شا ته شي . ده داکارو کړ او دوه توپونه یې له لاسه ورکړل اوده ته د پرستیژ په لحاظ غټه ضربه وه . ده پلان درلود چې سک هیئت بوځي او ترنظارت لاندې یې وساتي ،ده داپلان سلطان محمدخان ته څرګند کړی و او هغه هم پریکړه وکړه چې له رنجیت سره په ټینګه ودریږي ، دوست محمدخان امید درلود چې هئیت

د یرغمل په شکل وساتي مګر سلطان محمدخان موضوع افشا کړه او ځان یې د هئیت خلاصوونکی معرفي کړ ، دې کار سلطان محمد خان او د ده ورونو ته په پېښور او کوهاټ کې جاګیر ورپر برخه کړ ، مګر پېښور بیا هم دوی ته ورنه کړل شو . د پېښور ټولې ملکي او نظامي چارې هري سنګه ته سپارل شوې وې .

د دغه پر شاتګ شرم د دوست محمد خان لپاره ډیره غټه ضربه وه ، خودی هوښیار او احتیاط کار سړی و . لایې هم انګریزانو ته ځان ورنږدې کړ . حتی هڅه یې کوله چې رنجیت سره هم لارجوړه کړي او انګریزان د پخوا په شان غړیدونکي وو . سک ، امیر ته د پېښور په هکله یوڅه امید ورکړ او بیا یې آسان ځینې وغوښتل . ده فکر کاوه چې نور به داسې انګیري چې رنجیت له امیر سره جوړدی او ده بیا هم خپله لوبه کوله . دوست محمدخان ډیر هیله من و چې پېښور تر لاسه کړي خو ډیر هوښیارو ، ښه پوهیده چې رنجیت سنګه به یوازې کابل ورپرېږدي او پېښور ( ژمنۍ پلازمینه ) به ورنه کړي . له دې ټولو خبرو سره سره هري سنګه په جمرود کې مستحکمه کلا جوړوله او د جلال آباد د نیولو خیال یې هم ساته ، خو په دې شرط چې له درې څخه د تیریدو په مقصد داپریدو مخه ونیولای شي . دوست محمدخان ناچاره پریکړه وکړه چې جګړې ته تیاری و نیسي .

دوست محمدخان د خپل مشر زوی وزیر محمداکبر خان په مشرۍ ښه پوځ واستاوه . په دی مرحله کې اکبر خان د دوست محمدخان زوی له سرحد څخه تیر شو او د سرحد خبره تر منځ راپورته کیږي . وروسته بیا اکبر خان هغه څوک دی چې دانګریزانو له خوا د کابل نیولو مخالفت کوي او دانګریزانو سفیر سرویلیام مکناټن Sir william Macaghten یې وواژه . او د جګدلک

له پیښې څخه وروسته ، د انګریزانو د ښځو او کوچنیانو د نیولو او ساتلو مسوول شخصیت و . دی په ۱۸۴۷ کال هغه وخت مړ شو چې جورج لارینس نوی پېښور ته رسیدلی و . په سرحد کې د جمرود د جګړې له کبله ده په قبایلو کې ښه شهرت درلود . ده هغه جګړه وګټله ، خو د خپلې سوبې میوه یې ونه څکله .

اکبر خان د 1837 د اپریل په میاشت کې خیبر ته راورسید او د اپریل په وروستۍ نیټه جګړه وشوه . افغان اردو د جمرود پر کلا یرغل وکړ خو کلا یې فتح نه کړای شوه کړه ، خو له پېښور څخه ورتلونکی مرستندوی قوت یې تارومار کړ . هري سنګه د همیشه په شان د قوتونو په سر کې و ، تکتیکي پر شاتګ یې وکړ چې دوزیر اکبر خان قوتونه له غرو څخه سمې ته راوباسي . ځکه چې په دره کې اپریدیو او ملاګورو خلکو پر ده باندې د ځنګ له خوا حملې کولې او افغان اردو له مرکز څخه پردوی فشار اچولی و . د شاته تګ په وخت کې هري سنګه خپلو سربازانو ته مورال ورکاوه او څو ارلس کاله د مخه د نوشهري جګړه یې په خوب لیده . په دې جګړه کې دی په هغه ځای ټپي او مړ شو چې نن ورځ د پېښور د پوهنتون اسلامیه کالج موقعیت لري . د ده د مړینې نقطه د هري سنګه د برج په نامه یادیږي . اکبر دلته زیاته میړانه وښودله او له سکانو څخه یې دوه توپونه په غنیمت ونیول ، ده د فتحې دادعا حق درلود . خو سره له دې هم ده پېښور ونه نیوه حتی د جمرود کلا پاتې شوه چې ترپایه یې مقاومت وکړ . څو ورځې وروسته د کلیو د غنیمت کولو په پای کې جلال آباد ته راستون شو ،دباړې پر سرک باندې یې د شیخان کلی هم لوټ کړ .

که څه هم چې هري سنګه مړ شو خو سک شاهي لاپایته نه وه رسیدلې ،

داسې وایي چې رنجیت سنګهـ دهري سنګهـ په مړینه ویرکاوه او اوښکې یې تویې کړې ، دا ځکه چې هغه دده خالص او وفادار سک جنرال و، ده پریکړه وکړه چې له سرحد څخه خپل غچ واخلي ، د پېښور والي یې له عسکرو تخته ډکه کړه او پخپله که څه هم ناروغ ود روهتاس تر کلا پورې راغی او دوګرا جنرال دیان سنګهـ Dhian Singh یې د پوځ په راس کې مقرر کړ .

دیان سنګهـ د ګلاب سنګهـ مشر ورور ، بیا وروسته د کشمیر مهاراجا شو .

دیان سنګهـ د جمرود کلا په جوړولو کې په خپلو لاسو کار کاوه چې د نورو لپاره یې ځان مثال جوړ کړی و . جمرود کلا نن هم شته چې د زوړ اوږې بیرۍ په شان د خیبر دره ساتي. دهري سنګهـ پر ځای اروپایي جنرال (اتیالوي جنرال) او یتابیل Avitabile د رنجیت سنګهـ انتخاب و . نوموړی چټک او تکړه جنرال و . دده کیسې نن هم د پېښور په هوجرو کې ویل کیږي . د دود په کیسو کې دده نوم په ابو تابیله Abu t abela سره اوښتی دی . ده به ژر محاکمه کوله او متهم به یې ژر تر ژره د محبت خان د جومات له منارو څخه راځړ اوه .

دده استوګنځی په یوې نوې کلا کې و چې د هندوانو د ګور کاتري Gorkhatri د معبد په ساحه کې و او کلا د ښار د ننه وه . د افغان - انګریز له لومړي جنګ څخه وروسته به انګریزانو د خپل تګ راتګ په وخت کې له ده سره لیدنه کتنه کوله . وروستیو وختو کې د ګور کاتري شان او شوکت له منځه ولاړ . دده کور وروسته د ښار د پولیسو دلوی آمر د مرستیال استوګنځی شو .

د جمرود له جګړې سره مرې دلومړي افغان جنګ زمانې او هغه بدلونو ته چې د رنجیت سنګهـ له مړینې سره رامنځته شول ورداخلیږو ، د انګریزانو قوتونه د افغانستان د اشغال لپاره په فیروز پور کې د ۱۸۳۸ په پای کې راټول شوي وو او غوښتل یې چې د بولان او کویټې له لارې افغانستان ته ننوځي .

دسکانو قوتونو د ۱۸۳۹ په جنورۍ کې له لاهور څخه حرکت وکړ چې خیبر
تر فشار لاندې ونیسي . ددوی پلان داسې و چې شاه شجاع له انګریزانو سره
دبولان او کویټې له لارې کندهار ونیسي ، د کابل خوا ته راشي او دسکانو
قوتونه د شاه شجاع له زوی شهزاده تیمور سره غوښتل چې مستقیماً
د پېښور له لارې پر کابل برید وکړي . دانګریزانو د لښکر مشر ډګروال وید
Calonel Wade و چې دانګریزانو له خوا استازی و او ددوی ګوډاګی
« شهامت علي » هم ورسره و . شهامت علي ددغه سفر په هکله خورا په زړه
پورې یادښتونه لیکلي دي .
رنجیت سنګهـ د ۱۸۳۹ په جون کې مړ شو او ده ددغو پلانونو میوه ونه
څکله . دده له مړینې سره سم سکان پر کورنیو جنجالو مصروف شول او
دقصر دننه یوه سلسله بغاوتونه او بدلونونه رامنځته شول . د درانیو
پادشاهۍ له بدلون څخه ددوی بدلونونه بدترو و . دسکانو داتحولات د پښتنو
له کیسې څخه خارج موضوع ده ، پر هغه باندې به ځانونه نه مصروفوو ، خو
د پښتنو پر تحولاتو باندې یې تاثیر درلود چې هم له قوت او هم له چال او فریب
څخه په کې کار اخیستل شوی و او یوه تن په کې خاص رول درلود . که څه هم
سکان وو چې له شمال غرب څخه یې دهرډول قوتونو مخنیوی وکړ او د پښتنو
پاچاهانو لاس یې له ختیځ څخه لنډ کړ او داسیمه یې ویجاړه کړه خو وروسته
بل څوک و چې داویجاړې ودانۍ یې بیا آبادې کړې او دمسلمانانو دولت یې
بنا کړ . دااسلامي دولت دجنګ یا فیوډالیزم پر اساس رامنځته نه شو ، خو
نوې لارې وې چې د پیړۍ په اوږدو کې زده شوې وې او په نتیجه کې یې سک
شاهۍ ته د پای ټکې کېښود .
هغه پالیسۍ چې دافغان - انګریز دلومړي جنګ سبب شوې ددې کتاب

له ظرفیت څخه دباندې دي ، څنګه رامنځته شوې ، له څه شي څخه راپیدا شوې او د سرحد پر سیمه یې څه اغیزه درلوده او په تیره بیا د پېښور پر ښار باندې ؟ دا زموږ له اصلي مرام څخه بېل ځانګړی بحث کیدای شي .

دا په کافي ډول نه ده تائید شوې چې د پېښور تصرف د جګړې اصلي علت دی او یا دا چې د پېښور اهمیت د دوو وروستیو جګړو سبب شو چې دانګریزانو او د رنجیت سنګهـ د پاتې کسانو له خوا پر مخ بوتلل شو ، حتی وړاندې ځو . دا افغانانو هغه غوښتنه چې په هغه وخت کې ترسره نه شوه نن هم خاصه موضوع ده او دا یوه ملي معضله ګڼل کیږي . رنجیت سنګهـ له افغانانو څخه ټول ښه ولایتونه ونیول ، نه یوازې یې دا باسین ختیزه غاړه چې افغانانو یې نژادي ادعا هم نه شوای کولای ونیوله ، بلکې پېښور پخپله او بنو چې خورا آباده سیمه ده هم ځینې ونیول چې دلته ټول با تور پښتانه او افغانان اوسیدل ، ده موقع غنیمت وشمېرله کله چې د کابل سرداران د کندهار له سدوزیو سره پر جګړه بوخت وو . ده د پېښور له سردارانو څخه پېښور ونیوه . دوست محمد د پېښور د بیا نیولو لپاره نظامي تدبیرونو ته لاس واچاوه . که څه هم په اصل کې دده فتح نصیب شوه خو کلیدي ځای یانې د پېښور ښاریې ونه نیوه . رنجیت هم خپله لوبه وکړه او په دې پوهیده چې د پېښور درلودل څومره اهمیت لري ؟

په دې حالت کې نوی فکتور دا وچې انګریزانو هند نیولی و او قوتونه یې ځای پر ځای کړي وو او د ستلیج سیند ددوی سرحدو . کله چې روسیه دناپلیون له اشغال څخه فارغه شوه نو خپل سرحدات یې په مرکزي اسیا کې دجنوب خواته وخوځول . د ترکمنچې معاهدی Treaty of Turkmenchay پر اساس پر ۱۸۲۸ کال روسیې ایران مجبور کړ چې ماورای قضاز

(Transcaucaxa) روسیې ته پریږدي او په دې توګه د کسپین شا ته په ترکستان کې د روسیې د پراختیا لپاره کوم خنډ چې موجود و له منځه ولاړ. کله چې پر ۱۸۳۹ کال رنجیت سنګه مړ شو. روسیې د کسپین او آرال دسمندرونو ترمنځ د جنوب خوا ته حرکت وکړ او همدارنګه د آرال شرق ته وخوځېده چې کاین ساري Kine sari او نورو قزاقو سره د شمالي ترکستان د تصرف او اداري په هکله پنځې نرمې کړي. دالکساندر برنیس مسافرتونه پر ۱۸۳۲ کال داسې ښيي چې د برتانوي هنداو روسیې تر منځ د روسیې خوا ته د منځنیو پیړیو د بخارا، خیوا او قوقند امارتونه او د یخوا ته د درانیانو ناآرامه سلطنت او د سکانو سلطنت موقعیت درلود. د کلکتې او شیملې داوړي استوګنځي ځخه د هند ګورنر جنرال غوښتل چې د سکانو او افغانانو ترمنځ داسې روغه جوړه رامنځته کړي چې دواړو ته د منلو وړ وي او د برتانوي هند ګټې په کې خوندي پاتې شوې وي. د برنیس د راپور او د نوشهرې او جمرود د جګړو تر منځ حوادثو (۱۸۲۳-۱۸۳۷) ځخه داسې ځرګندیده چې د پېښور وادي او حاصل خیزې ځمکې اصلي هدف و چې درانیانو هم نه غوښتل چې له لاسه یې ورکړي او سکانو یې هم د نیولو خیال ساته. تجارتي امپراتورۍ، لومړۍ پریکړه چې وکړه هغه داوه چې دواړو دربارو ته استازي ورواستوي او خپل اړیکي ټینګ کړي. کیپتان کلو د ویډ Captaine Claude Wade د رنجیت سنګه دربار ته وګمارل شو او د رنجیت د هیلو د عملي کیدو وعدې یې ورکولې او له دې وروسته له شهزاده تیمور سره د کابل تګ ته مؤظف شو. کیپتان الکساندر برنیس د دوست محمد خان دربار ته توظیف شوی و او ده له دوست محمد خان سره یې همکاري او سیمپاتي درلوده چې په خپل کتاب «بخارا ته

سفرونه «Trarelsinto Bokhara» کې يې هم يادونه کړې ده .

مګر ګورنر جنرال لارډ اوکلنډ Lord Auckland (۱۸۳۸) را پـه دې خـوا ګـورنر جنرال و . » هيله ذرلوده چې حـرکت يې منصـفـانه وي . دې دالکسانډر برنيس دځواني، داحساساتو ډک راپور ترتاثير لاندې راغلی و . برنيس ده ته ويلي وو چې دوست محمدخان په هيڅ قيمت له پېښور څخه نه تيرېږي ، نو دا وخت رارسيدلی دی چې ګورنر جنرال په خپله پريکړه وکړي . ګورنر جنرال په هغه وخت کې پر دې قانع و ،او همدارنګه برنيس ته داهم پوره څرګنده وه چې يوسفزو شومره چې له سکانو څخه کرکه درلوده ، په همـاغـه اندازه يې له درانيانو څخه کرکه درلوده . حتی سکانو ته يې که څه هم ظالمان و له خودخواه درانيـو څـخـه درانه کتل « اوکلنډ » چې پوره خبـرنه و حـقـيـقي تصميم نيوونکی هم نه شو کيدای . د ويډ Wade دراپور پر اساس ده نه شو کـولای چې پـېښـور درانـيـانو ته پرېږدي . کله چې برنيس کـابل ته ورسـيـد ، دوست مـحـمـدخـان تـه يې د « اوکلنډ » دمنځګړتوب طرح وړاندې کړه اوهڅه يې کوله چې دوست محمد خان لانور هم دپېښور په هکله تشويق کړي . داچې نور څـه پيښ شول هم الکسـانډر برنيس او هم مـعـاصـر ليـدونکي مـيـسن Masson په تفصيل سره ليکلي دي . دکابل دصحنو تر شاميسن له لوړې نقطې څخـه له ټولو حقـايقو څخـه پرده پورته کړې وه او اصلي موتلف يې دتاريخ پاڼو کـې پرېښـ کـړې دی ، دبرنيس اصلي هيلې او دده دهيلو پر بنا ددوست مـحـمـدخـان مرام روښانه دی . لنډه داچې دده توصيه داوه چې پېښـور دې له سکانو څخه واخيسـتل شي او دوست مـحـمـد خـان ته دې تسليم شي . دلتـه داسې وړانديز هم وچې پېښـور دې دوست مـحـمـدخان ته ورنه کړي ، بلکې سلطان محمد خان ته دې ورکړ شي . دانظريه ميسن او منشي موهن لال

چې دبرنیس هندي سیال و په کلکه یاده کړې ده . په دې کې شک نه شته چې برنیس د پېښور دشپېږو کالو مخکې میلې او میلمستیا وې نه وې هیرې کړې. په زړه پورې یادښت خو دادی چې موهن لال د درانیانو د کرکټر په هکله ذکر کړی دی ، هغه ده چې د حسادت له مخې دوست محمد خان ویلي وو چې د پېښور ورکول سلطان محمدخان ته زما دګټو لپاره زیان رسوي . تر هغې به لادا ښه وي چې له سکانو سره پاتې شي ، داو د درانیانو دوطن دوستی احساس ، قبایلو د درانیانو په هکله ډیر ښه قضاوت کاوه.

دا کافي خبره نه وه . رنجیت هم قوي و ، هم بیخي نیږدې و او هرڅه یې په لاس کې وو. دیوه استازي په خبره دده لرې کول هم عملي نه وو ، نو ځکه مذاکرې او مرکې له ناکامۍ سره مخامخ شوې ،نور څه باید وشي ؟« اُکلند » څخه لارورکه وه . یو دراني لا وکه څه هم له حاکمې کورنۍ څخه نه و ، دا هغه څوک و چې له پېښور څخه تیریده او د انګریزانو زړه ته یې کتل او حتی پر ۱۸۳۳ کال یې غوښتل چې پېښور د تړون او سند له مخې رنجیت سنګهـ ته ورکړي . که څه هم له حاکمې کورنۍ څخه نه و ، الکساندر برنیس هم ده ته مشوره ورکړه چې دغه دراني شاه شجاع الملک دې یوځل بیا پاچاشي ؟ د پېښور جنجال به هم حل شي . اُکلند موافقه وکړه . په دې ترتیب انګریزان مجبور شول . چې د پېښور او سرحدي سیمو د تر لاسه کولو لپاره داپالیسي عملي کړي ، شاه شجاع د خپلو نیکه ګانو پر تخت یوځل بیا کښېنوي ، او رنجیت سنګهـ دې سرحدي سیمې په خپله ولکه کې وساتي ، داپالسي د درې ـ ګونو خوا وو په تړون کې لاس لیک شوې وه . درې ګونو طرفونو : رنجیت ـ سنګهـ ، شاه شجاع او ګورنر جنرال په سیمله کې د ۱۸۳۸ کال دجون پر ۲۵ مه نیټه داتړون لاسلیک کړ .

ددې معتبر سند عنوان په دې ډول و : « دمهاراجا رنجیت سنگهـ او شاه شجاع الملک تر منځ ددوستۍ اوملگرتیا تړون » چې دانگریزانو له خوا تائید او منځگړتوب په کې شوی دی . داتړون دشاه شجاع او رنجیت سنگهـ دپنځو کالو دمخه معاهده تائیدوي ، اوانگریزانو په دواړو خواو کې دملگرتوب نقش لوبولی دی .

دلومړۍ مادې ( Article 1 )ترحکم لاندې شاه شجاع دځان ، ولیعهدانو او ځای نیوونکو او ټولو سدوزیو له خوا دلاندینو سیمو ملکیت او ادعا نه کولو تعهدکړی دی : هغه سیمې دادي : کشمیر ، اټک ، چچ ، هزاره ، کبال Khahbal امب او مربوطې سیمې ، پېښور او دیوسفزو سیمې ، ختک هشتنگر ، مچنۍ ، کوهاټ ، هنگو او دپېښور اړونده سیمې تر خیبر غاښې پورې ، بنو « وزیرو خاوره » داوړ ، ټانک ، گورتگ ، کلاباغ او خوشحال گړ او مربوطه سیمې ، دیره اسمعیل خان او دیره غازي خان ( په نورو نومونو ) ، دبرسیند درې کچې The three Katcheo of upper sind )او دملتان ولایت . کشمیر او ملتان پخواهم ددراني امپراتورۍ برخې وې . نورې سیمې چې پاس یادې شوې دماورای اباسین او اباسین هزاره ( له چاچ او اټک سره ) هغه سیمې دي چې کورزون ( Curzon ) له هغې څخه شمال غربي سرحدي ولایت ( NWFP ) جوړ کړی و . په دې کې دمیانوالي تر امر او اداري لاندې عیسې خیل او دیره غازي خان سیمې چې داباسین غرب ته وې هم شاملې وې. دبولان دغاښي پر سرک باندې دبرسیند برخې اودپنجاب یوه برخه هم په کې شاملې دي .

ددې معاهدې نورې مادې فقط دخوند لپاره ورزیاتې شوې دي ؛ دعلاقې وړ مسئلې نه لري . پاچا مکلف و چې پنځه پنځوس ښایسته او په منل

شویو رنګونو ، آسان مهارجاته وروليږي او هغه مکلف وچې پنځه پنځوس شالونه ورواستوي . پاچا مکلف وچې دکابل له لارې ختکي پښتنبور ته وروليږي او په مقابل کې مهاراجا د پنځه پنځوس بوريو پښتنبورۍ اعلى باړه وريجو په استولو مکلف و . بل دا چې هر کله دواړه پوځونه په يوه سيمه کې کمپ کوي ،د غواوو حلالول به مجاز نه وي . دا تړون اتلس مادې و او دانګريزانو په هکله يوازې دومره ليکل شوي دي چې دوى د دواړو تر منځ منځګړيتوب او خير غوښتنه کوي . وروسته يوه بله مادّه داسې زياته شوې وه چې دضرورت په وخت کې مهاراجا بايد ۵۰۰۰ تنه پلټن له مسلمانانو څخه جوړ او په پښتنبور کې يې دشاه مرستې ته وروليږي . يوازې هغه وخت چې انګريزان او مهاراجا يې لازم وبولي . برتانوي عسکر په خپل سر په ځانګړې توګه په هيڅ فعاليت کې برخه نه شي اخيستلاى ، تر ټولو حيرانوونکى سوال چې هر يو يې پوښته ، دادی چې هغه چاچې افغان- انګليس جګړه پلان کړې وه هيڅ مسووليت يې نه درلود چې لارډ اکلنددې ته وهڅوي چې ۵۰۰ ميله دبرتانوي هند له حدودو څخه دباندې دتړون دملاتړ په خاطر جګړه پيل کړي او نه يې حق درلود .

دجګړې په لړ کې پيښې ، دکابل نيول ، دشاه شجاع بيا پر تخت کښينول ، ددوو انګريزانو مکناټن Macnaghten او برنيس Burnesوژل ، د ۱۸٤۱ کال د په شاتګ ناوړه پيښې ، په راتلونکي کال کې دافغانانو په واسطه کابل ته نږدې دشاه شجاع قتل د ۱۸٤۲ په ورستيو کې دجنرال پالک Pollock په واسطه د کابل بيا نيول او نورې ځينې پيښې ددې کتاب له کيسې څخه د باندې موضوعات دي ، خو يوه نقطه دعلاقې وړ ده . هغه دا چې کله چې د۱۸٤۲ په اپريل کې جنرال پالک خيبر غاښی په زور نيولو له نوي

تکتیک څخه یې کار واخیست چې په عسکري علم کې تر دې وخت پورې
چانه و ازمویلی او تولو ته نوی شی و ، په تیره بیا په اسیا کې داسې
تکتیکي حرکات چانه وو عملي کړي. کله چې به کتار تیریده ، دجناح له خوا
به بریدونه ورباندې کیدل په تیره بیا په غرنۍ اراضۍ کې دا کار حتمي و.
اپریدیو دخیبر په دره کې همیشه داسې داړې کړې وې او کولې یې ، دجنرال
پالک دانوی تکتیک د یادونې وړ دی . ده دخیبر درې په اوږدو کې په دواړو
اړخونو ( جناحین ) کې لوړ ي ځوکې اشغال کړې او هلته یې قوت ځای پر ځای
کړ او دهر اړخیزو بریدونو مخه یې ونیوله او په دې توګه اصلي کتار له درې
څخه مصون تیر شو او بریالیتوب یې په برخه شو . داړخ له خوا بریدونه اود
لوړو ځوکو په چتکتیا سره نیول دغرنیو سیمو اوسیدونکو دعادت کارو . یو
وخت چاکیسه کوله چې دیرش کاله دمخه دمسعودو یوه ډله په قابو کې
ولویدل ، خو دوی په ډیرې چتکتیا سره ځانونه لوړو ځوکو ته ورسول او په
مقابل بریدیې لاس پورې کړ او هغه چا چې دوی ته کمین نیولی و ، ورځ یې
وربانديې توره شپه کړه . وارله واره بې له فکر کولو څخه دقبیلو جنګیالي
دناڅاپي حملې په وخت کې ځان حاکمې نقطې ته رسوي . هرچاچې له پښتنو
سره جګړې کړي دي ، ددوی دغسې حرکات همیشه یادوي .

دپښتنو اراضي له یوې خوا او پر آزادۍ باندې ددوی مینتوب همیشه
ددې سبب شوی دی چې هیڅ یوه امپراتوري نه وه بریالۍ شوې چې دوی تر
خپلې ادارې لاندې وساتي ، داسمه خبره نه ده چې ددوی غرونه لوڅ وي ،
دنیولو او اشغالولو ارزښت نه لري دایوازې غیر واقعې پروپاګنډه ده . ورې
پښتون له غرو څخه لاندې پر ابادو سیمو باندې خپلې سترګې ګنډي . . . . . .
دابه دده مینه وي ، مګر په شمالي غرونو کې ځینې په کشمیر کې داسې ترې

شته چې ترسوات هم آبادې دي ، داسې غنم او جوار کړي چې دباجوړاو بر مومندو ځمکې ورته عاجزې دي ، حتی تیرا او وزیرستان تک شنه ورشوگان لري او دپستو ( نرم ) لرګو ځنګلونه لري چې فعلاً مخ په خرابیدو دي دا ځکه چې دکشمیر دتنبو ( چارتراش ) تجارت دریدلی دی . دتمیرې او شکردرې ترمنځ دمیوه جاتو ځینې برخې چې کلونه کلونه تر پروګرام لاندې دي دسوات او وزیرستان له لوړو ځمکو څخه ډیرې لوخې اوبې حاصله ځمکې دي ، دقبیلوي کمربند همیشنۍ سیاسي ازادي یوازې له ازادۍ سره ددوی دمینې او عشق له کبله ده ، دوی هر ګړی تیار دي چې له هغې څخه دفاع وکړي او پخپله خاوره کې ددفاع پوره طاقت لري ، مګر دوړې پښتانه داستان په سختۍ سره مري . دسولې تینګولو پالیسۍ ناکامې او دشاه شجاع مړینه د ۱۸۳۸ « درې اړخیز » تړون دړنګیدو سبب شوه مګر دهغه تړون موجودیت دایمي تاثیرات هم پریښودل ، ځکه چې دسکانو تسلط پر پېښور باندې پاتې شو او حتی داباسین ددواړو غاړو سیمې سکانو ته ورپاتې شوې . دلته داسې فضا جوړه شوه چې دسکانو له جګړې څخه وروسته هم داسیمې تر پنجاب پورې انګریزانو ته پاتې شوې . دلته دخلکو په ماغزو کې داسې تاثیرات پاتې شول چې بارکزي حاکمان یې له ځان څخه پردي وبلل او دسدوز ادعایې پر ځای و شمیرله . دوی ته داهم سخته وه چې دسکانو او یادهغوی دځای نیوونکورول ومني . په حقیقت کې پېښور او داباسین دغاړو سیمې پر ۱۸۲۳ کال کله چې محمد اعظم خان په نوښهره کې ماتې وخوړه له کابل څخه جلا شوې وې ، که څه هم داسیمې یوځل بیا تر تحت الحمایې لاندې راغلې خو څلور کاله وروسته تحت الحمایي لغوه شوه او دانتقال کلمه په معاهده کې دوخت په تیریدو سره په اشغال بدله شوه او کله چې انګریزانو دسرحد مسایل په لاس

کې ونيول دا سيمې يې بالکل اشغال کړې .

دهغې زمانې د پولټيک زور ( سياسي زور ) د پښتنو په سيمه کې کوم رول چې لوبولو لا هم پای ته نه ورسيدلی . کله چې پر ۱۸٤۰-۱۸٤۱ کال انګريزانو شاه شجاع بيا پر تخت کښيناوه . دوست محمدخان انګريزانو ته تسليم شو . سفير سرويليام مکناټن Sir Willian Macnaghten نوې لارې چارې جوړولې چې د کابل د پاچا تخت او تاج وساتي ، په لاهور کې د ننه د سکانو تر منځ داخلي شخړې زمور له موضوع سره اړيکي نه لري او همدارنګه د دوی د داخلي مخالفتونو له کبله دوی خپل اهميت هم له لاسه ورکړ . له سکانو څخه کوم خطر نه ليدل کيده . مکناټن بې له دې چې مشوره هم وکړي . « درې ګونی » تړون يې لغو اعلان کړ او د شاه شجاع د تقرر د لغوې وړانديز يې هم وکړ . پښتنو او نورې سيمې له سکانو څخه هم بيلې شوې . بې له شکه چې مکناټن د برنيس د خبرو تر اغيزې لاندې هم و او هغه لا تر دې وخته پورې په کابل کې و . کلکتې ده وه پيشنهادونه بيرندو يه وبلل خو بيا يې هم دا تمايل درلود چې دې وړانديزونو سره خپلې پريکړې غوټه کړي ، خو بدلونونه په چټکۍ سره روان وو. د برتانيې وسلې له منځه ولاړې : مکناټن او برنيس پر ۱۸٤۱ کال ووژل شو ل. دا چې دوی غوښتل په پښتنو کې قوتونه راټول کړي او خپل موقف بيا را ژوندی کړي ، دانګريزانو لپاره دا پلان بې مفهومه شو . د لاهور دربار هم پر دې پوهيده چې برنيس غوښتل د دوی سلطه دوست محمد خان ته ورکړي او له دې سيمې څخه د سکانو لاس لنډ کړي . حال دا چې مکناټن عين پلان درلود ،خو ده د دوست محمد خان پر ځای د شاه - شجاع لپاره کار کاوه . دا د دې سبب شول چې سکان مشکوک شي . دوی خپله اردو چې د هري سنګهه تر قوماندې لاندې وه او هغه د افغانانو د سيمې د نيولو

خیال درلود ، د تیارسی په حال راوستله ، ځکه چې دوی وپوهیدل چې انګریزان له هغه دښمن سره ړیکي ټینګوي چې یو وخت یې غوښتل دوی کمزوري کړي . په هر دلیل ، دوی دې نتیجې ته ورسیدل چې انګریزانو تهدید- ول او دوی د جنګ پریکړه وکړه . یو ځل بیا څرګنده شوه چې پښور د یوه بل جنګ سبب شو او په حقیقي دلایلو سره دسکانو جنګونه پیل شول .

دسکانو لومړی جنګ د ۱۸٤٦ په فبروري کې ختم شو . د رنجیت سنګهه سلطنت ټوټې شو ، کشمیر او شمالي غرنۍ سیمې دوګرا مشر ګلاب سنګهه ته ورسیدې . « جلندر دوآب » دسوتلیج او بیز ( Beas ) دسیندونو تر منځ سیمې انګریزانو ونیولې . د لاهور او ملتان دشاوخوا اصلي سیمې دسکانو ددولت په نوم پاتې شوې خو د انګریزانو تر امر لاندې وې او دانګریزانو ایجنت به په لاهور کې موجود و . د غه وخت دی چې ځینې انګریزان لکه ابټ Abbott ، لارنیس Lowrence ، ایدواردز Edwardo ، نیکلسن Nichalson او لمزدین Lamsden د لومړي ځل لپاره دسرحد په چارو کې راڅرګندیږي . دوی په لومړي سر کې دسیمې واکمن نه وو . ځکه چې برتانیې لا دا سیمې تر اوسه نه وې اشغال کړې . دوی په لاهور کې دانګریز د سفیر مرستیالان وو او تش په نامه دسکانو ددربار تر اداري لاندې وو . ددوی کیسه دانګریزانو په وخت کې پیل کیږي او دسکانو په زمانه کې یې د پردې شاته کارکاوه ، خو دلته دسرحد په سیمه کې دسکانو له دویمې جګړې دمخه یوه پیښه وشوه چې د یادونې وړ ده . په دویمه جګړه کې دسکانو قوت بیخي کمزوری کیږي .

د ۱۸٤۸ د اپریل میاشت کې د اګنیو Agnew او اندرسن Andrson وژنه په ملتان کې د جګړې د پیل کیدو سبب شوه . دوست محمد خان چې پنځه

کاله یې د کابل پر تخت تیر شوي وو ، یوځل بیا د پېښور د نیولو خیال راژوندی کړ . دده میرني ورور سلطان محمدخان ، دجورج لارنیس په تسلیمو- لوسره له سکانو سره اړیکي پا خه کړي وو او خپلې ځوکۍ ته راغلی و . دوست محمدخان پریکړه وکړه چې له دغې طلایي موقع ځخه ګټه واخلي او سکان باید له انګریزانو سره پر جګړه مصروف کړي او په عین وخت کې خپل میرنی ورور د تل لپاره له صحنې ځخه وباسي ، ځکه چې هغه همیشه له سکانو سره هرډول معاملې ته حاضرو . دوی ټول یو دبل پر ضد دسکانو هرډول معاملو ته تیار وو. د ۱۸٤۸ په دسمبر کې امیر پېښور ته راورسید او بالاحصار یې ونیوه او دلنډي سیند جنوب ته یې ټوله سیمه ونیوله . یوسفزي یې په خپل حال پرېښودل . دده میرني ورونه کوهاټ ته کډه شول او په شاولاړل او دې ته تیار وو چې دضرورت په صورت کې لانور هم جنوب خواته ولاړ شي چې دامیر له منګولو ځخه خلاص شي . دوزیر محمد اکبر خان زوی یانې خپل لمسی یې ګورنر وټاکه . ( وزیراکبر خان پر ۱۸٤۷ کال مړ شوی و ) او دی باغي سک جنرال چترسنګهـ ته ورغی او ورسره یوځای شو . دخیرآباد په نیولو سره دوی وکړای شول چې دسکانو مخنیوی وکړي او هغوی دچاچ او اټک غاړو کې پاتې شول . دوی هم نه شو کولای چې له اټک ځخه تیر شي او چترسنګهـ دانګریزانو دجګړې پر ضد له دوی ځخه مرسته اخیستلای نه شوه .

دوست محمد خان ، ابټ Abbott ته یو لیک واستاوه . هغه مهال له خپلو مشوانې دوستانوسره په ګندغر کې و. په لیک کې یې ورته لیکلې وو چې پېښور ، دیره جات او هزاره سیمې مې چې کله تربشپړ کنترول لاندې راوستلې ، زه دې ته چمتو یم چې د تاسو ( انګریزانو ) او سکانو ترمنځ منځګړیتوب وکړم . ده غوښتل چې دسکانو مرسته له ځانه سره ولري ، ځکه

چې د پېښو په جریان کې ده خپل سپور پوځ د دوی کومک ته د گجرات جګړې ته هم ور واستاوه خو سره له دې هم د سکانو مقاومت مات شو . له دغې جګړې څخه وروسته یې د دوست محمدخان سپاره تعقیب کړل . د مالګې له غرونو څخه د مرګلا کوتل له لارې تر حسن ابدال هم تیر شول او د پېښور په وادۍ کې یې د خیبر له درې څخه هم تیر کړل او یو شمیر یې له منځه ولاړل . دا د افغان اردو وروستی قوت و چې د پېښور په وادۍ کې د وروستي ځل لپاره لیدل شوی و .

روسانو د مرکزي اسیا په لور حرکت کړی و ، او غوښتل یې چې د انګریزانو د پر مختګ مخنیوی وکړي . دا پېښې دي چې تاریخ یې بیان کړی دی او ښایي د لومړي افغان جنګ سبب به هم دا وا و د دې ترشا یې لویه ستراتیژي وه . مګر په دې کې هم شک نه شته چې د پېښور ایالت او ښار د درانیانو او سکانو پر مغزونو کې ګرځیده او د جګړې ظاهري سبب هم دا و چې د انګریز پر حکومت یې هم تاثیر اچولی و . دا موهم په یاد وي چې د سکانو د لومړي جنګ سبب هم دا و . نتیجه یې دا شوه چې په دویم جنګ کې افغان امیر مستقیماً مداخله وکړه . د شخړو په نتیجه کې سرحدي سیمې د سکانو ځای ناستي ( انګریزانو ) ته وسپارل شوې ، د ټولو حوادثو په اوږدو کې دا هم په ګوته شوې ده چې د قبایلو خلکو څومره چې له سکانو څخه کرکه درلوده هغومره یې له درانیانو څخه هم کرکه درلوده ځکه چې له دوی سره هیڅکله مشوره نه کیدله او پر همدې باندې خوابدي وو. که سدوزي وو او که دراني بارکزي وو ، دوی یې استثمار کړي وو. په تیره بیا د پېښور سردارانو دوی څوواره پر سکانو خرڅ کړي وو ، چې دوی خپلې ځانګړې ګټې تامین کړي. د شاه شجاع او دوست محمد خان مخالفتونو دوی ته بې له جګړې او نا آرامۍ

بل څه ورنه کړل .

سک شاهان که پېښور کې وو یا کوهاټ ، بنو او ډیره جاتو کې ، یوازې دغرو ترلمنو رسیدلي وو . دغروسیمو سره دوی بل ډول اړیکي درلودل او ددوی سیمې یې یاغیستان بللې. ددریمګړي په واسطه یې ورسره پریکړې کولې او معمولاً د پېښور دخلیلو او مومندو اربابان یې دریمګړي وو. دارباب کلمه د مغول له زمانې څخه داحترام په توګه مشرانو ته استعمال شوې وه او ددغو مشرانو په واسطه سکانو او درانیانو داپریدیو اونورو قبایلي مشرانو سڼه خپل مشکلات حل کړي دي . دپېښور دتهکال او لنډي کوتل په سیمو کې اوس هم ځینې کورنۍ شته چې دا لقب میراثي بولي . سکانو دغرنیو سیمو دنیولو نیت هیڅکله ونه کړ او ان ارتباط یې هم نه ساته ، دوی هیڅکله سوات ، بونیر ، باجوړ ، کورمې او وزیرستان ته نه ننوتل . د قبیلوي غرنیو سیمولـه خلکو سره اړیکي دکابل پاچا او انګریزانو دزمانې خبرې دي چې دسرحد په تعینولو کې یې هم رول درلود . دسکانو له خوا د پېښور دنیولو په وخت کې هم څه ناڅه اداري او منطقوي حدود وضع شوي وو.

دنولسمې پیړۍ دلومړۍ نیمایي په اوږدو کې ددغو حوادثو تاثیرات په سرحد کې تاریخي پس منظر لري او حتی تاثیر یې تر نن پورې شته . پېښور ددرانیانو دژمي پایتخت و او وادي یې په زړه پورې ایالت و .ډیرو قبیلوي خلکو دبارکزو پروانه لرله او دسدوزو لپاره جنګیدل. دسلطان محمدخان دمصاحبان کورنۍ کلونه کلونه دلته اوسیدلې وه او له پېښور سره یې خاصه مینه درلوده ، یوه هم نه غوښتل چې پېښور په وړیا او بې له جګړې له لاسه ورکړي . دادحیرانتیا وړ خبره نه وه چې نږدې یوه پیړۍ وروسته دکابل حاکمان اوس هم داخیال ساتي چې پېښور ترلاسه کړي او د پخوانۍ مینې دترلاسه

کولو لپاره سیاسي بدلونونه راولي . د پښتونستان مسئله د معاصرو ورځو هغه موضوع ده چې د کابل واکمن یې روزي.

خو هغه څوک چې دا مفکوره روزي ، دا هم باید په یاد ولري ، چې د ۱۸٤٦ - ۱۹٤۷ پورې نظر هر څه چې و، خو هغه قبایلي خلک د دغې یاهغې کورنۍ خیال نه ساتي خپلې پراخې او روښانه ازادۍ راتلونکې ته ګوري . دویمه دا چې همدا د کابل حاکمان چې د دوی غېږ پورته کوي، قبایل د دوی له نیکه ګانو څخه ښې خاطرې نه لري ، نو دا چې او سنۍ افغان حکومت چې سردار محمد داود خان یې په راس کې دی د پښتو نستان چیغې وهي فکر نه کوم چې قبایل به یې خیال وساتي .

د سکانو پر ضد جګړو کې د جنګ قهرمانان درانیان نه دي . نه شاه شجاع دی ،نه دوست محمدخان دی او نه سلطان محمد خان که څه هم ټول عمر په پېښور یا کوهاټ کې اوسیده . د سکانو د ضد جګړې اتلان خټک او یوسفزي دي چې د مړینې ویره یې نه درلوده او د رنجیت سنګهه د منظمو قوتونو په مقابل کې یې په « پیرسباک » کې ډېر ځوانان له لاسه ورکړل . د هماغو قبایلو مشران سید احمد شاه او سید اکبر شاه دي چې د سکانو پر ضد جنګیدلي دي .

د سید اکبر شاه ځای ناستي ماته ویل: « سید احمد شاه یو رښتینی مجدد و او مونږ هم دده مریدان شوو او لاس موسره یو کړ . مونږ ته دی راستول شوی و چې د سکانو له ظلم او استبداد څخه مو وژغوري . ده پخپله شهادت قبول کړ او ټوله نړۍ پوهیږي چې سید احمد شاه بریلوي د شهادت د پنځلسو کلونو په موده کې سکشاهي له منځه ولاړه .

# ځلورمه برخه

د انگریزانو زمانه او تر هغې وروسته

۱۸۴۶ - ۱۹۵۷ میلادي

(۱۲۶۳-۱۳۷۷ هجري قمري ) کلونه

# شلم څپرکی

## سپین روبي

### ( په سیمه کې انګریزي مخور )

کله چې پر ۱۸٤۹ کال انګریزان دامیر دوست محمد خان دسپرو په تعقیب پېښور ته اورسیدل ، خلکو ددوی هرکلی وکړ ځکه چې دسکشاهي له ظلم څخه خلک ډیر ستومانه شوي وو. دانګریز داردو په راس کې ښاغلی سرجان ګیلبرټ Sir John Glbert وچې ترخیبر پورې یې دامیر دوست محمد - خان پوځ تعقیب کړ او « شادی بګیاړ » پورې ولاړ هلته یې خپل قوت ته د دریدو امر ورکړ . دا په سیمه کې دسک او درانیانو دپاچاهۍ پای و . له دې ځای څخه دوه طرفه لار او داوسپنې پټلۍ دجوړیدو هدایت صادر شو . دلته یوه دروازه ( طاق) لوړ او یږ‌څا ه ایستل شوې ده . داڅ ډصاحبزاده دڅاه په نامه شهرت لري ، چې دانګریز داستازي اودې سیمې دمشر « سر صاحبزاده عبدالقیوم خان » دملګرتیا ، دوستۍ اوښه نیت ښبانه ده . دخیبر

دروازې لا خپل ارزښت درلود . دلته اردوګانو تګ راتګ کاوه ، لارو نیوونکو هلته او دلته کله کله خپلې داړې کولې ، خیبر دره نه یوازې مرکزي اسیا ته دکوریډور حیثیت درلود، بلکې ختیځې خواته دسرحد دارلعلوم ته چې دساینس او هنر نوی علمي مرکز و دورتلو لاروه . دادارالعلوم دتاترې دغرونو په پس منظر کې ښکاریدې ، خو د انګریزانو لپاره داتنګ تنګي دسکانو او درانیانو دواکمنۍ دپای نقطه وه .

دده ترشا د « ګووف Ghouph » دایسټ انډیا کمپنی . East India co اردو راغله . پېښور اونورې سرحدي سیمې یې ونیولې . غونډونه یې ځای پر ځای کړل او داد پنجاب د ایالت یوه برخه شوه . شمال غربي سرحد دغونډیو لمن وه چې سکانو یې دسوبې ادعا کوله . په دې وخت کې د دوی مقصد نه وچې غرونو او لوړو سیمو ته وخیژي او یا درې لکه خیبر دره ونیسي ، دپېښور په وادۍ ، بنو او دیره جاتو کې دانګریزانو ادلري خط فقط ، هوارو سیمو کې و او دغرنیو سیمو په لمنو کې دریدلی و . تخت سلیمان هسک او په خپل حال ولاړو . ددامان ، کورمې ، توچي او ګومل سیند ونه یې له لمنو څخه رابهیدل خو سیمه یې ممنوعه سیمه وه . یوازې دکوهاټ په سیمه کې څه ناڅه دختېکو غونډیو ته ورهسک شول او د « میرانزیو » وادۍ پورې ورننوتې شول چې دکورمې سیند ته دتل په برخه کې ځیرمه پرته ده . دیره موده نه وه تیره شوې چې دآدم خیلو په دره کې یې دکوهاټ خواته دځلوېښتو میلو په اوږدوالي لار په زوره ورخلاصه کړه . « دره » داپریدیو مشهوره سیمه ده . له دې درې څخه پرته دانګریزانو حکمراني دغونډیو په بیخ کې ودریده . په عمومي ډول ترنن پورې په هماغه شکل پاتې شوې وه . اداري سرحد دسکانو دوخت پر خط ولاړو ، چې دهوارو سیمو او سېدونکي یې دغروله اوسیدونکو څخه بیل

کړي وو. داسې يوه کرښه وه چې د مرکزي اسيا لوړې څوکې يې له ختيځ څخه بيلولې.

داباسين له غاړې څخه د شمال غرب پر خوا انګريزانو څلور حوزې (ولسوالۍ) له شمال څخه جنوب خواته جوړې کړې. دا حوزې (ولسوالۍ) د پېښور، کوهاټ، بنو او ديره اسمعيل خان وې. پر دې سربيره د ديره غازي خان حوزه وه چې د برسيند د «کاچي سګو» پر غاړه او جنوب ته د بلوچو له وطن سره په څيرمه کې وه. د برسيند د کاچي (Kachhi) کرښه د کويټې، کندهار د لارې په اوږدو کې د سليمان د جنوبي غرونو په سيمه کې وه. پښتنو قبيلو بلوچو او براهوي خلکو ته لار ورکړه.

سند د ۱۸۴۲-۱۸٤٤ په موده کې د ايسټ اينډيا کمپنۍ (د ختيز هند شرکت) د سکانو له جګړو څخه د مخه د افغان انګليس د لومړي جنګ په نتيجه کې نيولی و، ځکه چې له سکر څخه د بولان له لارې د افغان دارتباط لاره وه او شاه شجاع هم له همدې لارې څخه افغانستان ته تللی و. د کابل ناخوالو د سند له اميرانو سره هم دښمني جوړه کړه. دوی پوهيدل چې انګريزان د دوی سيمې نيسي نو ځکه يې د ښاغلي سرچارلز ناپير Sir Cherles Napier د غوښتنې پر ضد مقاومت وکړ او تړون يې ورسره ونه منلو. جګړې پيښې شوې خو په نتيجه کې دوی ماتې وخوړه او انګريزانو ته تسليم شول. دوی دوه مشهور جنګونه په مياني Miani او حيدراباد Haiderabad کې له انګريزانو سره وکړل. د سند سرحد د بمبي په حکومت پورې تړل شوی و. ډيره موده وروسته (۱۸۷۶ - ۱۸۸۰) کله چې سند يمن Sandeman د براهوي بلوچ Brahai-Baluch لوړې سيمې ونيولې د کلات له خان سره يې په دې هکله لار جوړه کړې وه او نږدې ديرش

کاله له یوځای کیدو څخه وروسته د تړلي سرحد پالیسي پلې شوه او یو فعال سیستم جوړ شو ، چې د سرحد تړل او د داړو پر ضد فعالیت د جان جیکوب John Jacab نوښت و او د جیکوب آباد ښار بنسټ ایښودونکی و.

د اباسین غاړې پنځه حوزې ( ولسوالۍ ) له پېښور څخه تر دیره غازي خان پورې او د اباسین د پیل د شمال برخه کې د هزاره حوزه ، تولې یو ځای د سرحد ولسوالیو په نامه د پنجاب په ایالت پورې وتړل شوې او پر دوو کمیشنریو وویشل شوې : یوه د پېښور کمیشنري او بله د دیره جاتو کمیشنري وه ، مګر د پنجاب په نورو سیمو کې د ډیپوټي کمیشنرۍ جوړې شوې وې . پنجاب په هغه وخت کې د قوانینو او مقرراتو تر حکم لاندې پوښتنه نه وه او د (Non-regulation= نظم نه پوښتل ) په نامه یادیده خو په عمل کې دې ټکي لږ ارزښت درلود . دلته د حوزې آمر تر ( تقنني ، مقررات =-Regula tion ) ایالتونو څخه زیات جنايي صلاحیتونه درلودل . وروسته عمومي بلوا وشوه او انګریزي حکومت له ایسټ ایند یا کمپنۍ څخه صلاحیت غصب کړ . تردې وروسته دهند د اداري لپاره د ملکي مامورینو تر څنګ نظامي افسران هم په وظایفو کې وګمارل شول او د ملکې آمرانو د مرستیال په توګه یې کار کاوه . دې ګډ کادري سیستم ته دوی د پنجاب کمیسون Panjab Commission نوم ورکړی و ان تر ۱۹۰۰ میلادي پورې یې نظامي افسران په ملکې اداره کې استخدامول . همدارنګه په سیاسي ډیپارټمنټ کې یې عین پرنسیپ تطبیقولو او وروسته د سیاسي خدماتو (Political service ) په نامه یادیده . په صوبه سرحد کې اداري چارې لا هم د سیاسي خدماتو ارګان ته وسپارل شوې . دا کار هغه وخت وشو چې کورزون Curzon پر ۱۹۰۱ کال د صوبه سرحد ولسوالۍ له پنجاب څخه بیلې کړې او ځانګړې

اداره يې ورڅخه جوړه کړه . په ټولو تقنينې ، جنايي ، ملکي ، مالي ، پوليسي ، اجتماعي کارونو اونورو مسايلو کې پنجاب تقريباً د ۱۸٤۹ کال پنجاب وعملاً کوم بدلون نه ليدل کيده . يوازينی توپير يې داو چې د پنجاب ګورنر جنرال دالهوسي Dalhouiçe به هميشه تر ټولو غوره افسران او مامورين خوښول او په پنجاب کې به يې مقررول ، چې د دوی له پوهې او نوښت څخه د شمال غربي سرحد جنګياليو قبايلو په مقابل کې خاص تدابير په نظر کې ونيول لای شي ، يوه خاصه محکمه په لاهور کې جوړه شوې وه چې د پښتنو قبيلې له کورنی دښمنۍ او غچ اخيستلو څخه په تدريج سره د قوانينو او مقرراتو تابع کړي . لارد مکاولي Lord Macaulay انګريزي قانون جوړونکی تلوراتلو ، چې هند ته جزايي قانون Indian Penal Code چې د تکميليدو په حال کې و ژر تر ژره تطبيق ته تيار کړي ، دا پر ۱۸۱٦ کال توشيح ته تيار شوی و . د پرنسيپ له پلوه ښه قانون جوړ شوی او د تطبيق په غرض دانګريزانو لپاره کافي و او له ملامتۍ څخه وتلی قانون و .

انګريزانو د خپل نوم ښه ساتلو په مقصد تر ټولو غوره شخصيتونه خوښ کړي وو چې له پښتنو سره سم وچليږي . دوی په مقايسوی ډول د خپلې لوبې په لوبولو کې بريالي وو. په پيل کې يې د دوی د خوښې چلند کاوه . دوی هغسې رژيم ته د پای ټکی کېښود چې ټول پښتانه ورڅخه بيزاره وو او انګريزان يې خپل ناجيان وبلل . څومره يې چې له سکانو څخه بد راتلل هغومره دوی له سلطان محمد خان او د پېښور له نورو سردارانو څخه کرکه درلوده ، ځکه چې هغوی هم د سکانو ډول ته ګډيدل ، ګټې يې لټولې ، د خلکو درد ورسره نه و. دوست محمد خان چې موقتاً پېښور ونيوه کوم خاص بدلون يې رانه ووست او په تيره بيا چې دی هم له سکانو سره يوه ځای شو ، خلکو له

ده شخه هم کرکه وکړه او چې موقع يې راغله له خيبره يې تير کړ. وروسته کله دالهوسي دخپلې خوښې افسران وګمارل دوی د پښتنو زړو ته کتل او کارېې کاوه. انګريزانو دسکانو د دووجګړو ترمنځ موده کې پښتانه پوره پيژندلي وو او پښتنو هم دانګريزانو مسئولان پيژندلي وو. ترټولو مهمه داده چې الفنستون دخپلې تجربې له مخې د پښتنو دښو خصوصياتو درناوی کاوه او دايې وروسته خلکو ته په ګوته کړې وه چې له پښتانه سره داسې رويه وچلوي لکه دوه رښتيني نارينه يې چې يو له بل سره کوي. کله کله به وعدې او ترونونه ماتيدل، ځينې داسې خلک وو چې په بدل او غچ اخيستنې کې به يې دهيڅ شي پروانه کوله: يوه به څوک مړه کړل بل به بيا غچ اخيستلو،خو سره له دې هم ترون او پريکړې ته په درنده سترګه کتل کيدل، احترام او مينه هميشه موجود وو.

په لومړي سر کې دښې فضا دساتلو پوره خيال ساتل کيده. کوم انګريزان چې دلته مؤظف شوي وو يو بل ته يې اطاعت او احترام کاوه، په حقيقت کې لکه ورونه داسې وو. دملکې ويکټوريا دزمانې ځينې نومونه لکه ښاغلو جان نيکلسن (John Nicholson) هربرت ايدواردز (Herbert edwards) فريدريک مکيسن (Frederick Mackeson) جيمز آيټ (James Ahhott) د هرچا دژبې پر سر وو او دخپلې زمانې قهرمانان وو. دغو څلورو اړو نيک نومونه پرې ايښي او دپرش کاله دمخه هم خلکو په ښه يادول. زړو سړيو به دخپلو پلرونو او نيکونو له خولې کيسې کولې او يو وخت کې ماله يوه سپين ږيري ملک څخه دليدنې پر وخت پوښتنه وکړه چې په خپله يې له جيمز ايټ سره خبرې کړې وې.

له دغو څلورو کسو څخه نيکلسن چې د «اولستر» Ulster

اوسیدونکی و . داسې دخلکو د خوښې خیالات درلودل چې خپل هېواد وال هم ورته حیران وو. کلونه کلونه دی دوولف Wolfe او نیلسن Nelsin همزولی او دښوونځي دور ځو قهرمان وچې د دوی د بریالیتوب شببې یې په خپل شتوالي سره ډکولې ، دی « د پنجاب زمری » په نامه مشهور شوی و او داسې وایي چې یو شمیر خلک دهزاره په سیمه کې ټول شوي وو او دی یې خپل « گورو » Guru باله او دا خلک د نیکلسنیانو په نامه یادیدل . وروسته یې دده پر مړینه باندې ویر کاوه . ده مسلط وجود درلود او سترگې یې توربخونې او گندونکې وې . سریې همیشه هسک گرځاوه . پر ځان باوري او مغرور سړی و ، نظر یې همیشه دخپگان او جدیت و ، ډیر لږ وختونه دده پر شونډو موسکا لیدل کیده ، پر وظیفه مین سړی و . دی په ځلور دیرش کلنۍ کې د کشمیر په دروازه کې ( Kashmiri Gate ) له سختو ټپونو نه وروسته مړ شو . د کشمیر دروازه دډهلي دښار یوه کلیدي نقطه وه او د ۱۸۵۷ کال دسختو جگړو په لړ کې دا پیښه وشوه . دده دزماني ملگري یې دقهرمانانو په ډله کې شمیري ، دوی ده ته سخت وفادار وو او دده دښه کرکتر او لارښوونې پر اساس یې ده ته ټینگه عقیده درلوده . دده ملگري هربرت ایدواردز Herbert Edwards او جان بچر John Becher دده پر مرگ ویر وکړ او هغه یې دویکتوریا دزماني دپیدا ښت یوه ځلیدونکې نمونه باله او دی دتوپاني اسمان په لړو کې لکه تالنده ځلیده . دده تر ټولو لویه ستاینه رابرټز Roberts کړې ده چې دملت دلویو قوماندانانو په لست کې هم دده ذکر شوی دی ، پر ۱۸۵۷ کال کله چې بغاوت وشو . رابرټ په پېښور کې وظیفه درلوده ، ده ته ویل شوي وو چې « دچیرات » دغروڅوکې وپلټي او وگوري چې دانگریزي سر تیرو لپاره هلته دسناتوریم دجوړولو امکانات شته

او که نه ؟ چیرات دختکو دغرو په لړۍ کې دی . رابرتز هلته یوه دوه ورځې په لوړو کې تیرې کړې او اوبه یې لټولې . دشپې له خوا هلته نه پاتې کیده او هوارې ته به کوزیده او شپه به یې په خیله خیمه کې تیروله . یوه وخت گوري چې هلته کمپ درول شوی دی ، وروسته خبر شو چې دا کمپ دجان نیکلسن و او دی یې هم ډوډۍ ته میلمه کړی و. رابرتز لیکي :« دده پر نوم باندې په پنجاب کې همیشه خبرې کیدې ، ما دده نوم اوریدلی و چې په ډیر احترام په یادیده ..........واقعاً چې بل داسې هیجانوونکی نوم نه و . دی په دې نیږدې وختو کې له بنو څخه پېښور ته راتبدیل شوی و . بنو له جنجالو ډکه سیمه وه ، دده په شان اداره او نظم بل چا هلته نه و راوستلی .........ما له نیکلسن سره زیاته مینه پیدا کړه ، دده په شان مې لاتر اوسه څوک نه دي لیدلي اونه چا تر تاثیر لاندې راوستلی یم ، دده په شان څوک نه وینم ، دی ایدیال عسکرو او واقعي ښاغلی و . دده کړه وړه او ظاهري بڼه پوره او چته ښکاریده ، تل پر اوضاع او حالاتو پوره حاکم و او په ده کې طاقت موجود و . ماته داسې ښکاره شوه چې ده دبې نظمو او بې قانونه قبیلو په منځ کې ډیر وخت تیر کړی و او دتجربې خاوند ښکاریده . که ما دی بیا هم نه وای لیدلای، نو ما به له ځان سره داسې فکر کړی وای چې دده په هکله زما عقیده یوازې خیال و ، او دده په هکله کیسو زما احساسات راپارولي وو . خو داسې نه وه ، بلکې ټول ربنتیا وو . داماته بیخي ثابته شوه ځکه چې څو اونۍ وروسته زه دده دقرارگاه یو غړی شوم او دا فرصت راته پیدا شو چې له نیږدې څخه دده ماهیتونه ووینم او دده له ساده ماغزو څخه دلویو لویو کارونو شاهد شم . »

داخبرې دداسې یوه سړي له خولې څخه چې هغه پخپله قهرمان وي ډیره

لوړه ستاینه ده . رابرتز دنیکلسن د تاثیراو جذب راز ته اشاره کوي . ده
د قبایلو له جنګیالیو او توریالیو سره دیوه میړني او باتور شخص په شان عمل
ګاوه . ده د چلینج ورکولو طاقت په ځان کې لیده او کله چې د عمل د ګرته ووت
بریا لیتوب یې هم په برخه و . پښتنو جنګیالیو هم ده ته درانه کتل ، د ټولو ښو
صفاتو په څنګ کې نیکلسن د اچلیس ( Achilles ) په شان پخپله خیمه
کې تل په قار او غمګین ښکاریده . دی مانع ، مغرور او ډیر قارجن سړی و ، له
ده څخه د مینې امید نه کیده . حتی هیڅ ډول منطقي کنترول ته یې هم ځان نه
تسلیموه . ده هیڅکله واده ونه کړ . ده دیوه شیطان عصبانیت درلود . دی په
بنو او حسن ابدال کې تل یادیده . دده نوکر « حیات خان » د « واه » Wah
او سیدونکی و . ده ویل چې دی د خلکو پلار نه و مګر دیوه ارباب غوندې
د کلکې ارادې خاوند او له انرژۍ څخه ډک و . دی نه ستړی کیدونکی و .
خو څوک به چې له ده سره ټکر شول بیا یې نه پریښوده .

په هند او پاکستان کې د نیکلسن په نوم ډیر یادګار ونه شته ، له کشمیري
ګیټ څخه ۲۰۰ یارده لرې په باغ کې له زیړو څخه جوړه شوې دده مجسمه ده
چې سرېې هسک او لاس یې د تورې پر قبضه ایښی دی . دلته ده د قهرمانۍ
او میړانې مرګ وموند ، مګر د ټولو زړه وړونکی یادګاري څلی د مارګلا په
غاښي ( Marghalla Pass ) کې دی چې پر ۱۸٦۸ کال له راولپنډۍ
څخه ۱۵ میله لرې شمال غرب خواته په دې غاښي کې درول شوی دی .
مارګلاغاښي څخه دیخوا ته سرحدي سیمه بلل کیږي . داهغه میدان دی چې
پر ۱۸٤۸ کال نیکلسن دلته د چترسنګه پر ضد جګړه کې ( له سکانو سره
دویمه جګړه ) بری تر لاسه کړی و . داتبۍ دیوې غونډۍ د پاسه داسې ځای
کې درول شوې ده چې داوسپنې پټلۍ اولویه لار له همدغه تنګي څخه تیریږي

او تقریباً شل میله لرې لیدل کیږي . ټسر ک لاندې یوه چینه ده چې له ډېرې څخه راوځي او خلک او به ترې څښي . دلته یوه تیږه هم کیندل شوې ده چې د دغه قهرمان کړه وړه یې بیان کړي دي . وروستی ځل چې ما دغه نقطه ولیده اوبه یې وچې شوې وې . ورپسې بل یادگار دده په هکله په «بنو» کې دی چې په یوه کوچنۍ کلیسا کې ترنن پورې هم شته . ژباړه یې داده :

په فکر او وجود کې د پوهې خاوند و .

څومره چې کلک عسکرو ،هماغسې په حکومت کولو کې ډیر هوښیار او زیرک و .

دغزني واورو دده ځواني ،اراده او نیت و آزمویل .

د پنجاب سندرې دده دزیاتو کړو (فعلونو) په هکله ویل شوې دي .

دسرحد سوله او امنیت دده کلک قانون او اصول وو .

دده دښمنان پوهیدل چې په جګړه کې دی څومره تکړه و .

او مور دده ملګري ، دده واقعي نظافت ، سخا ، او دده رښتینوالی په مینه یادوو .

هربرت ایدواردز دده ملګری او دده آمرو . ایدوار دز تردده دمخه په بنو کې وظیفه درلوده او کله چې په پېښور کې کمیشنر مقرر شو ، نیکلسن یې مرستیال و . دی هم په ډیر و اړخونو کې نیکلسن ته ورته و ، مګر دی ډیر زړه سواند او ددوستۍ وړ واو پر تو کوټکالو خوښیده . ده هرڅه په خپل کتاب کې لیکلي دي چې له خپلو یادښتونو څخه یې جوړ کړي دي ، دا یادښتونه له ۱۸۴۹ وروسته حوادثو په هکله نه دي کله چې پنجاب دبر تانوي هندیو ایالت شوی و ، بلکې له هغې نه دمخه د ۱۸۴۸ او ۱۸۴۷ کالونو پیښې راښیي ، کله چې دسکانو ددووجګړو ترمنځ موده کې ایدواردز او ځینې نور ، شمال

غربي ايالت ته دهنري لارنيس دمرستيالانو په توگه راغلي وو ، هنري لارنيس په لاهور کې اوسيده او وظيفه يې درلوده چې هغه څه ترسره کړي چې سکانو ونه کړای شول . ده وظيفه درلوده چې پښتانه ځانته جذب کړي او ددوی باور تر لاسه کړي او په اداره کې عدالت تطبيق کړي. سکانو ماليې دپوځ په زور او چوروچاول تر لاسه کولې . سکانو بې له ايالتي اود ولسواليو له مرکزونو څخه نورې سيمې نه دي نيولي ، خو انگريزان سکانو برعکس دهرې منطقې له خلکو سره په مشوره حکومت جوړولو ، دسيمې خلکو ته يې سپاره او دسيمې دامنيت لپاره يې له دوی څخه پوځ جوړوه. په دې ډول وظيفه کې ايدواردز بالکل بريالی و . په بنو کې چې دی لومړی ځل هلته مقررو خلکو په کلاگانو کې ژوند کاوه او دښار دباندې منطقې بالکل آرامې وې . ددې سبب دا و چې ده له هر ډول تکتيک څخه کار اخيسته او په هره طريقه چې ممکن و خلک يې ځانته جذب کړي وو . کله چې دسکانو دويم جنگ پيل شو ، ده وکولای شول چې دبنو له خلکو څخه لوی پوځ جوړ کړي او ملتان ته يې مارش کړي . په نتيجه کې ده وکولای شول چې پر خپل موجوديت سره دجگړې تلې ته دانگريزانو په گټه بدلون ورکړي . دنيکلسن په شان ، « هربرټ ادواردز » هم چاغ ، غټ او دروند جوړ شوی سړی و . غټه ږيره يې درلوده ، کله چې دی په پېښور کې و ، مسيحي مذهب گروپونه يې سرحد ته راوستل او مذهبي فعاليتونه يې هم پيل کړل او دلته يې پوهنتون جوړ کړ چې اوس هم دده په نوم يادېږي ، ايدواردز دنيکلسن په خلاف نرم او خوش طبعيته سړی و . له ده سره اړيکي ډير په اسانۍ جوړيدل ، دنورو کمزورتيا وې يې زغملې اوژر نه په قاريده ، په همدې دليل دده خاطرې ترنن پورې تازه پاتې دي او په دې هکله مبالغه نه شته . له ده سره هميشه فضا روښانه وه او دوستي

يې له ورايه ښکاريده .

موږ هيڅکله نه دي اوريدلي چې کوم پښتون به له نيکلسن سره ملګر تيا کړې وي . دخلکو داعتقادوږ خلک داسې نه وي اوقهرمانان په اسانۍ سره دچا ملګر تيا نه کوي . مګر له ايدواردزسره داتړکې بيخې بل ډول دی . په «بنو » کې ده يو پښتون ملګرى درلود چې ډير درانه يې ورته کتل ، داسړى د « سپيرکى احمدزى وزير » وچې « سوان خان » نوميده چې ايدواردز به دی ساون خان باله . کله چې انګريزان بنو ته راغلل ، ددوى غټ مشکل له هغو وزيرو مهاجرو سره وچې له لوږ و څخه دبنو چينو ته راکوز شوي وو اودوسلې په زوريې ښې ځمکې نيولې وې ، انګريزانو دسمې شيتک بنو څيو سره دومره جنجال نه درلود . دايدواردز په يادښتونو کې له سوان خان سره دلومړي ځل ليدو خوندور يادښت شته چې په لاندې ډول دی :

« دوزيرو دګاونډۍ قبيلې مشر ملک سوان خان ، په بلنه کمپ ته راغی چې ماوګوري : دی ډير قوي مشر دی او دده سيمه چاته ماليه او باج نه ورکوي ، مګر کله کله دنورو قبيلو په شان دبريد اوجګړې په جريان کې دلوټ په څير څه ناڅه له دوی څخه هم ورل کيږي . سوان خان ، لکه څرنګه چې سړی يې دداسې خلکو دمشر په څير په زړه کې انځوروي هماغسې جوړ دی ، ډير غټ او دلوړ قدخاوند دی ، سريې دزمري په شان دی او هرلاس يې دقطبي ايږې په شان قوي ښکاري . غټ غټ بوټونه يې په پښو ووچې په مزيو او تانګونويې تينګ تړلي وو. زما کوټې ته راننووت اوغالۍ يې ترپښولاندې خړ-يچه کړه .هندوستاني ملازمان سخت وډارشول او هيله يې کوله چې پر ځمکه ننوځي او دده له نظره ځانونه پټ کړي . دخمتا خيرن کالي يې اغوستي وو اوزياتره برخه يې پر ګلابي ډوله دوپټه ( لوپټه ) باندې پټ وو او وريښمينه

لنګۍ یې په سروه ، ځنې یې کلیښتې راوتلې وې چې تابه ویل په ژوند کې یې نه دي ږمنځ کړي . د دې سیمې یوواقعي او طبیعي زمری دانسان په څیره کې و . ده سر ټیټ نه کړ . مګر په ساده ژبه یې (السلام علیکم ) وویل او پر څوکۍ کښیناست . »

دی دیوه وزیر ملک رښتنی انځور و . ایدواردز ورته وویل چې : وزیر ستان ته مې دننوتلو او اداري جوړولو اراده نه وه ، خو اوس زه مجبوریم چې تاته دا څرګنده کړم چې دبنو وزیر باید مالیه ورکړي . ایدواردز په زړه کې دننه په دې هم پوه و چې له ... یر و سره دوستي او باور ساتنه به دټولې منطقې په اداره کولو کې ورسره مرسته وکړي ، که چیرې کومه شخړه پیښه شي نو بنوځي به هم به د هغه چاخوا ونیسي چې برلاسی وي . بله ورځ ملک بیا راغلی چې له ایدواردز سره وګوري: « ماورته وویل چې ځینې کلیوالو دې دبنو ځمکې نیولې دي ، که چیرې داسې وي نو هرومرو باید دنورو بنوځیو په شان مهاراجا ته مالیه ورکړي » ده وویل :ښه ! خو مګر انصاف ته باید غوږ کیدې . که چیرې داځمکې مونږ اخیستې وې او داسې تړون شوی وي چې کله کله به مونږ مالیه ورکوو او خرڅوونکی به تل مالیه ورکوي. نو بیا به څنګه وي ؟ آیا خبره داسې ده ؟ نوزه دروغ وایم ؟ « نه ! ته وزیر یې او وزیر دروغ نه وایي . خیر ! هرڅه چې ده ، خوزه به راشم بیا درته ووایم چې څه ډول دې وي . زه به درشم ځمکه به وګورم او دواړه خواوې به واورم ، بیا به زه درته ووایم چې زه څه فکر کوم ، بیا چې زه درته ووایم که تاته رښتیا انصاف ښکاریده بیا به مالیه ورکوي او زه یې ورڅخه اخلم . که چیرې داسې وه چې دانصاف له مخې ته باید مالیه ورنه کړې نو په هغه صورت کې به زه تاسې ته سند درکړم چې له مالیې څخه معاف وګڼل شئ ،مګر شرط دادی چې دربنتینې وزیر په څیر به پر ... پله

خبره ودرېږئ . سوان خان پاڅیده لاس یې رااوږد کړ او زما لاس یې ونیوه او دومره یې ټینګ کړ او ویې ښوراوه چې ما ویل له اوږې څخه مې لاس وخوت . ده وویل ، سمه ده ، بیخي سمه ده ، دې ته وایي انصاف .

ای. وړدز په خپل کتاب کې لیکي چې دغه کلیوال سړی د میړانې صفتونه لري که یو ، دوه عیبونه یې لرل خو په ښو صفتونو کې یې هغه نه برېښېدل ، دی تر پایه پورې پر خپل هوډ ولاړ و . « څو موده وروسته زه د میچن خان کلي ته ولاړم ، ناڅاپه له ده سره مخامخ شوم ، په غیږ کې یې ونیولم او دومره یې ټینګ کړم چې نږدې مې چیغې کړې وې ، دده له برکته وچې په ژمي کې مو دوزیرو ورشوګانې وساتلې او موږ داسې بیغمه وو لکه چې د لاهور په کلا کې وو. بیا ده موږ ته وویل چې له پښتنو سره د کړو وړو راز څه دی ؟ هرڅوک چې دامتن ترپایه ولولي ورته څرګنده به شي چې ما پر دغو وحشي غرنیو او کلیوالو خلکو باندې څومره باور درلود او څومره شریفانه دوی پر خپل هوډ ولاړ و واو څومره اخلاص مند ووا و بې له دوی څخه زه هیڅ شی هم نه وم . »

مهمه داده چې ایدواردز ددې خلکو له اخلاقو او دودونو سره پوره بلد شوی و . دی دوزیرو ددود په هکله لیکي: سوان خان یوه ورځ راغی او دڅو ورځو رخصت یې وغوښت او راته یې وویل چې څو ورځې رخصت را کړه چې ډیره موده له کوره لرې یم او څو شپې له ښځې سره تیروم . دښو څو په هکله : ارسلاخان زاری کولې چې پر غالۍ باندې د کیناستو اجازه ورکړم او زما سیل وکړي . فقط لکه دی چې پر مامین وي ، داخبرې ما په فلسفي لحاظ وکړې او مرا م مې تحقیراو توهین نه دی .

هغه کورچې ایدواردز او نیکلسن په پېښور کې په کې اوسېدل تر ۱۹۳۰-۱۹۳۲ پورې کله چې زه هلته مسوول وم لاهم ولاړو. دا ډیره ښایسته

بنگله وه چې له اومو خښتو څخه جوړه شوې وه ، لوېې لوېې کړکۍ يې درلودې او سرې برانډې يې شاوخوا ته جوړې شوې وې ، ښکلې او لوی چمن يې درلوداو په انگړ کې يې د بنيان Banyan ونې هم ولاړې وې ، دلته د مرمرو يوه تبۍ وه چې په هغې کې د ايدواردز او نيکلسن نومونه ليکل شوي وو.

دانگريزانو له وتلو څخه لس کاله دمخه داکوراساسي ترميم شوی وچې پخوانی شکل يې نه درلود او دزاړه تعمير تبۍ يې دلته نصب کړې وه چې هرچاته يې غلطه مفکوره ورکوله ، ځکه چې لوحې داوسني کورپيژندنه کوله حال داچې داد پخواني کور تبۍ وه . دبنگلې بڼ هماغسې ښايسته پاتې و مگر دکور روحيه پخوانۍ ساه نه لرله .

ايدواردز هغه وخت د پېښور کميشنر مقرر شو چې پر ۱۸۵۳ کال فريدريک مکيشن F. Madceson ديوه متعصب سړي له خوا ووژل شو . مکيشن تر ټولو مشر او دتجربې خاوند انگريزو ، ده له ۱۸۳۹-۱۸٤۲ پورې خدمت کړی و ، دافغان لومړي جنگ په وخت کې يې خيبر پرانيستی ساتلی و او داپريديو په منځ کې دشهرت خاوندو . دجگړې په تکتيک کې خورا مشهورو . دمکيشن په مشوره چې دکتارونو د تيرولو په وخت کې يې دجناحينو ( دځنگ قوتونو ) لپاره قوتونه استخدامول په خيبر کې پر ۱۸٤۲ کال دجنرال پالک Pollock دبرياليتوب سبب شول .

مکيشن دنيکلسن په شان کوم ليکلی يادگار نه دی پرې ايښی . دی په کوم ټولنيز سازمان پورې نه وتړلی ، چې دده ميړانه اوقهرماني منعکسه کړي . مگر مکيشن تر ټولو زيات دخلکو په زړونو کې ځای لري . رابرټ واربرټن Rabert Warbeerton چې له اپريديو سره يې زيات محبوبيت درلود ، دمکيشن په هکله داسې ليکي : زه چې هر چيرته وم ، که په پېښور

کې وم یاخیبر یا جلال آباد کې وم مکیشن ټولو په ښه نامه یاد اوه او ترهر یل انگریز دده محبوبیت ډیرزیات و . ( مشرانو له ډیرې مینې نه ده ته کیشین کاکا Kiahin Kaka ) ویل . دده بې وخته مړینه پنځه ویشت کاله دمخه پیښه شوه ، خوسره له دې یې خلک په نیک نوم یادوي . داسې څرگندیږي چې دخیبر دغرونو په لړۍ کې یې خامخا دخلکو خدمت کړی وچې لا تراوسه محبوبیت لري .

دادحیرانتیا وړخبره ده چې د « وروږگلوی » ټولنیز سازمان کې دایدواردز ،لارنیس ، ابټ اودنورو په هکله لیکلي اسناد شته خو دمکیشن په هکله یې هیڅ نه دي لیکلي ، ښایې دده په نظر دوی دځوانۍ له احساساتو ډک ځوانان وو او پخپله دی په عمر پوخ و او کارونه یې په ډراماتیک ډول نه کول . مگر « واربرتن » حق په جانب دی . ددې پیرۍ په شلو او دیرشو کې دکیشن کاکا نوم دپېښور په هوجرو کې په زیات درناوي سره یا دیده او نور له یاده وتلي وو .

هندي سایډ Handy side ( دآدم خېلو په دره کې مشهور قوماندان و چې باغیان به یې ښکارول ) هم په اپریدیو کې شهرت وموند او کله به خلکو ثاني کیشین ورته ویل او یا به یې دویم مکیسن باله . دمکیسن کوم انځور نه شته . دده جوړښت ،سترگې او دمخ څیره موږ ته معلوم نه دي ، مگر دده یادگاري څلی دکمپنۍ باغ دونو په منځ کې ولاړ دی ، چې دپېښور دچاونۍ په منځ کې پروت دی ، دالیکنه دانگریزي ادب یوه ښایسته لیکنه ده چې « دالهوسی » پخپله کمپوز کړې وه . وایي چې مکیسن ډیر سوړ ، ،زړه ور او کلک سړی و . دهند اردو دده په شته والي ویاړ کاوه . دافغان دجنگ په پانیو کې دده نوم ځلیږي ، دده پوسته همیشه په سرحد کې وه . دخیبر درې

اولوړې څوکې دده د پرمختګونو شهادت ورکوي . دی په جبهه کې مړ شو . دده په مړینه دده د ښمنان مڅون پاتې شول . دډګروال مکیسن مړینې د سوبې امید په تیاره کې واچاوه ، دده مړینه دحکومت لپاره ډیر درونږغېږو او لويه ضایعه حساب شوې وه .

ابټ Abbott د دغو نومیالیو ( Paladines ) وروستی مشهور شخصیت دی ، دده ټول فعالیت داباسین په خوله دهزاره په سیمه کې و. دلته دابټ آباد ښار دده دلاس نښه ده چې لاتر اوسه دده په نوم یادیږي . دمرکزي اولري هزاره سیمې خلک پښتانه دي مګر زیاتره یې د یوسفزو جادون (ګدون) او ترین په ګډون دشمالي پنجاب ژبه کوي او هغه دود او دستور لري .

د « مانسیرې » سواتیان چې په شمال کې اوسیږي دسوات دپخوانیو اوسیدونکو اولاده دي چې د بابر له زمانې څخه دمخه پښتنو له سوات څخه داباسین بلې غاړې ته شړلي وو.

دهزاره دکلاباټ او توربیله یوسفزي په ختيه پښتانه دي ، مګر دپنجابي قبیلو په سیمه کې داوسیدوله کبله یې خپله ژبه او پښتونولي له لاسه ورکړي دي . دلته دمشوانې همسایه قبیله هم شته چې هري سنګهه یې پوره په تنګ کړی و . رښتیني پښتانه دي چې داباسین او هزاره ترمنځ په ګندغر کې اوسیږي . ددوی مرکز له څوکلیو څخه تشکلیږي چې دغونډیو په کږلیچونو کې پراته دي او سریکوټ نومیږي . دلته دوی خاص پښتني کلتور او دود ساتلی دی ، دپیړیو او لسیزو په اوږدو کې یې کم بدلون موندلی دی ، کله چې سریکوټ ته سړی ورشي دبابر زمانه ورپه یادیږي او د « ریپ وان وینکل » Ripvan Winkle پروسه سرچپه کیږي . کله چې لیدونکی دآس یا غاتري په سورلۍ پورته خیږي ځان دپخوانیو قبیلوي خلکو په منځ کې

احساسوي . دلته سړک نه شته او موټر نه شي تلای ، دلته ځيني خلک د پاټک سالارانو په شان ښکاري مگر په حقيقت کې متقاعد صوبه داران دي چې په خپله سيمه کې ژوند کوي او خپلو خلکو ته وفادار دي . دوی دميني وړ خلک دي . کله چې امير دوست محمدخان او چتر سنگهـ پېښور او لره هزاره سيمه په دويم سک جنگ ( ١٨٤٨ ) کې ونيوله جيمز ابټ دلته ځان وژغوره .
له دغه پناه ځای څخه ابټ دنيکسن په مرسته د « پخلي » (مانسپرا مربوط) څخه دفاع وکړه او پرې يې نه ښود له چې سکان له چتر سنگهـ سره يوځای شي ، مگر د « دامتار »Dhamtar جادون ( گدون) خلکو له ده سره تړگي وکړه او دجگړې ميدان يې پرېښود . ابټ بيرته دمشوانيو سيمې ته په شاشو او دخپلو ملگرو په مرسته هلته ترهغه پاتې شو چې دگجرات جگړه په بري سره پای ته ورسېده او دسکانو دپوځ پاتې شوي د ١٨٤٩ کال دمارچ پر ١٤ مه نيته په راولپينډۍ کې تسليم شول . په دې موقع جيمز ابټ له خپلو مشواني اجيرانو سره د « مارگلاغاښي » ونيو اولاريې بنده کړه او له شمال څخه يې دراولپينډۍ له خوا دسکانو مخنيوی وکړ . دده مشواني ملگری هروخت له ده سره په ښه اوبده ورځ کې ورسره وو . دوی ځکه وفادار وو چې دی ورباندې گران و او هيڅکله يې هېر نه کړ .

جيمز ابټ يو کوچنی سړی و ، ډنگر و ، دنورو په شان چاغ او لوړ نه و . دنيکلسن او ايدواردز په څېر ږيره وراودلوی جسامت خاوند نه و . بريتونه يې نيغ ولاړ وو او يوه جوړه جدي سترگې يې دبريتو د پاسه راوتلې وې . دی ډېر رابرتس ته ورته و او دهغه په شان مينه ناک سړی و ، له ١٨٤٩ څخه وروسته ابټ دهزاره دسيمې لومړی ډ پيوټي کميشنر شو او څلور کاله وروسته له دغه ځای څخه کلکتې ته نږدې د « عيسې پور » Ishapur د توپو جوړولو فابريکې

ته بدل شو . حکومت به بیا بل داسې سړی د کمیشنرۍ لپاره پیدا نه کړي .

دابېټ یادښتونه ډیر اوږده دي اوله هغو څخه دی ښه انځورېږي . « زه په بې صبرۍ سره منتظروم چې ځان وباسم مگر زما خلکو ما ته ډاډ را کړ چې دا به غلطي وي که وتښتې ، » ما فکر کاوه چې خپله قول اردو به قانع کړم چې همغه وظیفې ته راشم او هلته حاضر اوسم . « په ناړه Nara کې ، که بل هیڅ چیرته نه وي ، دغرنیو سربازانو له خوا به دسکانو دارد و مقابل کې حمایه شم » (ناړه د کندغره په لمن کې ده چې هریپور ته نږدې ده او ـ سریکوټ خواته یې اصلي دره پرانښتې ده . ) « دچترسنگھ کمپ په هریپور کې زما له موضع څخه ښکاري چې د گندغره په بیخ کې دی . زه پر خپلو خلکو کلک باور لرم چې پر خپله وعده به ودرېږي او په میړانه به دفاع وکړي ............. که ما یوغونډ درلودای چې لار یې خلاصه کړې وای زما خلکو به وړپسې قدم اخیستی وای . مگر پر هواره باندې د توپچي او سوارو په مقابل کې باور نه لري » « په گندغره کې مې خلک راټول کړل او ورته ومې ویل چې زه یوازې د تاسو د حمایې لپاره دلته راغلی یم ، تاسو ته مې ډاډ در کړ چې زه دلته چوکۍ نه لټوم ، یا به تقاعد کوم او یا به بل ځای ته ځم ، او بې له دې ، ستاسو له غوښتنې څخه به یوه گړۍ هم پاتې نه شم ، یوځل ټولو په ما چیغې کړې چې پاتې شم » ما ځواب ورکړ چې : « زه به د بې عزته کیدو لپاره پاتې نه شم . که چیرې زما ملگري بې غیرتي او ډارکوي نو زما لپاره بې عزتي په مخ کې ده ، که چیرې زه د تاسو لپاره له خپل سر څخه تیروم ، نو تاسې هم له ما سره ترمرگه پورې ودرېږئ . » دوی په کلکه هوډ وکړ چې ترمرگه پورې درسره یو او اوماهم د پاتې کیدو وعده وکړه . « داغر بیخي بیروونکی ځای دی ، که چیرې زه پریوزم زما هیواد ته دیوه سړي ضایع کیدل دي او دوطن د زامنو په

پرتله به ارزښت هم ونه لري » ده اووده مشوانيي ملګرو ګندغر دټولو بريدونو او يرغلونو په مقابل کې وساته .

جيمز ابټ نه يوازې ښار آباد کړ چې دده په نوم ياديږي بلکې مري Murree او ګالي Gali هم دده پلټنې او موندنې دي . په تيره بيا دوه څوکې ميرانجانې Miranjani او موخسپوري Mokhspuri چې دنتيا ـ ګالې Nathiagali پر سر باندې شمال خواته پهره کوي هم دده کشف دي چې په سل ګونو انګريزانو به هلته تفريح او ساعت تيري کوله او هلته به يې ارامې شپې تيرولې .

دهزاره خلکو په منځ کې يې داسې رڼا پرې ايښې ده چې هيڅکله به مړه نه شي ، دی ساده ، زړه ور او له محبت څخه ډک سړی و ، واربرټن ديوه « هزاره » اوسيدونکي دخولې خبرې چې نيمه پيړۍ دمخه يې کړي دي داسې نقلوي : « ابټ صيب په ولسوالۍ کې پر ټولو ګران و . زاړه خلک دده خاطرو ته درناوی کوي . دده زړه ديوه فقيردی چې دده په ټولو ليکنو کې درنګ په شان آواز کوي .

پر ۱۹۲۷ کال دڅوميا شتو لپاره زه دهزاره په سيمه کې مؤظف وم او داټانزو منډو په خاوره کې داباسين په چپه غاړه تور بيله او ګندغر Gand ghar ته په سيل ولاړم ، پر دې برخه کې د يوسفزيو دوه کلي د کايا Kaya او کهيال Khuhhal داباسين پر ښۍ غاړه پراته دي ، دلته يوسل کلن سړی اوسيده چې دکهيال قاسم خان په نامه ياديده او په همدې وخت کې يې سل کاله پوره کړي وو . دا ژوندی ثبوت و . د ۱۸٤۱ کال داباسين دسيلاب په هکله يې خبرې کولې اودی په هغه وخت کې څوارلس کلن ژنکی و . ابټ هزاره ته پر ۱۸٤۷ کال راورسيد کله چې قاسم خان شل کلن و ، ماله ده څخه

پوښتنه وکړه چې ابټ سره یې لیدلي وو او که نه ؟ ده وویل : هو! څو واره مې لیدلی و او ښه مې په یاد دی . دی کوچنی سړی و په مخ یې لږ ویښتان درلودل او زړه سواندهسترګې یې درلودې او پر موږ ډیر ګران و . دی له ماڅخه جګ نه و. ( زوړ قاسم خان له پنځو فټو څخه جګ نه و. ) زه په هغه جرګه کې حاضر وم چې ده وویل چې دسکانو په مقابل کې له ماسره څوک دریږي ؟ موږ قسم یاد کړ چې تر وروستۍ سلګۍ به درسره ولاړ یو . زموږ سترګې له اوښکو ډکې وې او دابټ صیب سترګې هم له اوښکو ډکې وې ، موږ ودریدو . دی زموږ د پلار په شان و ،او موږ یې زامن وو. بل داسې انګریز نه شته لکه ابټ صیب.

قاسم خان دوه کاله وروسته مړ شو. مګر دده کیسه به ژوندۍ وي ځکه چې د پښتنو په فولکلور کې سل کاله ډیره لږه موده ده .

ګیلبرټ Gilbert د ۱۸٤۹ د مارچ پر یوه ویشتمه نیته پېښور ته ورسید. اوه لس ورځې وروسته Dalhousio دالهوسي د دولیپ سنګهـ د سلطنت دسقوط اعلان وکړ چې په دې توګه سکشاهي پایته ورسیده . ټول ماوارای سند ( اباسین شاوخوا ) او هزاره دایسټ اینډ یا کمپنۍ برخه شول او د پنجاب نورې ټولې برخې یې هم تر تسلط لاندې شوې ، مکیسن Mackeson د پېښور لومړنی کمیشنر و او جورج لارنیس George Laurence چې د چترسنګهـ د زوی شیر سنګهـ له خوا څو ورځې د مخه ازاد شوی و ، د مکیسن لومړی ډیپوټي کمیشنر مقرر شو . سر کالین کمپبیل Sir Colin Campbell چې بیا وروسته لارډ کلایډ Lord Clyde شو او د کریمیا د جګړې مشهور قوماندان او همدارنګه د لکنهو خلاصوونکی و . له مکیسن څخه وروسته راغی او د سرحدي منطقې مسؤل مقرر شو چې ډېراول پینډۍ نه

تر جهلم دریا پورې ټولې سیمې په سرحدي منطقه کې شاملې وې . سر کالین کمپبیل چې د پېښور د قشلې ( چاونۍ ) بنسټ یې کېښود او قشله د خیبر خواته په شمال غربي اړخ کې پیل شوه ، ده ټول اروپایي او د کمپنۍ سرتیري په تنګ ځای کې سره ټول کړل چې د اپریدیو او نورو پښتنو له برید څخه په امن کې وي . په همدې دلیل ده چې د پېښور د قشلو بارکونه او قراولونه په شمال غربي څنډه کې جوړ شوي او زیاتره د استوګنې په سیمه کې خواره دي. ترنیمې پېړۍ پورې پېښور تر ټولو ناوړه سټیشن حساب شوی و . د پېښور له ناروغه کوونکي سټیشن څخه متل جوړ شوی و . ښار له ډېر غوریګ (غالمغال) څخه ډک و چې تر یارکو پورې ټوله سیمه یې نیوله . د ۱۹۰۰ په شاوخوا کې هم کوم ملکي او نظامي راپورونه چې د چاپیریال په هکله لیکل شوي دي د ملاریا علت یې نه دی ښودلی . له هغې څخه وروسته د ملاریا ملامتي پر غوماشو باندې اچول کېده او په وروستیو څو لسیزو کې د دغه آفت څه ناڅه مخنیوی وشو او په پېښور کې پوره بدلون راغی . د کال اته میاشتې پېښور په ټوله نړۍ کې ښکلی اقلیم لري . څلور میاشتې یې ډېرې تودې تیرېږي . د مې د میاشتې له منځنیو شپو څخه بیا د جولای تر منځنیو شپو پورې دلته د تودوخې لوړه درجه په ټوله نړۍ کې لوړه ده . تودوخه یې وچه او سوځوونکې ده نو ځکه روغتیا ته مضره نه ده . له هغې څخه وروسته د سپتمبر تر منځنیو شپو پورې هم تودوخه او هم لمده بل ( رطوبت ) وي او ښايي د عربو د خلیج د هوا تاثیر او د اقلیم د نا آرامۍ سبب وي .

د پېښور ښار نن ورځ په هماغه حال دی چې د الفنستون په وخت کې و ، تر دې ښه بل تعریف نه شي ورکول کېدای . قشله ( نظامي ساحه ) په هر وخت کې خاص مناسبت لري . دلته عمومي سړک چې مال Mall نومیږي د باغوا او

کورونو ترمنځ تاوېږي او دونو په سیوري تل پټ وي . ددوړو غاړو ونې یې نورهم ښایست ورزیاتوي ، د پخوانۍ کمپنی له باغ څخه تول سړکونه دشعاع په شان هرې خواته ځي ، دمکیسن یادګار هم دلته دی او شاوخوا یې ډېرې پخوانۍ دچنار ، ناجو ، خرما ( کجورې ) اوبنیان ونې ولاړې دي . داغتې غتې ستې له ډېر پخوا څخه دعلي مردان خان دمشهور باغ په منځ کې پاتې وې ، چې الفنستون دهغو یادونه کړې ده دهغه وخت دوه زاړه تعمیرونه دلوا قرارګاه لپاره استعمالېږي . دکمپنۍ باغ اود کرکېټ دمیدان ډېرې ونې احتمالاً دهماغه وحت ونې دي . تولې هغه لارې اوسړکونه چې د « مال جادې » سره عموداً او یوبل سره تقریباًموازي پرتې دي ، دنړدې غرونو منظره ورڅخه ښکاري ، په تیره بیا په لمرخاته او لمر پریواته کې خاصه منظره لري ، ددې ستیشن په ختیځ کې دیوې غونډۍ پر سر ښکلی کور دی ، چې دګورنر استوګنځی دی چې مخې ته یې ښکلي چمنونه او باغونه پراته دي ، دښار له حدود څخه دباندې دکرنې شنه پټي دي او دالفنستون له تعریف سره سم دهغو شاوخوا لوړې لوړې څوکې پهره کوي او د هغو شاته په صافه هوا کې دواورو ډک غرونه معلومېږي چې همیشه پر واوروپټ او سپین برېښي .

ونې په لومړي سرکې کوچنۍ وې چې زموږ خلک په هغه وخت کې سل کاله دمخه راغلل او دلته یې کار پیل کړ . لومړني پاینیران ( ماجراغوښتونکي ) چې دسکانو په وخت کې راغلل ورته څرګنده شوه چې یوازې نظامیان دلته کفایت نه کوي چې کارنه ترسره کړي . پر ۱۸٤٦ کال چې لومړۍ سک جګړه پای ته ورسېده ، هنري لارنیس داوسیدونکو په نامه هاري لمسدین Harry Lamsden ته دنده وسپارله چې غیر منظم قوتونه د « لارښود =Guuido » په نوم جوړکړي . دا قوتونه باید پلي اوسپاره

دواړه په تشکیل کې ولري . دوی باید جګړه ییز یونیفورم ولري ان جګړه ییزو دنډو ته چمتوويږي. ددوی وظیفې باید تشریفاتي وظیفې نه وي. داقوتونه دباور وړ محلي خلکو څخه باید جوړ شي چې داصلي قوت دغړو و اوسترګو ( دمترصد په شکل ) په څیر وظیفه اجرا کړي . ددې پر نسیپ له مخې دسوربخن رنګه کالیو پر ځای خړ سپیره ( خاکي ) یونیفورم ورواغوستل شو چې وروسته دا یونیفورم دخاکي یونیفورم په نامه په ټول کامنو لت کې رواج وموند او ځمکنیو قوتونې خاکي یونیفورم اغوسته . لومړني کادرونه پر ۱۸٤٦ کال په پېښور کې راټول شول . څو کاله وروسته داقول اردو مردان ته نقل مکان شوه او هلته ټول پلي اوسپاره ددوولویو جګړو تروخته پاتې شول . ددوو لویو جګړو ( نړیوالو جګړو ) ترمنځ موده کې داقوتونه له اتیا کالو څخه وروسته منحل شول . داسې د « لاربنوڅ Guide= » قوت داسې غړي نن ورځ نه شته چې مردان خپل روحي کور ونه بولي . حتی نن ورځ « ګډ پلټن او رساله » له هغې سیمې سره ځانونه تړلي بولي اوله احساساتو څخه خالي نه دي .

په انګریزۍ کې دسرحد دجګړو او شخړو په هکله ډېر کتابونه لیکل شوي دي چې دانګریزانو دحکومت دپیرۍ په دوران کې دسرحد پوره تاریخ په ګوته کوي مګر زه دالار نه نیسم او دهغو جګړو د تفصیل ضرورت نه وینم ، مګر سره له دې له « لاربنود = Guide » څخه نه تیریږم ځکه چې دوی دسرحد تار- اوبود وو . هري لمسدین Hary Lamsden تر ۱۸٦۲ پورې ددوی قوماندان و اوبیا دمردان دیوسفزو دخاورې دکمیشنر مړی مرستیال و چې په نتیجه کې ده ددغې سیمې دزیات شمېر یوسفزي او ختک د « لاربنود =Guide » قطعاتو ته جذب کړل . لمسدین هم دخپل وخت دنورو پخوانیو په شان چې ما دهغوی ذکر کړی دی غټ سړی و چې سرحد دسیاسي شخصیتونو په ډله کې

حساب شي . دغونډ مورخين ليکي : دغونډ قوماندانان ځي او راځي . ډير کم خلک دي چې خاطرې ورڅخه پاتې کيږي . مگر پر « لاربنود » باندې دلمسدين د تاثيراتو او تسلط شمع زښه او ځلانده ده ددغو عسکرو لپاره شعارونه پاتې شوي وو چې دډيرو ښو او زړه ورو عسکرو له خولې راوتلي وو . لکه : « هميشه بيدار او تيار اوسه! » ، ددې لپاره چې له موقع سره سم راپورته شې ، نو که لوی يې او که کوچنی يې دپورته کيدو غږ ته وکړه ! » ، « په اضطراري حالت کې شاته او وروسته پاتې نه شې ! » ، « هميشه ښه ملگری او ښه سپوږمين اوسه » او داسې نور .

دلاورخان دجهانگيرې ختيک و چې داکلي ديوسفزو په علاقه کې دلنډي سيند شمال ته پروت دی اود اوه لسمې پيړۍ په لومړيو کې دخوشال خان کورنۍ داکلي له يوسفزيو څخه نيولی و دلاور خان ددغې سرحدې سيمې رابين هوډ ( Robin Hood ) و . دده په تولو غير قانوني کارونو کې انصاف ، عدالت او زړه سوی موجود و . دده دسر قيمت معلوم شوی و . لمسدين وظيفه درلوده چې دلاور خان ښکار کړي ، مړ يا ژوندی يې ترلاسه کړي . يوه ورځ دمازيگر په وخت لمسدين دخپلې خيمې مخ ته ناست و ، او ددلاور خان په مقابل کې يې خپله ناکامي ارزيابي کوله او له ځانه سره يې سوچ کاوه چې له دلاور خان څخه به ډير ښه « لاربنود » جوړ شي ، نو ځکه ده دلاور خان ته په ضمانت احوال ورکړ چې راشي او داباغي هم راغی . کله چې راغی لمسدين سملاسي ورته وويل : « يا ببر ته ولاړ شه او زه درپسې گرځم ترهغه چې ودې نسيم او په دار و ځوړول شې ، او ياراته ځان په غونډ کې څيره کړه او انشاالله په کم وخت کې به ترفيع وکړې اوپه راتلو نکې کې به پينشن (دتقاعد حقوق) هم درکول کيږي او تل به په جگړه کې يې . څه وايې ؟ دلاور

وخندل او ولاړ. مګر شپږ اونۍ وروسته ډېر غلي راغي او ضمانت هم ترمنځ نه و. ده ورته وويل چې زه په غونډکې شامیلیدو سره په يوه شرط موافقه لرم چې سلو مارش Slow Marsh ( دجمع نظام د يوه نمايشي رفتار شکل دی) څخه به خلاص وم، دامانع او خنډهم له مخې څخه ايسته شو او پس له زياتو چنو وهلو څخه دواړه موافقې ته سره ورسيدل. کله چې دی منظور شوې لوېې مرتبې ته ورسيده، يوه ورځ ده لمسدين ته وويل: چې ته ډېرساده يې. زه ددې لپاره راغلی يم چې ټول نظامي حرکات، چالونه او هنرونه زده کړم او بيا ولاړشم. واقعاً هم ده ډېر شيان زده کړل. له حرکاتو او چالونو سربيره ده صداقت، وفاداري، له خلکو سره نيکه معامله کول هم زده کړل نو ځکه دی پاتې شو او ولاړ نه شو، وروسته پر ۱۸۶۹ کال دی ديوې خاصې کشفي وظيفې لپاره چترال ته واستول شو او چترال په هغه وخت کې دبرتانوي امپراتورۍ برخه نه وه. دچترال دمشر له خوا و نيول شو او خپلو سړو ته يې امر ورکړ چې تر مرګ پورې دې سنګسار شي، ځکه چې پر ده باندې ددښمن دمخبر اتهام شوی و، مګر ده فرار وکړ اوله دې ځای څخه يې ځان ويوست خو دباجوړ او چترال دواوروډکو غرونو په منځ کې ديخنۍ او واورو له کبله مړ شو. ده چاته ويلي وو: « ورشه په پېښور کې کميشنر ته ووايه چې د« لاربښود=Guiude » غرې دلاور خان مړشو او ورته ووايه چې نمک ته وفادار و او دمړينې په وخت کې خوشحاله و او ورته ووايه چې داخبره دې لمسدين ته هم ورسوي. »

« لاربښود Guiude » دهغو ملکي قوتونو هسته شوه چې له ۱۸۴۹ څخه وروسته تشکيل شول. بيا د « پنجاب دفرا نتير فورس Panjali Frantui Force » ( پنجاب سرحدي قوت ) په نامه ياد شول. دوی

تر دیره وخته پورې د پنجاب دلیفتیننټ ګورنر تر حکم لاندې وو او بیا وروسته د کیچنر Kitchener د بیا سازمان ورکولو او تشکیل جوړولو په پروسه کې د هند د منظمې اردو یوه برخه شول، مګر تر ۱۹۳۰ پورې هم د یوسفزیو په منځ کې پر هماغه پخوانې نوم « ګډپلټن » باندې مشهور وو. ( ګډ په محلي لهجه د ګایډ د کلمې بدلون دی . ) داسې معلومیږي چې زموږ دا کیسه د سرحد د پخوانیو معاملو په هکله دانګریزي سپین روبو ( مخورو مشاورینو ) په هکله څه ناڅه مبالغه ده . دا رښتیا ده چې « ورور ګلوي » Brother Hede یوه د خیر ، ښیګنې تړلنه وه . مګر پته دې نه وي ، داکسان چې دلته یاد شول هر یو په رښتیا سره ځلیدونکې ځیره ده ، او د پښتنو په منځ کې یې ښه نومونه پرې ایښي دي چې تر تن پورې یادیږي . د ګورنر په توګه دوی د برې نیمګړتیاوې درلودې ځکه چې دوی اصلاً حرفوي نظامیان وو او پر ملکي اداري چارو پوره بلد نه وو. دوی دالفنستون نظر او خوړلنې نه درلوده .

الفنستون هیڅ پښتانه ته موقع ورنه کړه چې له ده کرکه وکړي هر یوه ته یې ځان رساوه او ددوی په خوښه غږیده .

مګر هغه لویوالی چې دوی درلود ، له یوې خوا له دې سببه وه چې دوی ته دخلکو له خوا یو چلینج موجود و ، میړانه ، ملګرتیا ، وفاداري او ان قهرمانۍ یې له خلکو سره دورځنیو کړو وړو او ورځنې ژوند په اوږدو کې ددوی ډاعمالو او چلند منعکسبدل ، هر یو یې او تړل یې : جورج لارنیس ، مکیسن ، ایدواردز ، نیکلسن ، ابټ او رابرټس هم تر نیمایې زیات پخپله پښتانه شوي وو .

# یوویشتم څپرکی

## د ترلي سرحد پالیسي

مور ولیدل چې له الفنستون څخه څلویښت کاله وروسته څه ډول سړي راغلل او له اباسین څخه تیر شول. په داسې خاوره او هیواد کې یې نوی ولایت او سرحد جوړ کړ، چې خلکو یا خاورې یې له هند سره هیڅ ډول اړیکي نه درلودل، دوی په څه ډول کارکاوه ؟ په کومو پرنسیپونو او کومو میکانیزمونو باندې دوی هڅه کوله چې له ګډوډۍ څخه وتلی یو نظام جوړ کړي چې څه نا څه تعادل ولري او جنوب خواته په نیمه قاره کې فعالیت وکړي او خپل مقصود منزل ته ځان ورسوي.

شرایط او حالات بیخي پیچلي وو. په لومړي سر کې هلته هیڅ ډول نظم دود او دستور حتی په اوار وسیمو کې هم نه و. لااقل د مغول له زمانې څخه په

ګاونډيو لوړو سيمو کې هيڅ ډول کنترول نه و . دويم داچې واقعي حدود موجود نه وو ، چې ثابت او مستحکم دولت وښيي او نوې قدرت يې اداره کړي. دريم داچې ، پښتانه دژبني ، اتنيکي ، جغرافيوي او تاريخي ملحوظاتو له مخې د پنجاب له ټولو مسلمانانو سره خاص توپيرونه لري چې دې ټکي ته په لومړي سر کې چندان توجه نه وه شوې . په لومړۍ مرحله کې يوه نقطه دنويو راتلونکو په ګټه وه هغه دا چې دسکانو له چلند څخه خلک ستړي وو او بدلون يې غوښت او دسکانو په نسبت انګريزان خلکو ته لږ دسپکاوي او کرکې وړ وو. دااحساس يو منفي احساس وچې ډيره موده يې دوام نه کاوه .

اساسي پرابلم داو چې انګريزانو دسيمې پر پښتنو باندې اروپايي ډوله وارد شوې اداري سيستم تطبيقوه او د نومړو سيمو پښتانه يې په خپلوهسکو او لروسيمو کې په قبيلوي ژوند کې پريښودل . په عين وخت کې دسرحد په دواړو غاړو کې قبيلوي اړيکې ډيرې ټينګ وو ، تګ راتګ ددوی ترمنځ په هميشني شکل سره دوام درلوداو په ټولنيز او اقتصادي لحاظ دوی د يوې طبقې خلک وو . داهم رښتيا ده چې پخوانيو رژيمونو لکه دمغولو ، درانيو او سکانو هريوه په خپل وار په اوارو منطقو کې خپل مدنيتونه تطبيق کړي وو او اداري سيستمونه يې هم جاري کړي وو. د مثال په توګه دماليې تاديه کول او دهغې په مقابل کې سرکونه ، بندرونه اوحتی ښارونه جوړول ياديدی شي مګر دابيخي بل ډول فشارو چې دانګريزانو له خوا تحميل شو . قاضيان او محکمې ، پوليس ، وکيلان او څارنوالان ددوی سيستم ، ماليې ټولول ، دځمکې ويش او تنظيم او نورې ټولې هغه اداري چې انګريزانو له ځانه سره واردې اوپر دوی يې دهغو تطبيق پيل کړ . ترټولو

مشکله خوداوه چې انګریزان له دغو ټولو قوانینو سره داسې ټولنې ته راغلل چې هلته دهغو ضرورت نه و او همدارنګه دپښتنو له ټولنیزو کړو وړو سره په مطابقت کې نه وو.

پر دې باید پوه شو چې دانګریزانو په راتلو سره دامیر دوست محمد خان دافغانستان دسلطنت سرحدونه ، نه وو تثبیت شوي . په پیل کې منظمې پولیټیکل ایجنسۍ نه وې او دغرونو دقبایلو دکمربند کرښه نه وه معلومه او همدارنګه دغرونو دلمنو او دافغانستان ترمنځ پوله تثبیت نه وه ، قبیلوي سیمې په عملي توګه آزادې وې او هغو ته به یې « غیر علاقه » یا « یاغیستان » وایه . یاغیستان نه یوازې دانګریزانو لپاره ، بلکې دکابل دحکومت لپاره هم یو خاص سرخوږی و . امیر عبدالرحمن په خپله اتوبیوګرافۍ کې دیاغیستان یادونه کوي . په بل عبارت په هغه وخت کې دهند سرحد یو ستندرد اداري سرحد بلل کیده او دهغه شاته یوه منطقه پرته وه چې په حقیقت کې نه په کابل پورې تړلې وه او نه په کلکتې پورې ( دانګریزانو داداري مرکز ) . سره له دې دخلکو ترمنځ اتنیکي ، مذهبي او قبیلوي اړیکي موجود وو . دکابل پاچا به هم دااړیکي یادول ، که څه هم عملاً به موجود نه وو ، دا مهم ټکی و او قبیلوي منطقې پیژندل شوې وې . که څه هم په قبیلوي سیمو کې هم پر لویو لارو کنترول موجودو ، خو انګرایزانو ابتدا کې خیبر او لوړه کورمه نه وونیولې او په مجهول ډول په افغان حکومت پورې مربوطې سیمې وې .

دې موجود موقعیت انګریزان مجبور کړل چې دهزاره او داباسین ددواړو غاړو شاته یو څه میکانیزم په نظر کې ونیسي ، چې دسرحد له آخوا قبایلو سره خپل کړه وړه تنظیم کړي . څرنګه چې دسرحد شاوخوا علاقې اشغال شوې

نه وې نو دوی پریکړه وکړه چې د ډیپوټي کمیشنرانو له خوا دې اداره شي او له
هرې قبیلې سره دې په مربوطه علاقه کې مؤظف مامور اړیکي وساتي ، حتی
نن ورځ هم دا سیستم د سرحد په ځینو برخو کې ژوندی پاتې دی . د مثال په
توګه دانګریزانو د رژیم ترپایه پورې د پېښور د ډیپوټي کمیشنر د مومندو
د غښتلې قبیلې مسوول و او د کوهاټ ډیپوټي کمیشنر لاتر اوسه هم
داورکزیو، بنو او ځینو وزیرو ، دیره اسمعیل خان ، شیرانیو او بیټنیو مسوول
دی . په اصل کې زموږ مسوولانو له قبایلو سره دخانانو او اربابانو له لارې له
خلکو سره اړیکي ساتلي او د دغو خانانو ،نیکه ګانو او پلرونو د سرحد
د دواړو غاړو قبایلو سره اړیکي درلودل .

د دې ښه مثال د خلیلو او مومندو په اربابانو کې شته چې د پېښور په نږدې
کلیو کې وو. دوی له اپریدیو سره د هوتي Hoti دخانانو له لارې او
همدارنګه د « مردان » او « سودم » دخانانو له لارې د دیر ، سوات او بونیر
یوسفزو سره پیژندګلوي کوله . دهنګو دخان له لارې اورکزو سره او
د « ټانک » د نواب په واسطه یې له مسعودو سره پیژندنه کوله او د ټانک
دنواب یوه ښځه هم مسعوده وه . ډیرو نه غوښتل چې پښتو زده کړي ، او
درانیانو هم په خپله اصلي ژبه ( پښتو ) خبرې نه کولې او په پارسي غږیدل ،
له نورو څخه یې دا غوښتنه کوله چې له دوی سره په پارسي وغږیږي او د
قبایلو غم او درد له دوی سره چندان نه و او په دې برخه کې پوره لټ وو. څرنګه
چې د سرحدي قبایلو خلک همیشه په وسله سمبال وو ، د لارو بندول ،
د کتارونو وهل د دوی د ژوندانه برخه وه . په تدریجي ډول له نیول شوو سیمو
څخه وسله تولیده او د وسلو ټولولو لپاره قوت په کار و . دا قوت باید پوره
الاستیکیت ولري او له منظمو قوتو څخه بیل اوهره لحظه چمتووي او د ملکي

ادارو تر امر لاندې فعالیت وکړي. د داسې قوتونو هسته مخکې تر مخکې په « لارښود = Guide » پوځ کې موجوده وه . د همدې « لارښود قوت » پر هسته باندې ملیشه قوت تشکیل شو او بالاخره « د پنجاب د غیر منظمو قوتونو » په نامه یاد شول ( Panjab Irregular Force ) . د غه سرحدي قوت په لومړیو کې د سرحدي پولیس تر نامه لاندې فعالیت پیل کړ . د وی جدي فعالیت کاوه . مګر د پولیس په شان یې د جرم د پلټلو د نده نه درلوده . د شخړو او مقاومت په وخت کې یې له منظمو قوتونو څخه مرسته غوښتله . د سرحد مدافعه همیشه په سوله ییز شکل نه وه . کله کله داړې هم کیدې او د دې مجبوریت هم احساسیده چې په ځینو سیمو کې نظامي عملیات وشي . دا عملیات د مجازات په شکل ډیر ډیر اجرا کیدل او کمی یې نه و . د ( ۱۸۵۷-۱۸۷۷ ) پورې د شلو کلو په موده کې د پولیسو لوی نظامي عملیات و شول ، تر هغه چې بغاوت مات شو . او ( ۱۸۷۷-۱۸۸۱ ) پورې په پنځو کالو کې دولس نظامي عملیات وشول . ترزیاتې اندازې پورې دا جنجالونه د ترلي سرحد د پالیسی نتیجه وه . دا پریکړه چې د سرحد آخوا سیمو ته به تیری نه کیږي ، د دې سبب شوه چې تل شخړې وشي . مګر زه په راتلونکې کې ځینې دلایل وړاندې کوم چې د جنجالونو عوامل وو او دا ډیر پر ځای وقایوي تدابیر وو چې جوتې ګټې یې درلودې .

دقوت استعمال دار دو یا ملکي طاقت د سکې منفي مخ دی . زمونږ اداره چیانو سر بنې مفکورې موجودې وې . زیاتره یې لیکل شوې موافقت نامې او اسناد وو . د لومړیو شلو کالو په موده کې تړونونه د قبیلو او حکومت ترمنځ د کاغذ پر مخ لیکل شوي او د حکومت د ضرورت د رفع کولو لپاره د وی د هغو شرایط پر ځان تطبیقول . هر تړون به څو مادې درلودې ، لومړۍ مادې به

عمومي شکل درلود. دوستۍ اوملګرتيا دتيينګښت او يو بل ته دمتقابل احترام متن به ګڼي په کې ليکلی و . ورپسې به هغه شيان ليکل شوي وو چې دهغو اجرا به له قبايلو څخه غوښتل کيده . لکه دسرحد ساتنه ، د داړه مارو مخنيوی ، دارتباطي کرښو ساتل ، له باغيانو سره مرستې نه کول او باغيانو ته ځای او پناه نه ورکول ، او دضرورت له مخې دقوتونو لپاره سربازان ورکول اودهغوی دښو کړو وړو تضمين او داسې نورتيکي به په تړون کې راتلل . دا تړون به په جرګه کې تربحث لاندې نيول کيده ، په پای کې به خانانو اوملکانو پرهغه خپلې ګوتې او مهرونه لګول . تيوکې تکالې به کيدې او لومړنۍ تنخا به ورکول کيده ، دښه نيت فضا به حکمفرماوه او دهميشنۍ سولې اميد به کيده . خو هميشه به د تړون رعايت نه کيده .

مادي امتيازاتو ته به يې « مواجب » ويل او په لومړيو وختو کې دمواجبو رعايت اساسي تکی و ، مګر وروسته ددې ارزښت په کرار کرار له منځه ولاړ او ډيرې غټې نورې اقتصادي ګټې راپيدا شوې چې دمختلفو کانالو له لارې دوی ته ورتلې ، لکه په اردو کې خدمت کول او په مقابل کې معاش اخيستل ، په ملکي غير نظامي قوتونو کې خدمت کول او يا په سرحدي پوليسو کې خدمت کول . داسيستم اکثراً په ناوړه ګټه اخيستنې تورن و . داسې استدلال کيده چې داقبيلې ماليه نه ورکوي او اضافي لا تنخا ګانې هم اخلي ، دابايد په يادولرو چې په لومړيو وختو کې قبيلو دحکومت متابعت نه درلود او قانون ددوی په خاوره کې نه وجاري شوی . دمالي مرستو هدف دا و چې پر ميشته ګونډيو باندې بريدونه بند کړي ، همدارنګه له هغوی څخه داسانتياوو مخنيوی ونه کړي دا پيسې چې دوی ته ورکول کېدل يا دسړکونو تيرولو او يا نورو خدمتونو په مقابل کې وې . ښه مثال يې دخيبر اپريدي دي ،

دوی ته څه پیسې ورکول کیدې چې له حق العبور څخه لاس واخلي ، دوی پخوا هم له حق العبور څخه عواید درلودل ، وروسته دوی ته امتیازات زیات شول. دا ځکه چې دوی د مخابرې په مسلک او ټولګي کې په لومړۍ نړیواله جګړه کې ښه مقاومت او میړانه وښودله ، همدارنګه د سړکونو او داورګاډي د پټلۍ د پرینښودلو په مقابل کې نور مادي امتیازات ورکړل شول . هرهغه چا چې پر موجباتو باندې د ناوړه ګټې اخیستنې په نوم انتقاد کاوه دې ټکي ته متوجه نه وو ، چې د دغو امتیازاتو په مقابل کې دوی هم خپل مکلفیتونه درلودل او د سولې د تامین او ساتنې وجیبه یې درلوده . د وجیبو او مکلفیتونو په مقابل کې یې جریمه او نورې سزاګانې متحمل کیدلې ، د مکلفیتونو د نه تطبیق په وخت کې د مادي امتیازاتو معطلول او ځنډول ښه غچ اخیستونکې وسله وه ، چې د باغي قبیلو په مقابل کې یې ځانګړی تاثیر درلود او د دې سیستم ارزښت د حکومت لپاره پرځای او موثر و.

د سزا ورکولو په مقصد لشکر کشي د قبیلوي سرکشیو د کنترول لپاره یوازینۍ چاره نه وه ، بلکې سربېره پر دې د بازار بندول او برمته هم د تطبیق وړ وو. بندیز یو اقتصادي فشار و چې یوه قبیله به یې له بازار څخه بند کړه ، همدارنګه د هغې قبیلې خلک به یې ورشوګانو او ګاونډیو سیمو ته هم نه پرېښودل . دا طریقه یو څه سوکه وه خو څه ناڅه تاثیر یې کاوه او په دې هکله لوی مشکل دا و چې په اسانۍ سره به نه تطبیقیدله ، هم د سرحد په اوږدو کې او هم د بازارونو په مرکزونو کې د دې امر تطبیق ، کنترول ګران و او د دې مقصد لپاره زیات قوت په کار و . د ښارونو او کلیو خلکو او د « غیر علاقې » د خلکو ترمنځ کرښه یوازې یو ظاهري شکل و . د خلکو ترمنځ تګ راتګ او راکړه ورکړه تل وه ، چا د هغې مخنیوی نه شو کولای او د حکومت قیودات

دخلکو لپاره بې مفهومه وو. برمته دمرکزي اسیا یوه ترکي کلمه ده ، او مانا یې داده چې دبل سړي له قبیلې ،قوم اوکورنۍ څخه دسړي یا مال نیول دي ،تر هغه مقابل لورې مجبور شي سولې او سلاته غاړه کیږي . دا سیستمونه په قبیلوي ټولنو کې دمسؤلیت دمنلو او قبیلوي دود ته ددرناوي په صورت کې شته او منل کیږي . په هره قبیله کې دقبیلوي ژوندانه یو ډیر عالي صفت دادی چې ټوله قبیله اودقبیلې فرد دهرناوړه عمل ځواب ویونکی دی او مسؤلیت یې ورپه غاړه وي . دا پرنسیپ په دې ډول تطبیقیږي چې ځوریدلی سړی یا کورنۍ یا قبیله له مقابل لوري څخه دشوي ناوړه عمل پوښتنه کولای شي او لاس وربانديې اینبودلی شي ، دقبیلې دمسوولیت اساسي ټکی دادی چې دحق غوښتلو او دعوی په صورت کې دبرمتې په واسطه هغه تطبیقولای شي . برمته ښه وسله ده او هغه وخت ښه تاثیر کوي چې دیوې قبیلې دمسوولې کورنۍ په مقابل کې استعمال شي او ناروا سړی په هماغه کورنۍ پورې تړلی وي . هرڅومره چې کورنۍ کمزورې وي هغومره برمته وربانديې ژر تطبیقیږي او بدل اخیستل کیږي .

داچې ټولنې دمیشته او قبیلوي آزاد سیستم په شکل ژوند کوي دمجرمانو دنیولو په وخت کې نور مشکلات رامنځته کوي ، ځکه چې معمولاً ازادې قبیلې مجرم ته پناه ورکوي . له هرې قبیلې سره چې تړون لاس لیک کیږي . یوه ماده یې داوي چې باید باغیانو ته پناه ورنه کړ شي . هرکله به چې دقبیلې مشرانو سره پر دې ټکي سوال ځواب کیده مجرم ته پناه نه ورکول او سزا وربانديې تطبیقول ، منل به یې خو په عمل کې هیڅکله داسې نه کیده ، داځکه چې په پښتنو کې یو بل دودهم شته چې هغه ته ننواتې وايي ، که دښمن هم دچا کورته په ننواتې ورشي نو دکور خاوند لپاره دا لوی عیب او

له شرم څخه ډکه خبره ده چې ننواتې ونه مني نو د ننګ او پښتو په لمن به یې تور داغ ولګیږي او د پښتنانه لپاره دا ډېره د شرم خبره ده چې میلمه له کوره نا امیده ویاسي . دا شرم د میلمه لپاره نه بلکې کوربه ته متوجه وي . د دې په شان کار د برتانیې د حکومت د فراریانو په مقابل کې هم عملي شوی او د ننواتې په نوم د قبیلو له خوا فراري ته پناه ورکړ شوې وه .

دا داسې یو پرابلم و چې هیڅکله حل نه شو . د هرې محکمې او څارنوالۍ پر میز باندې له عدالت څخه د فراریانو لست پروت و . پیښې ډیرې وې . د مثال په توګه داسې به پیښه شوه : د پښتو نولۍ د شرف او حیثیت د ساتنې په منظور یو چا به د خپلې میرمنې یا خور مین وواژه او بیا د وینې غچ په وینه اخیستل کیده .« د شبقدر محمد عمر خان به د هندستان د جرایمو د قانون په وړاندې مسوول وي . یا دا چې عمر به د پښتو په نرخ د یوه قصدي قتل په تر سره کولو تورن و ي ، یا به یې لوټ او غلا کړي وي او یا به یې لاره نیولې وي . په دې ټولو حالاتو کې به پولیس په ده پسې وي . عمر چې لږ څه یې وینه سړه شي نو د کور له انګړ څخه یا له خپل پټي څخه څو میله لرې جګې سیمې وینې چې هلته ازاد قبایل اوسیږي ، که دی هلته پناه یوسي پولیس د ده په تعقیب هلته نه شي ورتلای او انګریز خو هیڅکله نه شي ورتلای ،عمر په هماغه شپه له سرحد څخه تیریږي او د ترکزیو مو مندو په خاوره کې د مشکي ملک هوجرې ته ورځي ، له هغې سره یې له پخوا پیژندل ځکه چې هغه به کله کله شبقدر ته په سودا پسې ورتلو . یو وخت یې د ده کوچنی خدمت هم کړی و . ملک مشکی هغه له خپلې هوجرې څخه نه شي شړلی ، نو ځکه به څو ورځې د ده میلمه پالنه کیږي او وړیا ډوډۍ به خوري ، په دې وخت کې به د ده کیسه هم رامنځته کیږي .

سره له دې چې پښتانه د میلمه پالنې شهرت لري ، خو د دې مانا دانه ده چې بل
به یو تورن ته وړیا ډوډۍ ورکوي . محمد عمر که غواړي چې د لته تل پاتې
شي نو به خپله ډوډۍ پیدا کوي او کار به کوي ، په دې حالت کې دی همسایه
بلل کیږي او د ملک ترسیوري لاندې به ژوند کوي . ملک چې د ده ساتونکی
دی عمر به هیڅکله عدالت او محکمې ته تسلیم نه کړي . که عمر و غواړي
چې د دې قبیلې غړی شي او د قبیلې د جوړښت جز شي نو دا به جرګې ته
وړاندې کیږي او دی به هم د قبیلې لپاره یو څه کوي . مثلاً کښت او کار به کوي
،یا به نور څه عملي کارونه ترسره کوي او خپل مهارت به په کار اچوي . حتی
دی به د داړو د لاربښود په څیر خدمت کوي او په دې ترڅ کې به حتی داړې پر
خپلو پخوانیو دښمنانو هم وربرابر وي . په نتیجه کې په سرحد کې ګډوډي
پیښیږي او امنیت له منځه ځي ، د لته بیا حکومت مجبوریږي چې د هغې
قبیلې په مقابل کې په عمل لاس پورې کړي ، اقتصادي امتیازت وربانده
قطع کړي . کله چې قبیله د تورن له ورکولو څخه انکار وکړي نو حکومت حتی
د بلاکاد او پوځي قوت استعمالولو ته هم لاس تیروي .

په یوه وخت کې د روغې جوړې جرګې هم وشوې . که چیرې د مجرم د قانون
خلاف عمل د پښتنو ترمنځ عادي او نورماله بدي ( دښمني ) وي کیدای شي
چې تورن ته لار ورکړي چې ځان سپین کړي او د توپې شوې وینې پورپرې
کولو ته سلاشي ، سره له دې چې د اتیوري ښه ښکاري خو زیاتره پښتانه
تویه شوې وینه په نغدو نه بدلوي ، بلکې بدله اخلي ،حقیقت خو دا دی چې
دا پرابلم د حل لاره نه لري . یوازې کله چې دواړه خواوې مساوي وي کیدای
شي چې په برابره پریکړه سلاشي ، په تیره بیا کله چې یوه ټولنه د شلمې پیړۍ
په درشل کې د نافذه قوانینو تر سیوري او حکومتي اداري لاندې ژوند کوي

او همدارنګه ددې په څنګ کې يو شمير خلک چې عين دود ، دستور او ژبه لري او په آزاد ډول او سپيڅي ځانګړې بدی ( دښمني ) پخپله خوښه پرې کوي ، ددوې ترمنځ سلا ، روغه جوړه د قانون په خوله پريکول ناشوني دي ، هغه مترقي ټولنه چې قوانين او حکومت يې دژوندانه اصول دي که قوانين د ټولو مختلفو سيمو خلکو او ټولنو لپاره عيار نه کړي دوی به له مشکلاتو سره خامخا مخامخ کيږي .

دانګريزانو قضايي سيستم او داروپا په تله د جرايمو د حل ارزښت د پښتنو له دود ، دستور او احساساتو سره هيڅکله مطابقت نه کاوه . په قبيلوي سيمو کې خو هيڅکله د يادولو هم نه دي ، د پوليس او قانون غوښتنه په جدي صورت سره د آزادو سيمو لپاره دځينو خلکو په سترګو کې د ګتې وړ ښکار يده . قانون اکثراً د کلکو دودونو په مقابل کې په تضاد کې و ، کوم ځای کې چې قانون سزا لازمه بلله ، د دود او دستور په مقابل کې هغه حق په جانب ګڼل کيده . هلته دروغجن شاهدان ډير وخت حق باطلوي او تورن چې مجرم ثابت کيږي برعکس برائت اخلي ، داسې پيښې ډيرې شوي دي ، بالاخره دا هم بايد ووايو کوم ځای کې چې قانون دښمن تهديدوي هلته ډير داسې شوي دي چې تکنيکي غلطۍ پيښې شي او کلونه کلونه به يوه پيښه اوږده شي او حل به يې ورک وي او کله چې عقل سر ته راشي ، ګوري به يې چې اصلي چاره او د حل لاره په ولسوالۍ او حکومتي اداره کې ده .

پر ۱۸۷۲ کال مثبت قدم او چت کړای شو چې د غه مشکل حل کړای شي او د « سرحد جرايمو قوانين » (Frintier Crime Regulations) پاس شول ، په دې توګه دوينې دښمني ، دښځو په هکله مخالفتونه او ټول هغه شيان چې د پښتنو په ننګ پورې تړلي وو د جرګو او پښتو له لارې حل

کیدل . محکمو ته صلاحیت ورکړ شوی و وچې داډول دعواگانې له محکمې څخه رد او جرګو ته یې ولیږي . په داسې حالت کې دا ضرور نه وه چې ټول ملکان به په جرګه کې ګډون کوي ، بلکې د ملکانو یو ګروپ به چې دواړو خواوو ته د منلو وړوي ، دنده اخیسته چې معامله حل کړي، ګناه کار او بې ګناه سړي بیل کړي او پریکړه وکړي . د شواهدو په هکله جرګې کولای شول چې د جرم ځای او ماحول وګوري او خپل معلومات له هرې خوا تکمیل کړي چې سم قضاوت وکړای شي . د مړینې او قتل په پېښه کې جرګې د مجرم د قتل د حکم صلاحیت نه درلوداو ترټولو لویه سزا ئې ځوارلس کاله بند و . په شمال غربي سرحد کې سرحدي قوانینو یوازې د محکمې د قوانینو حمایت کاوه . کله به چې داسې پېښیده چې د قضیې د حل لپاره د پښتنو په دود کې لاره نه شته او قانون ته رجوع حتمي ده ، جرګې به د دولتي قوانینو په رڼا کې د پریکړو لپاره هڅې کولې . دا باید پټه نه کړو چې د جرګې جریان ته دوی د قانون وکیلان او څارنوالان نه پرېښودل او طبیعي خبره ده چې دوی د جرګې قوانین نه خوښول .

په دې کې هیڅ شک نه شته د دغو قوانینو په مرسته ډیر سخت مجرمان عدالت ته راوستل شول او بې له دې ډول محاکمې څخه دوی تل آزاد پاتې کیدل . فکر کوم چې داهم نادره خبره ده چې بې ګناه سړي دې د غفلت او بې غورۍ په نتیجه کې سزا وویني ،داهم د یادونې وړ ده چې د شمال غرب سرحد کې ، دې قوانینو د انګریزي قوانینو ځای نه ونیولی ، بلکې د هغو د تقویې لپاره ضمیمه بلل کیدل ، خوهسې چې هیله کیده نه یې د قانون مرسته وکړه او نه یې د دود او دستور مرسته وکړه . زما په خیال دا بې له دې چې د پښتون مفکوره په کې وپیژندل شي د دولت له خوا د جرم یو ډول سزاوه .

داقوانین ځکه ناکام شول چې د محلي دود پراساس یې رواج تطبیق نه شو کړای او دا د دوو بیلابیلو څوکیو ترمنځ د نه ځائیدو په نتیجه کې ناکام شو.

دا مسئله به هله ښه روښانه شي که چیرې د ۱۸۸۰ کال په شاوخوا کې د بلوچستان له نیولو څخه وروسته د سرحد د جرمونو د قوانینو د عملیاتو او تطبیق میتودونه په نظر کې ونیسو. ورته تعامل د شمال غرب سرحد په ځینو برخو کې هم هغه وخت عملي شوی چې په نوی یمو کلو کې د « وړاندې پالیسی » Forward Policy په نتیجه کې په معینو سرحدي سیمو کې اداره وشلیده. په دغو ځایونو کې سرحدي مقررات د حکومت له قانون سره موازي نه تلل، بلکې د قانون ځای یې نیولی و او معمولاً قانون له ناکامۍ سره مخامخ شوی و او د قبیلوي خلکو له خوا نه منل کیده. په دغو سیمو کې د ناچارۍ له مخې بیرته دود او دستور ته مراجعه شوې ده. دولتي بندیزونه تحمل شوي نه دي. په دې توګه د جرم د جزا تطبیق به معمولاً د دود له مقرر شویو سزاګانو څخه تیری ونه کړي. یوازې هغه وخت به سزا زیاته تطبیق کیدله چې د جرم حدود به د دولت له قوانینو او د قبیلې له دود څخه څرګند تیری و.

یو څو مثالونه به دا تکی ښه روښانه کړي. راځئ داسې فرض کړو چې (A) یوه قضیه (Case) ده: « شیرین خان » د غچ اخیستلو په پینبه کې « انور » وویشت او مړیې کړ. دانور تره د شیرین خان ورور وژلی و. د پښتنو د نرخ له مخې شیرین خان یوازې پښتو پر ځای کړه. که چیرې شیرین خان د دې حادثې له کبله محکمې ته راوستل شي، دی به د خپل عزت د پر ځای کولو په مقابل کې پانسۍ شي، او له پانسۍ څخه د خلاصونو لپاره به هر څه وکړي، چې له عدالت څخه ځان بچ کړي. د ډول ډول کارونو په لړۍ کې به

جعلي شاهدان هم تيـر كړي . چې دى قاتل نه دى ، مگر كه دى جرگې ته راوستل شي لااقل په جرم اعتراف كوي او دخپل وروردغچ اخيستنه دخپل عزت پر ځاى كول بولي . په بلوچستان كې به په وياړ سره وواييي . په داسې حالت كې جرگه دنده لري چې داسې يوې پريكړې او روغې جوړې ته ورسيږي چې داكورنۍ دښمني پاى ته ورسوي چې معمولاً بايد دوينې بيه او يا به دنجونو په ورواده كولو سره سلاشي . دنجونو وركول په بدو كې دپښتنو قبيلو ترمنځ يوه عامه طريقه ده چې په بدو كې نجلۍ وركولو ته « سواره » وايي يا به داسې پريكړې وشي چې ديوېل په مقابل كې به دجرگې له پريكړې سره سم په هوډ ودريږي او دښمني به ختمه شي ، دولت اوحكومت ددوى په قضيه كې مداخله نه كوي .

بله به د B قضيه مثال راوړو . عاشق جان دفلان خان له ښځې سره ملگرتيا او پټه يارانه كوي ، ددوى يارانه دې حدته رسيږي چې عاشق جان ، فلان خان وژني او ښځه يې تښتوي . داد پښتو له نرخ اودود څخه دشرم ډك تيرى دى . داقتل او زناگڼل كيږي . په دې حالت كې به دفلان خان كورنۍ عاشق جان او ښځه دواړه وژني . په نتيجه كې د دواړو كورنيو ترمنځ بدي اودښمني پيل كيږي . په دې هكله انگريزانو هيڅ سم او دهوښيارۍ فكر نه و كړى ، چې دقبيلې پر نرخ او دود دې حاكميت وكړي ، نوځكه كه چيرې جرگې ته دعاشق جان جرم ثابت هم شي يوازې به له مقرراتو سره سم څوارلس كاله بنديخانه تيره كړي او له ترون سره سم داترتولو لويه جزا تعين شوې ده ، اودې په څنگ كې « شرمانه » هم ورڅخه اخيستل كيږي . درېيمه قضيه به داسې فرض كړو چې يو محافظ او پهره داروژل شوى دى . دلته نه يوازې اقارب علاقمندي لري ، بلكې دولت هم دخپل مال او محافظ دوژل كيدو په

نسبت مداخله کوي . دوينې قيمت يا احتمالاً بنديخانه به د جرګې له خوا تعين شوې وي ، خو پر دې سربيره ښايي دولت هم د بند اضافي موده ورته مقرره کړي .

مهم ټکی چې بايد هير نه شي دادی چې د پښتنو په نرخ کې د متجاوز ترمجازاتو د مظلوم رضايت او قناعت ډير ارزښت لري . حال دا چې قانون د متجاوز په مقابل کې کلک دی او د مظلوم لپاره بدل او روغه په تصور کې نه راځي .. پښتانه جرم ته د يوې معاملې په شکل ګوري .

د پښتنو په ټولنه کې له قانون څخه نرخ ته او له نرخ څخه قانون ته اوښتون د دوی لپاره څه ناڅه اسانتيا وې برابرولې او د ضرورت له مخې د وخت او ځرنګوالي د بدلون لپاره د دوی په خوښه عياريدل ،زما په نظر به د پاکستان حکومت نسبت انګريزانو ته په دې هکله زيات الاستيکيت وښيي .

دا خو ثابت پرنسيپ دی چې قانون د يوې ټولنې له عقل او روح څخه راوځي او بايد د ټولنې د عام تشخص د مفکورې انعکاس کوونکی وي . د يوه تمدن قانون پر بله ټولنه باندې د تطبيق وړ ځکه نه دی چې هره ټولنه جلا جلا شاخصونه لري، دژوندانه معيارېې توپير لري ، نو دداسې جبري قانون تطبيقول هم مثبته نتيجه نه ورکوي . د ډيرو کلونو تجربې له مخې وايم چې زما په عقيده د ۱۸٤۹ کال د پېښور اداري کېچيرې لږ څه نرموالی درلودلای ښايي چې نتيجه به يې لا په زړه پورې وای او خلک به د آزادو قبايلو په شمول ډير زيات د حکومت تابع او پلويان وای . ښايي پاکستان به داوسنی وضعې په نظر کې نيولو سره د اساسي قانون د ۱۹۸ برخې پر اساس ډيرې اصلاحي اسانتياوې په نظر کې ونيسي او د خلکو دود ،نرخ او د اسلام اساسات (شريعت) به په هغو بدلونونو کې غټ رول ولوبوي . دا احتمال شته چې د وخت

په تيريدو سره به آزاد قبايل د پاکستان په دولت کې تدريجاً جذب او د قوانينو بري او ناکامي به د دوی په روحيه او جذبيدو پورې تړلي وي. دا موضوع د اهميت وړ او د پاملرنې مرکزي ټکی دی، له هغې څخه سترګې پټول به د بدبختيو سبب شي.

له انګريزي افسرانو چې د «ورورګلوۍ» ټولنيز سازمان يې جوړ کړی و پردغه ډول ټولو پرابلمونو باندې فقط د خپل شخصيت په حساب پوره بريالي وو. نيکلسن خپل دوست هنري لارنيس ته ليکلي وو: «زه فکر کوم، زه لږ څه د مقرراتو د جوړولو لپاره ښه يم، او زه هيڅکله عقل يا عدالت او يا د خلکو او يا د يوه هيواد ګټې نه شم قربانولی چې ثبت شوی شابلونی پېټی تطبيق شي.» او لارنيس بير ته د نيکلسن په ځواب کې داسې ليکلي وو: «او خلک مستقيماً پانسۍ ته مه استوه، کله يې چې استوې نو د شواهدو يو نقل په انګريزي ژبه د کميشنرۍ له لارې ما ته راوليږه.» د نيکلسن بيو ګرافي ليکونکی وايي چې يو ملګری د ده دفتر ته ورغی او لوی بنډل قوانين او مقررات يې مخې ته پراته وو. ده په خندا راته وويل: «له هر څه سره زموږ معامله په دې ډول ده.» او په لغته يې ووهل او د کوټې بل سر ته يې ورسول.

له ۱۸۵۷ څخه وروسته دا اداره دوړو خلکو لاس ته ورغله، د «ايدوراډز» په شان لوی سړی د نورمالې ادارې حيثيت ته کتل او په ډير زغم سره يې له شرايطو سره سم قانون جوړولو او د ضرورت له مخې يې قانون ته اصلاحي ضميمې ورزياتولې، خو په هغه متضادو او ناوړه شرايطو کې چې ما د مخه بيان کړل ډير کم افسران په سرحدې پوستو کې پاتې شوي وو چې له دغو مشکلاتو سره پنځې نرمې کړي او له بحران څخه ځان وباسي. لاهور هم ډير لرې و، د لاهور مشرانو سرحد ته په ښګ کتل، د پرسونل کمی همېشه

احساسیده . تبدیلي ډیرې وې ، افسرانو پوره وخت نه درلود چې د سرحد داوسیدونکو ژبه او کلتور زده کړي . د پښتنو په احساساتو نه وو بلد . د اداري ماهیت مخ په زوال و او ورځ په ورځ خرابي راتله . د کمې تجربې له کبله د دریم سړي رول لاهم ضروري پاتې شوی و چې د حکومت او قبیلو تر منځ یې راشه درشه کوله او حاصل یې منفي نتیجې وې . که چیرې ډیپوټي کمیشنر به په پښتو ژبه بنه پوهیده ، مستقیماً به یې د قبیلو له خلکو سره خبرې کولې او په جرګو کې به یې د مسایلو په ارتباط مناقشې کولې ، محلي ژباړونکي ته به ضرورت نه و او مادوناتو ته به یې دلومړي لاس معلوماتو پر اساس د ندې ورسپارلې او د مستقیمو خبرو نتیجې بالکل مثبتې وې . له ۱۹۰۱ کال را په دیخوا په تیر و پنځو سو کالو کې دانګریزي مامورانو ژبه پوره بنه شوې او پخپله پښتنو د دوی د ژبې د زده کړې معیار لوړ بللی و . د مامورانو او خلکو ترمنځ مستقیمې خبرې کیدې او په نتیجه کې بنه اړیکې رامنځته شوي وو ، خو د دې یو دلیل هم دا و چې دا وخت صوبه سرحد « د کورزون Curzon» جوړ شوی ایالت و او له پنجاب څخه بیل شوی و . د پنجاب په ورځو کې البته استثنایي اشخاص د چارو مسئول وو ، خو سره له دې د واکمنو او خلکو ترمنځ اړیکې بیخي محدود وو .

په دې سیستم کې د « واربرټن Warbarton» په انساتیف سره بدلون راغی . واربرټن لومړنی پولیټیکل ایجنټ Palitical Agent و چې له سرحد اخوا یې له قبایلو سره کار کاوه او په ولسوالی کې یې هیڅ ډول رسمیت او مسوولیت نه درلود . واربرټن دانګریز دارد و دیوه افسر زوی و . دغه افسر د افغان - انګلیس په لومړۍ جګړه کې له شاه شجاع سره و او له یوې پښتنې سره یې واده کړی و چې دامیر دوست محمد خان وزیره وه . په دې

دلیل دزیړیدنې پر اساس واربرټن نیم افغان او نیم انګریز و دافغان-انګریز په دویمه جګړه کې واربرټن دخیبر دسیمې دقبیلو مسوول و چې داسیمه یې دجګړې په نتیجه کې له افغان حکومت څخه نیولې وه. دلته دی شپاړس کاله پاتې شو او بیا «تیرا» ته دپولیټیکل ایجنت په صفت تبدیل شو او په پوځي قطعه کې و. دی په خپل کتاب کې لیکي چې اکثریت جنګونه چې دقبایلو او حکومت ترمنځ پیښ شول یو ازینی علت یې داربابانو او دریم سړي میکانیزم په کارول وو.

دخپلې نظریې دثبوت لپاره، دی دبونیر د ۱۸۷۷ جګړې کیسه انځوروي، کله چې دبونیروالولښکر د مالندرې او امبیلا غاښي څخه تیر شو، په سودم کې یې سرحدي کلي ونیول. واربرټن مخکې له دې څخه چې خیبر ته ولاړ شي دیوسفزو ددې سیمې دسرحد مسوول و او ټول اکتوران یې شخصاً پیژندل.

«سودم» د «سمې» هغه برخه ده چې دبونیر دلوړو مقابل کې پرته ده او د موکم Mukam نهر همدلته راتوییږي او داد «بابر» له یوه په زړه پورې ځایو څخه بلل کیده. داداسې یوه وادي وه چې دشمال غرونو دآس دنال (نعل) په شان احاطه کړې ده. او دپاجه Pajja دغرونو تر دندانو لاندې پرته ده. ټول غاښي له بونیر څخه دمتحد المرکز دایرو په شان دې وادي ته ورګډیږي. جنوب خواته له ناجوګانو ډک دکارامار Karamar غردی چې یوڅه لوړوالی لري. داټوله تاریخي ځمکه ده، په مالاندرۍ Malandrai کې داکبر کوربه له منځه یوړل شو. په امبیلا Ambela کې ترټولو خونړۍ جګړې وشوې. په کارامار کې ډیوې ورته بلې شوې چې دسید احمد شاه دمریدانو دوژنو علامه ده.

دسودم خانان دمندړ یوسفزیو د « امازي » څانګې پورې تړلي دي . نور ټول خلک چې په وادۍ او غرو کې اوسیږي ګوجردي . دوی شپانه او غوبانه خلک دي . د پښتنو مشره کورنۍ دلته میر بابو خیل دي چې ددې کورنۍ مشر میر بابوخان نومیده . ده سید احمد شاه بریلوي ښه پیژنده . دی په وروستیو کې دسکانو دمالیو روزلو اصلي استازی شو . کله چې لمس‌دین Lumsden دیوسفزو وطن ته راورسید . « میر بابو » یې خدمت ته حاضر و . جورج لارنیس George Lawlence دی ښه ملګری او نوي رژیم ته وفادار سړی شمیري . دی اودده زامن عجب خان او عزیز خان دبونیر او چملې دسرحد شاته ددړیم ګړي ( منځګړي ) په توګه استعمالیدل . عجب خان او عزیز خان د واده پر اساس دبونیر خانانوسره تړلي وو او همدارنګه له هغو هندوستانیانو سره چې له سید احمد شاه څخه پاتې وو هم ددړیمګړي په صفت یې راشه درشه درلوده . داهندوستانیان دمجاهدینو په نامه یادیدل .

عجب خان اوعزیز خان دواړه د « امبیلا » دجګړې په هکله ( ۱۸۶۳ ) په دې خپه وو چې له دوی سره مشوره نه وه شوې . عجب خان خپلو ملګرو ته په بونیر کې لیکلي وو چې که دوی څه ونه کړي ، د بونیر پرده به ڈتل لپاره پورته شي . دوی « پرده » دعزت او آبرو لپاره استعمالوي . کله چې وطن او خاوره له تهدید ، جګړې او تیري سره مخامخ شي ، نوپښتانه یې له ښځې سره پرتله کوي ، څرنګه چې دښځې غیرت په پرده کې ساتلی وي ، وطن او هیواد هم په پرده کې خوندي بولي . له سختې جګړې څخه وروسته « عزیز » مړشو او « عجب » بونیر ته وتښتیده . فرکسیوني احساسات دمیر بابو خیلو په منځ کې هم راوپاریدل . داهمیشه مشکله خبره وه چې دبیلابیلو ډلو تر منځ احساسات او حقایق وپیژندل شي . بالاخره پر ۱۸۷۷ کال عجب خان په چارګلۍ کې خپل کور ته راستون شوی و او دده په قول ددې لپاره راغلی و چې له حکومت سره اړیکي ښه کړي . عجب خان دبونیر والو په واسطه باالقوه پر

سودم برید وکړ . د تېولو غابښو او کنډوونو له لارې قبایل راښکته شول او بارینګان ، علي او بازار کلي یې وسوځول . ددغو کلیو له خانانو سره عجب خان له پخوا څخه جوړ نه و ، ددوی په مقابل کې د « رستم » له استقامته چې اصلي قرارګاه هلته وه ، پس له درندو تلفاتو مووکړای شول چې دا باغیان مات کړو . خبرونه ډیر ژر راتلل او عجب خان وروسته د شاهي تاج په مقابل کې د مخالفت په جرم محاکمه شو .

دا محاکمه نظامي محاکمه وه او عجب خان پر مرګ محکوم شو . دده محاکمه په لویه محکمه کې تر ټولو اوږده محاکمه وه . کله چې ده ته د « اپیل » ( عذرغوښتنه ) موقع ورکړ شوه : عجب خان په خپل جرم اعتراف وکړ . ده د قومي مشرانو یوې ټولنې ته اوږده بیانیه ورکړه او دا بیانیه په دبدبې او ویاړ سره وړاندې شوه او تر ډیرو پورې خلکو یادوله . عجب خان ډیر ښکلې شخصیت درلود . دده ونه ترشپږو فټو لوړه وه . نری غوندې جوړ شوی او اوږده توره ږیره یې درلوده . ده همیشه د سپینو زروغاښ سکونډونکی په غاړه کې ګرځاوه . ده همیشه نرمې خبرې کولې . خلک اوس هم دده کیسې کوي چې په ډیر جذاب آواز سره یې نورو ته ویل چې د ده مثال تعقیب نه کړي او د خبرو په وخت کې به یې له خپل نقره یي غاښ سکونډونکي سره لوبې کولې ، ما داړه ماران له ځان سره راښکته کړل چې په سرحد کې پر دوی مشر توب وکړم او خپل قوت وښیم او د حکومت نیک نظر ځانته جلب کړم ، زه ناکام شوم او ناکامي زما حق دی ، دا پخوانۍ لوبه ده او زما خبره تاسو ته داده چې پیښې په خپله مه جوړوئ ځکه چې هر څه د خدای تعالی په لاس کې دي .

واربرټن ښه دلایل درلودل چې پر دریم ګړي محلي سیستم باندې بې باوره شو . دا دریمګړي د قبیلو او د حکومت داړیکو ترمنځ بې غرضه او صادقانه نه وو . د ټرلي سرحد سیستم هم وازمویل شو خو نیمګړتیاوې یې درلودې ، اوس ددې وخت و چې په ډاګه او زغرده پالیسي عملي شي .

# دوه ویشتم څپرکی

# امبیلا

زما د بحث موضوع دا نه ده چې په سرحد کې اویا له سرحد څخه د تېرلو هغو نظامي عملیاتو او جګړو لست واخلم چې زموږ اردو تر سره کړي دي، خو د لومړیو ورځو د یادونې وړ دي چې تر نظامي عملیاتو یې هم ارزښت زیات دی. لومړی د 1857 کال اغتشاش په مقابل کې د سرحد عکس العمل او بله د ۱۸۶۳ کال د امبیلا جګړه ده.. دواړه د یادولو وړ دي. دا دواړه پېښې سره تړلې دي او د کوزې خوا اغتشاش کوونکو له لومړۍ پېښې څخه سرغې راخیستې او دویمې ته یې وراچولې او اورې لګولې دي. یوه پېښه دا رابښیي چې د تولې نیم قارې د سیاسي استقرار لپاره د پښتنو روحیه څومره مهمه ده او دویمه یې د سرحد د تاریخ د لارې ځلې دی، ځکه له یوې خوا شاته له هغو سیدانو سره تړاو لري چې د سکانو پر ضد جنګیدلي او مخته هغه ننني

اخوند سره اړیکي لري چې د سوات د پښنو د پراختیا و مسوول د ی، مگر ترټولو مهم دلیل دادی چې د « امبیلا » کیسه ځوپښتې ښیي او دلته د پښتنو میړانه، توره او غیرت تمثیلېږي ، نوځکه ډیر خلک بایدپر دې پوه شي . راځئ چې تر یوې شیبې پورې اصلي کیسه پرېږدو او د یوسفزو د سرحد خواته پام واړوو .

په پیل کې انگریزي سپین روبو آزاد لاس درلود او له اغتشاش څخه د مخه اته کلونه د سرحد د کنترول لپاره د بنسټ اېښودلو وخت و او د سرحد د کنترول کرښه په مخکې ځپر کي کې وځیړل شوه . کله چې داز میښت وخت راغی جوړ شوی ساختمان ودرید. ترزیاتې اندازې پورې د دې علت دانه و چې سیستم ښه و ، بلکې په خپله دا اشخاص ډیر پوه او هوښیار خلک وو. سید- ني کاټن Sydney Catton په پېښور کې د ټولو پوځونو قوماندان له دغو سپین روبو څخه کم نه و . ده همیشه په هوښیارۍ سره پریکړه کوله او هغه شیبه چې د قوت استعمال به په کار ونو ده به له قوت څخه کار اخیسته . بې ځایه اوبې ضرورته یې قوه نه په کاروله . هندوستاني غونډونه اکثراً د خپلو قوماندانانو د پروتست په نتیجه کې بې وسلې کړای شول . په مردان کې یوه قوماندان ځان وواژه ځکه چې پر سونل یې د ده اوامر ونه منل ، ورسپارل شوې دنده یې په ښه توگه ترسره نه کړه او د قوماندان د ناکامۍ سبب شول . هغو دوو غونډونو چې د حکومت پر ضد اغتشاش کړی و او یو یې د مردان او بل یې د نوشهرې ود نیکلسن له خوا تر تعقیب لاندې ونیول شول او ډېرې وړې شول . یو شمیرېې د سوات خواته د تیښتې په حال کې د خلکو له خوا لوټ او له منځه یوړل شول . یو شمیر یې پېښور ته مخه کړه او هڅه یې کوله چې ډیپوگانې لوټ کړي او ځانونه بیا په وسله سمبال کړي د خیبر روډ په اوږدو

کې ووژل شو ل .

تله په ورو ، ورو درنیږده ، له هرې خوا څخه مرستې راورسیدې ، ملیشه قوتونه زیات شول او په هندکې یې ښه خدمت وکړ . « لا ر ښود = Guides » قوت له مردان څخه مخ په ډهلي لا د مخه حرکت پیل کړی و او ۵۸۰ میله مسافه یې په اوه ویشت ورځو کې لنډه کړه او پنځه ورځې یې د لارې په اوږدو کې په زیاته تودوخه کې بریالۍ جګړه هم وکړه . کله چې « لارښود » قوت دوروستیو دیرشو میلو له لنډولو څخه وروسته د ډهلي کمپ ته ورسیدل د ۱۸۵۷ د جون پر نهمه نیټه د سهار پر وخت دوی په میړانه کلک ودریدل او چاچې ولیدل پر دوی یې ویاړ و کړ . دوی تکړه او نه ستړي کیدونکي سرتېري وو ، تابه ویل چې یو میل لارې وهلې ده . د نیم ساعت په موده کې له رارسیدو سره سم پر عملیاتو بوخت شول او درې (۳) میاشتې په لومړۍ کرښه کې پاتې شول چې بالاخره د سپتمبر پر ۲۰ مه نیټه ډهلی مات شو . ترڅو میاشتو خو نړیو جګړو وروسته د یوسفزو سرحد ته راستانه شول .

په دې توګه په هغو سختو شرایطو کې سرحد کلک ودریدو او ډیرلرې یې په جنوب کې امنیت ټینګ کړ . ۱۸۵۷ کال د ډیرو خلکو د لمسیو له خوا یادیږي او هر چاسره کوم خط یا فیته Ribbon د یادګار په توګه په کور کې ساتل کیږي ، چې د خپلو نیکه ګانو نشتوالی وریادوي . داهم پر ځای ده چې د دې نتیجې په لاس راوړلو کې په مادي لحاظ د امیر لاس هم مؤثرو . که څه هم د پېښور دعوی یې په زړه کې وه خو پر خپل هوډ ولاړ و او جان لارنیس له دې نظریې سره لوېې کولې چې د اباسین اخوا د پنجاب په لوري په شا کیږي او پېښور پریږدي .

د « سیتانې » سیداکبر شاه د پیریابا د کورنۍ مشرمو باید په یاد وي چې د

« سیداحمد شاه بریلوي » په ملګرتیايي دسکشاهی پر ضد پاڅون کړی و.
سیداحمد پر ۱۸۳۱ کال په بالاکوټ کې دسکانو پر ضد جګړه کې مړشو.
مګر دده پاتې کسانو ته سیداکبر شاه دسیتانه په کلا کې ځای ورکړ. هري -
سنګهـ له همدې کلا څخه مات شو او بیا پر ۱۸۲٤ کال رنجیت سنګهـ هم
پخپله له همدې ځای څخه مات شو. دغې کورنۍ او ملګرو یې دمجاهدینو
نوم وګټه. کله چې دانګریزانو امپراتوري او سلطه پیل کیده. داکورنۍ
داغتشاش کوونکو په واسطه چې دنوښهرې او ځینې یې له ډهلي څخه راغلي
وو یو ځل بیا راوپاریده او دانګریزانو حاکمیت یې ناروا وباله او عمومي
پاڅون ته یې ټول راوبلل.

سیداکبرشاه په خپله په همدغه ورځ ( د ۱۸۵۷ - ۱۱ مې ) په سوات کې
مړشو. کله چې د پاڅون غږ پښنور ته ورسید، په سیتانه کې دسیداکبرشاه
وروړسیدعمر، دسیداکبر شاه زوی مبارک او دسیدعمر زوی محمود
(دسیداکبرشاه وراره) دده ځای ونیو. دوی پر ۱۸۵۸ کال دیوسفزو دسرحد د
ترلو هڅه وکړه چې دانګریزانو مخنیوی وکړي. داموهم باید په یاد وي چې
دسیتانې سیدان په سوات او بونیر کې دنفوذ یوازیني خاوندان نه وو.

په دې وخت کې دسوات وضع هم داسې نه وه چې له هغې سره دې علاقه نه
وي. پر ۱۷۸٤ کال، که څه هم دانیټه ثابته نه ده. دبرسوات دجبرې Jabrai
په کلي کې یو سړی پیداشو چې نوم یې عبدالغفور و او دیوه ساپي شپانه زوی
و. ده خپله قبیله پرې ایښې وه او دلته اوسیده. داچې ولې یې خپل قوم قبیل
پرې ایښی و اویو سفزو سره اوسیده څرګنده نه ده. دی د « کندهاری » څانګې
ساپي و. ( کندهاری ښایي له هماغه ګندهارا سره تړلی وي. ) څرنګه چې
ساپیان ډیر وروسته پر اسلام مشرف شوي وو نو ځکه دوی داسلام پر قوانینو

ډير کلک ولاړ دي . عبدالغفور په لومړي سر کې په خپله هم شپون و . د پلار رمې يې په غرونو ، رغونو کې څرولې ، تل به يې دالله پاک عبادت کاوه ، لمونځونه به يې کول او روژې به يې نيولې . زياتره به له خلکو څخه لرې او ځانته و . داسې يې اوريدلي ووچې په بيکا Beka کې داباسين او لنډي سيند پر غاړه يوښه سړی اوسيږي چې خلکو ته د دين زده کړه ورکوي .
عبدالغفور هم خپل ښتې واخيست ، له سوات څخه پير بابا ته بير ته ورتير شو او له هغه ځای څخه دبيکا سمې ته ورکوزشو . دلته دی ديوه کوهي پر غاړه اوسيده خپلې ميږې يې پيولې او دخلکو خبرو ته به يې غوږ نيولی و . له دغه ځای څخه هوند Hund ته ولاړ او بيا له هوند څخه دمهابان Mahaban ترسيوري لاندې « سليم خان » ته ولاړ . دلته دی دهوند دخان په وژنه تورن شو . وايي چې دسيداحمد شاه بريلوي له خوايې پلان جوړ شوی و . ده داتور رد کړ او دخان له ويرې بيرته ديوسفزو وطن ته راستون شو . ددې لپاره چې ددښمن لاس ورونه رسيږي مردان ته نږدې گوجر گړهی ته ولاړ او له هغه ځای څخه هم تور ډير Torderh ته ولاړ چې اکوړي ته نږدې دختکو کلی دی . دی هرچيرې چې ولاړ خلک به وربانديې راټوليدل . دده تبسم اونرم طبعيت هميشه ددې سبب و چې خلک له ده سره مينه وکړي . خلکو ده ته زياته عقيده درلوده او دی يې بزرگ باله . امير دوست محمد خان چې دده په هکله واوريدل دسکانو پر ضد جگړه کې يې دبري لپاره له ده څخه دعا وغوښتله . خوکله چې سلطان بريالی شو ، دی ډير ناآرامه شو او هيچرې يې طاقت نه کيده . لومړی دملکنډ سم رانيزيو ( Sam Ranizai ) ته ولاړ او څومودة وروسته په لرسوات کې بټخيلې Batkhela ته ولاړ ، مگر دلته هم دسکانو دپوځ غوريگ ته نږدې و او بالاخره په سيدو Saidu کې يې په لوړو په غرونو کې

څه آرامتیا وموندله. دلته دسوات دسیند پر جنوبي غاړه په یوه ښکلې نقطه کې میشته شو. چې د «ایلم» له غرو څخه همدلته اوبه راتویږي او له سیند سره ګډیږي او وادۍ ته راتویږي. دلته دی آرام شو او دنهه نوي (۹۹) کالو په عمر مړ شو او دلته ښخ دی.

ده په سیدو کې له یوې یوسفزي ښځې سره واده وکړ چې د «نیکپي خیلو» له څانګې څخه ده. له دې ښځې څخه ده دوه زامن درلودل چې دسوات دننیو حاکمانو دکورنۍ د میانګلو پلرونه شمیرل کیږي. پخوا څو واره دې ته اشاره شوې وه چې په پښتني قبیلو کې کله چې پردۍ په واده کولو ورګډیږي نو دمیرمنې په کورنۍ او خلکو به ورګډیږي. دا بیخي غیر معمول ده چې یوسفزي دې پردیو ته خویندې یا لونې ورکړي. دعبدالغفور واده په نیکپي خیلو کې داثر ګندوي چې دده او لادونه به په پښتنې ټولنه کې منل کیږي.

په دې کې شک نه شته له هغه وخت څخه چې عبدالغفور سیدو ته راغلی و دسوات په یوسفزو کې ترټولو مخکې سړی و. دده صلاحیت او اتوریته مطلقه نه وه، مګر په یوسفزو کې ناحقه چاته اخوند هم نه وایي. لاتر اوسه دده په هکله خلک کیسې کوي. دی ډیر خوږ او ساده سړی و. دیوه چنار ترسیوري لاندې به یې وظیفه کوله او دالله تعالی ذکر به یې کاوه. یوسفزیو پر ده عقیده درلوده او دده په یاد کې یې دوینې بدل هم هیراوه. موږ به جنت ته دتا له برکته ځو، زما هر څه دتا د ساده توب مرهون دي.

داخوند پر قبر باندې زیارت جوړ شو او دخلکو لپاره دغه زیارت له پیر-بابا سره مشابه زیارت شو. ډیر خلک دده زیارت ته راځي، کله چې ژوندی و ده هر ډول قوت او قدرت درلود. هر لقب یې چې ځانته غوره کړی وای، خلکو منلو، ده پخپله داسې استشاره کړې وه چې سیداکبر شاه باید دسوات

«بادشاه» وای څکه چې له یوې خوا «سید» و او له بلې خواده دسکانو پر ضد جګړه کې پخپله برخه اخیستې وه.

دسوات په تاریخ کې ډیرې داسې نښې نښانې شته چې دبحران په وخت کې یې سید یا ملاد مشر په توګه مقرر کړی دی او داسلام ترنامه لاندې یې دقرآن کریم داحکامو په رڼا کې دجهاد لپاره تیاری نیولی او دجګړې د تامین لپاره یې عشر، زکوة اوصدقې غونډې کړې دي. تر ډیره وخته پورې اکبرشاه موقف درلود او خلکو ورته «پادشاه» وایه. دسیدانو ددغه لقب په ارتباط خاصه عقیده شته، سیدته داحترام لپاره پاچا وایي او دپاچا په شان یې احترام کیږي. دغه لقب لږ څه دامشکل را منځته کوي چې سړی پوه شي چې دسوات په سیمه کې دسیدموقف څه دی، مګر په دې کې هیڅ شک نه شته چې سیداکبر شاه دیوه لاربنود حاکم په توګه پیژندل شوی و. کله چې پر ۱۸۵۷ کال دی مړ شو. دده دزوی سید مبارک شاه په هکله مرکې وشوې چې بادشاه دې شي او که نه؟ داچې دپیربابا له کورنۍ څخه و اوترټولو څخه زیاته داحترام وړ کورنۍ وه. په ټوله سیمه کې له دوی څخه بله روحاني او عزتمنه کورنۍ نه وه، مګر له زیاتې مناقشې څخه وروسته داخوند پلویانود سید مبارک شاه مشرتوب ونه مانه مبارک شاه مرور شو او پنجتار ته ولاړ چې له سوابۍ آخوا پروت دی.

له دغه مرکز څخه ده زیات خلک راټول اودانګریزانو پر ضد یې پاڅون پیل کړا ود چامله Chamla قبیلې یې ترټولو دمخه پاڅون ته پورته کړې. داچې په دغه کال کې زیاتې ناآرامۍ نه وې دلیل یې داوچې اخوند نه پریښوول چې دسوات یوسفزي دې په پاڅون کې ورګډ شي.

پته دې نه وي چې له پاڅون څخه وروسته دیوسفزو په سیمه کې له سودم

Sudhum څخه ترا باسين پورې بې نظمي او ګډوډي ده . د ۱۸۵۸ په جولای او اګست کې د مجاهدينو ډلو د قبيلو د خلکو په مرسته تينګ مرکز په «نارنجي» کې جوړ کړ . «لاړښود» Guides قوتونه مجبور وو چې د دوی مخنيوی وکړي او وضعيت تر خپل کنترول لاندې راولي . وروسته پر همدې کال دمبارک شاه په مرکز ستيانه کې هم تر بريد لاندې راغی . د دې کار په نتيجه کې مجاهدين مجبور شول چې له خپل مرکز څخه ووځي او له ګاونډيو قبيلو سره تړون وشو چې مجاهدينو ته به ځای نه ورکوي . په دې جګړه کې سيد عمر شاه د سيد اکبر شاه ورور شهيد شو او زوی يې سيد مبارک شاه ټپي شو . دوی په ډيره ميړانه له خپل مورچل څخه دفاع کوله . سيد مبارک شاه له خپلو هندوستاني ملګرو سره يوه ځای ته ولاړ چې هلته ورتګ مشکل و . دغه ځای ملکا Malka نوميږي چې د مهابان غره په شمالي اوړه کې واقع دی او د چملې وادۍ ته ورلوېږي .

له دغه ميشت غالي څخه سيدانو خپل مجاهدين د جګړې لپاره تيار کړل او جګړې يې په داړه ييز شکل سره پيل کړې ، د سوابۍ او مردان په سرحد کې همېشه بې امنيتي موجوده وه . په دې وخت کې انګريزان دوی ته د سکانو په پرتله څه ناڅه قوي ښکاريدل . دوی کافران وو او په مناسبو فرصتو کې بايد پر دوی باندې حملې جاري وساتل شي . د ۱۸۶۳ کال په مني کې دولت پريکړه وکړه چې دا مرکز ړنګ کړي او د سيدانو فعاليت ته د پای ټکی کېږدي ، دوی فکر کاوه چې دا کار به د نورو احساسات ونه پاروي . د بونير قبيلې د انګريزانو د راتګ له وخته آرام خلک وو او د دوی روحاني مشر اخوند د «سيتانا» سيدانو سره ډيره لږ خواخوږي درلوده او له هندوستاني مريدانو سره يې هم جوړه نه وه ، مګر لکه چې وويل شول دا پريکړه د سودم د عجب خان

او عزيز خان له مشورې پرته شوې وه ، او ياداچې دوى فكر كاوه چې مور دحكومت په نظر كې نه يو . نتيجه يې د پيشګويې ور نه وه . يو دليل دا وچې « ملكا » د « امازيو » په سيمه كې واقع ده او د سودم خانان هم « امازي » دي كه څه هم بيل پراته دي خو ددوى ترمنځ خواخوږي وه او شته .

داسې پريكړه شوې وه چې بايد « چمله » ونيول شي ، د « چملې » دره شرقاً غرباً پرته ده او « ملكا » په چمله كې پرته ده . چمله د بونير جنوب ته موقعيت لري ، يو قوت د مردان له لوري دامبيلا د غاښي له خوا وظيفه دار شو او بل قوت وظيفه واخيسته چې د « توپي » Topi په ګاونډ كې ځاى پر ځاى شي . د سياسي ارزونې له مخې دا خبره ضروري نه وه بلل شوې چې د بونير او چملې خلك له خپل مقصد څخه خبر كړي چې د بريد استقامت او مرام افشانه شي . احتمالاً همدا كار د دې سبب شو چې عجب خان راوپاروي . عجب - خان بونير والو ته امرور كړ چې پرده پورته كړي او د انګريزانو پر ضد جګړې ته تيار شي .

ددې قواو قوماندان نيويل چمبر لين Nevile Chamberlain او دده سياسي افسر رينيل تيلر Reynell Taylor وچې د « ورور ګلوى » ټولنيز سازمان وروستي غړي وو .

امبيلا غاښي ته ديوې نالې له لارې څخه ورپورته كيږي چې نږدې شپږ ميله اوږدوالى لري چې په دې ناله كې او به له غتيو غټيو ډبرو سره ډغرې وهي او يوازې پلي كسان كولاى شي چې له دې څخه تير شي . شاتورې حيوانات هم په مشكل سره تيريدلاى شي او د بار حيواناتو لپاره بيخي مشكله لاره ده . داچې څو مره قوماندانانو دا لارخارلې او هيله يې ښكاره كړې ده چې غاښي ته به وخيږي شمير يې څرګندنه دي . لومړى كتار او قوت

داکتوبر پر ۲۰ مه نیټه سهار وختي نالې ته ورولوېد او غرمه بې له کوم مقاومت څخه کوتل ته ورسيد ، خو دڅارويو پورته کول ناممکن وو ، يوازې دمهماتوڅو قاطرې په شپه هملته وختې . له هغې شيبې څخه چې سرکتار نووټ او تروروستي سړي پورې تقريباً پوره اته څلويښت ساعته په دې ناله کې تيرشول . په دې وخت کې محرميت او باصقين له منځه تللی واو هرڅه ښه ښکاريدل . درابرتس په قول دنړۍ ترټولو مشکله موضع اشغال شوه . قرارگاه دکوتل په سرکې دنورو قوتونو په منځ کې ځای پر ځای شوه . يوې خوا ښي لوري ته جگه څوکه وه چې ورسته يې نوم کراگ پيکيټ Crag Pickit کيښودل شو او چپې خواته د « بازځاله » ( Eagle,s Nest ) څوکه وه . مخامخ دوسلو داورلپاره د چملې دوادۍ په استقامت مخه خلاصه وه . دادوه څوکې ښي اوچپ ته هسکې څوکې نه دي خو دپوستې لپاره پوره مساعدې دي او ښه سپر تشکيلوي . ترهغه چې داڅو کې په اختيار کې دي ټول قوت مصٔون دی .

په دې وخت کې خبره خپره شوه او قبايل په زرگونو زرگونو مخ په ټوليدو وو . دالومړی ځل ، ود اکبر له زمانې څخه را په ديخوا دومره مشکلې سيمې ته څوک نه وو ختلي او ديوسفزو پښتنو په وادۍ کې هيڅوک دومره پرمخ نه وو تللي ، مغول په « مالنډري » کې ټوټې ټوټې شوي وو . او « مالنډري » له « امبيلا » څخه يوازې څو ميله فاصله لري . درانيان او سکان تر دغو سيمو پورې نه وو راغلي . ډولونه ووهل شول او لښکرې ټولې شوې . اخوند په لومړي ځل را اوچت شو ، خو انگريزانو ورته وويل چې ددوی اراده دبونير خواته نه ده . بلکې دوی دچملې خواته ځي . سوات خو لا پر ځای پريږده ، مگر کله چې جنجالونه او جنگونه اوريده شول . دی هم جگړو ته داخل شو

اودسيدانو په سترګوکې يې کريډټ واخيست ، حال داچې دا کريډټ يوازې سيدانو دځان باله .

داجګړه ډيره اوږده شوه او معمولاً قبيلوي جګړې دومره نه اوږديږي . قبيلوي جنګيالي دومره خواړه ځان سره وړي چې يوازې څو ورځې دوام کوي ، بيا کوم لوژستيکي سيستم او يا داکمال کومه طريقه نه لري . نوځکه دوی ژر اوبه کيږي او ختميږي . په لومړي يرغل کې چې بری ونه مومي جذبات يې مړاوي کيږي او ناکاميږي ، مګر دلته په امبيلا کې تريوې مياشتې پورې هره ورځ دانګريزانو پر موضع ګانو باندې بريدونه کيدل او خونړۍ جګړې لا يوه بله مياشت هم اوږدې شوې . هغه څوک چې عسکري ادبي ليکنې لټوي نو ښه به داوي چې درابرتس Roberts او ينګ هزبنډ Younghusband کتابونه ولولي او دلته به دانګريزدجګړه ييز تاريخ بې شميره غښتلي قوماندانان ومومي ، « براون لو » Brown Low ، کيز Keyes ، نيوبل چمبرلين Ninivelle Chamber Lain ، ګاروک Garvock او رابرتس Roberts ديادونې وړدي ، خوښه شی چې ديادونې وړتکی دی هغه ددښمن دباتورۍ او زړه ورتوب جګړې دي . شپږزره کسيز منظم قوت دلته پر څوکه پروت و او دځان دخلاصون لپاره يې جګړه کوله او دقبيلوي جنګيالو له لاسه چاسرنه شو پورته کولی . پر کراګ پيکيټ Crag Picket اوبازځاله Eagle,e Nest باندې خونړۍ حملې وشوې . پر کراګ پيکيټ باندې يې ځلور واره بريد وکړ . درې واره يې ونيوله او درې واره مو بيرته ځينې ونيوله . ( ۹۰۰ ) تنه عسکر ووژل شول او قبيلوي ځوانان هم تر دوی لا ډير ووژل شول . نيو يل چمبرلين چې پر کراګ پيکيټ باندې يې دتعرض لارښوونه کوله سخت ټپي شو . کراګ پيکيټ ته

نن ورځ « قتل ګاه » وايي . دلته په زرګونو خلک له دواړو خواو څخه ووژل شول . رابرتس دقبيلوي ځوانانو زړه ورتيا او ميړانه ستايي او همدارنګه « ينګ هزبنډ » ددوی حوصله مندي او متانت ته ګوته نيسي ، له يوې خونړۍ جګړې څخه وروسته چې د « بازځاله » Eagle,s Nest ونيسي ، له قبايلو سره اوربند وشو چې هره خوا خپل مړي يوسي . په دې موقع هڅه وشوه چې له دوی سره خبرې ادامه وکړي . ددوی مشرانو د « نيويل چمبر لين » او « رينيل ټيلر » سياسي افسرانو سره آزادانه خبرې وکړې . زموږ دښمن په ډير احترام او ادب سره خبرې وکړې او په جرئت سره يې ويل چې دوی دخپلې آزادۍ لپاره تر آخري سلګۍ پورې جګړې ته دوام ورکوي . په دې کيسه کې وحشيانه ظلمونه او د مړو بې حرمته کول دځينو نورو جګړو په شان نه وو. حتی تو کې ټکالې هم کيدې رابرتس ليکي : قبايلي جنګياليو ته ژر ځرګنده شوه چې پښتانه او ګورکه ، دواړه ځومره کلک پهره داران او د پوستو ساتونکي وو ، نو دوی به پر هغو پښتنو ( دانګريزانو په اردو کې ) غږ کاوه ، چې بيرته وګرځي . دسرو پټکيو او خوليو والا رامخکې کړئ . ( سر و پټکيو والا سکان وو او خوليو والا انګريزان وو ) سکان او انګريزان که څه هم جنګيالي وو خو په غرو کې ښه نه شول ختلای .

شپږ اونۍ وروسته زموږ جنګي قوت تقويه شو او ددې قابليت يې پيدا کړ چې دچملې په وادۍ کې تعرض پيل کړي ، له دې وروسته دبونير قبيلې هم تسليم شوې . حکومت مجبور و چې تصميم ونيسي چې يا به قوي قوت جوړوي او يوويشت ميله وړاندې به ملکاله منځه وړي او يا به په شاکيږي او هرڅه به پلوي قبيلو ته پريږدي چې مخنيوی يې وکړي . وروستۍ پريکړه تائيد شوه . داقمار هم چندان په ګټه نه و . رابرتس له يوه ګروپ سره دسياسي

افسر رینیل تیلر د « لاربشود قوت » په مرسته د بونیر والو لښکر سره ولاړ چې « ملکا » ویجاړه وویني . دی په خپل کتاب کې کیسه کوي . څه چې زه وایم د کیسې هغه شکل دی چې د بونیر یوه خان راته کړې ده او هغه د دې جګړې د قهرمان له اولادو څخه وو . دا کیسه یې دیرش کاله مخکې راته کوله . د سوات او بونیر خلک د حکومت د قوتونو له اعلان څخه او همدارنګه د توري او میړانې له جګړې څخه خوشحاله وو . د مثال په توګه د قبایلو ژوبل او ټپیان په صحرایي روغتون کې تداوي کیدل او بیا به بیرته کورو ته استول کیدل . له بلې خوا دوی ته څرګنده شوه چې ډیره پښتانه په تیره بیا ختک ، یوسفزي او اپریدي د انګریزانو لپاره په وفادارۍ جنګیدل او خپلو افسرانو ته صادق وو او په جګړه کې ډیر تکړه جنګیدل ، د سکانو له جګړو سره دې جګړې بیخې توپیر درلود ، خو سره له دې چې دانوی قوت پوره غښتلی و خو دوی هوډ کړی و چې سوات او بونیر ته به دا قوتونه نه پریږدي چې رانوزي . د قبیلو خلکو بې حده زیات تلفات ورکړل او پخوایې کله داسې تلفات نه وولیدلي . د بونیر خانانو ته وویل شول چې تسلیم شي او د انګریزانو قوت ته لار ورکړي چې ملکا وځپي . په دې توګه به د بونیر خلکو ته مخ پاتې شي ، که چیرې مخالفت جاري وساتل شي انګریزان به یوه اردو راولي او حتی د بونیر او سوات د اشغال پریکړه به هم وکړي او د اکبر له زمانې څخه یانې درې سوه کاله وروسته به دا یوځل بیا د لوی قوت استعمال وي چې داسیمې په زور سره تسلیم او اشغال کړي .

اخوند د دې نظریې پلوي وچې سوله وشي او د جګړې او مقاومت له اوږدوالی څخه په دې ویره کې وچې سیمه به په زور ونیول شي او دایمي ازادي به موله لاسه ووځي . په دې کې شک نه شته چې اخوند دې ته هم اشاره

وکړه چې د ملکا ویجاړول به د سیتانا د سیدانو پر ستیژراتیت کړي او په ضمن کې به دده پر ستیژلوړشي . په دې کې هم شک نه وچې د زیارت کوونکو شمیرهم له سیدانو څخه داخوند خواته ورځ په ورځ زیاتیدونکی و او د بونیر پیر بابا زیارت ته تګ ورو ، ورو کمیده . پیر بابا د مبارک شاه او اکبر شاه نیکه و . د بونیر خانان دې ته اړ شول چې تسلیم شي او د انګریزانو کوچني قوت ته لاروکړي چې د ملکا مجاهدین له منځه یوسي . د « ډګر » زیدالله خان په مشرۍ ، داتړون عملي شو .

درابرتس او کمیشنر رینیل تیلر په شمول اوه کسه انګریزي منصبداران او د « لاربنود » قوت کوچنی ګروپ او د زید الله خان په مشرۍ د سوات او بونیر سل تنه ملکان د ملکا خواته وخوځیدل . « ډګر » د « باراندو » سیند پر غاړه یو مرکزي کلی دی . زید الله خان یو سپین ږیری خان و چې یو لاس او یوه سترګه یې په تیرو جګړو کې له لاسه ورکړي وو . ده هوډ کړی وچې د امعامله په سوله حل کړي . ملکا د امازي یوسفزو په سیمه کې پرته ده او د اټوله لارقهرجنو جنګیالیو نیولې وه او دې ډلې ته یې بدرد ویل ، مګر دادنده یې سر ته ورسوله . ده خلک داخوند په نامه له جګړې څخه منصرف کړل . ډیر لوی اور د کلي په منځ کې بل شو او لوګی یې اسمان ته خاته ، خلک راټول شول او ویل یې چې د انګریزډله باید ژوندۍ ونه وځي . دوی په لوړ آواز خبرې کولې او درینیل تیلر په شاوخوا راټول شوي او په قاروو ، مګر درینیل تیلر غلی ولاړ و . زیدالله په قار سره ټوپ کړ او د درینیل تیلر څنګ ته ودرید او خلکو ته یې غږوکړ چې آرام شئ ، یو شمیر په قار وو او د بونیر جرګه یې غندله چې د ملکا د ویجاړیدو پریکړه یې له انګریزانو سره کړې وه او انګریزان یې بیرته بې له مرګ ژوبلې بدرګه کول . دوی غوښتل چې پخپله وعده ودریږي او هرڅوک

چې جنګ غواړي نولومړی دې د بونیر له ټول متحد قوت سره جګړه وکړي ، خو په کلي اوپه لارو کې خلکو خنډونه اچول چې جګړه وشي ، خو بالاخره دا ډله راووتله او یوځل بیا یې امبیلا ولیدله .

دوزیر و او اپریدیو په منځ کې داسې تیرونه ( تیرول ) بیخي ممکن نه ده . هیڅ ځانګړی ملک اویاد ملکانو ډله به داسې هوډ ونه کړي او که هوډ وکړي هم ، هغه به عملي کیدونکی نه وي . یوسفزي او ختیک د مقصد او مرام په پوهیدو سره تینګ خلک دي ، که چیرې یوه معامله کې د پښتو د ننګ خبره نغښتې وي ، دوی پر هوډ دریږي ، دوی د باور وړ خلک دي . دا ښایسته انځوردی . سپین ږیری په یوه سترګه اویوه لاس خلکو ته کله اپیل کوي او کله امر کوي چې ده خبره کړې ده او لوز ( لفظ ) باید پر ځای شي ، دلوز د پر ځای کیدو لپاره یې هره خطره ښه لیده خو بیا هم له خبرې څخه نه تیریده .

دیرش یا څه زیات کلونه نور په تیریدو وو چې له سوات او بونیر څخه هم پرده پورته شوه .

# درويشتم څپرکی

## بلوچستان او د وړاندې کيدو پاليسي

دانگريزانو په حکومت پورې له تړل کيدو څخه تر ۱۹۰۱ پورې نږدې پنځوس کاله موده په دوو برخو کې مطالعه کوو: لومړۍ برخه له ۱۸٤۹ څخه بيا تردويم افغان - انگريز جنگ ۱۸۷۸ پورې او دويمه برخه له هماغې نيټې څخه بيا تر هغه وخت پورې چې سرحدي سيمې د کورزون د پلان له مخې له پنجاب څخه بيلې شوې . په عام ډول لومړي ديرش کاله د « تړلي سرحد پاليسي » Clore Border Policy ( « ۲۱ څپرکی ) دازميښت دوره ده . په دغه موده کې په مختلفو سيمو کې ډير نظامي حرکات ترسره شول خو عملاً دقبايلو سيمې اشغال شوې نه وې ، حتی ځينې برخې چا ليدلې هم نه وې. دا حيرانوونکې ده . دمثال په توگه تر ۱۸۹۵ پورې سوات ازاد پاتې شو او اروپايان هلته نه وو ورغلي ، همدارنگه بونير تر ۱۸۹۸ پورې د پردې شاته

و چانه ولیدلی . وروستي شل کاله د « تړلي سرحد پالیسي » د تطبیق کلونه دي .

پورتنۍ دوه دورې یو پر بل باندې سره اوړي . په نوې پالیسۍ کې لومړی قدم پر ۱۸۷۶ کال پورته شو . او دادنوي وایسرای ښاغلي لیټن Lyttin له راتګ څخه لږ موده د مخه او د افغان - انګریز له دویم جنګ څخه دوه کاله د مخه پیل شوه . دا پر مختګ د شمال غربي سرحد خواته نه بلکې له برسند څخه د بلوچستان خاورې ته پیل شو . ورپسې نورو بیلابیلو سیمو ته پر مختګ پیل شو او له افغانستان سره پر ۱۸۹۳ کال سرحد تعین شو . دا د صدراعظم دیزرایلي Disraeli عمومي پالیسي ده . دی پر ۱۸۷۶ کال صدراعظم مقرر شوی و . دده پالیسي داوه چې د روسیې په مقابل کې په مرکزي اسیا کې سترا تیژیکه دفاعي کرښه تشکلیه کړي .

موږ دلته له ټولې ستراتیژۍ سره علاقه نه لرو ، یوازې پر پښتنو باندې د هغې تاثیرات مطالعه کوو ، کله چې دا مطالعه کوو نو باید دا مو خیال کې وي چې د انګریزله یو بل سیاسي تفکر څخه دا د مشاهدې او منطق وړ پالیسي ده چې د دغو دواړو پالیسو ترمنځ څرګند بیلوالی موجود دی . د زاړه تړلي سرحد ټول شواهد د سرحد په اکثرو برخو کې لیدل کیدل چې داسې حال کې چې ډیر وخت د قبایلو په سیمو کې عملاً نظم او اداره دوه ګامه وړاندې اویو ګام شاته تله . پردې سربیره په وړاندې سیمو کې د کنترول تطبیق او د هغه حدود هم متفاوت وو .

دوست محمد خان پر ۱۸۶۳ کال مړ شوی و . دا دا مبیلا د ګړې کال و پر امارت باندې دعوی وه او شخړې روانې وې . دوست محمد خان خپل کشر زوی شیر علیخان ټاکلی و . شیرعلي له درانۍ میرمنې څخه پیدا شوی و .

ښايي په همدې علت د پلار پر مسند کښناست خو سره له دې شیرعلي پر ۱۸۶۹ کال پوراساسي ډول پاچا شو . د دغو نیتو ترمنځ لنډه موده کې افضل خان او اعظم خان مشران زامن وو خو له معتبرو مینډو څخه نه وو ، په کابل کې یې د قدرت لاس درلود . په دغه موده کې جان لارنس John Lawrence وایسراې و . ده دنه مداخلې پالیسي په کلکه رعایت کوله او د سرحد په داخلي چارو کې یې لاس نه واهه . په کابل کې د داخلي کورنۍ ګډوډۍ په وخت کې سرحد معمولاً ارام او بې مداخلې و . په هغو کلونو کې چې شیر علیخان قدرت ټینګاوه او د « مایو Mauo » او نارت بروک Northbrook د (۱۸۶۹-۱۸۷۶) دوایسرای توده دوره وه ، په سرحد کې ډیر کم بدلونونه وو خو د کابل ترمنځ د سیستان پر سرباندې مخالفت موجود و او شیر علیخان د دوی ادعا غیر عادلانه ګڼله او پر دې مسئله یې له انګریزانو سره زړه بدی پیدا شوه خو څه نور تحریک کوونکي حرکات د هند په سرحد کې د خپګان سبب شول . له هغې مودې څخه چې سند نیول شوی و د څلو ېښتمو کلونو په اوږدو کې د برسند سرحد ونو دومره جنجال نه درلود چې د هغو دساتنې لپاره دې د قبیلو د خانانو او ملکانو ( چې په شاوخوا لوړو کې اوسیدل ) مرسته جلب کړي . د سند د شمال سرحد ته لومړی د دیره غازي خان سیمه ده چې شګلنه اوږده ټوټه ده او د اباسین غرب ته موقعیت لري ، جنوب خواته « دامان » او دیره اسمعیل خان ادامه مومي او دا ټولې سیمې په پنجاب پورې تړلې دي او له لاهور څخه اداره کیدې . د دیره اسمعیل خان او دیره غازي خان توپیر دا و چې په دیره اسمعیل خان کې زیاتره پښتانه اوسیدل او د وزیرستان غرونه یې غرب ته پراته دي او د پښتني قبیلو مرکز دی . مګر د دیره غازي خان کې په عمومي ډول بلوڅ اوسیدل او غرب ته یې د تخت

سلیمان غرونه هم نیولي وو. بلوڅ نسبت وزیروته آرام خلک دي او په اسانۍ سره کراریدای شي.

دوی ښه وسلوال دي او همیشه خپلو ملکانو او مشرانو ته وفادارو او تعقیبوي یې. داوسله وال کسان « تومانداد » بولي. د ډیپوټي کمیشنر په دیره غازي خان کې له بلوڅو سره ان د سرحد آخوابنه اړیکي ټینګ کړي دي. لکه چې دده ورونو افسرانو په شمال کې له پښتنو سره اړیکي درلودل. تولو ان د « مري » او « بوګټي » په شمول چې په ګاونډ کې او سیدل د « کلات » له خان سره څه ناڅه اړیکي درلودل. دکلات نوم په ایران او افغانستان کې تولو ته ورمعلوم دی. دا دیوې کلا نوم دی چې اویا میله دکویټې جنوب ته په ۷۰۰۰ فټه لوړه کې جوړه شوې ده. که څه هم د ودونو له لارې دوی سره ګډ شوي دي خو دکلات خان اصلاً بلوڅ نه دی بلکې « براهوي » دی. په دې سیمه کې بلوڅ او براهوي بیخي سره ګډ شوي دي، خو دکلات زیاتره مشهور خانان په ختیه « براهوي » دي.

داسې نه ښکاري چې « براهوي » او « بلوڅ » له پښتنو سره کوم اړیکي نه لري نو ځکه دهغو څیړنه له بحث څخه دباندې ده. دبلوچستان له کلمې څخه څرګندیږي چې دا دبلوڅو خاوره ده خو په عمل کې بلوچستان دبیلابیلو قبیلو او قومونو ګډ کوردی.

د « شال » وادي چې دکلات شمال ته اویا میله لرې په ۵۰۰, ۵ فټه لوړوالي کې د « بولان » دغاښي پر سر پرته ده اصلاً دا تنیک ویش کرښه ده. ددې په مرکز کې دکویټې ښار پروت دی. دشمال خوا ته ټوله خاوره دپښتنو کمربند دی او زیاتره دپښتنو مشهور قبایل لکه ترین، اڅکزي، کاکړ. پاني او داسې نور دلته میشته دي. دکریټې جنوب ته ټول بلوڅ او براهوي پراته

دي. دا رښتيا ده چې بلوڅ او براهوي قبيلې ډيره پراخه سيمه دجنوب او غرب خواته له کويټې څخه بيا تر سمندر پورې اشغالوي او داسيمې اکثراً دښتې دي ، مگر پښتانه چې شمال او شمال ختيځ ته په لږه خاوره کې پراته دي نيمايي نفوس تشکيلوي او سيمه يې هم حاصل خيزه ده . په رښتينې ارزيابۍ سره دبلوچستان پښتني قبيلې دمحاسبې وړدي . ان ددوی شمير هم کم نه دی اوتقريباً نيم ميليون تنه کيږي ، يوازې اڅکزي يې دراني دي او نور پښتانه يې دومره متمدن نه دي .

نور دلايل هم شته چې مورږد بلوچستان ،افغان او پښتون بحث ته ورشاملوي . ناصر خان دکلات « دخانت » کورنۍ مشر ، داحمد شاه بابا (ددراني کورنۍ موسس ) ، ملگری و .« براهوي » ناصر خان د « مستونگ » او« کلات » خان داحمدشاه بابا دشا دروازې دکلکو لو لپاره ډير مهم خان و . ده داحمد شاه بابا شاته له کندهار څخه هند ته دارتباط او اتصال لارې اوکرښې تر نظر لاندې درلودې . دکلات خانانو پخپله يو ډول آزادي درلوده اود دراني پادشاه ترتامې اداري لاندې نه وو. کله چې دنادر شاه افشار له مړينې څخه وروسته دپارس امپراتوري ويشل کيده دوی فعاله ونډه وانه خيسته اوددوی ادعا هم داوريدونه وه . کلات له ډير پخوا څخه دکندهار يوه برخه ده . کله چې پر ۱۷٤۷ کال احمد شاه بابا په کندهار کې پر تخت کښيناست ، نو براهوي يې مجبور کړل چې بعيت وکړي او په دې توگه دده امپراتوري تر سمندر پورې اوږده شوه . هر کله به چې څه شک راپيدا شو نو ددوی دوفادارۍ دټينگو لو لپاره به احمد شاه بابا دپښتنو د« شال » سيمه چې کويټه يې مرکز دی هم دبلو څو تر اداري لاندې ورکوله . دکويټې دشاوخوا براهوي کورونه له هماغه څخه راپيل شوي دي .

دا موهم په یادوي چې د « تړلي سرحد پالیسي » دبمبي حکومت له خوا دبلوڅو او براهوي پر سرحد او د پنجاب له خوا دسند پر سرحد باندې نافذه وه ، خو دافغان - انگریز له لومړي جنگ څخه راپه دې خوا ډیرې سیمې وې چې داپالیسي هلته نه وه پلې شوې . زموږ منصبدار دشاه شجاع له قوت سره یو ځای دبرتانیې او د کمپنۍ دقوت په ملاتړ او لارښوونه له کویټې څخه د کابل او کندهار په نیت دبولان له غاښي څخه تیرشول . اټکینسن Atkinson په خپلو رنگینو تابلو گانو کې ددې سیمې منظرې منعکسوي ، دبولان په خوله کې د « دادور » Dadur کمپ د « شال » Shal وادي او د « کـوژک » Khojak له غاښي څخه دعسکرو تیریدل دلیدو وړ تابلوگانې دي .

پر ۱۸۷٦ کـال د « نارت بروک Northbroke وروستـی کـال و ، د دیزرائیلي حکومت نوی قدرت ترلاسه کړی و او د لیټن Lyton له مقرر- یدو څخه لږ موده دمخه ( دوایسرای په توگه ) دلیټن مقرریدل ) دهندوستان حکومت دبمبي او د پنجاب درقیبو حکومتونو دسرحد دکنټرول پر سر مناقشه او مخالفت تریحث لاندې نیوه . رابرت ساندیمن Robert Sandeman د پنجاب د کمیسیون منصبدار چې په دیره غازي خان کې یې زیاته تجربه ترلاسه کړې وه پیشنهاد کړی و چې د کلات له خان سره یو تړون وشي او دهغه پر اساس دې حکومت دده اتوریته ومني او په مقابل کې دې دشال په جلگه کې په کویټه کې قشله جوړه شي . پر دغه وړاندیز باندې یې زیات ټینگار کاوه. داوړاندیز ددواړو ولایاتو ترمنځ ترتاوده بحث لاندې و . د پنجاب ولایت اداري د « ساندیمن » ملاتړ کاوه او دبمبي اداري داتړوله معامله ردوله او ځانگړې جاه طلبي او خیال بافي یې گڼله . دبمبي حکومت ویل چې دسند سرحد دسوله ییزو شرایطو لپاره دایوه ناوړه معامله ده چې له گټې څخه یې

تاوان ډیر دی ، خو ساندیمن او دهند حکومت چې دساندیمن ملاتړی و ، دې معاملې ته په لاپراخ نظر کتل ، دوی دهند ددفاع په فکر کې وو . دوی غوښتل چې د کلات د خان په مرسته دلته دروسیې په مقابل کې یو کلک دفاعي مورچل جوړ کړي او دومره انتظار ونه باسي ، چې روس داباسین غاړې ته ورسیږي . په دې وخت کې تزاریانو دجنوب خوا ته زیات پرمختګ کړی و او ډیرې سیمې یې لاندې کړې وې ، دروسیې او ترکیې ترمنځ جګړه پیل کیدونکې وه او ماورای قفقاز تر تهدید لاندې و . خیوا ، بخارا او فرغانه یې نیولي وو . که چیرې دهند حکومت شمال غربي سرحد کلک نه کړي ، کابل او کندهار به دخیوا او بخارا په شان دروسانو له خوا ونیول شي .

له کلات سره مذاکرو د ۱۸۷٦ او ۱۸۷۷ په اوږدو کې دوام وکړ. بالاخره ساندیمن خپل هدف ته ورسید. دموافقې له مخې کویټه او شاوخوا سیمې دبولان غاښي په شمول دبرتانیې له خوا په اجاره واخیستل شوې . داسیمې دکلات په حکومت پورې مربوطې وې خو دهغه اداره له محلي دود سره سم دکلکتې له خوا کیده .

دبرتانیې دحکومت او هند یو قوت په کویټه کې میشته شو او ساندیمن دکویټې لومړنی اوسیدونکی و . په دې کې شک نه شته چې دکابل دفاع له دغه ځای څخه ممکنه نه وه ، خو داحمد شاه بابا له زمانې څخه دکلات کویټې او کندهار لویې لارې ارزښت درلود . په کویټه کې دانګریزانو دقوت ځای پر ځای کیدل امیر شیر علي ته تشویش ورواچاوه او پر دې کاریاندې ډیر په قار شو. دشال منطقې نیول ده ته تر سیستان هم زیات اهمیت درلود . ده پریکړه وکړه چې له روسانو سره معامله وکړي او په نتیجه کې دافغان - انګریز د دوهم جنګ سبب شو .

پر ۱۸۷۸ کال امیر شیر علیخان یو روسی هیئت په کابل کې خپل حضور ته ومانه او دانگریزهیئت ته یې دراتلو اجازه ورنه کړه چې دخیبر درې له لارې افغانستان ته ورننوځي . دهیئت مشر نیویل چمبرلین واو کیوناری Cavagnari یې سیاسي افسر و. نیویل چمبرلین همغه دامبیلا دجګړې قوماندان و . دی د « علي مسجد » له زیارت څخه لاندې په چمن کې ودرول شو او افغان قوماندان فیض محمد خان په ډېر احترام خو په ډېره جدي توګه دده ممانعت وکړ او ورته ویې ویل چې که چیرې له کیوناري سره ځانګړې اشنایي نه وای نو دربانديې مې ډزې کولې . بالاخره دهمدې مخالفت په نتیجه کې افغان - انګریز دویم جنګ پیل شو .

دافغان - انګریز دویم جنګ جریان دلومړي جنګ په شان زموږ له موضوع څخه دباندې دی ، له تفصیلاتو څخه یې صرف نظر کوو او موږ ته دابې ارزښته دي چې څه ډول کیوناری او « لاربسود » قوتونه په کابل کې ووژل شول او یا درابرتس جګړه دپیواړ په کوتل کې ، چاراسیا اونورو ځایو کې په څه ډول پرمخ ولاړه او بالاخره په دې منتج شول چې دامیر شیر علیخان وراره عبدالرحمن امیر شي . امیر عبدالرحمن خان دپرمختللو پالیسیو په جریان کې نوی یادیږي . داهم رښتیا ده چې ځمکنۍ ضایعه داده چې افغان قوتونه له خیبر او کورمې څخه وشړل شول او دبلوچستان په مقایسه داډیرې کوچنۍ نقطې ګڼل کیږي .

دبولان او کویټې اشغال ترجګړې د مخه و ، مګر ساندیمن لاهم په داسې اراضي کې بند پاتې و چې شاوخوا یې ددراني حاکمیت و . دخیبر او کورمې په استقامت دیرغلونو دبري اودشیر علیخان دتبعید په نتیجه کې دده له زوی محمد یعقوب خان سره دګندمک تړون امضا شو . ( ۱۸۷۹ ) . نه یوازې

يې خيبر او كورمه انگريزانو ته ورپرېښودل ، بلكې « پښين ، سيبې او لورالي (بورې ) » چې د پښتنو سيمې دي هم انگريزانو ته ورپرې ښودې ، چې داسيمې د كويټې ختيځ او شمال ته پرتې دي . دغو ضايعاتو سرحد د كوږك Kojak دغرو د پاسه پښين ته راورساوه چې يوازې له كندهار څخه لنډه مسافه لري او د لسو كلونو په موده كې د اوسپنې پلنه پټلۍ (Broadgauge) ترچمن پورې وغزول شوه او په غرونو كې تونلونه ورته جوړ شول ، نو دانوې پاليسي په بلوچستان كې وزيږيدله.

مگر د بلوچستان او شمال غربي سرحدي سيمو كې عرضاً ارتباطات لاهم موجود نه وو. مخكې له دې څخه چې سانډيمن تبديل شي ، داتيا ييزې په اوږدو كې له كويټې څخه مخ په وړاندې ولاړ او له « پښين » څخه د « ږوب » وادۍ ته ورغی او په يوه ځاى كې يې چې « اپوزي » نوميږي قرارگاه پيل كړه او نن يې « فورټ سانډيمن » بولي . دژوب سيند د گومل د سيند يوه څانگه ده او دا دده يوه بله هيله وه چې د گومل غاښې هم پرانيزي . دغلجيو كاروانونه به له هغه څخه تيريدل او د پورتنيو سيمو لپاره ښه كوريدور و . ددې امكان يې درلود چې شمال غربي سيمې له بلوچستان سره وتړي او د ملتان له لارې به د شاارتباطي كرښې ټينگې او ډاډمنې كړي . دا پروژه هم لومړی د مكاولې Macauilay خوب او خيال و چې له ديره اسمعيل خان څخه پر ۱۸۷۸ كال گومل ته تللی و . مكاولي كه څه هم د سرحد په موظفو صاحبمنصبانو كې ډير ممتاز سړی و ، مگر ده پوره حمايه تر لاسه نه كړه او پروژه يې عملي نه شوه . دده مفكوره او س د رابرټ سانډيمن له خوا په كلكه تعقيبيدله او بيا دده يوه شاگرد « بروس » Bruce دامفكوره ژوندۍ وساتله ځكه چې دی پر دې قانع شوی و چې سانډيمن چې څه په بلوچستان كې وكړل ،كيداى شي چې په

وزیرستان کې هم عملي شي او په دې وخت کې دی وزیرستان ته په تبدیلۍ راغلی و .پر ۱۸۸۹ کال لانزډاون Lansdowne وایسرای و او ده ته په دې هکله قناعت ورکړ شوی و نوځکه ده عملاً اقدام وکړ . د گومل دقبېر لپاره تخصیص ترلاسه شو او پر ۱۸۹۰ کال په اپوزیو کې د ټولو قبیلو لپاره یوه لویه جرگه د ساندیمن له خوا جوړه شوه او « بروس » هم په کې موجود و . قبیلې پیسو اخیستلو ته خوشاله وې او هرڅه په ښه وجه پر مخ ولاړل . یوه لحظه داسې ښکاریده چې د ساندیمن بریالیتوب به په شمال کې هم په بیړې سره پرمخ ولاړ شي ، خو داسې نه وه . دوزیرستان قبایل د کویټې د قبایلو په شان نه وو ، دوزیرو قانع کول ډیر گران کاردی . دوزیر و کیسه به په بیل څپرکي کې وگورو ، دلته به دو مره ووایو چې گومل غابنې هیڅکله خلاص نه شو ان نن هم تړلی دی . د« ساندیمن سیستم » په نوم دغه میتود شهرت وموند او نورو هم غوښتل چې د ساندیمن په څیر دشمال غربي سرحد په اوږدو کې هم ورته کارونه ترسره کړي . ددې سیستم په تطبیق سره به د تاریخ مخ بدل شوی وای .

« ساندیمن سیستم » داوچې په کلات کې یې د مرکزي نقطې په شکل قوت ځای پر ځای کړ او لرې پرتو سیمو کې یې هم کلیدي ځایونه اشغال کړل ، ر دهر ډول هوا لپاره مساعدو لارو او سړکونو په واسطه یې له مرکز سره وتړل او د کلیو او خلکو په چارو کې یې مداخله نه کوله ، هر څه د خانانو او ملکانو په وسیله تر سره کیدل . له ملکانو څخه داهم غوښتل کیدل چې د حکومت امدادونه او مالي مرستې خلکو ته ورسوي او دوی باید ځانونه د حکومت استازي او د خپلو قبیلو د خلکو خدمتگاران وبولي . په چاونیو کې چې قوتونه ځای پر ځای وو ، دکانونه هم موجود وو ، چې اکثر دکانداران هندوان وو. نظم او اداره تر یوې اندازې پورې وه . په نورو ځایو کې دولتي نظم نه و.

د پولیسو اداري او محکمې موجودې نه وې . په بل عبارت غیر مستقیم حاکمیت موجود و . گمرکي چارې د پولیټیکل ایجنټ له خوا د جرګې له لارې سمیدې . د سرحدي جرایمو قانون د جرګو له لارې د تطبیق ور وو او په دې هکله مجکې بیان شوی دی . د دې سیستم د ملکانو او خانانو رول ته اهمیت ورکړی و . که له دوی سره زور زیاتی کیده . د قوت په زور ورسره مرسته کیده . د قوتونو د شتوالي او د ملکانو له ملاتړ پرته د « ساندیمن سیستم » بې مفهومه میتود و .

پخوا مې هم ویلي دي د سرحدي جرایمو قانون چې د پښتنو له دود سره سم په قبایلو کې تطبیقیږي ، نه یوازې د قانون ځای نیوونکی دی ، بلکې تر یوه حده پورې پخپله د قبیلو د خلکو په ماغزو کې هم ځای نیسي او پر مفکوره باندې یې تدریجي اثر کوي . البته د دولت غوښتنې د هماغې ځانګړې ټولنې له سایکولوژۍ سره عیاریږي . خو پر ۱۸٤۹ کال چې شمال غربي سرحد ونیول شو دا مفکوره نه وه عملي شوې او برعکس منظم او عام قوانین ورباندې تحمیل شوي وو . نظر دادی چې کوم اصلونه چې پر ۱۸۸۰ کال په بلوچستان کې تجربه شول باید د شمال غربي سرحد په ځینو میشته سیمو کې هم دیرش کاله وروسته تجربه شوي وای ځکه چې منظمې اداري جوړول د یوه پردي حکومت له خوا غیر عملي کارو او ولیدل شول چې نتیجه یې هم موثره نه وه . سره له دې چې دا هم ریښتیا ده که څه هم منظم قوانین او مقررات د غوښتنې وړ وو خو بیا هم محکمې ، دایرې او د پولیسو آمریتونه نه وو جوړ شوي او د جرګې په شکل تطبیقدل ، البته د دولتي دوایرو جوړول له امکان څخه وتلې خبره وه . د شمال غربي سرحد د دواړو غاړو ترمنځ توپیر د زیاترو مشکلاتو رینبه ګنل کیده .

د ساندېمن د دعوې وکيل به هرو مرو د دې ټکي تاييد وکړي ، مګر دا هڅه به هم شوې وي چې د بلوچستان له تجربو څخه ګټه واخيستل شي او هغه پرنسيپونه د شمال غربي سرحد آخوا عملي شي که چيرې قبيلوي وفاداري د مربوط حاکم تر اداري لاندې د تجزيې او بې اتفاقۍ خواته لاړه نه شي . که قاطع وويل شي دا تجربه پر کورمه او ملکنډ وازمويل شوه او همدا اوس ليدل کېږي چيرته چې د تطبيق وړ نه وه هلته نه ده عملي شوې ځکه چې د هرې سيمې شرايط فرق کوي.

ساندېمن داسې سيمې ته مرش وکړ چې صحرا ده او هلته څرک نه شته ، دا صحرا بايد سړی په سترګو ووينې چې باور وکړي ، د پښنور سيمه يوازې (مخکې له دې څخه چې مردان بيل شي ). دومره نفوس لري چې په ټول بلوچستان کې تر مومندو پورې دومره خلک نه اوسيږي او دا سيمه يوازې يوه - ديرشمه برخه کيږي . که دې ته ګوته نيول کيږي چې ښاري سيمه بايد ورسره مقايسه نه شي ، نو کولای شو چې تيرا او وزيرستان ورسره مقايسه کړو . تيرا يا وزيرستان هر يو بيل بيل له ټول بلوچستان څخه ډير نفوس لري . ساندېمن يوازې له براهوي او بلوڅو سره سروکار درلود چې دا هم د دوی د مشرانو له لارې و. دوی خپلو مشرانو ته ډير زيات احترام کوي ، خو کله چې له پښتنو سره مخامخ کيده ، داسې پوره بريالی نه و. خو ده ويلي وو چې ځينې پښتانه لکه کاکړ چې له بلوڅو سره ګاونډي دي د بلوڅو او براهوي خوی او بوی لري او له دوی سره جنجالونه نه شته . همدا رنګه په لرژوب کې مندوخيل د دوی د شمالي برخې ورونو غوندې جګړه مار نه دي ، دا خلک له اپريديو او مسعودو سره پوره توپير لري . د ساندېمن سليټ بيخي پاک و او کولای يې شول چې د خپل زړه خبرې ورباندې ليکي ، خو پر هغه تخته باندې چې موږ له يوسفزو ،

مومندو او وزیر و سره لیکنې وربانديکولې ډیرې کېږې وړې کړښې وربانديايستل شوې وې. په یوه شپه د ټولو کړو وړو کړښو سمول او پاکول ممکن نهوو. ساندیمن کولای شول چې خپل سیستم په ټول ولایت کې عملي کړي. ديدې ته اړ نه و چې له دوو بیلا بیلو ټولنو سره چې یوه اتینکي ختیه لري، بیلا بیلچلند وکړي. ده خاص مشکل نه درلود. په شمال غربي سرحد کې دیوې ختېدوو ټولنو سره دوه ډوله قوانین او مقررات داداري او قبیلو یت په حسابتطبیق کیدل.

په کویته کې ساندیمن د شهرت خاوند شو. دده شهرت دومره ډراماتیکاو رنګه نه و، خو بیا هم د شمال غربي سرحد د پیاوړو سپین روبو په شان دی همیو سپین روبی (Paladin) حسابیدای شي. دی هم یقیناً چې یو پاینییر(Pioneer) وچې تخیل او عمل سره یې کارکاوه او ډیر مناسب او داوړدېمودې مولد و. رابرتس په خپله د پوره شهرت خاوند و خو دومره چانه یاداوه،ده هغه وخت زیات نوم وګاټه چې د نیکلسن ترسیوري لاندې راغی. رابرتسد ساندیمن په هکله وایي چې دی پر اوضاع باندې پوره حاکم و. زیاتمعلومات یې درلودل او د خپلې اتورتیې او اثر له مخې یې زیاته پیژندګلويترلاسه کړه او مشران یې ټول په ځان راغونډ کړي وو. داسې کلی او بانډه نه وهچې دی، نه و، ورغلی. دده نوم اوس هم یادیږي او د خلکو پر خوله یې نومناست دی. خو بیاهم د ابټ Abbott په شان په زړه سوي او مهربانۍ سره نهیادیږي. دده د آزموینې وخت دومره د تکلیف او مشکلاتو وخت نه ولکه چې د« وروړګلوۍ » ټولنیز سازمان سپین روبي له مشکلاتو سره مخامخ وو،محلي حالات او شرایط دده په ګټه وو او دی یې بریالیتوب ته ورساوه.

که چیرې د ساندیمن پر سیستم باندې انتقاد موجود وي، دلیل به یې داوي

چې دہ دخلکو پہ ژوندکې کوم خاص نوی بدلون رانہ ووست او ددہ فعالیت بیخي ځای پر ځای پاتې واو پر ۱۸۸۰ کال ژوندانہ هماغسې لہ مثب بدلون پرتہ دوام درلود.

د ۱۹۵۰ کال بلوچستان تقریباً او یا کالو لہ دمخہ بلوچستان سرہ هیڅ توپیر نہ درلود. دسادہ قبیلویت مفکورہ پہ بلوچستان کې منل شوې وہ ټول پر دې قانع وو اودبدلون دراوستلو لپارہ یې بریالیتوب پہ برخہ نہ شو. دکویټې دنظامي ارکانحربۍ کالج، غونډونہ، او داوسپنې دپټلۍ سټیشن دقبیلویت دژوندانہ لہ ساحې څخہ دباندې دي او لہ قبیلوي ژوندسرہ مداخلہ نہ کوي، پہ کلي کې ژوند او تفکر دانګریزانو داویا کلن شتوالي سرہ سرہ بدلون نہ دی کړی.

پہ نورو ځایونو کې انګریزان ادعا کولای شي چې دہ ډیرہ بلہ کړہ او ټولو تہ یې چلینج ورکړ. سپرغۍ یې همیشہ پہ لمبو بدلہ شوې دہ، خوڅہ؟ او رڼا او تودوخہ ورکوي او ژوندی دی، مګر دی نہ شتہ، پہ بلوچستان کې زمونږ استازو تہ ډیر څہ پاتې شوي دي چې ترسرہ یې کړي.

د «وړاندې کیدو پالیسي» پہ بلوچستان کې دافغان - انګریز ددویم جنګ نتیجہ وہ چې لہ هغې سرہ جوخت خیبر درہ دایمي ونیول شوہ او افغانان دکورمې لہ درې څخہ دایمي بیل شول. (کورمہ پہ دې موقع نہ وہ اشغال شوې او ډیر کلونہ وروستہ ونیول شوہ). تردغہ پورې دخیبر درې دټولو قبایلو روابط دډیپوټي کمیشنر لہ خوا د ډیمګرۍ پہ واسطہ ساتل کیدل. دخیبر غرونہ ډیر ګران او مهم وو او لہ هغو سرہ پہ زړو کړښو معاملہ کول بې نتیجې وو او پریکړہ شوې وہ چې خاص شخصیت بہ دا مسؤلیت پر غاړہ اخلي او ددې لپارہ رابرټ واربرټن Robert warbarton انتخاب شوی

و . واربرټن د يوې پښتنې ښځې زوی و او مخکې مو د ده په هکله خبرې کړې دي . ده د کيوناري ترلاس لاندې د يوسفزو په سرحد کې زده کړې وه او هلته د درېمګړي سړي سيستم د شک په سترګه کتل کيده او د اسيستم يې وغانده . د عجب خان د فعاليتونو په هکله مو له ده څخه واوريدل چې د بونير له قبايلو سره يې څه کول او په خيبر کې يې له هغه څخه ښه ګټه واخيسته له خپل تقاعد څخه تقريباً شل کاله وروسته ده په خپل کتاب کې « د سرحد پښتانه » په هکله ليکلي دي . ده د پښتنو قبيلو د اصلي او حقيقي خصوصياتو په هکله ليکلي دي ، د دوی د ښې وفاغړي او د سړي د حساسيت په هکله يې ځيرنې کړې دي .

« واربرټن » پر دې بريالی شو چې غاښې په خپله خلاص کړي او د قبيلوي بدرګې په مرسته لويديزې برخې ته د تلو امکان پيدا شو . دی « ملاګوري » او « شلمان » سيمې ته هم ننووت چې د کابل سيند او د غاښې تر منځ پرته ده . همدارنګه د لواړګي تيوله سيمه يې هم وپلټله ، لنډي کوتل نن ورځ هم د لواړګي يوه برخه ده . دی هيڅکله بريالی نه شو چې د اپريديو تيرا ته ولاړ شي . يووار يې د ممنوعه سيمه له لوېې اردو سره وليدله « تيرا » څه ډول چې و هغسې د ی ، خپلو مرکزي سيمو « ميدان » ته يې تر اوسه پرديو ته اجازه نه ده ورکړې ، خو يوه ورځ به داهم پرانيستل شي . اپريدي يوازې د يرش ميله له پېښور څخه لرې دي ، شپږ زرو څخه تر اووزرو فټو په لوړوالي کې ژوند کوي او د سپين غر د هسکې څوکې چې په ننبترو پټې دي داوړي تيرو لو لپاره څومره ښايسته ځای دی . داتيول اپريدي د خپلې ښکلې سيمې « راج ګل » Rajgal ستاينه کوي او له کشميره يې ښايسته بولي ، داښايست به تل په پرده کې پټ پاتې نه شي .

واربرټن طالع من و چې د اسلم خان غونډې مرستيال يې درلود . اسلم خان

د محمد عثمان زوی و . محمد عثمان خان سدوزی د شاه شجاع وزیرو . اپریدي یې ښه پیژني او یادوي یې . په چورا Chora کې چې د « بازار » دوادي یوه برخه ده ، اپریدیو څو ځله ده ته پناه ورکړې وه . امیر دوست محمد خان کله چې بل ځلي پر ۱۸٤۳ کال قدرت ترلاسه کړ ، محمد عثمان خان یې له کابل څخه په زوره وشړه او پېښور ته راغی ، دلته ده او د ده زوی ته خلکو ډیر درانه کتل اسلم خان داسې موقف درلود چې اپریدیو ته د منلو وړ او د پلار په سترګه یې ده ته هم درانه کتل ، پخپله اسلم خان ښه شخصیت درلود او درونډ سړی و . دوار برتن تر مشرۍ لاندې یې قوت تشکیل کړ چې لومړی جزایلچي (یزایلچي ) Jazailchis او بیا د خیبر رایفل Khyher Rifles په نامه یادشول . زوړ سراسلم خان Old sir Aslam په هغو شپو ورځو کې په پېښور کې شهرت درلود او د پېښور په کلب کې یې انځور ځوړندو او تولو حریفانو ته یې د باز غوندې کتل . دی دوار برتن دویم ځان و او په ټولګي او ډلګی کې یې هم دویم ځلیدونکی شریک و .

په راتلونکو لسو کلونو کې څه پېښ نه شول خو د نوې لسیزي په جریان کې د پر مختیا حرکات له سره ونیول شول او د کورمې له کربښې څخه پیل شول . کورمې ته درسیدو په مقصد باید د میرانزو اوږده دره لنډه شي . داوادي د غرب خوا ته اوږدیږي له هنګو څخه ټل ته رسیږي . د میرانزو پر وادۍ باندې د « سمانې » لړۍ سپره ده او د هغې شا ته د « خانکې » وادي پرته ده چې « تیرا » ته ځي . پر ۱۸۹۱ کال د « سمانې » پر سر باندې کلاګانې جوړې شوې چې د میرانزو وادي وساتي او د شا له خوا یرغل ورباندې ونه شي . په راتلونکي کال کې پریکړه وشوه چې د ټل آخوادې قوت کورمې ته ننوځي . کورمه درابرتس له خوا د مختـه تللي بیز په شکل اشغال او استعمالیده او د

افغان - انگریز دویمه جگړه کې ورڅخه استفاده کیده . دی ډیره موده هلته اوسیده او د « شانوران » په کلي کې یې کورهم جوړ کړی و . ده توریو ته وعده ورکړې وه چې دوی به تل دیخوا ته پاتې شي ځکه چې پر ۱۸۷۹ کال یعقوب خان د گندمک په معاهده کې کورمه دوی ته ورپرې ایښې وه او « توري » په دې سیمه کې مهمه قبیله ده ،مگر د جگړې په پای کې په دې برخه کې قوت موجود نه و . توري د خپلو گاونډیو په مقابل کې د تیري له کبله تورن شوي وو او دغچ اخیستنې قرباني وو. توري شیعه گان دي او گاونډیان یې ټول سنیان دي ، ددوی ترمنځ اختلافونه لانور هم زیات شول ، بالاخره د توریانو خپله غوښتنه داوه چې داشغال پر ځای یوازینۍ لاره دافغان حکومت ته تسلیمي او متابعت و ، چې په دې صورت کې به یوه آزاده اداره وي چې دساندیمن سیستم ته به ورته وي ، چې ترنن پورې یې ښه نتیجه ورکړې او ټولې ډلې ورباندې قانع دي ، دده ویلي وو چې داکار به ترهغو ونه شي چې د کورمې سیند دسرچینې خوا ته سر چپه، شي .

داسې وخت راورسید چې « روس کیپیل » Roos -Keppel صحنې ته رانووت . دی داسې یولو بغاړی و چې ژر ترژره دستوري په شان وځلیده . لومړی د کورمې دملیشه اجو تانت (د پرسونل آمر ) اوبیا پولیټیکل ایجنت شو. ده داځرگنده کړه چې د کورمې سیند به سرچپه نه شي . ( دده مقصد داو چې کورمه به دافغانستان په حکومت پورې ونه تړل شي . )

داډول حرکات ددې سبب شول چې ددولت په سطح یو تاریخي اکت عملي شي او نتیجه یې دا شوه چې دډیورند Durand کرښه رامنځته شوه.امیر عبدالرحمن د پرمختگ پر حرکتونو باندې ډیر پرېښا نه شو . په تیره بیا چې د کوژک Khojak تونل جوړ شو ، داوسپنې پټلۍ دبلوچستان تر چمن پورې

رااوړده شوه او له بلند خيلو څخه يې دافغاني تانې ساتونکي وشړل او بيا ورپسې کورمه ونيول شوه . په دې هکله تر ټولو مستند سند پخپله دامير عبدالرحمن اتوبيوګرافي ده چې دډيورند ترمشرۍ لاندې هيئت سره يې دکتلو دلايل او دمذاکراتو وروستي نتايج څه وو ، ټول واضح کړي دي. دا لاندې اقتباس دامير عبدالرحمن ليکنه ده چې خپله بدګماني او پراکټيک مغز يې په کې منعکس کړي دي .

« سرمور تيمر ډيورند Sir Mor timer Durand د ۱۸۹۳ کال دسپتمبر پر ۱۹ مه نيټه له پېښور څخه کابل ته راغی . کابل ته په راتګ سره هيئت ته زما دجنرال غلام حيدر خان چرخي له خوا ښه راغلاست او هرکلی وويل شو او ما دخپل زوی حبيب الله خان استوګنځی ددوی لپاره استوګنځی وټاکه .

ددربار له معمولو تشريفاتو څخه وروسته موسملاسي دموضوع په هکله خبرې پيل کړې . ډيورند ډير زرنګ سياستمدار او په پارسي ژبه ښه پوهېده. ټولې مباحثې سمې وې . ددې لپاره چې دهيئت او زما خبرې ټکي په ټکي ثبت شي ،ما داسې زمينه برابره کړه چې ددربار ميرمنشي ( مير منشي سلطان محمدخان) ديوې پردې شاته کيني ، بې له دې چې وليدل شي او يا واوريدل شي هرڅه بايد وليکي که په انګريزي وي يا پارسي ، ده هره کلمه په شارت هند ( Short hand ) ( په خاصو اشارو سره داوږده مطلب ليکل په لنډ شکل سره ) سره ليکله . هرڅه چې زما له خولې ياد ډيورند له خولې راوتل هغه يې ليکل . دامحاوره ټوله په ارشيف کې موجوده ده . دمحاورې اومذاکرې لنډيز دا و چې دسرحد کرښه دموافقې مطابق دچترال او « باروګيل ( باروغيل ) غاښې » Baroghil Pass څخه ترپېښور پورې او بيا تر

« کوه ملک سیاه » ( ایران- افغانستان او بلوچستان ګډه پوله ) پورې اوږده شوه . په دې ترتیب واخان ، کافرستان ، اسمار ، دلعل پورې مومند ، یوه برخه وزیرستان ( برمل ) زما تر حاکمیت لاندې پاتې شول . زه د « نوي چمن دریل ستیشن » ، چاګۍ ، وزیرستان ، بلند خیل ، کورمې ، اپریدي ، باجوړ ، سوات ، بونیر ، دیر ، چلاس ، او چترال له حاکمیت څخه منصرف شوم .

هیئت د نومبر پر ۱٤ مه نیټه له کابل څخه لاړ او هرڅو مره موده چې هیئت په کابل کې و ، وخت یې په خوښۍ سره تیر کړ . څه شخړې او سوءتفاهمات چې د سرحد په هکله وو له یو د سره پای ته ورسیدل . پورتنۍ موافقه بیا د دواړو دولتو د کمیشنرانو له خوا لاسلیک شوه او زما هیواد ته عمومي سوله او آرامي راغله او زه الله پاک ته دعا کوم چې زما په هیواد کې سوله تل ترتله پاتې شي . »

له پورته متن څخه لوستونکي دې نتیجې ته رسیږي چې امیر عبدالرحمن په خپله معامله پوره قانع و ، د اچې د ډیورند نښه پارسي زده وه ، دامیر د خوښۍ سبب شوه او له وخت سره سم هرڅه سم وو .

د دې تړون متن او وروستۍ ملاتړ د نورو امیرانو له خوا د ضمیمې په شکل راغلي دي ، دا تړون د پښتونستان پر مسئله باندې بې تاثیره نه دی او د کابل حکومت مناقشه کوي کله چې پر ۱۹٤۷ کال انګریزانو قدرت انتقال کړ ، د ډیورند کرښه بین المللي سرحد نه شي کیدای ، دا منازعه به د دواړو حکومتونو د باندنیو چارو مسوولانو ته ورپریږدو . اوس دومره یادونه کوو چې پر ۱۸۹۳ کال د لومړي ځل لپاره دا ثابته شوه چې د افغانستان او برتانوي هند ترمنځ د پښتني قبایلو د کمرېند حدود د واړو خواو ته معلوم شول او تول اړونده خلک پر دې پوه شول . اوس نا معلومه ځمکه ترمنځ نه وه . دواړو خواو ته مسؤلیت

ثابت و او له دقت څخه يې کار اخيست . دا جوته ده چې دا کرښه له هند سره سرحد نه تشريح کوي ، مگر دومره وايي چې دامير حاکميت ترکوم ځای پورې دی او په دې توگه به د کرښې دباندې ديوبل په چارو کې مداخله نه وي . دا ځکه چې انگريزانو نه غوښتل چې د قبايلو اداره دوی ته ورپرېږدي ، دوی خپله اداره پراخوله او دامير صلاحيت يې د کرښې ختيځ او جنوب ته محدود کړ ، په بين المللي ډگر کې دافکتور د محاسبې ور نه و ځکه چې امير له کرښې څخه دباندې خپله اتوريته ملغی اعلان کړه .

دلته بايد وويل شي چې په نقشه کې يوه برخه ده چې نښاني شوې نه ده خو پريکړه ورباندې شوې ده چې داوبو د بهيدو او ماتيدو کرښه به د سرحد کرښه وي او دا د کونړ او باجوړ ترمنځ کرښه ده چې د مومندو له زمکې تيريږي او د خيبر په غربي برخه کې ختميږي ، په دې توگه د « بازار » وادي په لمن کې رانيسي سپين غره ته رسيږي او د غرب په استقامت تر « سيکارام » پورې غزيږي . د سپين غره په سيمه کې د کرښې ايستل بيا نه دي شوي خو د سپين غره څوکې ډيرې لوړې دي او پر هغو باندې شک نه پيدا کيږي . د خيبر غرب ته پاتې برخه پر ۱۹۱۹ کال اصلاح شوه ، خو د مومندو په سيمه کې مشکلات لا پاتې دي .

د مومند و په سيمه کې مشکل دا دی چې داوبو د راتوييدو کرښه او قبيلوي کرښې يو له بل سره هم اهنگي نه لري . د ډيورند کرښه داسې قبوله شوې وه چې د باجوړ او کونړ په شان به د کابل دريا خواته له غره څخه داوبو د راتوييدو کرښه سرحد وي . په دې توگه لعلپوره د افغانستان خواته پاتې شوه ( امير عبدالرحمن خان هم په دې شکل ويلي دي ) . او بيا په « شين پوخ » کې درياته رسيږي . ان دغه کرښې ټول « د گوشتې او کامې » مومند افغانستان

خاورې ته دننه پرېښودل ، پداسې حال کې چې زيات برمومند لکه « بايزي او خاويزي » هم له دوی سره تړلي وو او له پښور سره يې اړيکي نه درلودل او نه يې څه اخيستل . داقبيلې دهند خواته پاتې دي . په هر ترتيب چې وي بين المللي سرحدي کرښه خلک سره بيلوي او خامخا شخړې پيداکيږي .

څو کاله وروسته امير عبدالرحمن خان ته وړانديزو شو چې په دې سيمه کې کرښه تجديد شي او دمومندو خاوره ختيز خواته دده ته ورکول کيده ، که دده قبوله کړې وای برمومند به هم دافغانستان سيمه پاتې شوې وای . داوړانديز تر ۱۹٤۷ پورې پرانيستی پاتې و اود پښور له خوا هم کوم اقدام ونه شو چې له دغو قبيلو سره په تفاهم کې شي . څو وارې داسې پيښه شوه چې دامسئله دانګريزي حاکمانو لپاره دشرمندګۍ سبب شي . دوی مکلف وو چې دقبيلو منل شوې آزادي په نظر کې ونيسي او کولای يې نه شول چې وسله وال اقدام وکړي.

دپاکستان او افغانستان ترمنځ روغه جوړه ناکامه شوه او دافغانستان غږهم په دې هکله چاوانه وريده .

دوزيرستان په سيمه کې دسرحد کرښه پر ځمکه کې ايستل شوې وه ، خوخونړۍ جګړه هم رامنځته شوه . دې ته به بيا را شو او وزير ستان به ګوښې وڅيړو ، خو دومره يادونه ضروري ده چې دوزيرستان لپاره داسې اقدام وشو چې بايد له دننه خوا ( داخل څخه ) اواره شي « توچې » وانه » اشغال شول او دوه ايجنسۍ جوړې شوې چې نن هم ډيرې مهمې دي ،اودا جنوبي وزير ستان او شمالي وزيرستان دي .

پر ۱۸۹۵ کال ترټولو مهم پرمختګ دا وچې دملکنډ ايجنسي جوړه شوه او که په رسمي شکل يې ووايم د دير ، سوات او چترال ايجنسي جوړه شوه .

دډیرو ملحوظاتو له مخې دامهمه او عمده لاسته راوړنه وه . که څه هم د بلوچستان او کویټې په پرتله لږ خاوره وه خو هغو مره یې اهمیت درلود .

ځکه چې داسیمه ډیره غرنۍ او اوچته وه چې هلته تګ راتګ مشکل و . په اوسني پاکستان کې د سرحد په حساب د دې سیمې کنترول لاندې راوستل پامیر او لوړ آمو ته لاس غزول وو . په دې سیمه کې داسیا ډیر په یو شمیر زړه پورې خلک وو چې په ډیرو هسکو او لوړو سیمو کې اوسیدل چې ډیرې ښایسته منظرې لري . په دې کې د سوات ښکلې دره هم شامله ده . دادره د ملکنډ شمال ته غزیږي ، لوړوالی یې د سمندر له سطحې څخه له ۲۰۰۰ فټو څخه نه زیاتیږي ، اما چترال د دې په مقایسه ډیر لوړ خیږي او دهندوکش د غرویوه برخه ده . دهندوکش څوکه ۲۵۵۰۰ فټو ته رسیږي چې تیر یچمیر (Tirichmir) نومیږي . په منځ کې پردې پر دې غرونه او درې دي چې ځینې یې لغړ اوځینې یې په ځنګلو پټ دي اوافق یې سپینو واوروته رسیږي چې دانسان له باور څخه پورته خبره ده . له دغو واوروڅخه اوبه راتوییږي چې لاندې وادۍ او جلګې وربانديٍ اوبه کیږي . دا حیرانوونکې ده چې له ۱۸۹۵ څخه مخکې دالوړې سیمې یوه انګریز ته هم معلومې نه وې او نه چاليدلې وې . کلونه کلونه انسانان د یوسفزو په « سیمه » کې ښکته او پورته کیدل او د دغو غونډو خواته به یې کتل چې د یوه دیوال په شان پرده یې تشکیلوله . ان له ټولو څخه نږدې دسوات دره چې دجنت په شان ښکلې ده دچا د توجه وړ نه وه . ځکه چې دډیرو کوچنیو او ټیټو غرو په واسطه پناه وه . داهماغه غرونه اولوړې وې چې « بابر » هم په کې لالهانده و اوهلته یې بي بي مبارکه بیاموندله .

داوروستی پرمختګ په دوو دلیلو رامنځته شو . له یوې خوا په خپله

قبیلې د دې سبب شوې چې حکومت په عمل لاس پورې کړي او له بلې خوا دروسانو تحرکات د ختیځ او جنوب خوا ته مخ په زیاتیدو وو .

چترال په شمال کې دافغانانو ( پښتنو ) سیمه نه ده . داد کونړ پورتنۍ دره ده چې او به یې راښکته کیږي او د کابل له سیند سره د جلال آباد په شاو خوا کې یو ځای کیږي . کونړ په خپله شمال ته هسکیږي او یخوته رسیږي چې د باروګیل ( باروغیل ) په غاښي کې له روسیې څخه بیلیږي ، چې داد پامیر په لوړو کې « واخان » ته نږدې واقع دی ، داسیمه دلومړي ځل لپاره ویلیام لاک هارټ William Lickheart دګلګت له خوا څخه ولیدله او بیا انګریزي حکومت د هغې سیمې له حاکم امان الملک سره ښه اړیکي پیدا کړل . له ۱۸۹۲ څخه وروسته د تاج او تخت لپاره شخړې او کورنۍ جګړې شروع شوې .

پر ۱۸۹۵ کال د عمر اخان په مرسته ( عمراخان « د جاندول » د پښتنو خان و چې په باجوړ کې و او اصلاً داسیمه د د یر میراثي برخه وه ) . مخالفینو په عمل لاس پورې کړ او پر چترال باندې یې برید وکړ ، انګریزي او سیدونکی رابرتسن Robertson یې محاصره کړ . هغه له ګلګت څخه راغلی و چې د سیمې د وضعې په هکله سم راپور ولیکي او حکومت ته یې وړاندې کړي .

تر دغه وخته پورې له چترال سره اړیکي د ګلګت له خوا د ۱۲۰۰۰ فتیه لوړ « شاندر » غاښي له لارې ساتل کیدل ، په دې سیمه کې پښتانه نه شته . له هغې لنډې لارې څخه څوک خبر نه وو چې له ملکنډ څخه سوات ته ځي او له هغه ځای څخه د پنجکوړه سیند په اوږدو کې د یر ته رسیږي او بیا د ۱۰۰۰۰ فتیه لوړ د « لواړی » (Lowarai) غاښي له لارې چترال ته رسیږي .

« لواړی » غاښی د یوسفزو پښتنو سیمه ده چې انګریزان هلته نه وو ورغلي او یوازې د خلکو او راپورونو له مخې یې د دې لارې په هکله معلومات تر لاسه

کړي وو. دا مبیلا جګړې څرګنده کړه چې د غرو یوسفزي څومره خپه وو چې د دوی محرمیت له منځه ولاړ ، خو د چترال ژغورل حتمي وو ځکه چې روسان هم فرصت ته غلي و و ، نو دا ضروري وه چې ژر ترژره اقدام وشي. دا پریکړه وشوه چې په هر قیمت چې تمامیږي باید له دوو خواوڅخه پر چترال باندې یرغل وشي . اصلي قوت باید د ملکنډ او دیر له لارې چترال ته او فرعي قوت باید له ګلګت څخه د شمال له لارې چترال ته ننوځي . د ملکنډ له لارې د تقرب په مقابل کې کلک مقاومت موجود و او د غابني دنیولو لپاره جګړه توده وه. دلته « لاربنود » قوت او منظم غونډ ( وروسته ٥٤ م غونډ ) بری تر لاسه کړ . دوی لوړو څوکو ته وختل او حاکمې نقطې یې ونیولې . دلته لوړه څوکه د « لاربنود غونډی Guid Hill » په نامه باندې مسمې شوه چې نن هم په همدې نامه یادیږي . د اکبر دار دو قوماندان « زاین خان » له وخته وروسته بیا دا لومړی ځل و چې د جنوب له خوا د سوات ښکلې او شنې وادۍ ته قوت ننووت او بیا چکدرې ته ورسیدل چې زین خان او پیربل هلته کلونه د مخه د یرغل پلان جوړ اوه .

هر څومره چې پر مخ ولاړو ، نوي مشکلات پیدا شو ل. موږ مجبور وو چې د « دیر » له حکمران محمد شریف سره ملګر تیا ټینګه کړو ، ځکه چې د ملکنډ څخه د چترال تر سرحد پورې ټوله سیمه دده وه . په هغو ورځو کې د سوات ایالت عملاً موجود نه و . اخوند پر ۱۸۷۷ کال مړ شو او دده زامن هم څو کاله وروسته مړه شوي وو. د سوات داداري پر سر دده د څلورو لمسیو ترمنځ شخړې روانې وې او هریوه د روحاني مشرتوب دعوی کوله . دوی هریو د « میا ګل صاحب » په نامه یادیدل . د دیر په ایالت کې د پښتنو مشرانو په شان د خان او ملک کلمه نه شته او روحاني القاب هم مروج نه دي . دلته اداره

میراثي ده اومشربې څان د « دیرشهزاده » بولي . مشربې پاینده خیل دی اوپاینده خیل دملزي یوسفزو له څلوروڅانگو څخه یوه څانگه ده . نور اوسیدونکي هم دلته دشهزاده اتباع دي ، په دیر کې مشر دنهو نسلونو لپاره موجود و ، لومړی اسمعیل خان وچې دخوشال خان ختک معاصرو ، خوله ده څخه کشرو او له ده سره یې لیدلي وو.

وایي چې په دې لړ کې ترټولو قوي خلک قاسم خان او غزن خان دي . دقاسم خان په هکله الفنستون داسې لیکلي دي .« دقاسم خان ټول ولس ده ته وفادار دی او له ده څخه نه تیریږي . دی کولای شي چې خلک جبل ته واچوي، ویې وهي اوحتی مړه یې کړي .داخلي دښمنې یې له منځه وړې ده ،ښه پولیسان یې ټاکلي دي چې دده حکومت دخلکو دنفرت سبب نه شي او حتی یوسفزي اتباع یې مني . دپنجکوړې ټول فقیران په ده پورې تړلي دي او ده ته ټکس ورکوي مگر دی له خپلې قبیلې څخه مالیه نه اخلي . » غزن خان دقاسم خان زوی دی او دهغه په هکله راورټي لیکي چې غزن خان دمالیزیو مشر او داباسین آخوا تر ده بل قوي مشر نه و او په ترتیب سره بل سړی چې دگډو قبیلو په مشرتابه کې راڅي رحمت الله دی . دی هم ډیر قوي دی او همدارنگه روحاني او مذهبي لاربنود دی . دا موهم باید په یادوي چې پښتانه قبیلوي خلک مالیه نه ورکوي خو ددولت لپاره پوځ جوړوي . پر ۱۹٤۷او ۱۹٤۸ کال د « دیر » قوت په کشمیر کې په میړانه وجنگیده . ددوی مشر شاه جهان خان و . دوی یوازیني قبیلوي پښتانه وو چې کشمیر کې یې ښه نوم پرې ایښی دی . دوی زیات تلفات ولیدل او ډیر ځوانان یې شهیدان شول چې غونډۍ پرې ډکې دي او دکشمیر دشهیدانو په نامه یادیږي .

له لومړنیو جگړو څخه وروسته د « دیر » حکمران تسلیم شو او پوځ د

«لواړی » له لارې تیر شو او چترال یې وژغوره ، له هغه وخت څخه را په دیخوا د « دیر » حکمران په وفاداری، سره د تړون احترام ساتلی او شمال ته مهمه لویه لاره ساتي . ددې کار لپاره یې محلي ملیشه جوړه کړې او حکومت یې مصارف ورکوي.« دیر » دیوه ولایت په توګه دانګریزانو له خوا په تړون کې منل شوی و او په هرو دوو کالو کې یووار له دې لارې څخه دچترال منظم قوت تبدیل شوی دی . داوسنی پیړۍ په دیرشمو کې منظم قوت له چترال څخه وایستل شو او پر ځای یې محلي ملیشه جوړه شوه او چترال ساتي . مګر دچترال دلویې لارې اهمیت لا پر ځای دی اودهغې ساتنه دپخواني جوړ شوي « دیر » په ایالت پورې اړه لري . شاه جهان خان اوسنی ملک دیوسفزو دپخوانیو ملکانو پرشان دی او په خپله خبره ولاړ دی .

دملکنډ ایجنسي لومړنی افسر چې هلته یې مسوولیت پر غاړه واخیست هرالډډین Herald Deane وچې بیا وروسته پر ۱۹۰۱ کال دشمال غربي صوبې ( NWFP ) لوی کمیشنر مقرر شو . له لومړۍ مرحلې څخه داایجنسي ډیره مهمه ګڼل کیده او په همدې دلیل دمرکزي حکومت تر اداري لاندې وه . دغابني په دواړو غاړو کې د ملکنډ ایجنسي شاوخوا ، دسوات وادي تر « تانه » ( Tanra ) کلي پورې او د « پالی » دغرو په اوږدو کې تر سمې پورې ، چې یو وخت بابرهلته لالهانده و ، دآزادې ادارې په شکل ترکنترول لاندې ولکه بلوچستان او کورمه . لکه مخکې مې چې وویل : « دیر » دتړون له مخې ایالت و . مګر سوات د« تانې کلی » آخوا په دې وخت کې په ګرم حالت کې دقبیلوي سیستم په ولکه کې و . دباجوړ وادي چې د افغانستان د کونړ خواته په شمال غرب کې ده هښې په نامه په ایجنسی کې پاتې شوه ، مګر نه هغه وخت او نه اوس کوم جدي قدم پورته شوی دی چې

باجوړ د موثر حاکمیت تر کنترول لاندې راولي . هلته سړک نه شته او ترکومه ځایه چې زه معلومات لرم هلته انګریزي او پاکستاني منصبدارنه دي تللي ، یوازې پر ۱۸۷۹ کال هلته پوځ ننوتلی پورته شوی دی .

په دې ډول پنځه ایجنسۍ جوړې شوې چې لا تر اوسه شته ، له شمال څخه جنوب ته په دې ډول دي :

ملکنډ - خیبر - کورمه (کرم) - شمالي وزیرستان - جنوبي وزیرستان .

( وروسته پر ۱۹٤۷ کال د پاکستان حکومت د مومندو ایجنسي ورزیاته کړه چې ټولې ٦ شي . ) دا ایجنسي ټوله سیمه په غیږ کې نه نیسي ، ځینې مهمې قبیلې لکه اورکزي او بیټني چې د هزاره په سرحد کې ګاونډیتوب لري دولسوالیو د ډیپوټي کمیشنر تر اداري لاندې دي . د کوهاټ د غاښي د آدم خیلو اپریدي په مشترک ډول د پېښور او کوهاټ ډیپوټي کمیشنرۍ له خوا سمبالېږي . دا وروستۍ نمونه تقریباً پر ۱۸۹۵ کال پوره او عملي شوه .

دغو درو ته د پوځ ننوتلو د قبایلو لپاره تشویش راپیدا کړ . د ډیورند د کرښې ایستل او د هغو سیمو سیاسي او اداري ویش ، د پنځه ګونو ایجنسیو جوړول او بالاخره هرې خواته د پوځیانو ننه ایستل او د ټولو ستراتیژیکو ځایونو اشغالول چې په عین وخت کې ابادې او حاصل خیزې سیمې هم وې ، د قبیلوي خلکو لپاره د خپګان او بدبینۍ سبب هم شو ځکه چې دا د دوی د ازادۍ غصبول وو . رښتیا هم دا یو تیری او مداخله وه مګر دا قصدي مداخله نه وه . دا هر حرکت پر دولت باندې په اجباري شکل سره تحمیل شو او د تحمیلیدو عوامل یې یاداوو چې د قبیلو بغاوت او شخړې به د دې سبب شوې چې هلته پوځ ورشي او اداري بدلونونه راولي او یا دا چې د ځینو پردیو مداخلاتو د مخ نیوي په مقصد لښکر کشي ضرور شوې وه . هرڅه چې وي

هغه به وي ، مگر هغه څه چې دوی عام خطر باله ، قبایلو ورته یو ډول اتحاد په خپل منځ کې ترلاسه کړ ، حتی هغه وخت هم دبیلوالي او استقلالیت ددود له مخې خاصه شورا او واحده اداره نه وه او هروخت ددې خطرو چې په یوه سپرغۍ دصوبه سرحد ټولې قبایلي سیمې په لمبو کې وسوزي ، پر ۱۸۹۷او ۱۸۹۸ کال جنگ پیل شو.

د« برې توچې »د« مداخیلو وزیرو »د « میزار Maizar » په کلي کې پر ۱۸۹۷ کال دجون په میاشت کې دااوربل شو. پولیټیکل ایجنت دنظامي بدرگې په مرسته هلته ولاړ چې دپاتک لپاره ځای خوښ کړي. لومړی ددوی هرکلی وشو بیا ناڅاپه دوی باندې برید وشو: ټول افسران ووژل شول او څه یې ټپي شول ، مگر سربازانو یې ښه تکتیکي په شاتگ وکړ او ځانونه یې وژغورل ، چې دسرحد په تاریخ کې دا ډیرښه تکتیکي حرکت بلل شوی دی .
دوه اونۍ وروسته دملکنډ قبیلې جگې شوې او په زرگونو خلک دغاښي په شاوخوا او چکدره کې پر قشلو راوڅرخیدل . په اگست کې دا اور مومندرې ته ورسیده او پر شبقدر باندې یرغل وشو. دوه اونۍ بیا وروسته اپریدي او اورکزي په « تیرا » کې پاڅیدل ( واربرتن په رخصتۍ تللی و ) او دخیبر پوستې ماتې شوې . د« سمانې » پر کلا باندې هم برید وشو او قشله بیخي له منځه ولاړه او په یوه برخه کې یو نفر هم ژوندی پاتې نه شو. کورمه هم تهدید شوه . دجنوب خواته داورلمبې نېږدې وې چې اوږدې شي ، خو پر وخت یې مخنیوی وشو او دټولو سبب بې پراوایي وه چې له توچې څخه پیل شوه . هلته دمخنیوي په مقصد کنترولي فعالیت پیل شوی و او « تیرا » ته لانه وو رسیدلی او پرتو پوځونو د « توچې »او« تیرا » ترمنځ پرده تشکیله کړه او « مسعودو » ته هم موقع ورنه کړ شوه ، که څه هم د ۱۸۹٤ کال دیوه حرکت په

نتیجه کې یې زړونه ډک وو. « مسعود » چې تر ټولو جنګیالي او جنګ غوښتونکي خلک دي په دې توګه یې پر ۱۸۹۷ کال پاڅون ونه کړ.

عسکري عملیات په ډیره پراخه پیمانه وشول چې د سرحد په تاریخ کې یې ساری نه درلود. برسوات، باجوړ، بونیر، مومند او تیرا ټول داسې وپلټل شول چې یوه نقطه یې پاتې نه شوه او د ۱۸۹۸ په پسرلي کې بیرته سوله خپره شوه. کله چې تیرا ته ننوتل د سماني لړۍ په څنګ کې پر « درګۍ » باندې سخته جګړه وشوه چې کیسې او داستانونه ورڅخه جوړ شو یدي. د پښتنو خاورې د پټو درو ښایست او آبادي ټوله بربنډه شوه. خیبر ونیول شو. او « خیبر رایفلز » بیا ایجاد شو. د نویو سړکونو او عصري کلاګانو جوړول پیل شول. سرحد او سنۍ بڼه وایستله. دغو پرمختګونو او د پښتنو خاورو ته ننوتل د نویو پرابلمونو دراوچتیدو سبب شول. کورزون Curzon چې وایسرای و د سرحد د پرابلمو نو لپاره یې نوې لارې لټولې او دا ټوله سیمه یې له نوې زاویې څخه کتله. په نتیجه کې د صوبه سرحد NWFP ایالت وزیږیده. د ۱۸۶۰-۱۹۰۱ مودې تاریخ چې هرڅوک ولولي. د « ورورګلوۍ » د زمانې په مقایسه ډیر کم نومونه د تاریخ په پاڼو کې لیدل کیږي. په افغانستان کې امیر عبدالرحمن دی چې ډیر انضباطي او مستبد شخصیت و. په سرحدي پښتنو کې اخوند او اسلم خان د یادونې وړ دي. همدارنګه انګریزان هم محدود دي ولې ؟ د دې دلیل پیدا کول هم ګران کار دی او وخت هم ډیر ناآرامه و.

ډیورند ؟ نه ! هغه یو سیاسي مامور و او له جنرالانو سره یې یو ځای وظیفې اجرا کولې، پر ۱۸۷۹ کال دی له رابرتس سره په کابل کې و، خو ده پښتانه نه پیژندل. د ده نوم یوازې پر نقشه باندې موجود و. دی ډیر بریالی

ډيپلوماتو . ښه پارسي يې زده وه او شعر يې وايه . دختيځ فرانسوي يانې پارسي يې زده وه . ( پارسي دفرانسوي په شان مهمه وه ) . دی دسکرتريت سړی و . مکناټن ډوله سړی و او په خپل کار کې برياليی و . دی دلوړو سيمو علاقمند و او « سيمله » دده کور و .

د تکړه خلکو له جملې څخه سانډيمن يادولی شو . دی په محدوده صحنه کې و . دی وينه په جوش نه شي راوستلای ، په ډيره جاتو کې چې ډير پاتې شو ،او ډير ياديږي هغه مکاولي دي ، چې اوه لس کاله ډيپوټي کميشنر و . ده داوبو کانالونه جوړ کړل . دی په مسعودو کې په درنښت يادېده او خلکو « مکلي خان » باله . مکاولي ديوه مورخ او يوه قاضي خپل و . دده زياتره معلومات دهورا تيوس Horatius په کرښه کې وو او دهند دجزايي قوانينو په هکله يې دومره معلومات نه درلودل . دی ښايسته او لوړ سړی و . آبي سترګې او سره وينښتان يې درلودل . بل واربرټن واو هغه موږ پيژنو . بل سړی کيوناری Cavagnari دی . دواړه ديادولو وړ دي . مکاولي ډير کلونه په يوه وظيفه کې تير کړل . کيوناری ( کاواګناری ) ترلسو کالو زيات وخت په کوهاټ کې تير کړ . واربرټن نيم افغان و او کيوناری Cavagnari د «ادولف کيوناری » Adolfhe Cavagnari زوی و چې دناپيليون له جنرالانو څخه و او دده اصلي نوم پير لويس ناپليون Pierre Louis Na-polion اېښودل شوی و . دی هم تيپيک سړی و . په اته ديرش کلنۍ کې (۳۸ کلنۍ ) کې په کابل کې ووژل شو . په کوهاټ او په پېښور کې ياديږي . هميشه به پر آس سپور او په داړه مارانو پسې به ګرځيده او نه ستړی کيدونکی و . دده ښه يادګار هغه کور دی چې ده په کوهاټ کې جوړ کړی چې ښکلی ګنبدي جوړ شوی او پراخ انګړلري او دخپلو نيکه ګانو په شان يې

ارستو کراتیک ژوند پر مخ بیوه .

داخلک ولاړل او ظاهراً یې سرحد هماغسې پرېښود چې و او له سکانو ځخه یې نیولی و . د اوسپنې پټلۍ پېښور ته پر ۱۸۸۱ کال راورسېده او داټک پل هم جوړ شو . د باغونو ډک بازارونه او چاونۍ یې جوړې کړې . څو سړکونه یې هرې خواته اوږده کړل او کلاګانې یې آبادې کړې ، داوبو لګولو کانالونه یې وایستل چې پېښور نور هم آباد کړي . نور په کلیو کې هماغه پخوانی دوداو دستور له پیړیو پیړیو څخه پاتې شوی د ی نه یوازې دا چې درانې قصرونه ویجاړ شوي دي ، کلي او بازارونه اوس هم دالفنسټون د ۱۸۰۹ کال له تعریف سره پوره ورته والی لري .

# شلورويشتم څپرکی

## وزيرستان

زمـوږ دخـپـل دوران او د پښـتـنو دايالت لـه جـوړيدو نه دمـخـه ، د پيـړۍ وروستـي پړاو تـه رسيـدلي يو . کـه چيرې راتلونکې ښه او روښـانـه ښکاريده نو يوه شيبـه کـه يوې خواتـه پـه څنگ شـو او راتلونکې تـه ځير شـو ، انځور پوره تـه بريښي ، پـه دې توگـه موږ د دوو پيړيو او د بيـلابيـلو سيـسـتـمونو لـه خـاليگاه څخـه بايد تيـر شـو او هغـه تمايلات تر سيـوري لاندې راولو چې پـه تـوله صـحنه کې موثر او فعال دي .

د پښتنو زياتره کيسه د پښښور شاوخوا څرخيږي . يو دليل يې دادی چې پښښور د مقناطيس پـه شان ، باندينې د تيري کوونکو پـه توگـه او او سيدونکي د دفاع کوونکي پـه څير هميشـه ځان تـه راجذب کړي دي . د خيبر د غرونو د شرق

او غرب خواته د کابل سیند ترټولو لوی سیند دی چې د لمر لوېده له خوا راځي او د غرو په لمنو کې اباد ې ځمکې لري چې د هندوکش له غره څخه جنوب خواته پرتې دي . دا ځمکې د پېښور د درې له موقعیت څخه مستقیماً د کابل او پنجاب د لارو پر سرپرتې دي ، نه یوازې د خیبر لاره چې په جغرافیوي لحاظ مستقیمه او ترټولو سمه لاره ده تر نوولسې پیړۍ پورې دومره د چلښت لار نه وه . پېښور ته نورې ډیرې لارې هم ورځي چې له بازار ، گنداو ، باجوړ او سوات څخه تیرېږي او همدارنگه یوه پخوانۍ لار د بنگاشات Bnagashat لارده چې د کورمې له خوا د کوهاټ له لارې پېښور ته رسیږي . دا هم تقریباً د ځنگ لاره ده چې پېښور ته ننوځي په دې مسیر کې تقریباً ټولې هماغه قبیلې پرتې دي او ورته سیاسي پرابلمونه لري . وړاندې جنوب خواته د کورمې او گوملې د سیندونو تر منځ یوه بله سیمه ده چې بیخي بیل او بل ډول قبیلوي کمپلکس لري او دا دوزیرستان سیمه ده . وخت ناوخته ډیرو امپراتوریو دا ادعا کړې ده چې د سوات ، باجوړ او حتی تیرا غرنۍ قبیلې د خپل قلمرو برخه کړي . مغولو او درانیو ډیر قوتونه په کار واچول چې دا خلک تسلیم کړي ، لې شانته بریالیتوب یې تر لاسه کړ چې دهغې له مخې دبرې ادعا کوي ، مگر داسې طاقت به نه وي چې دوزیرستان دقبایلو داشغال دعوی وکړي .

لکه چې پوهیږو شمال شرقي پښتني قبیلې ددوی له ورونو جنوب غربي قبایلو څخه د کورمې د سیند او د میرانزو وادي په ذریعه له ټل څخه تر کوهاټ پورې بیلیږي ، ددې ک ښې په اوږدو او شمال ختیځ ته یې دزیړلې ( درندې ) لهجې غږونکي دي او په پښتو = پختو غږیږي او جنوب غرب خواته په پسته ( نرمه ) لهجه پښتو = پشتو خبرې کوي او اکثر سړي یې اوږدې ځنې پرېږدي . دشمال غربي سیمې ښاري مرکز پېښور دی او دجنوب غربي برخې

مرکز « بنو » دی او یا کله « ټانک » دی ، یوازې ختک دې کرښې په دواړو غاړو کې پراته دي او ددوی کلتور د استوګنې د سیمې تابع دی . جنوب غربي قبیلې په یو ډول طبیعي جغرافیوي کلا کې اوسیږي . راورټي او ځینې نور داسې عقیده لري چې پښتانه په شپاړسمه پیړۍ کې شمال خواته وخوځیدل او وایې چې د سلیمان غرونه د افغانانو اصلي کور دی . که چیرې د جنوب غربي قبیلو ځمکه په نقشه کې وکتل شي یو غیر منظم څلور کنجه شکل لري چې شا او خوا یې په غرونو تړلې ده او لوړې ژورې جلګې لري . دا اراضي د یوه بادبان په څیر ده چې دستنې ( پایې ) خوا یې د ختیځ خواته ده چې تقریباً شمالاً ، جنوباً له ټل یا هنګو څخه د تخت سلیما تر دیوال لاندې په دیره غازي خان کې تر فورت مونرو Fort Munro پورې رسیږي . شمال ته د بادبان لنډۍ خواده چې د کورمې د سیند کرښه ده ، د سپین غره له سیکارام څخه ټل ته اوږدیږي . د بادبان اوږده خوا د سلیمان د غرو لړۍ ده چې د ګردیز یا غزني او کندهار جلګو ته ورشیوه کیږي ، له سیکارام څخه پیل کیږي څه ناڅه ډیورند کرښه تعقیبوي ( البته خوست او برمل هم په کې شامل دي ) چمن او « توبا » ته رسیږي . د اغربي خوا لکه د بادبان باندینۍ څنډه د ستنې له اړخ څخه بیلیږي . د بادبان ستنه د جنوب خواته پراخوالی لري او له فورت مونرو څخه تر کویټې او چمن پورې رسیږي او هغه کرښه تعقیبوي چې پښتانه له بلوڅو څخه بیلوي . دا سیمه چې د غرو په واسطه ساتل کیږي او منځ کې یې داسې اراضي پرته ده چې د طبیعي کلا حیثیت لري . ددې څلور کنجه ځمکې جنوبي غاړه کې له خراسان څخه سند ته د کندهار او کویټې له لارې یوه لویه لار تیریږي چې د بولان له غاښې څخه اوړي . پر دغه لار همیشه پوځونه او تجارتي مالونه تللي دي . له دې لارې ژوب ، بوري Bori او ډکې Duki ته

هم ورتلای شئ ، مغول او درانیان هم هلته ننوتلي وو او هلته یې حکومت کاوه.

خوشمال ته قبایل د کورمې ، توچې او گوملې تر منځ په لوړو سیمو کې اوسیږي او تولې هڅې ناکامې شوې دي چې دوی تر کنترول لاندې راوستل شي او دا داسې چارمغز دی چې دوی یې نه شي ماتولای ، محمود غزنوي ښایي له دغو خلکو څخه لښکر جوړ کړې وي او چنگیز خان ، تیمور او ځینو نورو ښایي له ځنګ لارو څخه لښکر کشي کړې وي.

احمد شاه زیات شمیر قوت له همدې ځای څخه جوړ کړی و . انگریزانو په هره دره کې لښکرې ښکته پورته کړې ، سرکونه یې تیر کړل او کلا گانې یې جوړې کړې ، مگر له دغو خلکو څخه پر وسله تولولو او مستقیمې ادارې باندې هیڅکله بریالې نه شول او نه یې وکړای شول چې له دوی څخه مالیه واخلي . ددغې تاریخي زړه او مرکز وزیراستان دی چې مورږ دهغه په هکله اوس خبرې کول غواړو .

دختیځ خواته دباندې غرونو کې بیټني او سیږي او دشجرې له مخې دشیخ ببټني ( بیټ نیکه ) د زامنو د لړۍ او لادونه دي چې له بي بي متو څخه دمخه دي او په دې لحاظ له غلجیو سره گډیږي ، بیټني بخپله یوه کوچنۍ او دکرښې دموندلو قبیله ده . پاتې وزیرستان دکرلاني پښتنو تر تولو قوي « درویش خیل » وزیرو او مسعودو اشغال کړی دی . په پخوانیو زمانو کې دوی دومره شهرت نه درلود او مورخینو ورڅخه خبر نه وو . له سل کالو را دیخوا وپیژندل شول چې دوی دسرحد خورا توریالي او جنگیالي خلک دي . دوی تول کرلاني دي او زمورږ دکلاس بندۍ له مخې دوی افغانان نه ، بلکې خالص پښتانه دي ، داسې یوه کمزوري پخوانۍ کیسه شته چې کرلاني

د ترکستان له میمنې څخه راغلي دي ، خو دا تیوري د نورو تیوریو په شان چې د پښتنو د اصل په هکله موجودې دي یوه ضعیفه تیوري ده او اعتبار نه لري .
دا چې کرلاڼي دي او د غرو ټول خلک دلته کرلاڼي دي ، داسې ښیي چې خالص او تر ټولو لرغوني پښتانه همدا دوی دي چې په غرنیو سیمو کې اوسیږي .
دوزیرو او مسعودو دنیکونو تر منځ نسبي اړیکي شته ، مګر زموږ د بحث له مخې مسعود بیخي بیل خلک دي . دوی د وزیرستان د غرونو په مرکزي برخه کې ژوند کوي . شمال غرب او جنوب خواته یې درویش خیل وزیر پراته دي او شرق خواته یې بیټني اوسیږي . د دوی د نفوسو مرکزونه په هغو کلیو کې دي چې د پرغل غره د کانیګورام او ماکین په شاوخوا کې پراته دي ، او دا غر ۱۱۵۰۰ فټه لوړوالی لري .
دوی همیشه بیدار ناست دي او د خپلو وزیرو ترو زامنو سره تل په جګړه کې دي . د جګړې په نتیجه کې یې ډیرې نوې ځمکې نیولې دي . هغه څوک چې له داوړو قبیلو سره اشنادي د دوی تر منځ توپیر باندې ښه پوه دي . کله چې د دغو قبیلو بهیر پر سړک تیریږي د قبیلو د سړیو تر منځ توپیر ښکاري . دا توپیر د دوی په لباس او کالیو کې نه دی ، بلکې دا توپیر د دوی په تګ ، ناسته ، ولاړه او هوا کې ښکاري . دا توپیر تعریف کیدای نه شي . زه که ډیر ورنږدې شم دا ویلای شم چې مسعود لکه لیوه او وزیر لکه پړانګ غوندې دي ، دواړه غښتلي حیوانات دي پانتر ( د پړانګ په شان دی مګر لږ څه کوچنی ) . Panther پانتر هوښیار ، زیرک او شانداره دی ، دلیوه ډله ټول خپل مقصد ته ګوري ، په اتفاق دي او ډیر خطرناک دي .
وزیر په خپل منځ کې پښې پښې دي که څه هم ټول درویش خیل بولي . اتمانزي د « داوړو » ګاونډي دي . د توچې په شاوخوا کې او په شمال کې

د کورمې په سیمه کې او احمدزي په « وانه » کې او د « شاګی » جنوب ته د ګوملې په سیمه کې اوسیږي . همدارنګه اتمانزي او احمدزي دبنو په شاوخوا کې هم وړی کالونۍ لري . « موسی درویش » چې پرهیزګار سړی و ، دواړه ځانګې دهغه دنیکه توب ادعا کوي او دوی یې ټول موسی نیکه بولي . دده قبر داحمدزیو سیمې غرب خواته دډیورند دکرښې پر سر پروت دی ، تقریباً یو میل دننه دپاکستان په خاوره کې پروت دی ، چې دلته کرښه پر ۱۸۹۳ کال کښل شوې وه او دافغان حکومت له خوا غندل شوې او دجنجالونو نقطه ده . دوی غواړي چې دزیارت کوونکو مرکز یانې پخپله زیارت تر خپل کنترول لاندې ولري .

دلته دبحث وړ قبیله مسعود دي چې په تاریخ کې یې کرښه ایستلې ده . داسې کرښه ده چې نه رنګیږي . دوی باید ددوی په غرنیو استوګنځیو کې تعقیب کړو او له « ایولین هاویل » Evelyn Howell سره هلته ولاړ شو . دوی هم دوزیرو په شان خپل مقدس زیارت لري او د ازیارت دمبارک دی چې ددوی نیکه و . او ۹۰۰۰ فټه لوړ دکونډۍ غره په غیږ کې دی چې دسرواکې کلا پر سر واقع دی . دلته یوه کیسه هم شته . دکورزون Curzon په زمانه کې داسې تجربه عملي شوه چې له خلکو ځخه ملیشه جوړه شي او خپله سیمه وساتي . دمسعود و ملیشه جوړه شوه . دځو میاشتو په موده کې یې پولیټیکل ایجنټ بورینګ Bowring او خپل قوماندان « هرمن » Harman ووژل . د ۱۹۰۵ دفبروري په میاشت کې هاویل Howell پریکړه وکړه چې مسعود ټول بې وسلې کړي . دوه میاشتې وروسته دښکار لپاره کونډۍ غره ته تللی و او هتله یې یو مسعود ځوان ولید چې ټوپک یې پر اوږه و او داټوپک یو وخت په « هرمن » پورې تړلی و . دا ډله دزیارت خواته

ورروختله جنډلې رپيدې ، مسعود هم دزيارت خواته ختلی و او هلته يې خپل نيکه ته دعا کوله چې « مبارکه نيکه ! دعا مې قبوله کړه ، او ماته داسې يو بل ټوپک هم راکړه که درې وژل کيږي هم پروايې نه شته » مگر هاويل ژوندی پاتې شو .

ترهغه چې غوږ ورسره اشنا کيږي دوزيرو و مسعودو په ژبه څوک نه پوهيږي او ډيره مشکله ده چې ددوی لهجه سړی تعقيب کړای شي ، نه يوازې دا چې دوی داسې اصطلاحات لري چې دسمې پښتنو په منځ کې نه استعماليږي ، بلکې دوی په ژبه ټکی هم بدلوي لکه ژب پوهان چې هغه ته Isoglott ( دتورو آواز بدلول = ايزوگلاټ ) وايي . دوی الف په واو ، واو په ی او داسې نور توري يو په بل بدلوي ، دمثال په توگه کله چې يو مسعود وايي « مور » دهغه مقصد مور نه ده بلکې دهغه مقصد « مار » وي او مور ته « مېر » وايي - يو کال مخکې مې په « ميرامشاه » کې له اتمانزي وزير ملک سره خبرې کولې او پر جاري حالاتو غږيدو : د « ريس » کلمه په دوامداره توگه يادېدله . زه يې پر مقصد نه پوهېدم ، په هندي کې ريس : کينې ، رخې او احتمالاً برابری ته وايي . ما چې فکر وکړ دمحاورې له متن سره يې سمون نه درلود او له موضوع سره يې رابطه نه ښکاريده . پس له څه وخته پوه شوم چې له « ريس » څخه دده مقصد « روس » دی دا ددوی لهجه او ژبه ده چې نابلد سړی نه پرې پوهيږي ترهغه چې ډير وخت يې دوزيرو په منځ کې گوزاره نه وي کړې . دا ډول تلکونه دنابلدو لپاره بيخي ډير دي .

يووار چې له دوی سره په خبره پوه شې نو دصحبت مالگه را ښکاره کيږي . څه موده مخکې په توچي کې يوه افسر داتمانزو وزيرو دتوري خيلو دجرگې انټرويو کوله . دجرگې مشر يوسپين ږيری سړی و چې شاهزار نوميده ، ډير

نومیالی او پوه سړي و او موږ ټولو ښه پیژندہ . جرګې څه غوښتل چې وشي .
جرګه کې حاضر افسر دزیرکۍ له مخې ډیپلوماتیک ځواب ورکړ چې دابده
ورځ پای ته ورسوي . شاهزار ورته وویل : « صاحبه ! ته ما ته هغه کیسه را
یادوې چې دمور په زنګانه مې اوریدلې وه . و نه و یو پاچا و او دې پاچا البته
یو وزیر درلود او ددوی سلطنت دیوه دریا په غاړه و لکه زموږ وادي چې داوبو
په غاړه ده او همدارنګه په دې پاچاهۍ کې یو کب نیوونکی و . یوه ورځ یې
ډیر غټ ماهي ونیوه او دظیفې له مخې یې دا ماهي پاچا ته وړاندې کړ ،
مګر وزیر دټولو نورو وزیرانو په شان سوچ کاوه او له دې څخه یې بده نتیجه
ګیري کوله او پلمې یې لټولې . ده فکر کاوه چې باید ماهي دوزیر په واسطه
پاچا ته وړاندې شوی وای ، نه داچې ماهیګیر راساً پاچا ته یوړ . په دې خبره
یې فکر خراب و ، نو ددې لپاره چې ماهیګیر په جنجال کې واچوي پاچا ته یې
وویل : ( ای اعلیحضرتا ! له دې ماهیګیر څخه وپوښته چې داماهي نردی
اوکه ښځه ؟ ) پاچا وخندل او له ماهیګیر څخه یې پوښتنه وکړه چې دا ماهي
نردی او که ښځه ؟ ماهیګیر په حال پوه شو چې وزیر تلک ورته کیښود . که
وایي چې نر دی یا ښځه هرو مرو ورته وایي چې څه جوړه یې راپیدا کړه او په
دې کار به هیڅکله هم بریالي نه شي . داډیر ښایسته ماهي و او ددې په شان
ماهي بل په دریا کې نه و . نو ده ځواب ورکړ : ( ای ټولواکه ! دا ماهي نر ښځی
دی ، ) او صاحبه ! شاهزار ورزیاته کړه : ستا ځواب هم داسې شی دی لکه زما
کیسه . ستا ځواب دا کیسه را په یاد کړه . »

په اسلامي منابعو کې د« وزیرو » ذکر د تیمورشاه دراني په عصر کې پر
۱۷۸۰ کال شوی دی . لیکونکي دلیوه او پانتر ( پړانګ غوندې حیوان
دی ) توپیر نه دی کړی او دواړو ته یې داسې تعریف ورکړی دی چې په دواړو

حیواناتو کې هغه خواص موجود دي. دی وایي : « وزیر افغانان ډیر تکړه او قوي خلک دي نږدې سل زره کورنۍ دي او په غرنیو او صعب العبور سیمو کې ژوند کوي. دوی تر حیواناتو ښه نه دي، ددوی خوراک، څښاک، تګ راتګ او نور کړه وړه د نورمالو انسانانو غوندې نه دي. ښکار په لویو لارو کې لټوي، مرګ او ژوبله دوی ته عادي خبره ده، دالویه قبیله بالکل آزاده ده. دوی نه مالیه ورکوي او نه باج ورکوي او هیڅ پورې تړلي هم نه دي. څرنګه چې پر ډیرو کوچنیو قبیلو ویشل شوي دي، دوی یو واحد مشر نه لري، بلکې هر پښه ځانته ملک او مشر لري، مګر ددوی صلاحیت او اتوریته هم کمزورې ده. ملکان د مربوطې قبیلې په خوښه انتخابیږي، مګر کله چې له چا سره په جګړه کې اخته کیږي بیا مشر دروي او ټول هغه ته اطاعت کوي. په دې کې هم شک نه شته دوزیرو په منځ کې داخلي بې اتفاقي نسبت نورو قومونو او قبیلو ته کمه ده او پوره اتفاق لري او همدا ددوی د قوت سبب دی. دوی په خپل قوت او زور خبر دي او پر دې باندې ویاړ کوي.

د پورتني تعریف له مخې نن ورځ هم وزیر او مسعود ځان پیژني او هغه تشریح د ځان په هکله وارده او پر ځای بولي.

له لیوه سره د ځان تشبیه کولو باندې به خپه نه شي مګر دا به ووایي چې لیکوال پخپله څیړنه کې څه ناڅه کمزوري دی. مسعود او وزیر به په هغه انځور کې ځان ښه وویني چې ایولین هاویل Evelyn Howell د هغه ځوان په هکله تصور کړی چې په زیارت کې یې دیوه بل ټوپک لپاره دعا کوله.

له هرچا سره چې دوی اړیکي لري او کړه وړه ورسره لري ددوی جذب کول او طرد کول ورته ښه څرګندیږي او دې نتیجي ته رسیږي چې دا خلک نه شي پالل کیدای. دده کتاب چې « میډ » نومیږي د قبیلې د دود او دستور او نورو کړو

وړو په هکله لیکل شوی دی . ( مسعود او وزیر خلک موږ ته میږ وایي ) .
دکتاب عنوان دمسعود و پښتنه لهجه پخپله ددې خلکو رنګ او بوی ورکوي
دهاویل په لیکنو کې پوره احساس او جذب شته . دی دالفنستون پر قدم پښه
ږدي . دی هم درباري عسکر ، پوه او دژبې او قلم خاوند و . څه چې ده لیکلي
دي دده دفکر خلاصه ده . دده ساده جملې خورا ژورې دي ، دده په هره جمله
کې دده هیلې نغښتې دي ، مسعودو هیر کړی نه دی ، دده په کتاب کې دی
دمسعودو یادګاری ځلی دی ، دا داسې انځور دی چې تیاره کې سړی ویروي
او په عین وخت کې سړی په جوش راولي ، او همدارنګه په سیوري کې دعزت
او ویاړ شعلې بادوي . دمسعودو ویاړ ، غرور ، میړانه ، او پښتنو نواله چې
عزت او پت ورسره دی په ښه توګه منعکسوي . هغه څه چې له پخوا څخه لا
تراوسه بې خچه پاتې دي .

هاویل دمسعودو په هکله مشخص لیکي : « میږ درې مسید » ( موږ
درې مسعود ) هغه خوږې کلمې دي چې مسعود یې په ډیر ویاړ سره وایي او
مقصد یې درې پلرینې دي : علیزي –شمن خیل او بهلول زي ، دا داسې مثال
لري چې برتانیه کې دانګلیند ، سکاتلیند او ویلز خلک خپل ویاړونه ، یادوي
او په ګډه خپله وطن دوستي اظهار وي ، باتې وهي او له نیمګړ تیا وو څخه
یادونه ، نه کوي ، واقعاً مسعود دنورو پښتنو یا سکاټلندیانو په څیر په خپلو
نیمګړ تیاو پوه دي او په خندا یې تیروي او حتی په ځینو وختو کې ورباندې
ویاړي ، « میږ ډیر بې ایتبوره خلک یې . » یانې ( موږ ډیر بې اعتباره خلک
یو . » دا دیوه مسعود له خولې څخه په خندا راوځي او په عین خندا کې له
عسکري خدمت څخه لیرې پاتې کیدل داسې ښیي چې ګوا کې له موږ څخه
دتوطئې ډار کیږي . یا به کله خپله ناچاري او یا دزړه نه غوښتنه داسې اظهار

کړي :

« دلې کسم پرونگ دی ، دلې کسم پوڼ دی . » ( دیخوا ته گورم پړانگ دې اخوا ته گورم پاڼ دی . ) کله چې خپله بې نظمي او بې اداره گي بیانوي نو وایي :« توسې پوخ دیوول سیتی ، میژلکه ډونگه یې . »

یانې ( تاسې پوخ دیوال یاستئ مونږ لکه ډانگه یو ) . دوی په دې ډول له حکومت سره ځانونه داسې پرتله کوي . دانگریزانو دحکومت یا د پاکستان حکومت لپاره په اوسنی زمانه کې دا ، نه ښایي چې د مفکورې دوحدت لپاره یا د پالیسی دادامې لپاره سرحدي قبیلې دوحشت په خپل حالت او له تمدن ځخه لرې حالت کې پریږدي . یو هوښیار او پوه مسعود ملک به په ډاگه در ته ووایي چې دیوه سیاسي او اجتماعي سیستم پای نتیجه باید دیوه ښه انسان روزل او وړاندې کول وي او په دې مقایسه او قضاوت د مسعودو دود او دستور تر ټولو لوښه دی .

ځکه مونږ غواړو چې خپل دود وساتو . ستاسو قانون او نظم زمونږ په ښه نه راځي او په کار مونه دی . زمونږ دود او دستور ته کلک وفادار اوسئ او د پلار او نیکه په لاره ټینگ ودریږئ .

له هغه وخت ځخه چې هربرت ایډواردز Harbert Edwarots بنو ته راغی بیا پر ۱۹۴۷ کال پاکستان ته د قدرت تر ورکولو پورې دانگریزانو اتوریته پوره سل کاله وچلیده . ددغې پیړی ریکارډ داسې ښیي چې په ټوله صوبه کې له ټولو پښتنو قبیلو ځخه مسعود په رښتیا تر ټولو نورو پښتنو پر خپله خبره کلک دي او دبل نه مني .

له ۱۸۶۰ ځخه رانیولې کله چې عسکري پوځ د مسعودو سیمو ته ننوت او ددوی د ۳۰۰۰ کسو لښکر پر « ټانک » برید کړی و او بیا د

۱۹۱۹ - ۱۹۲۰ جګړو پورې چې انګریزانو ددوی په سیمه کې سرکونه تیر کړل او کلاګانې او تانې یې جوړې کړې . کم ترکمه شپږواره سختې جګړې شـــوې دي . دا لاهم دجګړو پای نـه و . پر ۱۹۳۰ او ۱۹۳۳ او بیـــا په ۱۹۳۷ - ۱۹٤۰ پورې دوامداره شـخړې موجودې وې . د ۱۹۱۹ - ۱۹۲۱ جګړې دامیر امان الله خان د افغان - انګریز له دریمې جګړې څخه را پاڅیدلو تحریکاتو نتیجه وه . دافغانانو جګړې دنورو په خلاف په ختم کې جنجالونه را پیدا کوي ، لې تر لږه دانګریزانو په وخت کې همېشه داسې وه چې تر جګړې وروسته به بدتر جنجالونه پیدا شول او قبیلوي ناآرامۍ به جوړې شوې . داناآرامۍ به له کابل څخه دیکته کیدې . دکابل حکومت به په نامه سره سوله وکړه مګر قبایل به یې دانګریزانو پر ضد راپارول او دحکومت لپاره به یې شرمنده ګي او سرخوږی جوړاوه . دقبایلو یاغیانو ته به یې پناه ورکوله او له محاکمې څخه به یې خلاص کړل . داتمایل لانن هم شته که څه هم په پاکستان کې اسلامي حکومت دی ، دکابل حکومت همیشـه په قبایلو کې لاس ساتلی او قبایل یې پارولي دي .

مسعود هیڅکله متعصب نه وو . دوی له انګریزانو څخه په دې کرکه نه کوله چې دوی مسلمانان نه وو . حتی کله به چې موږ کلک وو دوی حتی زموږ احترام کاوه . مسعودو زموږ مخالفت په دې نه کاوه چې دوی له کابل څخه تشویق کیدل او یا دا چې دافغانستان داداري په راس کې درانې پښتانه وو او یا حنفي سني مسلمانان افغانان وو ، بلکې دوی مخالفت کاوه چې دخپل ژوندانه دود او دستور یې ساته . دوی نه غوښتل چې دهیڅ تر تاثیر لاندې ژوند وکړي . دوی ته آزادي او خپل دود او دستور تر هر څه څخه لوړ وو . ددې مقصد تر سره کیدو لپاره دوی چمتو وو چې دکابل له مالي ملاتړ څخه ګټه

واخلي او همدارنګه پروپاګنډو څخه پوره ګټه تر لاسه کړي او حتی دخپلې آزادۍ لپاره دپان اسلامیک مزه ورګډه کړي . پته دې نه وي چې مسعود پر خپل ملیت ، وینه او څټه باندې ډیر ویاړ کوي . هر مسعود به په جګه غاړه ورته وایي چې لومړی مسعود او بیا مسلمان یم .

له پورتنیو جملو څخه مقصد دانه دی چې دپاکستان حکومت او ماموران دې دقبایلو په معاملو کې له اسلامي ورورګلوۍ څخه ګټه نه اخلي . بر عکس دمذهب او دین مسئله پوره اغیزه لري . که انګریزانو له پښتنو سره یو واحد دین درلودای ، دوی به ډیره زیاته ګټه تر لاسه کړې وای . دا هم باید په یاد ولرو چې خوشال خان له اورنګ زیب څخه ډیره کرکه کوله . مسعود به هم داسلامي ورورګلوۍ په کیسه کې نه وي . که چیرې هدف یې دده تر قوماندې لاندې کیدل وي او یا دده عزت ته سپکاوی وي . تر کوم ځای پورې دوفادارۍ او اړیکو خبرې وکړو ، یوازې هغه وخت داعتبار وړ دي چې ددوی دوړاندیزونو او دودیزې آزادۍ لپاره په کې خطر نه وي . « درې مسید » مفکوره تر هرڅه لوړه وه . که چیرې پاکستان وکولای شي چې دوی هم جذب کړي ، نو دا به ډیر لوی سیاسي بری وي ، شیرشاه سوري ډیر لوی ارمان درلود چې دروه ټول پښتانه په اتفاق شي او دټولې خاورې دساتنې لپاره نه ماتیدونکی ډال شي . داوروستی هدف نه دی چې دقبیلوي پښتنو په واسطه له لارو څخه حق العبور او نورې مالي ګټې تر لاسه شي . لکه چې ځینې پر ۱۹۲۹ کال له نادر شاه سره کابل ته ولاړل او یا ځینې پر ۱۹۴۷ کال کشمیر ته ولاړل . داځینې فعالیتونه او ماجراوې دي چې په عمومي جوړښت کې نه شاملیږي . دا ډیزاین او جوړښت باید داسې وي چې قبایل په پاکستان کې خپل ځای ومومي .

په مسعودو کې همیشه ښه لاربنود مشران دجرګې یا جګړې په وخت کې شته او وي به . ( له یوه ځخه زیات ښه مشران لري ) .

دجګړې په وخت کې یو تن دیادونې وړ دبهلول زي دعبدالرحمن خیلو پلرینې « جګړ » وچې له ۲۰۰۰ تنو توزرنو سره یې پر ۱۸۹٤ کال دوانې پر کمپ برید وکړ . دده کیسه ډیره په زړه پورې ده ، پر ۱۸۹۳ کال له امیر عبدالرحمن خان سره دډیورند کرښه لاسلیک شوه او په همدې وخت کې بروس Bruce پولیتیکل اجنټ مقرر شوی و او غوښتل یې چې دلته دبلوچستان په مودل کار وکړي . دی دساندیمن شاګرد و . بروس عقیده درلوده چې دکویټې پرنسیپونه دلته هم بریالیتوب راوړي . دلته به هم باید داسې تطبیق شي لکه چې د پشین ، ژوب ، او لورالي پرپښتنو او بلوڅو باندې تطبیق شول .

پر وزیرو باندې دهغو تطبیق خامخا هماغسې ښه نتیجه ورکوي . دا پرنسیپونه دوی ته ډیر ساده ښکاریدل او دوی فکر کاوه چې له هرې قبیلې سره دقبیلوي تشکیل له لارې هر څه دتطبیق وړ دي . قبیلوي مشران باید آزاد پریښودل شي چې هرڅه یې زړه وي هغه وکړي . په بل عبارت دغیر مستقیم حاکمیت دا یو پرنسیپ و . نو ځکه بروس هم پریکړه وکړه چې « ملکان دې وي او دملکانو صلاحیت » .

څرنګه چې دډیورند کرښې له مخې مسعود دبرتانیې تر تسلط لاندې سیمه کې راغلل ، نو داسې پریکړه وشوه چې په دوی کې هم د غیر مستقیم حاکمیت سیستم رواج شي . په دې وخت کې دټولنیزو چارو یو مامور چې کیلې kelly نومیده په ژوب کې وژل شوی و او همدارنګه یو سپور او څلور پلي سپاهیان دګومل په غاښي دګوالیرې په کوتل کې وژل شوي وو . دا جرمونه تعقیب شول اوڅرګنده شوه چې دمسعودو دیوې پنځه کسیزې ډلې له

خوا وژل شوي دي چې دوه يې عبدالرحمن خيل او درې تنه يې عبدالله خيل وو. ډيرې اوږدې مرکې او جلسې وشوې او برمتې ورکړل شوې چې دا پنځه تنه دجرګې محاکمې ته حاضر کړي . په دې توګه ددوی په حاضرولو سره برياليي شو چې داله مسعودو سره خاصه معامله وه . کله چې دوی تسليم شول دوی محاکمه شول او په هريوه باندې اوه ، اوه کاله قيد وخوت . دا برياليتوب خيالي و . هغه مسعود چې د دولت مخالفان وو . په دې کار سره را وپاريدل . دوی دحکومت په دې برياليتوب دخپلې آزادۍ پای ليده. ددوی مشر جګړ هغه څوک هم راپيدا شو چې ملاپوينده يې بللو او شبي خيل مسعود و ، دواړه دمقاومت ماغزه او پلان جوړونکي وو ، هغه ملک چې پنځه تنه يې محاکمې ته تسليم کړي وو مسوول وشميرل شول او ټوله قبيله يې پر ضد وه . درې تنه ووژل شول ، دوه يې وتښتيدل او ځينې نورېې تر پايه په ډار کې اوسيدل .

غير مستقيم حاکميت له حمايې او ملاتړ پر ته نتيجه نه ورکوي . کومه اتورتيه چې دقبيلوي خواخوږو ملکانو لپاره ضروره ده که دحکومت له خوايې په کلکه ملاتړ ونه شي هيڅکله برى نه شي تر لاسه کولای او ښه نتيجه نه ورکوي . دلته دملکانو لپاره هغه قوت چې لازم وموجوديت يې نه درلود . په بلوچستان کې دساندېمن سيستم ځکه بريالی وچې هلته سړکونه ، تانې ، چاونې او کلاګانې جوړې شوې او دحمايې لپاره په تکتيکي برخه کې هميشه قوت موجود و او دقبيلوي ملکانو ملاتړ يې کاوه . بلوچستان ته ټولو په وخت سره نفوذ کړی و . مګر دوزيرستان سيمه غرنۍ سيمه ده او حتى لارې يې نه درلودې . دپنجاب حکومت د« جګړ » له حرکاتو سره مخامخ و . دساندېمن دسيستم دننه مجبور و چې يو قوت جوړ کړي او باغيان مجازات کړي . مګر دهند حکومت په دې وخت کې چې دډيورند کرښه نوې ايستل شوې وه ځان

کوڼ واچاوه او په ټولو حوادثو ناګاره و . « بروس » Bruce ته يې لارښوونه کړې وه چې له جرګو سره خپل اړيکي ټينګ کړي او هڅه وکړي چې د ملکانو قاتلان د جرګې له لارې مجازات کړي . مګر دې کار هيڅ نتيجه ورنه کړه او په دې توګه دساندېمن سيستم پر مسعود و باندې موثر واقع نه شو .

داسې زړه نازړه پريکړه وشوه چې وانه دې په دايمې شکل سره اشغال شي. وانه د مسعودو له سيمې څخه بهر د احمدزو وزيرو په ويش کې پرته ده . کله چې بروس Bruce وانې ته روان و ، « ملاپوينده » ده ته ليک ورواستاوه چې پنځه تنه محکومان خلاص کړي او د وانې له اشغال څخه صرف نظر و کړي او هلته قوت ځاى پر ځاى نه کړي . بروس پر دې پوهيدو چې وانه د مسعودو سيمه نه ده ، نو ځکه يې ځواب ورکړ چې دى به يوازې د ملکانو له لارې خبرې وکړي . ملاپوينده له ۲۰۰۰ تنو سره په شپه کې د وانې پر کمپ باندې حمله وکړه . د تور زنو يو قوي ګروپ د جګړې په مشرۍ د کمپ زړه ته ورننووت او زيات زيان يې ورساوه او له لاس په ګريوان خونړۍ جګړې څخه وروسته پخپله جګړ هم زخمي شو ، مسعود په شاتګ ته مجبور شول . له سپيده داغ څخه وروسته تله د انګريزانو په ګټه درنه شوه او سوار قوت د مسعودو په تعقيب ووت او هغوى ته يې هم تلفات ورکړل . پر ۱۸۹۴ او ۱۸۹۵ کال د انګريزانو يوه قوت د مسعودو خاوره ټوله وپلټله او د شرطونو له مخې تړون وشو . يو شرط دا و چې د ډيورند کرښې تر منلو پورې به « ملاپوينده » له ټولو خبرو څخه محروم وي . مګر له ملکانو څخه د غچ اخيستلو په ارتباط کوم عملي اقدام ونه شو او د مسعودو د سيمې دايمي اشغال لپاره هم کوم عمل ونه شو .

وروسته « جګړ » پريکړه وکړه چې له برتانوي منصبدارو سره روغه جوړه

وکړي . ځينو ته ده خاص احترام کاوه ، يوه ورځ يې هاويل ته وويل :« راځه يا ټول په توپ کې والوځوه او يا اتلس زره ټول نوابان کړه . » له دې خبرې څخه د « جګړې » مقصد دا وچې موږ ټول مساوي يو . موږ ته يوازې دوه لارې دي : ټولې قبيلې ته يا مرګ يا د عزت ژوند . دې ګټه نه درلوده چې ووايو يو دې د ټولو لپاره به وکالت خبرې وکړي . هر يو مشر واو کيداى شوه چې د ټودې وينې ځوان جوړه خبره ورانه کړي . دا د مسعودو د جګړې مشر و او په جرګه کې هم د دوی مشرانو هر يوه خپله خبره درلوده .

بې له شکه د دوی تر ټولو مهم سړی ملا پوينده و . دی عليزي شيي خيل و چې په استونې Astonai ورګديږي . د يوسفزو ، برعکس چې هغوی له چا څخه هدايت نه اخلي ، د مسعود امر پر مسعودو چليږي . ملا پوينده پر ۱۹۱۳ کال د نړيوال جنګ له پيل څخه يو کال د مخه مړ شو . مګر دی ، چا نه دی هير کړی . اوس هر څه بدليدونکي دي ، خو د ده زوی فضل الدين چې بيخي پلار ته ورته دی د خپل پلار په خاطر اتو ژوند کوي او دی هم د انګريزانو تر ختم پورې د حکومت ضد ډلو د مرکز چلوونکی و . په خپل وخت کې ملا پوينده د انګريزانو پر ضد له کابل سره اړيکې درلودل او له هغه ځايه مالي مرستې ورسره کيدې ، دا مرستې د امير ورور نصرالله خان له لارې ورسره کيدې . دوی په کابل کې پناه ځای درلود او د منصبدارانو وژل او ترور د دوی د تکتيک يوه برخه وه . له بلې خوا ، له دې ټولو خبرو سره سره انګريزانو ده ته بنه کتل او داسې محاسبه کيده چې تحقير او تهديد د انسان د شرميدو سبب کيږي او دوی به ضديت ته لاس اچاوه چې خپل حيثيت د تشدد له لارې وساتي . د مسعودو په نظر د انسان وژل اخلاقي جرم نه شمېرل کيږي .

په لومړنيو کلونو کې ملا مستقيماً تماس نه درلود او د ملکانو له لارې به

يې خپلې هيلې پلې کولې او دا چې بيا وروسته څه وشول هغه مو ولوستل.
وروستيو کې حکومت دې ته متوجه شو چې له ملا پوينده څخه سترگې پټول
غلطي ده نوځکه دسيمې موظفو منصبدارو هڅه کوله چې دی ملگری کړي او
حتی دې ته يې وهڅوي چې تنخا اومالي گټې قبولې کړي. داموضوع داسې
تخمين شوې وه چې په ملگرتيا کې کيداى شي چې تطميع شي او بند پاتې
شي. پس له ډيره وخته ملا زړه نازړه راضي شو چې تنخا او نورمالي امتيازات
ومني خو په دې شرط چې په پټه ورکړه شي او هيڅوک هم پوه نه شي، دا
کارهم وشو او دده تنخا ډيره زياته وه او په ټوله قبيله کې دده تنخا دبل هر چا
په پرتله تقريباً درې چنده وه. څو کاله چې تير شول دملکانو په مخ بله څپيړه
وارشوه. په بروس Bruce پسې مرک Merk راغی. ده د حکومت او
مسعودو پاليسي بلې خواته بوتله. ده هند حکومت وليکل چې د « سيملا »
سکرتريت دنده لري چې دوزيرستان پښتنو سره ښه ميتود غوره کړي او
داپروسه لاد تجربې په حالت کې وه. ددې حقيقت پر بنسټ دملاخبرې لاهم
داوريدو وې او دملکي سيستم له لاسه ووت او داسې پريکړه وشوه چې ټولې
قبيلې ته دې تنخا ورکول کيږي او دا د « تومان » په نامه يادېده.
ددې په څنگ کې مرک Merk داسې مفکوره درلوده چې مسعودو سره
په جمعي توگه چلند وکړي او ديوه پارلمان په شکل ورسره خبرې اترې بدلې
کړي. دا د « مسعودو » لويه جرگه نوميده. داسې مجهوله غونډې نظريه وه،
دا چې پښتنانه دبلوڅو بر عکس ديو مشريا ملک له لارې اداره نه خوښوي،
بلکې په عمومي غونډه زيات خوشحاليږي او داسې دموکراتيک حرکت ته
لبيک وايي، دا موهيره کړې وه چې دمسعودو جرگه له ۵۰۰۰ تنو څخه
يووار هم کمه نه وه او يوه بې نظمه ټوليدنه به وه او دلرغوني اتڼ په شان به زوږ

او غوریدا وه او هدف به معلوم نه و . د مسعود و جرګې هم داسې یو شکل درلود ، څوک نه وو چې مرک Merk او کورزون Curzon ته ښه مشوره ورکړي او یا څه چې مرک ویل هغه د عملي کیدو وو ، خو دومره ویلی شو چې ملکان ښه خارنوالان وو او د قبیلو او حکومت تر منځ یوازینی کړی وه .

بالاخره مرک هم تبدیل شو او درې میاشتې یې له تبدیلۍ څخه نه وې تیرې چې جانستن Johnston راپور ورکړ چې د مرک پلان بې مفهومه دی او د چلند وړ نه دی ، نو په همدې وجه د مرک پلان سم زیږیدلی نه و چې له منځه ولاړ . طبیعي خبره ده چې ټول مشران دده له پلان څخه په ویره کې وو . د مرک پلان نه یوازې خطرناک و ، بلکې قیمتي هم و . هر څل له څو زرو تنو سره کیناستل او سوال ځواب کول موثر نه وو . دا پر ځای خبره ده چې جرګې پارلمان ته د لارښوونې او نظریاتو په ورکولو سره خوراګټه ورې وي ، خو په خاصو حالاتو کې د هغې ګټه ډیره موثره ده . خو دا چې څو زره تنه قبیلوي وسله وال خلک « ټانک » غوندې ځای ته راټولیږي ، امنیت یې ځانګړی پرابلم شي ، د هغوی داعاشې او اباتې د پرابلم تر څنګ د وسلو ټولول او ساتل هم ګران کار دی . جرګې ته راټولیدل که څه هم وسله ټوله شوې وي د داخلي مخالفتونو له وجهې یو لوی تشویش دي ، دلته عصبانیت په نتیجه کې کیدای شي چې واړه ګروپونه سره لاس په ګریوان شي او غټه بربادي جوړه کړي . ښایي چې د حکومت په مقابل کې به هیڅ بد نظر هم نه لري ، خو لویه معضله به راپیدا شي . په همدې دلیل د ملکانو سلسله بیا را ژوندۍ شوه . یوه عجیبه خبره دا وشوه چې ملا پوینده ته وویل شول چې له پولیتیکل تحصیلدار سره کیني او مشوره ورکړي او د ملکانو په انتخاب کې نظر ورکړي ، دی اصلاً د ملکانو د اقتدار مخالف و . په دې توګه دده خوله وتړل شوه .

ځوک چې د مسعودو په هکله پوره بلدیت لري دوی ته معلومه ده چې مسعود ډیر ښه قبیلوي تشکیل لري چې دا هم میراثي دی او دوی ورته نیکت Nikat وایي ، دا کلمه د پښتو د نیکه ( د پلار پلار ) څخه اخیستل شوې او د میراثي په مانا استعمالیږي . د دې مانا او مفهوم دادی چې د قبیلې ټول قوانین ، مقررات ، میراث ، ویش او نور مسایل له قبیلې څخه تر کورنۍ پورې په کې داخل او معلوم دي ، د هر چا ګټې او تاوانونه له همدې لارې څخه معلومیږي . په دې سیستم کې ټولې قبیلې د ګټو د ویشلو او زیانونو د مخنیوي او تلافي لپاره شاملې دي . په دې توګه نیکت به ټول هغه څه چې له حکومت څخه تر لاسه کوي هم وویشي ، یا غنیمت چې د داړو او جګړو په ترڅ کې لاس ته راځي هم د نیکت له مخې ویشل کیږي . همدارنګه به جریمې او ناغې د نیکت له مخې تولیږي .

د ګټې او تاوان په واسطه نیکت ته څه خطر نه و او په دې کې د مسعودو د هرې کورنۍ د مشر ځای او دریځ روښانه و ، د کشرانو په مقابل کې د مشر او د مشرانو په مقابل کې د کشرانو مکلیفیتونه او مسوولیتونه او حقوق ټول معلوم دي . دا دیوې کورنۍ ونې حیثیت لري ، چې د هر شاخ او هرې ښانګې او هرې پښتې اړیکي یو له بل سره له ښکته څخه پورته او له پورته څخه ښکته خوا ته د پوهیدو وړ دي . دونې په شان نیکت وده کوي ، بدلیږي او نوې ښانګې او غوټۍ را باسي او زړې ښانګې ، پاڼې او لښتې وچیږي ، ماتیږي او له منځه ځي او نوې د هغو ځای نیسي ، دا پروسه ورو ورو پرمخ ځي ، خو حرکت یې محسوس دی .

د نیکت په تطبیق کې چې ملایان او یا حکومت هر څه وایي هغه به وایي خو ملکان نه شي ورک کولای او د ملکانو موجودیت هم ریښتنی واقعیت دی.

دمرک Merk ځای نیوونکی دې ته مجبور شو چې ملکانو ته بیا مخه ورکړي . دې کار څه وخت ونیوه او په کرار کرار یې تر څو کلونو پورې ملکانو او « تومان » دوارو ته برخه ورکوله . وروسته یې خاصه دار ( محلي پولیس ) له قبیلو څخه هم رویکار کړل او دې هم څه نا څه نتیجه ورکړه او له ملکانو پرته یې عامو خلکو ته څه ورکول چې د نیکت تر عنوان لاندې په سیمه کې امن وساتي مګر دلته یو بل مشکل هم را پیدا شو ، دلته په قبیلو کې میراثي او کورنی سیستم ډیر زیات قوي دی او د هغه بدلون او یا له هغه څخه د باندې بله طریقه رامنځته کول نا ممکن کار دی . د مثال په توګه کوم چا ته بخشش ورکول یا ترفیع ورکول او یا سزا ورکول . منظم پوځ ته د مسعودو د داخلو لو په ملحوظ د پورتني شکل له مخې ګران کارو او همدارنګه د نیکت په نظر کې نیولو پرته یو چا ته ترفیع کول د نورو د خپګان سبب کیده حتی یا د نو مورې د فرار یا د قتل وقتال سبب کیده . هاویل لیکي چې زمونږ ماموران له لومړیو وختو څخه له داسې پرابلمونو سره مخامخ وو . هر یوه په خپل وخت کې له هر ډول مکافاتو ، بخشش او لورینې څخه کار اخیستی دی چې خلک آرام او خوشحاله وساتي ، هر څه یې چې کړي دي د قبیلو له سیستم څخه نه دي خارج شوي . لنډه دا چې دود او میراثي رواج تر حق او لیاقت څخه مخکې و .

د حکومت پالیسي یوازې د ملکانو په هکله زنګیدونکې نه ده ، بلکې پر دې هم قانع نه وو چې محلي ماموران دې چارې پر مخ بوځي او کله کله یې عملاً اقدام هم کاوه . وروسته له هغې چې جانستن ملکان بیا را ژوندي کړل ، حکومت ټینګار کاوه چې ملا تر وزرو لاندې ونیسي ، ملا ته یې نه یوازې ښه معاش مقرر کړ او ځمکه یې ورکړه ، بلکې د نویو پیشنهاد شوو ملکانو لیست یې هم ورکړ چې دوی هم پرې نظر ورکړي . ورپسې بیا داسې پالیسي غوره

شوه چې د ملایانو امتیازات یې قطع کړل . نور بدلونه هم را منځته شول . منظم قوتونه وایستل شول او پر ځای یې ملیشه جوړه شوه . په دغو ملیشه وو کې د مسعودو عناصر لغوه شول بیا ژوندي شول او دویم ځل بیا لغوه شول او منظم قوتونه تکرار ځای پر ځای شول . بیا غیر منظم قوت جوړ شو خو له محلي پرسونل څخه عاري و او د سکوټ Scout په نامه یادیدل او د خاصه دارو لپاره مقدمه وه . دا حیرانوونکې نه ده چې په دې ټولو بدلونونو کې کومه ثابته نقطه نه لیدل کیږي . پر مقاماتو او مسئولینو باندې باور کم او غیر یقیني و . واقعاً دا ټول هر څه د محلي مامورانو او د هغوی د مرستیالانو خصوصیات وو چې دا پروسه یې فعاله ساتله او هر څه یې اړول او رااړول . له بلې خوا د ټولو کړو وړو په ښنګ کې یو سړی و چې پر هر څه پوهېده ، هغه ملا پوینده و . د انګریزانو له نظره هغه داسې یو کرکتر و چې له پټې وژنې څخه یې دوسلې په شکل ګټه اخیستله . دی تر دې لا زیات و . او د « هاویل » په قول د ده کرکتر د انګریزانو په منځ کې د مقایسې وړ نه و . هغه چا چې ده ته امتیازات مقرر کړي وو ، په هغه محیط کې چې دی اوسیده ، نو ده ته دې روزي شي . دی یې مستحق و او د توصیف وړ شخصیت و ، که څه هم په تمامه مانا په ځانګړې توګه د آزادۍ غوښتونکی نه و ، خو له ده سره د بل چا افکار او نظریې هم وې . یو وار به چې له ده سره د چا ملاقات وشو خامخا یې تر تاثیر لاندې راتلله . دی د زده کړې او ښوونې خاوند نه و او کوم میراثي امتیاز یې هم نه درلود . خوسره له دې د ده بیوګرافي به دی دلوړو شخصیتونو په ډله کې محاسبه کړي . په هغه زمان او مکان کې چې ده څه کړي دي دلویو سړیو په ډله کې به د زیاتو خلکو له خوا وشمیرل شي .

کله چې ده له مړینې وروسته د ده وصیت نامه « قوم ته خطاب » په جرګه

کې ولوستل شوه ، ده توصیه کړې وه چې خپل ملي هویت وساتي ، مه انګریزانو ته موقع ورکوئ چې د تاسو په خاوره راوخیږي او مه د کابل امیر ته دا موقع ورکوئ ، داړې پرېږدئ او لارې مه نیسئ چې انګریزانو ته پلمه پیدا نه شي چې د مسعودو وطن اشغال کړي . نو ښایي خوشال خان ختک به هم داسې لیکلي وای . یا که چیرې دوی د یوسفزو دود اود ستور درلودای نو دسوات د ایالت دمیاګل په شان به یې ایالت جوړ کړای وای .

په دوو وختونو کې مسعودو لوی نوم پرې ایښی دی ، یو ځل د ۱۹۱۹ - ۱۹۲۱ جګړو په وخت کې یې توره ځرګنده کړه او انګریزان یې مجبور کړل چې رزمک او دوزیرستان ځینې مرکزي سیمې اشغال کړي او بل ځل پر ۱۹۲۹ کال کله چې نادر خان ددوی په مرسته کابل ونیو او دسقاؤ زوی یې وشړه . نادر خان دنوې کورنۍ بنسټ کیښود ، د مسعودو دلښکرو په تقویه کې نورو وزیرو هم لښکرې راوستې .

د ۱۹۱۹ افغان - انګلیس دویم جنګ څخه وروسته برید جنرال شاه الدوله دامیر امان الله خان په نامه له کابل څخه وزیرستان ته راغی او خلکو ته یې داسې مفکوره ورکړه چې انګریزان داباسین د غاړې آخوا ته په شا کیږي، نو دا به ښه وي چې د امیر امان الله خان تر بیرغ لاندې سره راټول شو ، او تخلیه شوې پوستې ونیسو او دانګریزانو پر ضد تحریکات پیل کړو ، دجنګ په وخت کې انګریزان له وانې څخه وتلي وو او قبایلو د ۱۲۰۰ میلو په حدود کې نوي مودل ټوپک او تر یو میلیون زیات شمیر ګولۍ تر لاسه کړې وې ، نو داحیرانوونکې نه وه چې مسعودو څه غوښتل هغه یې وکړل . پر شاوخوا سیمو باندې یې په شپږو میاشتو کې سل واره بریدونه وکړل . په دې حساب داړې او دحکومت پر ضد جرمونه ورځ په ورځ زیاتیدل . وضعیت

دزغملو وړ نه و او دعملي اقدام وخت رارسيدلی و.

بالاخره حکومت پريکړه وکړه چې دپريکړې له مخې د «تکي زام» Takki zam وادۍ له لارې سيمې ته ورننوځي او «بدر» ته په «دوه توی» کې ځان ور ورسوي او مرکزي کلکې نقطې ونيسي. همدارنګه غواړي چې دمکين او کانيګورام له شاوخوا مسعودو څخه هم ټينګې نقطې ونيسي چې دپر غل غره په لمنو کې پرتې دي او که ضرورت وي دغرو په منځ کې به درزمک آزاده جلګه هم اشغال کړي. دا بريد دمسعودو له مقاومت سره مخامخ شو او داحمد زي وزيرو له وانې څخه ورسره مرسته وکړه. دوه مياشتې وروسته هدف تر لاسه شو، خو دا جګړې دسرحد په تاريخ کې بې ساري وې، دحکومت او قبايلو دوسلو تر منځ تو پير مخ په کميدو و..، دوی څو واره بريالي بريدونه کړي وو او دوانه کلايې هم چور کړې وه او وسله يې وړې وه، دوی پوره په نښه ويشتل کول. دآنې تنګي Ahnai Tangi جګړه پنځه ورځې اوږده شوه او لاس و ګريوان جګړې وشوې. مسعودو نه يوازې خپل مهارت په اوړ او تکتيک کې وښود، بلکې دنوې وسلې په درلودلو سره يې دتورې او ډال پخوانۍ ميرانه هم ساتلې وه او دلاس او ګريوان جګړه کې هم دپخوا په شان باتور وو. زموږ قوت د ٢٠٠٠ په حدودو مړه - ټپي او ورک درلودل او دقبايلي مليشو ضايعات نږدې دوه چنده وو. په دې جګړه کې يوازې ٤٣ منصبداران وژل شوي وو. کله چې خپل ځای ته ورسيدل قوت بل کار جوړ کړ او ډيرې سړې، تودې يې وګاللې بالاخره دامانزو وزيرو سره پريکړې ته ورسيدل. رزمک يې اشغال کړ او دسړکونو او لارو شبکې يې هرې خواته وغزولې.

وروسته وانه بيا اشغال شوه او اساسي تکی دادی چې دوانه اشغال

دقبايلو په بيا ائتلاف پورې څه اغيزه درلوده ، کله چې دوانه وزير پوه شول چې ددوى وار دى نو له مسعودو څخه يې مرسته وغوښته او وزيرو پخوا د مسعودو سره مرسته کړې وه . ددغې پوښتنې په مقابل کې مسعودو له چال څخه ډک ځواب ورکړ. دوزيرو دحمايې لپاره به دا ښه واى چې د « انې تنگي » له جنگ څخه دمخه موسوله کړې واى او د تلفاتو مخه مو نيولى واى . په دې تو گه دوى دوزيرو احسان مند نه وو ، بلکې عقده يې درلوده ، له هر ډول کومک څخه يې انکار وکړ . زما په عقيده دا ځواب ملک مهردل ورکړى و . دى دمنزي عليزي ، مل خيل و ، دا تيا و کالو په شاوخوا کې و او د پاکستان په اداره کې دمسعودو لومړنى وکيل و . له ټولو هغو عيبونو سره سره دا ځواب دمسعودو له خوا هغه وخت کې منل شوى و او حتى دوزيرو استازي هم خندلي وو . داد قدر وړ ده ځکه که چيرې دا رښتنى احساس وبلل شي نو په هغه وخت کې پر ځاى قدم و . .

دځينو اړخونو له مخې دمسعودو او وزيرو هغو قوتونو چې پر ۱۹۲۹ کال نادر خان کابل ته بدرگه کړ لا په زړه پورې ښه انځور دى ، ځکه هغه وخت دوى له خپلې خاورې څخه دفاع نه کوله، بلکې په افغانستان کې يې دننه تعرضي عمليات کول، وضعيت داسې و کله چې پر ۱۹۲۸ کال امان الله خان له قدرت څخه ولويده ، يو تاجک غل چې حبيب الله نوميده او په « بچه سقاؤ » مشهور و قدرت تر لاسه کړ . په دې وخت کې نادر خان له فرانسې څخه راغى او هڅه يې کوله چې قدرت بيرته دمحمد زيو لپاره ونيسي . ده او دده ورونو هاشم خان او شاه وليخان متحداً په لومړي سر کې دامان الله خان دبيا راوستلو لپاره هڅه کوله . البته دا تظاهر و او په دې نامه يې خلک پر ځان راټولول . نادرخان دامان الله خان په شان ددراني بارکزيو محمد زى و او دده

په شان د پاینده خان او لاده و. همدارنګه دی مستقیماً له دوست محمد خان څخه نه بیلیده ، بلکې دده دورور سلطان محمد خان کړوسی و.

کله چې نادر خان سرحد ته راورسید « کورمې » ته ولاړ چې له اپریدیو او اورکزیو څخه مرسته تر لاسه کړي خو دی ډیر مایوس شو ځکه چې د هند حکومت د کورمې قبایلو ته اجازه ورنکړه چې له سرحد څخه تیر شي او د افغانستان په خاوره کې جګړه وکړي . بیا دده دوزیرو او مسعودو خوا ته مخه کړه چې هغوی مخکې امان الله خان هم د انګریزانو پر ضد تشویق کړي وو. د اخلک دډیورند کرښې په دواړو خواو کې ځمکې لري. دلته دده بریالیتوب تر لاسه کړ او زیات شمیر لښکرې ورسره ملګرې شوې. پخپله له وزیرستان څخه هم خلک ورغلل . همدارنګه زیات شمیر وزیر په افغانستان کې د ننه په برمل او نورو برخو کې هم میشته دي ، هغه وزیر چې ډیورند کرښې ختیځ او جنوب ته په برتانوي هند پورې تړلي او سره له دې چې د هند حکومت د دوی د تګ ممانعت کاوه خو دوی په ګڼ شمیر ننوتل او د نادر خان د لښکر پیشقراول یې تشکیلاوه . دوی وو چې کابل یې ونیو او د دراني کورنۍ لپاره یې تاج او تخت بیا ونیوه. دوی په حقیقت کې د هغه وخت پاچا جوړوونکي وو. د سرحد په شاو خوا کې ښکته او پورته هیچا هغه درس نه دی هیر کړی ، هغه څوک چې پاچاهان جوړوي ، هغوی ډیر ژر پاچاهان نسکوروي هم.

کله چې نادر خان کابل ونیو ، ده پیسی نه درلودې چې هغو خلکو ته انعامونه ورکړي چې دی یې بریالیتوب ته رسولی و . دی یې کونج ته ایسار کړ ، مسعودو او وزیرو د ښار زیاتې برخې چور او لوټ کړې او دده پر اعزازي او افتخاري رتبو یې ملنډې ووهلې . د بخشش نشتوالی د ډیرو فکر خراب کړ او د کومو برخو دعوی یې چې کوله ورته ونه رسیدې او دوی دا کړه داسې

وشمیرل چې نادر خان درغلي او تګي ورسره وکړه . کله چې په نورو برخو کې ددوی مرسته په کار وه دوی ځانونه وسپمول . نادر خان پاچاهي د ځان لپاره اعلان کړه او د نوې کورنۍ بنسټ یې کېښود . ټولو ددې مسئلې په هکله ګیلې او شکایتونه پورته کړل چې اصلاً پاچاهي دامان الله خان لپاره نیول شوې وه مګر نادر خان له امان الله خان سره وفاداري ونه کړه او ټولو ته یې فریب ورکړ ، مګر ددوی دغه ګیلې بریالیتوب ته ونه رسیدې .

دنادر خان دغه فریبکاري د مسعودو او وزیرو لپاره بنه وسله شوه . دامان الله خان خوا خوږو بوخو ځلې هڅې وکړې د مسعودو او وزیرو په مرسته د ۱۹۲۹ کال بریالیتوب داخل دامان الله خان په ګټه وڅرخوې او کابل ته ولاړ شي او یحی خیل راوپرځوي ( یحي خان دسلطان محمد خان زوی او دنادر خان نیکه و ) او امان الله خان پر تخت کښېنوي او دغنیمت په ترلاسه کولو کورو ته راستانه شي . پر ۱۹۳۲ کال نادر خان لا ژوندی و ، د مسعودو او وزیرو لښکرې د ډیورند له کرښې څخه تیرې شوې . دخوست په متون کې ځای پر ځای شوې . دانګریزانو حکومت قوتونه ځای پر ځای کړل چې ددوی دننوتلو مخنیوی وکړي ، مګر ګټه یې ونه کړه ، وروسته دډهلي حکومت پریکړه وکړه ، چې ددغو خلکو کورونه دهوا له لارې بمباري کړي ، په دې توګه لښکرمات شو . نادر خان په خپله پر ۱۹۳۳ کال په قتل ورسیده . بیا پر ۱۹۳۸ کال تر ټولو خطرناک حالت رامنځته شو .

پر ۱۹۳۸ کال کله چې هیتلر د نړیوال جنګ لپاره تیاری نیوه . په منځني ختیځ کې ددوی ایجنټانو وظیفه اخیستې وه چې په افغانستان کې ناآرامي جوړې کړي او دصوبه سرحد خواته وده ورکړي او په نتیجه کې پهند کې برتانوي حکومت دې ته مجبور کړي چې خپل زیات شمیر قوتونه په سیمه

کې مصروف وساتي . لکه څرنګه چې موږ ته څرګنده ده دې سیمه کې زیات
اکثریت حنفي مذهبه دي دوی شیخ عبدالقادر ګیلاني ( جیلاني ) ته ډیر په
درنښت ګوري . د ګیلاني کورنۍ مشر دبغداد نقیب دی او خلک ده ته دپیر په
سترګه ګوري او زیات احترام ورته کوي . دا کورنۍ په ټول منځني ختیځ کې
تیته ده . له سوریې څخه تر پاکستان پورې ګیلاني ( جیلاني ) او یا کیلاني په
ټولو اسلامي هیوادو کې شته . دهیتلر اصلي ایجنت دیورشلم پخوانی مفتي
حاج الامین حسیني و چې د ګیلاني کورنۍ او نور ډیر یې تر کنترول لاندې
وو . دا دیادونې وړ ده چې رشید علي هم ګیلاني و چې پر ۱۹٤۱ کال یې په
عراق کې اغتشاش را منځته کړی و . په ۱۹۳۸ کې دامان الله خان په پلوی
بیا وزیرستان ته ولیږل شو . دی د کنیګورام په لمنو کې ځای پر ځای شو او په
تبلیغ یې پیل وکړ او ده زیاتې پیسې هم له ځان سره درلودې . دده وعظ ورو
ورو سیاسي شکل ونیو . ده زیات شمیر مسعود را وخوځول او وزیر هم ورسره
وو چې یو ځل بیا پر کابل ورننوځي ، دانګریز حکومت له زیات شمیر قوت او
تر پردې لاندې فعالیت څخه کار واخیست او ډیرې پیسې یې مصرف کړې
چې پر دې بریالی شو چې پیر محاصره او له قدرت څخه یې وغورځوي او
دالنبکر چې د کابل پخوا روان و خوږ ورکړي .

دا پیر ټولو خلکو د « شاهي پیر » په نامه پیژنده . کله چې به کنیګورام
کې و ، ده دیوه پیر او روحاني شخصیت لباس په غاړه کاوه او اوږده ږیره یې
درلوده . کله چې ونیول شو ده خپله ږیره وخریله او دروحانیت کالي یې
وایستل او خپله دریشي یې واغوستله . دده دوه بیل بیل عکسونه داسې ښیي
چې دا یو سړی نه دی ، بلکې دوه مختلف سړي دي . په غربي لباس کې هغه
یو ځوان ښکاري چې دمدیترانې پر غاړو ګرځي او په مذهبي چپنه کې دی د

« الاظهر » فارغ او درېرې خاوند وي . په مسعود کې ډېره ډېر لوی رول لوبوي.

د کابل حکومت همیشه یو ډول ملاتړ ته ضرورت لري چې قبیلوي مشران ښکیل کړي ، د قبایلو له مرستې او حمایې پرته د کابل حکومت ډېر کمزوری وي . مسعود او وزیر دا هیڅکله نه هیروي چې د نادر خان کورنۍ د دوی په مرسته پاچاهۍ ته ورسیده . د پښتونستان تیوري پخپله قبایلو کې د اهمیت وړ موضوع نه ده او کابل به کله د دې ضرورت وینې چې د کراچۍ ( د هغه وخت مرکز ) ښه نیت تر لاسه کړي . دا به ښه خبره نه وي چې قبایل بیا هم د شطرنج په پخوانۍ لوبه ( بادشاه گردۍ ) کې استعمال شي .

مسعود همیشه بدگمانه دي ، له دوی سره په جرگه کې د جگړې د میدان په شان معامله په سختۍ سره تر سره کیږي . یوازې هغه څوک به د مسعودو په ستونزه پوه شي چې کری ورځ یې د دوی مناقشې او استدلال ته غوږ اینبی وي او ستونزه یې هم تر هغه پته ده چې بری تر لاسه کړي . دا بینخي د یادونې وړ خبره ده چې د اصفت باید په جگړه کې له دسپلین سره یو ځای وي او د قبیلوي سرشتې زیږوالی ورسره وي ، همیشه د مسعود وینه سر ته ځي او په نتیجه کې د بې رحمانه انفرادي عمل سبب گرځي . په عین وخت کې له دفتر څخه د باندې د سړک پر سر یا د غره په لمن کې تر ده خوشحاله ملگری بل نه شته .

هیڅکله به څوک د هغه د چای څښلو مهال هیر نه کړي . هغه خلک چې کلونه او میاشتې یې ژوند ورته تر یخ کړی او پر اوږو یې ورته درونډ بار غوندې اینبی دی نا ځا په د خدای په امانۍ په وخت کې ښه سفر در ته غواړي او لاسونه دې په دوستۍ ټینگوي او حتی په سترگو کې یې اوښکې گرځي او بالاخره دې پردې باندې دې معتقد کړي چې دا اوږو درونډ بار دوړلو ارزښت لري .

البته بدگمانه سړی به وایي چې دوی غواړي چې ته ژر ورک شې . مگر دا به دده غلطي وي . هرو مرو به کله چیرته ددوستۍ یوډول اړیکي ښکاري .

هاویل لیکي : دسرحد دچارو ایجنسي داسې یوه درنده دنده ده چې جسماني ، روحي او حتی اخلاقي دروند بار دی چې دسړي دملاتیر ماتوي . داد هر منصبدار وظیفه نه ده هر سړی یې نه شي ترسره کولای . دا وظیفه خاص مرلي خلک غواړي حتی په مرلو کې هم دگوتو په شمیر محدود کسان ددې وظیفې تاب راوړي ، نو ځکه دپالیسۍ بدلون دمسعودو له تاریخ سره غاړه غړې وي .

له دې پلوه پاکستاني منصبدار زموږ په نسبت ډیرې گټورې نقطې لري . ټول پښتانه هم نه دي خو هغه چې دي بیا هم دې ته چمتو دي چې دمسعودو او وزیرو پښتـو ومني . ددوی پښتـونواله ډیره زیږه او گـرانه ده . بې له ژورفکره او پر ځای عمل پرته دهغې سرته رسول گران دي . مسعود ندرتاً پر خپلو دیني اصولو ولاړ دي ، خو تر هربل مسلمان دده جذبه او دده کرکه په اسانۍ سره دپوهیدو وړ ده . پاکستانیان داسې ادعا کوي چې زړونو کې پوره بدلون راغلی دی . قبایل دپاکستـان حکومت خپل حکومت بولي . پر دې سربیره ددوی دپوهې سطحه هره ورځ لوړیږي . لیسې او متوسطې دقبایلو په هره سیمه کې بې شمیره دي او په دې پوهیدلي دي چې باید زده کړه وکړي . فکر کوم چې په دې برخه کې موږ ناکام شوو ، مگر ترټولو لویه او مهمه تجربه داده چې قبایل دمرکزي او ایالتي حکومتونو په پارلمان کې غړیتوب لري او استازي یې موجود دي . دقبایلو آواز په پارلمان کې لوړیږي او اوریدل کیږي . مهمه داده چې په قبایلو کې خلک اوس له دې سره پوره علاقمندي لري . دوی دهرڅه امیدواري لري او حتی غواړي یې . وکیلان انتخاب شوي او په پارلمان

کې پرخه لري ، خو سره له دې انتخابي سیستم ځانګړی شکل لري او دموکراتیک نه دی او دا به تر یوه وخته پورې دوام وکړي ، دا خو څرګنده ده چې په سرحدي سیمو کې انتخابات او وتونه په دموراتیک او آزاد شکل سره فعلاً عملي نه دي ځکه چې دا خلک لا تر اوسه حکومتي او اداري کنترول نه مني . دا کوم ګران کار نه دی چې د سیمو د پرابلمونو مثالونه یاد کړو . مثلاً دوټونو دورکولو ویش ځای باید په څه ډول وي ؟ په جنوبي وزیرستان کې هلته چې مسعود او دوانه وزیر اوسیږي په لومړي سر کې داسې پریکړه شوې وه چې ټوله ایجنسي یو ځای وي او د غربي پاکستان اسامبلۍ ته دې دوه وکیلان ور واستوي . په نتیجه کې دواړه مسعود انتخاب شول او دوانه وزیرو رایې یې ونه ګټلې . د دې خبرې ساده دلیل دا دی چې مسعود په سیمه کې مسلط او ترټولو قوي دي . دوانه وزیرو د دغو انتخاباتو هر کلی ونه کړ او پر ۱۹۲۰ کال د انګریزانو پر ضد د دوی مرستې ته رانغلل : نو دا پوره څرګنده شوه چې د انتخاباتو حوزې باید د قبیلوي جوړښت او موجودیت مطابق جوړې شي . بل دا چې د ټونو اچولو لپاره څه ډول پروسیجر غوره شي ځکه چې هلته احصائیه نه شته او د خلکو د عمومي راجستر لپاره هم کوم پروسیجر نه شته . د خلکو دادعا ګانو لپاره بې طرفه او حق پال پولیس هم نه شته ، ( یوازیني قوت خاصه دار دی ) . د رایې ورکولو لپاره عمر او نور د نارینه یا ښځینه ووټ ورکوونکو کوم خاص شرایط نه دي وضع شوي . بل دا چې هر سړی تر غاښو پورې وسلوال دی څه ډول کیدای شي چې پر هغو باندې قانون او مقررات ومنل شي ؟ د داسې عملي سوالونو حل یوازې خیالي حل لري او بس.

دلته دوی ته چانس هم شته چې د پښتنو قبیلو جوړښتونه د غربي مفکورې دورته ادارو په چوکاټ کې راولي دلته چې قبیلوي سیستم فعالیت

کوي ملک او مشر اساسي رول لوبوي . ملک او مشر په ډېره کې ناست دی
او ځوان جنګیالي یې په شاوخوا راټول خپل دي . هر یو یې دومره شخصیت
لري چې بې سواله باید اجازت ولري . په لویو او سترو چارو کې دا ډېره د ټولې
قبیلې غړيتوب کوي . په کوچنیو او وړو چارو کې په قبیله کې دننه د : خېل ،
زي او پلرني نماینده ګي کوي د دوی نه لیکل شوی قانون د جرګې پرېکړه ده ،
چې بالاخره په متحد او ټولنیز شکل سره عملي کېږي او ټول له هغې څخه
اطاعت کوي . ځینې کسان چې په اقلیت کې مخالفت کوي ، په پای کې د دوی
نظر یې رد کېږي . اما که چیرې مخالف کوم قوي شخصیت وي کیدای شي
چې جرګه اوږده کړي او حتی د خپلې مفکورې خواته یې واړوي . تر ټولو مهمه
خبره داده چې هر څه په ډاګه ویل کېږي . په پټه ( سري ) رایې اچول نه شته .
کله که د مسعودو جرګه د دووټ لپاره د پولیسو ستیشن ته راوبلل شي او یا
پخپله د کاندیدانو تر منځ پورته شوي لاسونه وشمیرل شي دووټ مسئول
مامور به حیران وي چې څه وکړي . دا پروسیجر د قبیلې له احساساتو سره
مطابقت نه لري . زه یقین لرم چې دې ته به هم د حل لاره پیدا شي او داسې
سیستم به وي چې د قبیلې له دود سره تړلی وي او له دود څخه ګټه واخیستل
شي . د دې مانا به داوي چې قبیلې ته وویل شي چې جرګه دې شي او پخپلو
طریقو دې وکیلان وټاکي او خپل وکیلان دې وروپیژني . کله چې پرېکړې ته
ورسیږي نو بیا ټوله جرګه راځي او وایي چې « دا زموږ استازی وکیل دی . »
موږ دا ازمیښت تیر کال له مسعودو سره عملي کړ او نتیجه یې ښه وه . دا ډول
سیستم قبیلوي مسوولیت څرګندوي . دا به دیوه تن او یا ګروپ پرېکړه نه
وي ، بلکې ټوله قبیله به په کې لاس لري . نو په دې صورت کې که څه جنجال
جوړیده له ووټ ورکوونکو او جرګې څخه به لرې په بل ځای کې وي .

له ټولو خطرونو سره سره زما عقيده داده چې قبيلوي استازي توب به باقي پاتې شي او په دې سيستم سره د کراچۍ لاس پر کابل باندې بر دی . فعلاً خو داسې نه ښکاري چې افغان حکومت دې دا ډول سيستم معرفي کړي . دافغانستان لويه جرگه يو فيوډالي جوړښت دی . نوې مفکوره خو داسې ده چې د پېړيو له زاړه واده څخه کوم ماشوم چې زېږېدلی دی له غربي مفکورې سره دی ، او سبب يې هم دبرتانيې سل کلن موجوديت او له قبايلو سره اړيکي دي . په هر حال ميړنۍ قبيلې له مور سره وجنگيدې خو سره له دې موتر منځ اړيکي او مينه ژوندي پاتې دي ، خاطرې به تل پاتې وي او يو بل ته به نقل کيږي . دهغو پرينسټ به پاکستان او مسعود خپل پوړونه آبادوي او دخلکو لپاره به ډېره اسانه وي چې يو له بل سره بې تکليفه او بې تشويشه نږدې شي . کومې وظيفې چې د دوی په مخکې کې پرتې دي . دهغو داجرا کولو لپاره به له پخوانيو اشتباهاتو څخه انتباه واخلي او د سياست دبې ځايه او اسانه بدليدو او اوښتونو څخه به مخنيوی وشي .

هاويل په پای کې ليکلي وو: « پرېږدئ چې دا انعکاس وليدل شي ، د پيړۍ په پيل کې لږ حرکت د پيړۍ په مسير کې لوی بدلون راولي . »

# پنځه ویشتم څپرکی

# شمال غربي سرحدي ایالت

کله چې مونږ خپلې زمانې ته رانږدې کیږو په واقعي ابعادو کې ددې دانځور لیدل ډیر مشکلیږي . ده‌مدې دلیل له مخې زه غواړم چې د نن تمایلات او حرکات تېول پر مغزو بار پریږدم او په ګډوډ شکل سره د کیسې پای ته ځان ورنږدې کړم . ما فکر وکړ دا به ډیره ښه وي چې هر څه داسې سره و پییم لکه علت او معلول چې غاړه غړۍ په داستان کې پر مخ تللي دي ، مګر دلته ترټولو لوړ او نهایي مطلب لا پر ځای پاتې دی . که څه هم تر اوسه پورې مو په تیرو پاڼو کې پر هغه باندې سیوری اچولې دی ، مګر د عمده مسئلې په شکل مو نه دی څیړلی . هغه د پښتنانه د ملي بیدارۍ د شکل او مضمون سوال دی، په هغه ډول سره چې سیاسي مفهوم یې په ښه شان په‌کې بیان شي .

پر ۱۹۰۱ کال د پښتنو بیل ایالت ایجاد شو او پر ۱۹۵۵ کال هغه څه ناڅه نور هم لوی شو . د دغه پس منظر په رڼا کې د هغه تضاد او مقایسې له مخې به وکړای شو چې لږ تر لږه ځانګړي تمایلات ، حوادث او حتی شخصیتونه چې په دغه ډیزاین کې یې جوش خوړلی دی ، را منځته کړو او د تیرې پیړۍ د نیمې برخې انځور به د کل په شکل وګورو .

ډیره موده مخکې له دې څخه چې پر ۱۸۹۹ کال کرزون Curzon وایسرای مقررشي ، دا په ګوته شوې وه چې د شمال غربي صوبه سرحد ایالت چې هغه وخت د پنجاب یو برخه وه په تشکیلاتي لحاظ زیاتې نیمګړتیاوې درلودې . کله چې د اباسین د غاړو شا و خوا سیمې چې زیاتره برخه یې له هوارو میشته شویو سیمو څخه عبارت وې اداره یې له ګټې سره دلوړ و قدمو په لاس کې وه ، خو هغه قبیلوي برخې چې هلته عملي کنترول دقیق او روښانه نه و ، په یوه قدم غلط اینبودلو سره نه یوازې د هند د مرکزي حکومت د مسوولیت جلبول وو ، بلکې لندن هم خوځیده . په لومړیو ورځو کې د قبایلو اړیکي د محلي مامورانو له خوا پر مخ بیول کیدل او بین المللي سرحد هم نه وتثبیت شوی ، نیمګړتیاوې څرګندې نه وې مګر سره له دې هم د روسانو پر مختګ او فشار په مرکزي اسیا کې زیات شو . پر ۱۸۷۷ کال د لیټن Lytton له خوا یو پلان جوړ شو چې د هغه په نتیجه کې د مرکزي حکومت اتوریته او کنترول پر سرحدي اداره باندې مستقیماً اغیزه درلوده او د ټولو ولسوالیو اړیکي یې یو له بل سره ښه کړل . په یوه وخت کې لیټن پیشنهاد وکړ چې لوی سرحدي ایالت له پښتنور څخه تر سمندر پورې جوړ شي .

د انګریزانو او افغانانو دویم جنګ د دغو مفکورو سبب شو ، خو کله چې بلوچستان اشغال شو له پیل څخه کویټه د مرکز تر کنترول لاندې وه او حتی

چې خیبر ، کورمه او دوزیرستان او ملکنډ ځینې سیمې هم ونیول شوې . بې نظمي او بې مظقي دانگریزانو فکر ته هم ورڅرگنده شوه . پر ۱۸۹۵ کال دقبایلو او صوبو کارونه چې په ملکنډ کې دوړاندې تلونکو حرکاتو له سببه تر تاثیر لاندې راغلي وو ، دهندوستان دحکومت تر مستقیمې ادارې لاندې دیوه منصبدار له خوا اداره کیدل او همدارانگه د ۱۸۹۷-۱۸۹۸ پاڅون دمنطق پوهانو بحث ته یوه نقطه لابله ور زیاته کړه . پر۱۸۹۹کال « کورزون » چې ۳۹ کلن ځوان و ډیره هڅه کوله چې دا معضله حل کړي . بالاخره د ۱۹۰۱ د نوامبر پر ۹ نیټه چې دپاچا دزیږیدنې ورځ وه ، پر دې بریالی شو چې شمال غربي سرحدې ایالتNWFP وزیږوي . داباسین دغاړې څلور ولسوالۍ ، پېښور ، کوهاټ ، بنو او دیره اسمعیل خان او پنځمه یې داباسین دخولې ولسوالۍ «هزاره » له پنجاب څخه بیلې شوې او د NWFP ایالت ورڅخه جوړ شو . پنځه ایجنسي او سرحدي منطقي تر « ډیورند کرښې » پورې چې دولسوالۍ منصبدارو له خوا داره کیدې ، هم په دې ایالت کې شاملې شوې . دبلوچستان غوندې دلته چیف کمیشنر Chief Commissioner دټولو اداري اوسیاسي چارو مسوول و ، دقبایلو سیاسي خبرې هم په ده پورې تړلې وې او راساً دمرکزي حکومت تر امر لاندې و . هغه منصبدار چې دې وظیفي ته غوره شوی و هغه هیرالډډین Harldod Deane و چې دملکنډ دایجنسۍ بنسټ ایښودونکی و .

ددې بدلون په هکله پخپله پښتنو داسې خاصه علاقه نه ښودله ، مگر دانگریزانو لپاره دنوي ایالت جوړیدل څه اسان کار نه و . کورزون Curzon په موجوده وضعیت کې د ۱۸۹۷ جنجالي حالت څخه وروسته چندان بدلون ونه لید او له پنجاب نه ددې ایالت بیلیدل دانگریز له خوا اعلان شوي وو . دوی

پریکړه وکړې وه چې د پېښور او ډیره جاتو کمیشنران دې په عادي چارو کې له پنجاب څخه هدایت واخلي او له اداري څخه دباندې قبایلي چارو او عمده مسایلو کې دې راساً له مرکزي حکومت څخه هدایت واخلي . کورزون ددې پریکړې دعملي کیدو په هکله شک درلود . وایت هال White Hall ( هغه کوڅه ده چې دانګلستان حکومتي دایرې په کې دي ) ته یې ډیر لیکونه واستول او ددې سیمې دخپل ارادیت Statuo quo لپاره یې تول بحثونه له منځه یوړل . کورزون Curzon خپل کیس ( ددعوی موضوع ) ته په کرکټر ستیک شکل سره پراختیا ورکړه . ده لومړی نبنه ونیوه ، بیا یې یوه مرمۍ وویشته او ورپسې یې په ضربه اوربل کړ . ده د ۱۸۹۹ د اپریل پر ۵ مه نیتېه حکومت ته ولیکل : « وایسرای دقبایلو او سرحدي چارو مسوول دی . دی مجبور دی چې دا چارې دخپلو تر لاس لاندې خلکو له لارې څخه نه ، بلکې دیوه لوی ایالتي ماشین له لارې پرمخ بوځي ، چې دسرحد چارې او مشکلات ایالتي اداري لپاره یو اضافي کار بلل کیږي . نتیجه دا شوه چې په عادي وختو کې دپنجاب حکومت دسرحد ي چارو لپاره پالیسۍ ټاکې او دهند حکومت یا له هغه څخه پورته هیڅ ډول مداخله نه کوي ، مګر په اضطراري حالاتو کې دهند حکومت کنترول په لاس کې نیسي او د ایجنټانو په واسطه کار کوي حال دا چې ایجنټان یې هم خپل نه دي او دپنجاب حکومت هیڅ څه په لاس کې نه لري له ورایه ورته ګوري او هر څه چې پیښیږي انتقاد پرې کوي .

هغسې چې کورزون خپل کیس ته پراختیا ورکوله دمکورت ینګ Mackworth Young دپنجاب د لیفټینینټ ګورنر له خوا ورسره سخت مخالفت پیل شو .د ۱۸۹۹ کال دنوامبر میاشت کې کورزون شکایت وکړ چې

ده د پنجاب مشر ته هر هغه څه ویلي دي چې زړه یې غوښتل او معامله یې ختمه ګڼلې وه ، حال دا چې د ده مادون له ده سره په مناقشوي شکل مباحثه اوږده کړې او وایسرای یې له نامیدۍ سره مخامخ کړی و .

کورزون په ترخه لهجه لیکلي وو : « زه تر دې سیستم لاندې کار نه شم کولای . زه نه شم کولای چې ساعتونه ساعتونه به د خپلو مرستیالانو (لیفتیننت ګورنران) سره په سوال ځواب تیروم او د سرحد د پالیسۍ د مقصد ، مرام ، هدف ، کرکتر ، خصوصیت او ممکنه محدودیتونو په هکله به هره شیبه مناقشه کوم ، که چیرې دوی قصداً د هغو له پوهیدو څخه انکار کوي او د هغو په اجرا او تطبیق کې او تې بوتې کوي . زه مجبور یم چې یو پوه منصبدار تر لاسه کړم چې زما پر مقصد پوه شي او هغه څه تر سره کړي چې زه یې وایم . د هند حکومت پر خپل حماقت او ناپوهۍ باندې ښه پوهیږي او په سیمه کې خطر لا پسې زیاتوي او سره له دې هم د سرحد او ځان تر منځ یې د پنجاب حکومت ځای پر ځای کړی دی او پر څه نه پوهیږي او شل کاله د خندونو اچولو او کمزوریو آله و .

اوس موږ او روچې دی د بطریې اور بلوي د ۱۹۰۰ کال د سپتمبر ۱۲ مه نېټه ده . دا ښه لیکنه او دویلو ارزښت لري . دی په قهر سره وایي : « زه هڅه کوم چې دا تائید کړم بل داسې هیواد په ټوله نړۍ کې نه شته چې په تیورۍ کې دومره بې منطقه وي او په عمل کې دومره مسخره او بې توپیره وي . دا د باندینیو چارو د وزیر او د دوی د فعالیتونو لوی خنډ ( مادون حکومت ) تر منځ خاړ پوځي وهي . هغه حکومت چې د ده لاس لاندې مامور نه دی ، یوازې د جغرافیوي موقعیت له مخې استدلال کوي چې د جنګ او نا ارامۍ سیمې ته نږدې پروت دی . دا استدلال په خپله ماتیږي ځکه چې د کال پنځه میاشتې

اعلی حکومت او محلي حکومت دواړه څنګ په څنګ په سیمه کې اوسیږي. » اوس خوندوره خو داده چې داسیستم دې مستقل وي خو نهایي مسوولیت به یې دهند په حکومت پورې تړلی وي . دا سیستم به له دې چې ددوی دعمل ملاتړ وکړي ، چلیږي . داسیستم دهند خارجه وزیر او دده ترلاس لاندې ایجنت چې نه سفیر دی او نه وزیر ، تر منځ پروت دی او دادمحلي حکومت یو به ځایه اضافي غړیتوب دلیفتننت ګورنر په جامه کې موجودیت لري . که څه هم سیستم به له ناکامۍ خپل صداقت په وظیفه کې ښودلی او وفاداري یې ثابته کړې ده ، مګر سره له دې دفرکسیون بازۍ ، اسطکاک او ویشلې شورا باعث شوی دی . په مبالغه ییز شکل سره مرکزیت او سنترالیزم ښیي چې به له څنده باید لرې شي .

دبرتانیې حکومت دداسې تهمتونو او انتقادونو زغم نه درلود او په ډیر هنر او دیپلوماتیک شکل سره یې دنوي سرحدي ایالت جوړیدل ومنل ، مګر کورزون ددې فکر هم نه وکړی چې رسماً یې باید لومړی د پنجاب ګورنر ته پیشنهاد کړی وای ، نه داچې ددولت وزیر ته یې وړاندیز وکړ . لکه چې دده دبیو ګرافۍ لیکونکی اشاره کوي کورزون دداسې پروسو دوروستیو نتیجو په هکله یې توپیره و . دیوه مخالف بیخي لرې کول او له منځه وړل هرومرو حساسیتونه هم لري ، دیوه ډیر لوی شخصیت په توګه ده ښاغلي مک ورت ینګ Mackwarth Young ډیر شریف او دلوړفکر خاوند او دوظیفي دمسوولیت ښه احساس کوونکی وباله ، مګر ده هیڅکله ځان ته تکلیف ورنه کړ چې دیوه ګورنر په شان خپل نظریات ثابت کړي او ثبت یې کړي .

مک ورت ینګ خورازیات په قهرو . ده ویل چې دا موضوع باید دایالت په سطحه څیړل شوې وای او بې له مشورې داسې یو پیشنهاد مستقیماً پورته

لیږل یو غیر اصولي حرکت دی . ده ولیکل : « تاسو هیڅ پروا ونه کړه چې له ماسره مشوره وکړئ . تاسې زما له مشورې پرته په هغه سیمه کې چې علیاحضرتې ملکې د هغې حاکمیت ما ته راکړی دی ، اداري بدلون راولئ . »

حتی پنځلس کاله وروسته چې ما پنجاب وپیژندله ډیرو د کورزون خلاف نظر درلود . په هغه وخت کې چې بدلون راته مخالفت دومره شدید و چې ځینې یې راوپارول . په ډهلي کې یو منصبدار فانشاوې « Fanahawe » نومی چې د ډهلي کمیشنر و استعفی وکړه اوویل یې چې د یوه لوی ایالت حیثیت ته ډیره لویه صدمه ورسیده . ده ویل چې ددې کار په مقابل کې ما دا قربانی ومنله چې د دولت پر ضد له خپلې وظیفې څخه استعفی وکړم . ځینو دده استعفی یو افراطي عمل وباله او ځینو نورو عادلانه وګڼله .

مور تاسې ته مهمه نقطه دانه ده چې رسمي اصول تر پښو لاندې شول او یا داچې دوو ډیرو لویو اشخاصو خپل منځ کې شخړه پرې کړې وه . مهمه داده چې اصل جنجال او اورده مناقشه په رسمي اسنادو کې ثبت شوي نه دي . په لند دول به ووایم بیلوونکو سرحد ډیره مهمه موضوع بلله او دا ګورنر دوظیفې یوه برخه ګڼل یې تفاوتي . ده ځکه چې هغه دسرحدي چارو کومه تجربه له لري او دهغوی پر اړتیا او نه پوهیږي . که نور هیڅ هم نه وو ، خو تر موجود سیستم لاندې تولې هغه چارې چې باید ژر تر سره کیدای همیشه له ځنډ سره مخامخ وې . ددغو تولو مسایلو شاته هغه معلومات تل ضرور وو چې دسرحدي چارو په هکله دبهرني سیاست او پالیسی او ددغه ګران او خطرناک سرحد ددفاع لپاره په کار وو . دمک ورت ینګ کیس څه ناڅه درسمیاتو دماتیدو په شکایت ډ ک و او ده دعوی کوله چې دسرحد اداره که مستقله شي قیمتي او غیر فعاله به وي او دمشرانو له کنترول څخه به محرومه شي او هلته

به دداسې بې تجربو مامورانو تمایل پیدا شي چې دولسوالیو داداري حق به په قبایلو پورې او یا افغانستان پورې تعلق پیدا کړي .

دا ټول سوالونه او دلایل چې له پنجاب څخه په کار اچول شوي و و تر زیاتې اندازې پورې مبالغه ییز وو. دوی ویل چې داداري دکنټرول په هکله له پنجاب څخه څکه همیشه عمل نه کیده چې ناوړه اغیزې ونه کړي او حالت لانور کړکیچن نه کړي . دا هم ربښتیا ده چې دنوې ادارې تشکیل او کادر لړو . دا نقیصه تر څه حده پورې د « سیاسي خدماتو » Political Seroice پرغاړه هم وه . له دوی څخه پرته په سرحد کې ښه ښه صاحبمنصبان راټول شوي وو او ښه خدمت یې کاوه . دوی له پنجاب څخه او څینو نورو ولایاتو څخه راټول شوي وو. دوی د پنجاب په ورځو کې په سرحد کې ښه نوم پرې ایښی دی او څو محدود تنه یې زیاته موده پاتې شول ، چې دخلکو دود او ژبه یې هم زده کړل . د پنجاب برعکس دلته نوی تشکیل او نوی سازمان پر دې قادر شول چې امنیت وساتي د خپل خدمتونو زیاته برخه دې دلته تیره کړي . بې له شکه په عمومي ډول دا یو ګټه ور فکتور و چې په جدیت کې یې حسابیدای شي . په هغه وخت کې سرحد کوچنی نه و چې نادیده وګڼل شي . زه فکر کوم چې دسرحد دصاحبمنصبانو سویه تر نورو مرکزي او ایالتي خدماتي صاحبمنصبانو څخه ټیټه نه وه او دلته ښه ښه صاحبمنصبان وظیفه دار وو .

دولسوالیو تابع کول او یا د قبایلو ګټې هغه نقطه وه چې ځواب یې روښانه دی . مونږ ته څرګنده شوې وه چې له ۱۹۰۰ کال څخه دمخه دولسوالیو نیولو اود قبایلو دګټو تر منځ انډول ته چانه کتل او دګډوډیو سبب به وو او په نتیجه کې به هر کال قوتونه دښخړو سیمو ته دمجازاتو د تطبیق په شکل استول کېدل . دجنجال ریښې ته چا پاملرنه نه کوله او دمخنیي تدابیر نه نیول کېدل . لنډه دا

چې تر کومه ځایه چې دسرحد چارې په نظر کې وې دلاهور له خوا څه اجراات نه ووشوي او کوم ریکارد یې موجود نه و چې پرې وویا ړ پړي . په دې کې شک نه شته چې د حالاتو په نظر کې نیولو سره دحاکمیت په هکله کورزون حق په جانب و . د هرالډډین Harlld Deane په دوره کې په لومړیو اوو کالو کې ، دنوي ایالت په موجودیت کې هیڅ لښکرکشي نه وه . یوازې دمسعودو د داړو دخنثی کولو لپاره دمرک Merk بلوکاد ته کله کله تاو و رکول کېده .
له Deane « ډین » څخه وروسته « روس کیپیل ، Roos- Keppel دحکومت موده یوولس کاله ده چې دلومړي نړیوال جنګ دوره وه او ایالت کلک ولاړ و . که څه هم د غیر عربي اسلامي هیوادو په ډله کې د ترکیې زیات احترام کیده خو زموږ پر ضد ودریده . روس کیپیل واقعاً هم دخپلو سیمو سیاحت پیل کړ او په دې موده کې له دوو وړو جګړو سره هم مخامخ شو . ددغو عملیاتو اندازه دومره کوچنۍ وه چې داونۍ دپای درخصت جګړه یې بلله . ( Weekend war ) او همدارنګه پر ۱۹۱۷ کال په وزیرستان کې دمسعودو پر ضد دقوت استول وو ، خو په عمومي ډول تر ۱۹۱۹ پورې کله چې نړیوال جنګ پیل شو دلته خاص څه نه وو . دعمومي جګړې له پیل سره دلته هم نا آرامي پیل شوې او ددغو توپانونو باد له افغان لوري څخه پو کیده او دپنجاب او هندوستان دپینبو د تازه کیدو سبب به شو . ددغو شخړو عوامل محلي نه وو . په دې کیس کې له کورزون سره حسادت شوی دی .
سره دله دې چې ددوی شخړې ډیرې پراخه شوې خو دکورزون دکیس په لندیز کې پوره معلومات نه شته . ده دلایل درلودل او د تاریخ په رڼا کې یې موږ اوس وینو چې سرې بایدژور وګوري او هغه دلایل بنایي کافي وي چې دغو بنتل شوي بدلون دتائید لپاره کافي وي . هو لوستونکی چې نن ورځ هغه

اسناد لولي ويه ويني چې د تدبيرونو د نيولو او پر نفوسو باندې د تاثيراتو په هکله هيڅ شی نه شته. په دې هکله هغه وخت چې دوی د ولسواليو د خلکو دحقوقو د تابعيت په اړه خبرې وکړې ، د پنجاب واکمنو له مخالف موقف څخه هڅې وکړې چې لااقل دا واقعي موضوع وبولي . که څه هم دوی اقدام وکړ خو نتيجه گيري يې سمه نه وه . کورزون د خارجي سياست پر ضروریاتو باندې زيات ټينګار وکړ خو هغه غرنۍ ته کوم چې ده اوريدلای شو او هغه ديوه غريب او بيچاره سړي آواز و. دا دهغه چا آواز و چې د سرحد د غرونو په لمنو کې پورته کيده . دا به هغه وخت پورته شو چې باد ، زلزله او اور به مړه او آرام شول. يوازې هغه چا دا آواز اوريدلای شو چې دخلکو له زړونو څخه خبر و او دهغه تعبير هم اسان کار نه دی . داغږ ديوه پښتانه دوياړ او غرور غږو . دا غږ د پښتانه دبيدار احساس پيژندنې غږو چې خپلې قبيلې ته وفاداري ښيي او دسياست پوه دا وظيفه وه چې دغه احساس ته يې استقامت ورکړی وای چې په هغه کې د لويې صوبې گټې نغښتې وې . يوې محراقي نقطې ته اړتياوه ، حقيقت داو چې دا محراقي نقطه ديوې نوې صوبې جوړول وو ، چې دهغې ارزښت دظاهري دفاعي او باندينۍ پاليسۍ له اړتياو څخه لوړو او دا کار يوازې هغه چا کولای شو چې دده هيلې او آرزوگانې پاکې او له مايوسۍ څخه فارغې وې ؛ داسې ښه شرايط يې تيار کړي وای چې په هغو کې ديوې مطمينې دفاع جوړښت پيل شوی وای .

ددې کتاب په هره برخه کې که دنسب ده او که له پښتنو د مغولو کړه وړه دي ، له بابر څخه نيولې بيا تر اورنگ زيب پورې او که دخوشال خان اشعار دي او که دالفنستون تعريفونه دي ، په هريوه کې په مکرر ډول سره د دراني اوغلجو توپير دسليمان دغرو او داباسين او غرو تر منځ جنگي

اوسیدونکو قبیلو سره ښودل شوی دی. کله کله دا توپیر دلویدیزو او ختیزو افغانانو په نوم دی. کله کله دا توپیر د کرلاني زامنو د سپین غره او سلیمان دغرو اوسیدونکي قبیلې او دانور ټول. کله کله بیا دا توپیر د « روه » دپښتنو او دراني یا غلجي په نوم دی. ځینې وخت دا توپیر د پښتو او پختو ژبې له مخې دی او ځینې یې لا لوړ لویدیځ خواته نیم پښتون نیم فارسیوان بلل کیږي. دا توپیر دافغان او پښتون تر منځ قاطع شکل نه لري. ځکه چې یوسفزي او ځینې نورې لویې قبیلې چې د پېښور په هوارو کې ژوند کوي تر دراني یا غلجي مشرانو زیات دافغان دنامه دعوی کوي.

دا توپیر سره له دې هم پوره روښانه نه دی او یقیناً په هیڅ جغرافیوي یا سیاسي ویش سره لکه دډیورند کرښې غوندې نه دی بیل شوی، مګر دا دانګریزانو له راتګ څخه لا دمخه موجود و او کله چې انګریزان دې سیمې ته راغلل دسلیمان غره داوبو تویېدو دهغې غاړې چې دانګریزانو په سلطه کې وه ټول پښتني قبایل یې تر حاکمیت لاندې راغلل. ددغو قبیلو تر منځ همیشه اړیکي وو دمثال په توګه دسوات یا دیر یوسفزي او دسمې مندړو تر منځ دخلیلو، مومندو او اپریدیو تر منځ دختکو، بنوڅیو او وزیرو تر منځ نسبت نورو قبیلو او درانیو سره زیات اړیکي شته. دوی د روه اوسیدونکي دي. دوی زیاتې فکري اړیکي اوتبادلې لري. دوی داباسین په اوږدو کې تجارت کوي. دوی په خپلو کې د یووالي مفکوره لري که څه هم هغه همیشه په ډاګه نه اظهاریږي او عامې شریکې ګټې لري چې قبیلوي مفکوره بیانوي.

هغسې یې چې زه وینم د شمال غربي سرحدي صوبې جوړول او دهغې پنځوس کاله موجودیت اصلي هدف و او چې په لومړي سر کې یو اداري واحد جوړ شي او وروسته په سیاسي واحد بدل شي او مرام په دې کې رېښتې وکړي او

بیا پوره وده وکړي او په یوه اکتیف ژوندانه بدل شي ، دا سیمه په داسې وخت کې تر دغې مفکورې لاندې په نظر کې ونیول شوه چې د سرحد د خلکو وفاداري او پلوي مجهوله وه . د مغولو د امپراتورۍ له ماتیدو څخه وروسته دا ټوله سیمه د لښکر کشیو ، اشغال او متقابلو بریدونو کوریدور شو . د درانیو او سکانو وسلو او لښکرو په دې منطقه کې ډیرې لوړې او ژورې ولیدلې . هیڅ څه یې په سیمه کې ټینګ نه کړل . نو کله چې د دې بې ثباته قوتونو ځای د انګریزانو اردو ونیوه . دوی پښتانه داسې شمیرل ګواکې د هند یوه برخه و . په داسې حال کې چې پښتانه هیڅکله د هند برخه نه وه . بلکې لودیانو ، سوریانو ، یوسفزیو او اورکزو په هند کې حکومتونه کړي وو . آیا دا حق وچې دوی د پنجاب تر حاکمیت لاندې د نورو سیمو په شان یوه سیمه بلل شوې وای ؟

نو د سرحدي صوبې بیلیدل د پښتنو دویاړ او غرور لپاره یوه شمله شوه او د دوی پوزه پر ځای شوه . په عین وخت کې د یوه څه کوښښ او هڅو په نتیجه کې ډیرې قبیلوي منطقې او ولسوالۍ ترادارې لاندې راغلې . سربیره پر دې داحقیقت چې دا اداره مستقیماً د مرکزي حکومت تر لاس لاندې وه د خلکو په اذهانو کې یې مثبت تاثیر درلود ځکه چې دوی داویاړ درلود چې د ایالت تر حکم لاندې نه دي او د مغولو له زمانې څخه را په دیخوا دوی همیشه ختیځ ته کتل نه لویدیځ ته چې دا د انګریز حکومت لپاره مهم ټکی و . بالاخره ده په پېښور کې یو ځل بیا مرکز درلود او هغه ده ته تاریخي ارزښت درلود . د دې ضرورت نه وچې دی دې د کار او ضرورت لپاره لاهور ته ولاړ شي . البته د سیاحت تګ مستثنی دی . نو ، کورزون ښایي په غیر اګاهانه شکل سره د پښتانه حیثیت یو ځل بیا اوچت کړ او په دې توګه یې سرحد هم وساته .

او س د دې وخت راغلی چې په وروستۍ پرده او صحنه کې د پښتانه درنسانس دوره په خپل وخت کې وګورو .

# شپږو یشتم څپرکی

## د پښتانه درنسانس دوره

ددې لپاره چې دبدلون مرحله په ښه توګه پرمختګ وکړي ، نویو او تازه متخصصانو ته ضرورت و ، داسې خلک چې د کورزون په هیلو پوه شي او هغه عملي کړي چې دی یې ورته وایي ، مګر داسې خلک به شوک وي چې خپل مهارت او پوهه او تخیل په کار واچوي او له پراخ لرلید سره ابادۍ ته ملاوتړي . داسې سړي پیدا شول . درې تنه یې هیرالډ ډین ، Harald Deane جورج روس کیپیل Geerge Roos-Keppel او لوړ شخصیت صاحبزاده عبدالقیوم خان وو . درې واړه نن د تاریخ په پاڼو کې ښخ دي ، درې واړو واقعاً خپل ژوند ورسپارل شوي کار ته وقف کړ . داسې وخت راغلی دی چې باید درې واړو ته یادګاري څلي جوړ کړو .

هیرالډ ډین په لومړي سر کې د پېښور د یوسفزو دولسوالۍ د کمیشنر

مرستیال واو مرکز یې په مردان کې و . ډیر کلونه وروسته مردان مستقله ولسوالۍ شوه . مردان همیشه شهرت درلود ځکه چې د منډړو یوسفزو دلویو کورنیو مرکزو او د « لاربنود » قوتونو قشله همدلته وه . داسې ادعا کیدای شي چې څوک چې پښتانه نه وو او له پښتنو سره یې اړیکي درلودل ، زیاترو یې په دې سیمه کې نوکري کړې وه . ددې لپاره چې یو سړی وپیژندل شي او احترام یې وشي دنورو باید احترام وکړي او پر هرچا گران اوسي او د یوسفزو په ټولنه کې د مشرانو په څنگ کې ځای ولري ، باید د پښتنو په ازاد جوړښت کې ورگډ شي ، هر څوک چې پر دې راز بریالی شي نو دې موقف ته رسیږي چې د پښتنو روح ورسره گډیږي . ډین هم داسې یو سړی و .

ظاهراً دی جذاب و ، لوړ قدیې درلود او پر هرچا یې سام درلود ، آبي سترگې یې وې ، ده داسې دارادې او باوړ ک انځور درلود چې پښتنو ته دمنلو وړو . دی کلک سړی و او ویره یې نه درلوده ، دی خوش طبعه سړی و او په عین وخت کې مغرور و . دبادار طبیعته ټوکو ټکالو لپاره نن هم یادیږي . د یوسفزو خانان اوس هم دده د تکتیکونو کیسې کوي . کله چې د « هوتي » خان خواجه محمد خان یې تشویقوه چې د یوه کار په هکله خپل تر دد پریږدي او عملي یې کړي ، هیرالډ ډین او خواجه په لس میله رفتار پیل وکړ ، خواجه توربنا یسته بوټان په پښو کړي وو چې دهغو ورځو فیشن و . دوی خپل تگ ته دوام ورکړ . تلل او تلل ، بالاخره خواجه محمد خان زړه تنگی شو او خپله غوسه یې اظهار کړه او دې ته تیار و چې حتی داسمان سپوږمۍ هم چا ته ورکړي خو چې له تگ څخه یې خلاص کړي مگر ډین دی تر پایه له ځان سره تگ ته وهڅاوه .

هرالډ ډین وروسته د پښتونوږ د ډیپوټي کمیشنر مقرر شو او په دې وخت کې

دمالیاتو دټولو لو مسوول یو صاحبمنصب دلویس ډن Louise Dane په نامه خورا مشهور او وروسته یو وخت د پنجاب لیفټیننټ ګورنر هم مقرر شو ، موظف شوی و . ده همیشه په ښوځایو کې ژوند کاوه . دده روحي کوړونه په سیمله او لاهور کې وو . یوه ورځ یو ساده خان د پېښور په یوه هوجره کې ناست و او د « ډین » او « ډن » دنومونو په سر حیران و چې کوم یو یې کوم یو دی . نو دخیلو له یوه ارباب څخه یې پوښتنه وکړه او هغه په ځواب کې ورته وویل عیناً لکه شیر یا شیر ، نور څه فرق نه لري .

دملکنډ دایجنسۍ دجوړولو لپاره هر الډ ډین ډیر زیار ویوست . دا لاس ته راوړنه دتبلیغ شوي بلوچستان مسئلې څخه چې « سانډیمن » وریاندې نوم. ایستلی و ، هم مهمه او لوړه خبره وه . کورزون له ده سره په پېښور کې لومړی ځل هغه وخت ولیدل چې د پارلمان دوکیل په توګه کابل ته روان و او له امیر عبدالرحمن خان سره یې ملاقات درلود . ده ورسره زیاته علاقه پیدا کړه . کله چې کورزون وایسرای مقرر شو نو ده هر الډ ډین دنوې صوبې دچیف کمیشنر په توګه غوره کړ او دخپلو عالي رتبو صاحبمنصبانو او مامورانو دپاسه یې مقرر کړ . ډین دچیف کمیشنر په توګه له دې نامه څخه زیاته ګټه واخیسته او دمجازات ورکولو نظامي لښکر کشي پالیسي یې وګرځوله او په پښتنو کې یې نوم پریښود . دا ځکه چې پښتنو دی پیژندلو چې صادق او دکلکې ارادې خاوندی او خبره یې یوه خبره ده او دډار سړی نه دی نو دی واقعي سوله جوړونکی شو . ده هیڅکله دسولې په هکله لافې نه وهلې ، چیرته بڼاسوله نه وه نو درواغ به یې نه ویل . ده به چې څه ویل پر هغو به یې عمل کاوه او ځکه هر چا پر ده باور درلود . پر ده باندې دکار او وظیفې فشار خورا زیات و او روغتیا یې زیانمنه شوه . ډین دکار په وخت کې ولوید او پر ۱۹۰۸ کال کله چې

کورته ورسیده مړ شو .

روس کیپیل Rous-Keppel په کورمه او خیبر کې نوم وګاټه او زیات وخت پولیټیکل ایجنټ و . په عین وخت کې د محلي ملیشې قوماندانی هم ورپه غاړه وه . دی په وینه هالینډی - سویډنی او انګریزی و او د کیوناري (کیوګناري ) Cavagnari په شان یو ټیپیک انګریز و . که څه هم ده خپل ژوند د لومړۍ کرښې په غونډ کې پیل کړ ، خو د ځوانۍ زیاتره وخت یې په سفر او سیاحت کې تیر کړ . په ژبو کې ډیر وارد و ، یو ښاري سړی و او ډراماتیک احساس یې درلود ، دغه چا لپاره چې پر ارثیت باور نه لري ، روس کیپیل ښه مثال کیدای شي ، ده روښانه شخصیت درلود . څه یې چې فکر کاوه هغه یې کول او له ورایه ښکاریده چې دی غیر انګریزی و . ده همیشه همدردي او خواخوږي له غرور او قضاوت سره ګډوله . سخاوت او استهزا یې دغه چا لپاره چې نه به یې خوښیده ، یوځای کول او له کینې څخه به ډک و . ده کلک کرکتر درلود او پرخپلو شاوخوا خلکو یې پوره حاکمیت درلود . ښه ملګری او خطرناک دښمن و . دی له مور څخه زیږیدلی اداره چي و . دانسان د طبیعت کمزور تیاوې یې سختې غندلې او ندرتاً یې ځینو خلکو ته د ښه سړیتوب کریدت ورکاوه . دی غټ ، دروند او غښتلی سړی و . دده دسترګو ځار خوند وراو ډاروونکی نه و . په ځوانۍ کې یې ببره ږیره درلوده ، خو په پاخه عمر کې یې ایډواردي بریتونه ( ګڼ ، اوږده ، شخ بریتونه ) پرېښودل او ږیره یې کلوله . ده هیڅکله واده ونه کړ او ډیرو نږدې دوستانو به یې چې واده کاوه ، ده به ښکنځل ، ده به ویل : « د شیدو لپاره غوا ساتل په کار نه دي . » ده مینه هم کوله . خو سره له دې خلک ورڅخه ډاریدل او دا ډول خلک د ډاروړ دي . دده مینه له نرمۍ سره نه وه ، مګر په ډیرو برخو کې ده مینه

او دوستي را پاروله .

ما ، دی یوازې دوه واره ولید . یوځلي د پښور ښار له یوې پوستې سره چې یوه صاحبمنصب ته خورا په غوسه و . ځکه چې هغه په چابکۍ او جدیت سره رسم تعظیم نه وکړی او دویم ځلي مې دی هغه وخت ولید چې دوایسرای له خوا ده ته د گراند کراس Grand Cross ( لوی صلیب ) د میړانې نښان ورکول کیده . په دې وار د ده په خوله کې نیمگړې غوندې موسکا ښکاریده او په غرور سره ولاړ و ، ده خاص طاقت درلود او دادده ځانگړې خود خواهي او جاه طلبي نه وه ، بلکې د پښتنو تولنیز او سیاسي جوړښت پر ده باندې هم اغیزه کړې وه او په عمل کې هم دده ژوندون له پښتنو سره په ویاړ او غرور کې روزل شوی و . ده له پښتنو سره مینه او خواخوږي درلوده او پښتنو ته یې کار کاوه او د پښتنو په خصوصیاتو پوره بلد و . ددوی په ژبه ښه پوه و ، ده هر وخت د مجلس له روحیې سره سم متل ، مقوله ، بیت او جمله بې له ځنډه ویل او څرنگه چې هغه به پر ځای وتولو به په مینه اوریدل . دی د خپلې خوښې ستیج ته ښه اکتورو . ده پوره توان درلود چې له حالاتو سره سم خپله قیافه جوړه کړي . ده کولای شول چې له موسکا څخه جدیت ته واوړي . له مناقشې څخه تهدید ته ولاړ شي او له امر او قوماندې څخه وړاندیز ته واوړي . ده له انتقاد څخه ویره نه درلوده . دخلکو په راجذبولو او داحساساتو را پارولو کې نابغه و . ده دیوه ملک او مشر په شان کار کاوه . دی د پښتنو په منځ کې پښتون و .

ده پرنورو باور درلود او دباور کولو روحیه یې په ټولو کې روزلې وه پر ده باندې هم ټولو باور درلود او دباور وړ شخصیت و . د پښتنو په منځ کې په تیره بیا دملگرو په منځ کې د دوستۍ احساسات ژر ښکاریدل مگرد روس کیپیل

داحساساتو اظهار نه کیده او هر څه دده په قواره کې پټ نغښتي وو آر-کې، (R.K) (روس کیپیل پر دغو دوو ټکو شهرت درلود ) خپل خوبونه او خیالونه درلودل . دده تر ټولو لوړ خیال د پښور داسلامیه کالج جوړول وو. په دې ابتکار کې ده په مینه زیار ایسته . په خیبر کې یې له اپریدیو سره بیلې معاملې درلودې او داسې څوک هم ورسره وو چې دده دفکر ترجمان او دده دزړه دخیالاتو ژباړونکی او مرستیال و . حتی په ډیرو مواردو کې کټ مټ دی و . داشخصیت نواب صاحبزاده عبدالقیوم خان و . ددغې پیړۍ په دویمه لسیزه کې ( آر - کې ) دعبدالقیوم خان په هکله یادونه کوله او دزړه سړی یې باله . مګر سره له دې دوی دواړه بیخي بیل شخصیتونه وو او دیوه بل نیمګړتیاوې یې سره پوره کولې . عبدالقیوم خان چې هر چا پیژانده ، دده په طاقت او قوت قانع و ، مګر د روس کیپیل برعکس دی ډیر مودب شخصیت و او دهر چا یې زیات احترام کاوه . دوی دواړو په ګډه د پښور اسلامیه کالج پیل کړ . نن ورځ یې د پوهنتون په سطح پراختیا موندلې ده . دا ددوی دواړو لیدل کیدونکی او ژوندی یادګار دی چې ددواړو د پوهې او له پوهنې سره د مینې ښکارندوی دی . پوهنتون په داسې سیمه کې بنا شوی چې مخته یې شنه پټي ځلیږي او یو وخت دخیبر ددرې تر زامو لاندې دجګړې سیمه وه ، داکبر خان اوهري سنګهـ دجګړې میدان و . دوی دا کار وکړاو ښه یې وکړ . که څه هم په هغه وخت کې به چا دا ځای مناسب نه باله او دوی به ورته دانتقاد وړ ښکاریدل ، سپین جومات ددوی یو بل یادګار دی چې شاوخوا څو ونې لري او هلته هرډول محرم دننه مصئون دی د آر - کې په ورځو کې سپین جومات دمسافرو وروستی کګلیچ و چې دخیبر خواته به تلل ، مګر نن ورځ ټوله لار او ټوله سیمه په شنو ونو پټه ده . داد هیلو او امیدونو ځاله ده چې بالاخره یې په

سیمه کې ښکلي پوهنتون وزیږاوه .

په دې کې هیڅ شک نه شته چې د ار - کې رژیم د پښتنو د پرمختیا او غرور ساتلو لپاره زیاتې هلې ځلې کړي دي . سیل او سیاحتونه ، جرګې ، دربارونه او نورې ټولنیزې هلې ځلې د جګړې په وخت کې هغه هڅې دي چې د پښتنو اداري واحدې ژوندی وساته ، د غو هلو ځلو او هڅو نوی جریان جاري وساته چې په نتیجه کې خلکو د قبیلې له تنګ حدود څخه د باندې نظر واچاوه ، او واقعاً چې اسلامیه کالج د خلکو په پوهه او لرید کې هم خپله ونډه پوره ادا کړه .

دار- کې کمزوري په دې کې وه چې د دې سیمې د لوړو زده کړو لپاره یې کوم پلان نه درلود او همدارنګه د فارغانو لپاره یې څه پیش بیني نه درلوده . دی پر دې کلک و چې قبیلوي دود او دستور دې په قوت سره پاتې شي او د حکومت د پریکړو او دلویدیځ رنګ او انځور قضاوت ورسره نه و . مګر هغه ولسوالۍ چې له پنجاب څخه بیلې شوې او په صوبه سرحد کې شاملې شوې د پنجاب له انستیتوتونو څخه په ګټې اخیستنې سره د بدلون خواته روانې وې . دده لپاره یې نا مطلوب حالات جوړول . خو سره له دې د دغو بدلونونو پروا یې نه کوله . ده پرځان باور درلود چې هرڅه چې دی د پښتنو لپاره کوي هغه تر ټولو څخه د پښتنو لپاره ګټه ور دي . د مونتاګ چیمفز فورد د-Mantagu Chelmsford د سرحد دریفورم پروګرام یې غانده او داسې یې باله لکه چې دباروتو په ډیپو کې ګوګړ کښیږدي حتی لیونیل کورتیس Lionel curtis ددوی استازی د آر- کې له خوا پر دې قانع کړای شوی و چې د پښتنو سیمه دریفورم لپاره تیاره نه وه او د مسوول حکومت لپاره د جوړولو وخت نه و . کله چې پر ۱۹۲۰ کال ټول هند د بدلون او پرمختیا تر پروګرام لاندې راغی ،

شمال غربي سرحدي صوبه پر خپل حال بې بدلونه پاتې شوه . د پښتنو په سیمه کې رایې ورکول ، انتخابات ، قضا او وزارت نه وو. حتی محلي اداروته انتخابات نه وو . درایپون Ripon داتیایمې لسیزې ریفورمونه په سرحد کې تحمیل نه شول . آر - کې ( R-K ) داسې فکر کاوه چې دغه ټول سیستم د پښتنو د دود او دستور دبدلولو لپاره شخړې را منځته کوي . ځواب یې دا و چې پښتانه پرېږدي ددوی خپل دود او دستور ښه دموکراسي ده . ترټولو مهمه داده چې دوی دغسې خوشحاله دي ، آر - کې په دې کې پاتې راغی چې لوړې زده کړې دانسانانو پر ماغزو څه تاثیرات راولي او که دا فرصت ورکړ شوی وای د پښتنو ماغزه دهغو اخیستلو ته چمتو و . که چیرې سرحدي غرور په پوهه اوزده کړې سره مجهز کړای شوی وای نو نن به یې بدلون منلی او دنیمې قارې په هره برخه کې به یې خدمت کاوه ، نو ځکه خلکو ته باید نه یوازې اجازه ورکړ شي ، بلکې تشویق شي چې دور ځې له فیشن سره ځان عیار کړي . په یوه لاس دی پر دې مصروف و چې قبیلویت مات کړي او له بل لاس څخه یې دکور په جوړولو کې کار وانه خیست چې قبایل به په راتلونکي کې هلته ترمیمیږي . نتیجه دا شوه کله چې دی ولاړ خلک یوازې په خیال پلو کې پاتې شول . آر - کې پر ۱۹۱۹ کال تقاعدو کړ او بیاژر مړ شو. عبدالقیوم خان څو واره ماته وویل چې آر - کې په لندن کې ناجوړه پروت دی او مرګ په ده پسې و ، په تیره بیا کله چې ده تقاعدو کړ او یوازیتوب دده خپګان زیات کړ او دمرګ خواته یې ورکش کړ ، همدارنګه هغه چاته چې ده کار کاوه ، دی یې هیر کړی و او دا هم یوه ضربه وه چې نهیل کړی یې و .

عبدالقیوم خان دده نږدې ملګری او مرستیال تر ۱۹۳۷ پورې ژوندی و او پر ۱۹۳۲ کال دصوبې لومړی وزیر مقرر شو . له ۱۹۱۹ څخه وروسته

دلومړيو دولسوکالو او د آر - کې دځای کیناستو نکو تر لاس لاندې صوبه پر تام مرکزیت ولاړه وه . دصوبې یوازینی استازیتوب ددوو نوموړ شوو وکیلانو په واسطه کیده چې د دهلي پارلمان ته به وراستول کیدل. دغه دوه وکیلان په هغه وخت کې یو عبدالقیوم خان واو بل یې له هوتي څخه محمد اکبر خان و .

دجنګ دزمانې ديوسفزيو په هکله که سړی خبرې کوي هیڅ امکان نه لري چې ددوو نوابانو عبدالقیوم خان او دهوتي اکبر خان په هکله ونه غږیږي . عبدالقیوم خان له آر - کې څخه هم لرې کیدونکی و . عبدالقیوم خان او له انګریزانو سره دپښتنو دسنیتیس اساسي معمار و چې دسیاسي جوړښت لپاره یې بنسټ ورته کیښود او بالاخره سرحد دغربي پاکستان یو کلک دیوال وګرځید . په حیثیت ، شخصیت او عزت کې په روحي ، معنوي او ظاهري لحاظ دده په زمانه کې دی په ټولو کې اوچت وځلید ، که په پېښور کې و او که په ډهلي کې و او که په لندن کې دګردي میز په کنفرانس کې ، دلوړ حیثیت درلودونکی و . دی ډیر په زړه پورې عجیبه سړی و . سریې همیشه لوړ او اوچت و . غښتلی او ویال سړی و . غټې غټې بریتونه یې درلودل ، سترګې یې دباز په شان وې په ښکلي او متین قدم یې لار وهله او په عین وخت کې جذاب او زړه وړونکی و . له هر چا سره یې داسې خبرې کولې لکه چې له ده سره مساوي وي . له هیچا څخه یې ځان پورته نه باله . دده فکر او نظر ډیر پراخ و ، په دې هکله یې ساری نه درلود . دی و چې دبرتانيې له حکومت څخه یې دڅو کالو په موده کې دریفورم لپاره دوه قسطونه پیسی تر لاسه کړې .

دده کور دمنډړ یوسفزیو دلرې کونج په ټوپۍ کې و چې داباسین له غرو څخه سمې ته راوځي ، دپلار له خوا لودي صاحبزاده ګانو ته ورګډیږي چې

دومره زيات شهرت نه لري . مګر دده نيا ، مور او ميرمن يې « کوټهاملا » ته منسوب وو . کوټهاملا ( Kotha Mula ) يو مشهور « حضرت » و چې دټوپۍ دګاونډ کلي داخوند صاحب دزمانې سړی و . کله چې عبدالقيوم خان د ۱۹۳۷ په وروستۍ مياشت کې مړ شو دده په جنازه کې ډيرو خلکو ګډون وکړ چې په دې سيمه کې يې ساری نه درلود . دمسلمانانو دجنازې مرام هميشه په زړه پورې او له برم ځخه ډک وي . خپلوان ، دوستان او ګاونډيان ټول په وير کې غم شريک وي . عبدالقيوم خان او لادونه نه درلودل . دده په مړينه کې يوازې کليوال او قبيلوي خلک نه وو ، بلکې له خپلې سيمې ځخه يې تيری کړی واو چا چې پيژندلو دده په مړينه کې حاضر وو . دده دمړينې مراسم داسې وو چې تر ډير و پورې خلکو يادول او دی له مړينې وروسته دخلکو په اذهانو کې راژوندی شو .

دهوتي اکبر خان درې کاله دمخه مړ شوی و . هغه بيخي بل ډول سړی و . دخواجه زوی و . هيرالدين په سپورتي رفتار کې مات کړی و . ( دی ځای پر ځای دريدلای و ) . دی دپښتنو دخانانو خان و . دی دمغول اکبر شاهنشاه جوړونکي بيرم خان غوندې نه و . دی چندان سياستمدار نه و خو ډير کلک دود او دستور ساتونکی او محافظ ځمکوال و . په جسماني لحاظ ډير قوي او پنډ سړی و . دچا خبره چې آس يې پورته کولای شو . ښه کوپړۍ يې درلوده . آبي - خاکستري رنګه سترګې يې درلودې او باړخوګان يې سور بخسن وو . دده له ملايانو سره جوړه نه وه او دا طبقه يې ( هولې بولې ) بلل او ددغو کارولپاره يې عبدالقيوم خان هميشه دمثال په ډول يادا وه ، ده په زور غږ کې وويل : « صيبه ! داسړی پښتون نه دی . تا کله اصلي پښتون ليدلی دی چې ملاوي ؟ ( په يوسفزو کې داخبره بيخي سمه ده ) . سيدان ! سيدان څوک دي ؟

خبرې د پښتون کوه . » مګو نواب صیب ! تاسې خود واړه د یوسفزو دسیمې خانان یې . دا به داوریدونکي ځواب و . یقیناً داسمه خبره ده . په ټولنه کې یو سړی له بل سړي سره یوځای خامخا کار کوي خو دننه احساسات فرق لري .

نه ! نه ! نه زه ! او نه دی ! یو شی درته ووایم : هیڅکله خپل تو پیرونه ټولنیز ژوندانه ته نه ورګډوو . او موږ پر دې کار ویاړو . ډیر ښه ! نواب صیب آخر مې راګیر کړې . نو بالاخره اعتراف کوې چې عبدالقیوم خان بیا هم پښتون دی . ده به په موسکا درته وکتل او ناڅاپه به یې خوله له خندا ډکه شوه او غرغر به یې پورته شو . دی تل تندر او پړکه نه و. دی ډیر پوه سړی و . په تاریخ ، فلسفه او اسلامي زده کړو کې یې پوره لاس درلود او دډهلي شمال ته بل داسې څوک نه و چې دده په سویه کتابتون دې ولري . که څه هم دی قوي او نیولی ښکاریده خو درښتیني خان په شان یې دروازه تل پرانیستلې وه او له غریبانو سره یې مرستې کولې او نه یې غوښتل چې سخاوت یې خلکو ته ښکاره شي . دده کمزورتیاوې دخلکو له خوا له سپکاوي سره نه وې مخامخ او پر خلکو ګران و . همدارنګه عبدالقیوم خان ته دکلکې اسلامي عقیدې په خاطر خلکو احترام کاوه . ددغو دوو نوابانو هم عصر یو بل شخصیت هم دیادونې وړ دی . هغه میا ګل شهزاده خان دسوات د اخوند لمسی او دسوات دایالت جوړوونکی دی . اخوند مومخکې دکار اکار په غاښي کې لیدلی چې پر ۱۵۹۶ کال مو داکبر داردو ماتې بیانوله . پر ۱۹۲۲ کال ده ددولت داری غټ تمرین ترسره کړ او په دې بریالی شو چې په دې سیمه کې هغه څه تر لاسه کړي چې ډیرو په کې ماتې خوړلې وه . ده دروحي میراث او دمشرتابه له تشدد څخه کار واخیست او په کلک دسپلین سره یې یوسفزي په یوه سیاسي

قالب کې جوړ کړل او په خپل ازمیښت کې بریالی شو . دی دا کبر شاهنشاه په شان د تاریخ دسیاسي حوادثو ماستر او دخلکو دسوق او اداري خاوند و . په عمل کې دارادې او پریکړې خاوند و . صادق او په وظیفه مین و . دا کبر په شان له زده کړې شخصه محروم و خو ډېرې قوي حافظې څښتن و . دی دخپل لیډرشیب ښه مثال و او په خپله خاوره کې یې ساری نه درلود . خلکو یې پر ده باندې ویاړ کاوه .

دا حیرانوونکې خبره ده چې پښتنو میاګل ته دومره زیات احترام کړی او داخوند صیب لمسي دومره قابلیت درلود چې دسوات په اداره کې یې له سید-عبدالجبار شاه سره رقابت او مناقشه په بریالیتوب ته رسولې ده . سیداکبر شاه دسیتانې او سیدونکی دده نیکه و . دسکانو پر ضد یې داحمد شاه بریلوي تر مشرۍ لاندې جهاد کاوه . دی تر ډېرو کلو پورې دسوات «بادشاه» و . پر ۱۸۵۷ کال مړ شو . دده موقف ډېر لوړ و . دا چې دبونیر دپیر بابا له اولادو شخه و ډېر رسوخیت یې درلود . کله چې دی مړ شو دسوات خلکو دده دزوی مشرتوب ونه مانه او دوی داخوند خواته مایل وو . که په بونیر کې داخوندپلویان نه وو خو دسوات خلک یې غوښتونکي وو ، مګر کله چې پر ۱۸۷۷ کال اخوند مړ شو « دسیتانې » سیدانو شهرت یو ځل بیا را اوچت شو . پر ۱۹۱۵ کال داکبر لمسی دغه عبدالجبار شاه په سوات کې دبادشاه په نامه د خلکو له خوا وټاکل شو او داباسین له ختیځ شخه له «امب» نه تر سوات پورې ده ، دوه کاله پادشاهي وکړه . دی ډېر هوښیار سړی و او دسیمې تاریخ ښه ورته معلوم و . ښایي په بل وخت کې به په هر ډول سختو وظیفو کې بریالی و . مګر دی له بهر شخه راغلی و او د هغه چا له خوا حمایه کیده چې هغه یوسفزی نه وو . بلکې سیمې ته پردي خلک وو او بالاخره په

نتیجه کې داخوند داولادو په مقابل کې یې چندان بریالیتوب ترلاسه نه کړ او میدان داخوند لمسي وګاټه .

د یرشم کلونه چې د پر مختیا کلونه وو میا ګل پر سوات حکومت وکړ . وریې هر چا ته پرانیست خپلو خلکو او سیمې ته یې سوله راوستله . داسې سوله چې به پیړیو پیړیو چاته معلومه نه وه . د پښتنو دویش زوړدود یې لغوه کړ . ( په معینو وختو کې به ځمکه بیا ویشل کیده ) . ده په هرځای کې روغتونونه او ښوونځي آباد کړل . ده په خپله اراده دژوند وروستي کلونه په انزوا ( ګوښه والي ) کې تیر کړل او زوی یې حکومت کاوه . دده پوهه ، عقل او مهارت وچې دیوسفزیو کرښو ته یې امنیت راووست او دا ښکلې او ښایسته وادي ډیره شتمنه او آباده شوه . دا یوازې سوات او شاوخوا سیمې نه دي چې دابادۍ په لوري بدلون په کې روان و . په نوې شمال غربي سرحدي صوبه کې مثبت تحولات په چټکۍ سره روان وو . په هرځای کې مثبت قدمونه او چت شوي وو . په فضا کې بیل احساسات وو . ټول په خوښۍ سره دخپلو خیر خواه مشرانو تر مشرۍ لاندې د پرمختیا لور ته په تړپووو . بیداري شروع شوې وه. دا څرګنده ده واقعاً چې هلته استراحت نه و او بیړه کیده . په تیره بیا کله چې پر ۱۹٤۷ کال قدرت انتقال شو . ټول هغه کارونه چې پر ۱۹۲۵ کال پیل شوي وو . بې له انقطاع جاري وو . ټول هغه منحنیات چې په هغو وختونو کې تت ښکاریدل نن ورځ ډک شوي دي خو پخواني رنګ او شکل یې ترینه لاندې لاهم بریښي .

د پښتنو وطن په عمومي ډول په کرنه او ورشوګانو آباد دی .څرنګه چې دابو لګولو سیستم پراختیا وموندہ پراخې هوارې سیمې او به شوې ، په کراره کراره راژوندۍ شوې او دسیمې د آبادۍ سبب شوې . دحبوباتو اصلاح شوي

تخمونه له استراليا څخه راوړل شوي او کرل شوي دي . تنبکو او بوره يې داسيا دښو حاصلاتو په ډله کې حسابيږي . دا ځمکې چې يو وخت په اغزو ډکې وې يوازې اوښان اوا وزې په کې څرېدلې نن پر ښې زراعتې ځمکې بدلې شوې دي . دسکانو کومې ورانې ويجاړې چې شوې وې دوخت به تيريدو سره بيا آبادې شوې ، په پسرلي کې دزرد آلو او شفتالو باغونه په ښکلو رنګارنګ پاڼو سره ښايسته ښکاري او يوه مياشت وروسته دنارنج ګل ټوله فضا خوشبو يه کوي او په ژمي کې پخيږي . پېښور دګنو له پلوه شهرت لري او دګوړې فابريکې يې اوس دبورې په فابريکو بدلې شوي او د پاکستان دژوندانه مهمه برخه جوړوي . تنبکو پخوا دنسوارو لپاره يوازې په سوابۍ او هزرو کې کرل کيدل مګر اوس دکانال په ټولو سيمو کې کرل کيږي او مهمه صنعتي برخه تشکيلوي . دبزګرانو شتمني مخ په زياتيدو ده . دځمکې ددهقانۍ او اجارې سيستم ښه شوی او دکروند ګرو په ژوند کې يې هم ښه اغيزه کړې ده . دپېښور ، بنو او سوات وادۍ دشمال په زړه پورې برخې او ښايسته باغونه شمېرل کيږي .

دکرنې په برخه کې يوه سړي ترټولو زيات کمک کړی دی او بايد تل يادشي ، هغه رابرتسن براون Robertson Brown يو کوچنی ، ټيټکی سکاتلينډی وچې ترشلو کلنو يې زيات ګوښې او يوازې په يوه فارم کې له آبادۍ څخه په ميلولرې په « ترناب » کې تير کړل . هلته ده بې له ستومانۍ ښودلو بزګرانو ته دکرنې دښه کولو په خاطر هر څه ور زده کړل . دحبوباتو ، ميوو او ژويو دښه کولو طريقې يې وروښودلې . ده پخپله ديوه بزګر په شان دحاصلاتو دښه کولو لپاره زيار ايسته . دده يوازينۍ تفريح داوه چې ښه حيوانات به يې په ميله کې ننداړې ته را ايستل او دبزګرو په دې ميله کې به

يې خلک مالدارۍ ته تشويقول ، ده دهر بزگر په زړه کې تکه شنه خاطره پرې ايښې وه .

په دې جريان کې نوي روښان فکران له ښوونځيو او کالجو څخه مخ په فارغيدو وو . دواړه دايدواردز او اسلاميه کالجونه په پېښور کې په خپل دود او ځانگړې طريقه پر مخ روان وو . د پښتون قوم ځان پيژندنه او بيداري احساس کيده ، دصاحبزاده او ايدواردز خاطرې دلته ياديدې ، چې دخيبر په خوله کې يې داسلاميه کالج بنسټ ايښی و . داتصادفي خبره نه وه چې دصوبې داکتر و خدماتو په راس کې هغه پوهان او روښانفکران ولاړ وو چې له اسلاميه کالج څخه فارغ شوي وو . په داسې حال کې چې ډاکټر خان صاحب ذتړول هند نظر درلود او په پخوانيو کالجو کې روزل شوی و او شير شاه سوري ته يې زيات اخلاص او احترام درلود . دواړه جريانونه په کار وو . يوه تعليمي بنياد لټولو چې دمحلي پښتنو رنسانس پيل شي او بل هڅه کوله چې دنيم قارې په پرمختيا کې د پښتنو ځای ولټوي .

ددغو دوو کالجو په څنگ کې د پوهنې نورې شبکې زياتې شوې . ليسې ، متوسطې او ابتدايې جوړې شوې . دسرحد ځوانانو او هلکانو ته بورسونه او سکالر شيپونه ورکړل شول چې نويو زده کړو ته وهڅيږي . هر کال چې تيريده پښتانه ښه کېدل او دنويو چلينجونو په مقابل کې راويښيدل . هغه ماغزه چې خوبونه يې ليدل پوره راويښ شول . دځوانانو سترگې پراخ افق ته ور واوښتې ، جاه طلبي ، لوړتيا ، زده کړه او دولتي کار او بار غوښتنه دقبيلويت په مقابل کې مخ په وړاندې تلونکي وو او دکابل ددراني فيوډالي حاکميت خواته يې په شک سره کتل پيل کړل .

رنسانس پيل شو . زړې مفکورې بدليدونکې وې . په ټولگيو کې

داستادانو خبرې اغیز منې وې ، تر یوه حده پورې دافغانانو په ماغزو کې انګریزي تفکر ځای نیولی و . دادوه ویالې سره ګډیدونکې وې . د پښتنو هیلې عسکرو ته په جنګ کې او استادانو ته په ښوونځي کې ښې معلومې وې. سیاستمداران چې د ټولو سیاسي خبرو پلانونه یې جوړول دومره خبر نه وو. د برتانیې اداره چیان هم د پښتنو د خبرو او احساس په درک کولو کې ډېر ضعیف وو . داساسي قانون په برخه کې پرمختیا په ټپه ودریده ، تقنیني شوراګانې دهغې مسوولې وې . سیاسي غوښتنې د آل اېنډیا ستراتیژۍ او دفاع تر سیورې لاندې راغلې وې. د ۱۹۲۹ د سایمن کمیسیون Simon Comission پورې ټولې پریکړې د باروتو او شاړورو تر حکم لاندې وې . د ۱۹۲۰ - ۱۹۳۰ پورې د سیاسي پراختیا لپاره هیڅ کار ونه شو. تنفر او کرکه زیاتیدونکې وه تر هغه چې لمبې پورته شوې .

عبدالقیوم خان هروخت پر دې ټینګار کاوه چې صوبه سرحد که چیرې د ټول هند په سیاست کې د ننه پاتې کېږي نو باید پراخ بنسټه حکومت جوړ او برخه په کې ولري . دی له خپلې دې خبرې څخه هیڅکله هم ستړی نه شو . تل یې ویل چې له نورو څخه شاته پاتې یو او نور ټول ډېر پر مخ تللي دي . دوی ټولو خپل محلي سیستمونه درلودل او نمایندګان یې درلودل او خپلې چارې یې پخپله اداره کولې . کله چې په لندن کې پر دې خبرې وشوې چې دا ایالت پورته مقاماتو ته داستازي استولو لپاره کوچنی دی ، ده ځواب ورکړ چې مچ به ډېر کوچنی وي خو کله چې پر تاګه ته ننوځي نو سړی ډېر نا آرامه کوي .

د برتانیې حکومت د لازمو تدابیرو له مخې ځینې قوتونه سرحد ته ولیږل چې بې له هغې حتی عبدالقیوم خان هم نه شوای کولای چې ګردي میز ته قناعت ورکړي او د داسې یوه غیرتمن اوله ویاړ څخه ډک قوم خطرونه په

سپکاوی سره وگوري . په کليو کې نوی سياسي گوند را پيدا شو . دا داسې يو گوند و چې وتړونه او دوتېولپاره صندوقونه ، نه لري او نه کوم پارلماني سيستم لري . په لومړي سر کې د فشار اچولو يوه ډله وه وروسته يو تولنيز تحريک شو چې د برقرار شوي نظم پر ضد يې خلک پاڅول . په سياسي اصطلاح دا يو گوند و چې د نور و اسيايي چارو په شان تقريباً ټولو مسلمانانو ته د منلو وړو او د هندوستان له کانگرس گوند سره يې نږدې اړيکي درلودل ، هلته کانگرس ټول هندوان په حرکت راوستي وو چې پر رهبرانو او هيلو يې عقيده درلوده . په پيل کې د دې اجرائيه قوه د منطقي په حساب جوړه شوې وه او په سرحد کې يې د « افغان جرگه » بلله . د دوی نظامي قوت يو ډول لباس درلود ( يونيفورم) مگربې وسلې و . او د « خدايي خدمتگاران » په نامه ياديدل . دوی په سورنگه لباس باندې ملبس وو . وروسته يې بيا د « سرخ پوشان » په نامه شهرت وموند .

د دې گوند دوه تنه شهرت ته ورسيدل چې په سرحد کې يې زيات رول لوباوه . دا ډاکټر خان صاحب او دده کشر ورور عبدالغفار خان وو . دوی د هشتنگر د آتمانزو د کلي د يوه محمدزي خان زامن دي چې د پښتنو په حوزې پورې تړلي دي . دوی ښه شتمن او ځمکوال خلک دي او د خانانو ورونو په نامه مشهور دي . ډاکټر خان په انگلستان کې طبابت ولوست او له « ډيگري » اخيستو څخه پس يې له يوې انگريزې سره واده وکړ او بيا د هند د طبي چارو په مربوطاتو کې په کارو گمارل شو او ترڅه وخته پورې د « لاربښود » د يوه کنډک طبي افسر و . دده ورور بيله لار غوره کړه . ده هميشه کالي اغوستل ، د زاړه مکتب پيرو و او د يوه کليوال پښتون په شان يې ژوند کاوه . دی په انگريزي ژبه ښه پوهيږي مگر په انگريزي ژبه خبرې نه کوي .

ددواړو تر منځ که څه هم کله کله ورته والی لیدل شوی خو زیاتره ددواړو تر منځ زیات توپیر موجود و . مشر همیشه په صراحت او مخامخ غږیده ، همیشه یې موسکا په شونډو او حتی ځوان ښکاریده . مگر کشر وروږ ډیر لوړ قد درلود ، نری او ویره ورو ، ده همیشه دکلي دژوند ښه تمثیل کاوه ، هوښیارو او زیرکې سترگې یې درلودې ، هریوه دا ثابته کړه چې خلک یې تر تاثیر لاندې راوستلای شول ، حتی مخالفین یې هم ځانته تابع کول . دا دیوه واقعي پښتون غوره خصلت دی .

دهند کانگرس گوند چې دگاندي او نهرو له خوا یې رهبري کیده ، دمذهبي اختلافاتو پر بنا یې یو ټولنیز دریځ درلود ، په هند کې پر دې بریالي شول چې دپخوانیو اسلامي مرکزونو لکه ډهلي او لکنهو څخه زیات ملاتړ تر لاسه کړي، مگر شمیریې لږو ، خو په سرحد کې کیسه بل ډول وه ، دسور کمیسو په تحریک کې ډیر جریانونه پیښ شول . ددې تحریک دنطفې دپیدا کیدو یو دلیل هم دا و چې برتانیې پښتنو ته په سیستم کې په اړونده چارو کې داستازیتوب حق ورنه کړ چې پر ۱۹۲۰ کال نور و ټولو برخو کې استازیتوب په هره ساحه کې منل شوی کارو ، نو ځکه یو ځل بیا لکه دروښانیه دوران او د احمد شاه بریلوي دمجاهدینو دوران په شان په هره برخه کې اور ولگیده ،یو ځل بیا دې ځوریدلو افغانانو ، یوازینی موثر گوند ، دهند دکانگرس گوند ته مخه کړه . کانگرس چې دمتحد هند لپاره یې کار کاوه دا مسئله په دواړو لاسو کې ونیوله ، دسرحد دومره غښتلو او کلکو مسلمانانو دهندوانو د تسلط ډار له حساب څخه وغورځاوه . په دې هیله چې کانگرس به دوی ته هغه څه چې دوی غواړي ورکړي ، په تیره بیا دوی دمالي ،اقتصادي او ټولنیز سیاسي جوړښت ملاتړ غوښت چې دانگریزانو په مقابل کې جگړه وکړي

اوخپل حقوق تر لاسه کړي . په دې توګه ، په لومړۍ مرحله کې د طبقاتي تضاد له ویرې پر ته اتحاد را منځته شو .

په سیمه کې په دې تحریک کې یوه بله لړۍ هم ده ، په لومړي سر کې ټول پښتانه یو له بل سره حسادت او رقابت لري ، حتی په کورنۍ کې هم یو له بل سره رخه شته ، مشر خانان همیشه د خپلو مخالفینو پر روحیه پوهیدل او د دوی په تظاهر بلد وو . دابې اتفاقي او کورنۍ مخالفت د خوشال خان ختک له خوا تل غندل شوی دی او ضرب المثلونه یې ور څخه جوړ کړی دي لکه : « هغوکي چې سپي مومي نو نورسپي ټول ورته ودرېږي . » دویمه خبره داده چې د پښتنو په هر کلي کې د خان تر نامه وروسته یو شمر مزدوران او همسایګان لکه هنرمندان ، نوکران ، لوګري ، لرګي ماتوونکي ، سقاوان ، ډمان شته چې له پخوانیو فتح شویو نفوسو څخه پاتې شوي دي . معمولاً د خپل خان په ژبه غږېږي او په عام ډول سره د خان د دود او دستور پیروان دي ، مګر په ټولنیز لحاظ سره مساوي نه دي ، دې نوي حرکت وکړای شول چې په کورنۍ او قبیله کې د ننه واړه خانان رامخته کړي او دا مزدوران او همسایګان یې د بادارانو په مقابل کې تنظیم کړي ، دا فعالیت په تیره بیا د وټونو اچولو په وخت کې زیات مؤثر وو . نتیجه یې هم د نوي تحریک په ګټه وه . په همدې دلیل کله چې صوبه سرحد ته استازي انستیتوتونه راغلل ډیر وخت نه و تیر شوی چې کانګرس وټونه وګټل ، په یوه وخت کې د سرحد کانګرس پر دې بریالی شو چې موازي حکومت جوړ کړي . دولت مجبور شو چې تر فشار لاندې یې راولي او خانان ورونه یې جیل ته واچول ، مګر بیا هم د صوبې په ګټه یو کار وشو . هغه دا چې پر ۱۹۳۲ کال د چیف کمیشنر له سطحې څخه یې د ګورنر سطحې ته ارتقا وکړه او د نورو ایالاتو په شان یې ټول سیاسي حقوق او مساوي

انستیتوتونه تر لاسه کړل. په دې وخت کې صاحبزاده عبدالقیوم خان لومړی وزیر مقرر شو. پر ۱۹۳۷ کال صوبه سرحد دې ته لوړه شوه چې د نورو صوبو په شان خپل حکومت جوړ کړي. دا اکټ اصلاً پر ۱۹۳۵ کال پاس شوی و. دویم پر مختګ د عبدالقیوم خان له مړینې سره همزمان رامنځته شو او په لویه او پراخه پیمانه قدرت ورکړ شو او ډاکټر خان صاحب د صوبې چیف منیستر (اعلی وزیر) شو. دده ورور د هند د ګاندهي په شان د باندې پاتې شو چې پ. کلیو کې دی د کانګرس د مشر په نامه پیژندل کیده. دی پر دې خوښ و چې بې مسوولیته قدرت و لري.

ما ځینې دلایل وړاندې کړي دي چې ولې د ۱۹۲۰-۱۹٤۰ کلونو په دوران کې د پښتنو ځینو مهمو عناصرو د هندله کانګرس سره تړون وکړ – حتی سره له دې دا ډېره مشکله وه چې سړی د پښتنو دود ته وګوري او د هندو لیډرشیپ سره داوړدې مودې پخلاینه وکړي، پښتانه هره ورځ او هره شیبه له چا سره معامله کوي، پښتون هیڅکله ځان هندي نه بولي، پښتانه به همیشه ویل هندوستان ته تللی وم او یا له هندوستان څخه راغلم او یا هندوستان ته ځم. هندوستان دوی ته د مرګلې لرغابنې څخه آخوا ته پردی وطن ښکاریده. څه ډول کیدای شول چې پښتو ن دې د هندله کانګرس سره یوځای شي؟ بیا هغه څوک چې برهمن دي؟

ځواب یې هم ډیر په شک کې نه دی. له کانګرس سره په یوځای کیدو کې عاجلې ګټې نغښتې دي چې پورته پر هغو باندې څه نا څه بحث شوی دی، مګر دراتلونکي لپاره د سرحد د کانګرس رهبران هم نه پوهیدل چې څه به کیږي؟ ایا دا به امکان ولري چې پښتون د هندو مشرتوب ته غاړه کښیږدي او یا د هغو هدایتونه عملي کړي؟ خوشال خان بابا لا د مخه داسې ویلي وو:

دبهلول او دشــــیر شـــــاه خبرې اورم

چــې په هنـــــد کې پښتـــانه وو بادشاهان

شیر شاه سوري په تاریخ کې نه یوازې دډاکټر خان صاحب لپاره قهرمان و ، بلکې ټولو ښو پښتنو کې ورته د ملي اتل په سترګه کتل کیږي . هغه وخت چې کله انګریزان ټول بیـرته ولاړشي ، هغــه لوړوالی بـه بیـا راژوندی شي . اوس به دومره ووایو چې د کانګرس دمفکورې او د کانګرس له روپیو څخه ګټه اخیستنه څه تاوان لري ؟ ځکه ډیرو همدا سوچ کاوه او په آرام فکر ویده کیدل.

یو کلک اسلامي تحریک په واحد هند کې یو تدریجي او بطي حرکت و ، یوازې هغه وخت دبرتانیې حکومت پریکړه وکړه چې دبرتانیې صلاحیت ته خاتمه ورکړي، دمسلمانانو سیاسي تحریک یو څه توازن پیدا کړ . تردې حده پورې چې مخالفین او غیر علاقمندان یې هم دې ته اړ شول چې د دوی پانې او پوسترونه ولولي ، که څه هم د دوی اراده به نه وه ، ویل به یې تر هغه وروسته دد وو ملتونو تیوري څه نا څه جدي شوه « The two nation theory » دپاکستـــان دجوړیدو مـفکوره لومړی دلرې خوا ( ختـیځ ) اوسیـدونکو مسلمانانو ته په زړه پورې ولګیده ، ځکه چې دا مسلمانان که څه دلوړ کلتور او ښه ژوند خاوندان وو خو دهندوانو داکثریت دتسلط تر اغیزې لاندې وو . « جناح » که څه هم په کراچۍ کې زیږیدلی و خو په بمبي کې اوسیده او « لیاقت خان » دهندوستـان له زړه یانې ډهلي څخه و . تر څو کـالو پورې دپنجـاب مـسلمـانانو چې دسکانو او هندوانو په مـقـابل کـې یې په پنجـاب کې لږ څه اکثریت درلوده د « جناح » دمفکورې په خلاف یې مقاومت وکړ او له مسلم لیګ سره یو ځای نه شول . په سرحد کې چې ۹٤ فیصده نفوس مسلمان وو او ډاکټر خان صاحب یې په راس کې و د کـانګرس په پلوې یې مبارزه کـوله .

دانتخاباتو په مقابل کې يې خپل قوت وساته ، د « دوو ملتونو تيوري » په توازن کې وه خو دهغې قبليدل لا تر اوسه يقيني خبره نه وه .

دنړيوال جنګ په جريان کې دبرتانيې تسلط په قوت کې پاتې و . پر ۱۹۳٤ کال کله چې جګړه دمتحدينو په ګټه بدليده په سرحد او شمالي هند کې دچا په خوب او خيال کې نه وه چې جګړه به داسې ژر پای ته رسيږي . له برياليتوب سره سم د ۱۹۱۹ کال په شان په تسلط کې يو څه سستوالی راغی او په لندن کې هغه حکومت برياليتوب ته ورسيده چې د دې سيمې پريښودل يې غوښتل . عمومي نظر هم داسې و چې له استعمار څخه لاس واخلي . کله چې خلک پر دې پوه شول چې دانګريزي تسلط دختميدو پلان په رښتينې عملي کيدونکی دی ، دسرحد ليډران حيران وو چې چيرته ودريږي ؟ ايا دوی کولای شي چې په سرحد کې په دښمنۍ او فرکسيون بازۍ کې دهندوانو ملاتړ ته دوام ورکړي ؟ اوس خو ظاهراً موانع نه ليدل کيږي . دوی متردد وو ، نهرو چې نوی دباندينيو چارو وزير و پښتنو ته راغی چې خپل حمايت تقويه کړي ، مګر دی ناکام شو او څه حمايت يې تر لاسه نه کړ او هغه څوک هم له خطر سره مواجه وو چې واحد هندوستان يې غوښت . اکثريت افغانانو داسې فکر کاوه چې هغه څه پيښيږي چې نا ممکن ښکاري ، هغه دا چې نه تسليميدونکي افغانان دې دبرهمن هندو تر امر لاندې وي ، يو بل بيريل دې پر مسلمانانو امر وچلوي ، هيچا دا نه غوښتل . نه دسمې او نه دغرو پښتنو داسې بدلون غوښت ، داسلام بيرغونه په رپيدو شوي وو او « جناح » خپله لار پرانيستې وه . ډاکټر خان صاحب او وروريې له قدرت څخه لويدلي وو . د۱۹٤۷ کال داګست پر ۱۵ مه نيتيه دسرحد په صوبه کې عمومي ريفرندم وشو او په ډيرو احساساتو سره ټولو له پاکستان سره يوځای کيدل وغوښتل .

دهماغه کال دنوامبر په میاشت کې ټولو قبیلو ترډیورند کرښې پورې دا لارغوره کړه . دڅلورو سرحدي سیمو : دیر ، سوات ، چترال او امب ځینو خپله وفاداري په آزاده جرگه کې وښودله او ځینو یې بیا بیا لوسیله او دشرطونو په ایښودلو سره خپل ملاتړ څرگند کړ .

داسې فکر ونه کړئ چې دسرحد آخوا پښتانه بې توپیره پاتې وو . دوی دسیاسي او دموکراتیکو پرمختگونو ښه پوره څارنه کوله . دسرحد کانگرس او یا نورو څخه پوره خوشحاله نه وو ، ځکه چې دوی دجلب او جذب هرڅومره هڅې چې وکړې نتیجه یې خورا کمزورې وه . قبیلوي مشرانو اکثر د « جناح » پلوي وکړه ځکه چې هغه دااسلام له نامه څخه گټه اخیستله او برعکس خان عبدالغفار خان چې پوره پر ځان باوري و د پښتو نولۍ په روحیه مبارزه کوله. پښتانه که هر څومره پر پښتو مین هم وي دمسلمانانو تړون یو له بله ورته مقدم دی ، دا احساس ورو ورو غښتلی کیده او پخپله پېښور حوزه کې یې هم تله درنېده ، نوی استقامت را منځته شو . داد کابل دحکومت له یوه دراماتیک حرکت سره همزمان و . دکابل حکومت نوې سیاسي تیوري را منځته کړه چې هغه دپښتو نستان مسئله وه .

پښتو نستان داسې یوه موضوع وه چې دکابل له خوا یو ډول او له پېښور څخه بل ډول کتل کیده . په خپله زمانه کې امان الله خان دپښتنو لباس اغوسته او جرگو ته یې په پښتو خبرې کولې . که څه هم پښتو یې زده نه وه خو دبیا نیې متن یې په یاداوه او پښتو یې ملي ژبه اعلان کړه . وروسته نادرخان او دده ځای نیوونکي له ډې څخه گټې واخیستې او له قبیلو سره په اړیکو کې یې همیشه درد تحمل کړ . دا مو هم باید په یاد وي چې په کابل کې اوسنۍ شاهي کورنۍ مستقیماً دپېښور دسردارانو او لاده ده . محمد ظاهر شاه

دافغانستان اوسنی پادشاه او ځینې وزیران دسلطان محمد خان کودي او کړوسي دي . دپښتونو رمینه ددوی په زړونو کې ځای لري .له ۱۹٤٧ څخه دمخه کله چې قدرت نه وانتقال شوی دافغانستان حکومت رسماً دپښتنو دسیمې ادعاو کړه او دهغو تسلیمي یې له انګریزانو څخه وغوښته .

دوخت په تیریدو سره دا ادعا یو څه بدله شوه . دافغانستان حکومت وروسته ددې ملاتړ وکړ چې دلرې پښتو نخوا لپاره باید مستقل دولت جوړ شي او له پاکستان څخه باید بیل شي . په دې ډول به دکابل او ددوی تر منځ ورور ګلوي وي . دسیاسي ادغام څه خبره نه وه . افغان حکومت دا ادعا هم کوي چې دانګریزانو له تلوسره دډیورند کرښې هم خپل سیاسي ماهیت له لاسه ورکړی دی او داسې ویل کیږي چې دپښتونستان لپاره غربي سرحد نه شي تعینیدای ، وروسته بیا دکابل حکومت په دې هکله بیخي چوپ پاتې شوی دی ځکه چې دپښتونستان ترنامه لاندې ټول لر او بر پښتانه سره یو ځای کیدای شي . ددغو ادعاګانو انعکاسات ښیي چې دافغان حکومت ددې مسئلې په هکله چوپتیا په ګټه بولي . دپاکستان حکومت پر دې کلک ولاړ دی چې هرڅه چې انګریزانو دوی ته ورکړي دي هغه ددوی حق دی . پاکستان له برتانوي هند څخه بیل شوی دی ، دانګریزانو حکومت دا وایي چې دټولنې عمومي نظر او توافق دوی ته دمنلو وړ دی . ( ډیورند معاهده دې وکتل شي ) .

په پاکستان کې دننه دخان عبدالغفار خان دخوښې دپښتنو ایالت بل ډول بیان شوی دی ، سره له دې چې دا انځور بالکل روښانه نه دی ، خو داسې معلومیږي چې دوی خود ارادیت او داخلي آزادي غواړي او دکابل له حکومت سره ددوی غوښتنه توپیر لري ؛ هغه دا چې پښتانه ځان ته بیل

ارګانیزم غواړي . داسې پښتونستان به بې له شکه له هند او پاکستان سره په ختیځ کې زیاتې اړیکي ولري . هغه څوک چې دا نظریه تائید وي د داسې دولت جوړیدل ناممکن بولي . سرحد همیشه له نورو لویو واحدونو څخه اقتصادي ملاتړ تر لاسه کړی دی او صوبه سرحد ددوی لپاره دیوه ډال حیثیت لري ، مګر له دې څخه هم باید انکار ونه شي چې دشیرشاه توره او دخوشال خان خبرې هر څوک دې ته مجبوروي چې پښتنو ته درانه وګوري او دوی حق لري چې مستقل تقدیر و پلټي . اوس دا انځور ورځ په ورځ تت شوی او تت کیږي . حتی شمال غربي سرحدي صوبه دستیج څوکې خپل هغه هویت بیخي له لاسه ورکړی او جز په کل کې ډوب شوی دی . ډیر خواخوږي منفرد پښتون ته د « یو واحد » کلمه چندان په زړه پوري نه ښکاري ، پښبور ښاریولي ، نور دوی ته پلازمینه نه ده ، د پښتانه موقف څه شو ؟ دعبدالغفار خان په شان خلکو ته به دا ډیر تریخ وي ، ددوی ځلا تت کیدونکې ده او ددوی شان تلونکی دی .

نو پښتون چیرته ولاړ دی ؟ ما ویلي وو چې پر ۱۹۰۰ کې دکورزون خبره سمه وه . ده پوره لید نه درلود او پر دې بریالی شو چې دپښتانه نوم په عام ډول را ژوندی کړي او دنیم قارې دجوړولو لپاره یې قوي قوت جوړ کړ . مګر نن دا په دې مانا نه ده چې هر څه چې کورزون هغه وخت ویلي دي بدلیدونکي نه دي او نه دې بدلیږي ، اوس نیمه پیړۍ وروسته بالکل بیل شرایط دي ، یوه خبره خو داده چې لرو پښتنو که په سمه کې دي او که په غره کې دي ، دازده کړې دي چې بې له شکه اجتماعي ، اقتصادي او سیاسي زده کړو او نورو خدمتونو لپاره به ختیځ ته ګوري او دژوندانه ارتقایې آخوا ته ده . ددرانیانو سیاسي ، اجتماعي او اقتصادي نظریې تشې کلمې دي . که سیاسي ګډون

منځته راځي بيخي بل شکل به لري . پېښور به کابل را جذب کړي خو پېښور به په کابل پوري ونه تړل شي . سربېره پر دې د پښتو شاعرانو وفاداري د يوه محراق ارزښت نن سبا داسې ښکاري چې د حکومتونو استازي هم دې ته متوجه دي چې ژوند څه ډول او کومې خواته دی . په سياسي ژوند کې يې سپرغۍ برېښېده . پښتون نابغه هميشه له کور څخه لرې ښه ځليدلی دی . پښتنو قوماندانانو ، پاچاهانو په لرې سيمو کې داسې شعلې بلې کړې دي چې د دوی په غرونو کې يې رڼا منعکسه شوې ده او « دې کې ډير وياړ دی چې د آباسين آخوا واکمنو سره تړلي اوسو نسبت دې ته چې په سرحد کې په بل چا پورې تړلي وو . » داد ډاکټر خان صاحب نظر و او په دې نظر يې له خپل ورور سره ورور گلوی وشلوله . د پښتنو راتلونکې له شک څخه وتلې ده . د پښتنو راتلونکې د آباسين دواړو غاړو له خلکو سره لکه چې پخوا هم تړلې وه او په راتلونکې کې به هم تړلې وي . د پښتنو زړه ورتوب ، د پښتنو شخصيت او کرکتر ، د پښتنو هوښياري او د پښتنو سياسي رياليزم پښتون له خپلو حدودو څخه د باندې لوړو مقاموته رسولی و او يو ځل به بيا هم داسې کيږي او داخل به د خپل کور او حدود د ننه د پښتنو درنسانس څراغ شعلې کوي . دوی دويرې ضرورت نه لري چې په لوی سازمان او پراخ چوکاټ کې ځان وينې ، دوی لکه په برتانيه کې چې سکاټلنډيان دي ، هغسې دي لکه د نورو غرنيو خلکو په شان ، پښتانه به پاکستان کې ، د دشمنيو خاوندان او د ټولنيز ژوندانه په قوماندانه کې به وي . ډاکټر خان صاحب د غربي پاکستان لومړنی صدر اعظم و ، داد پښتنو د توري او قلم ښه مثال کيدای شي .

دا مو هيره نه شي چې هر گام چې په سرحد کې مخ ، شا او يا څنگ ته پورته کيږي ، د مرکزي حکومت توجه او پاملرنه ځان ته جلبوي ، دا ځکه چې

سرحدي صوبه د دولت دامنيت د تامين لوی عنصر دی .

ورځينی سودا ګري له سرحد سره له کراچۍ او لاهور څخه نه شي تر سره کيدای او هلته د سرحد فضا هم نه شته . د دې لپاره چې د سرحد ځينې پرابلمونه حل شي زياته اندازه د سينترااليز يشن ( له مرکز څخه لرې کيدل ) په کار دي .

دلته د تاريخ هغه اوږده موده چې له دوو کلو څخه زياتيږي او اوږدې خبرې مو وربياندې وکړې ، اوس هم دلته پای ته رسوم ، زه مناقشه تاسې ته پريږدم ، او په خوشحالی سره هر انګريز چې له دې سيمې څخه وتلی دی ، د نده لرې چې داخل او داسيمه وپيژني ، له هغوی څخه ، هغه چې ژوندي دي او زه يې بايي هغوی ونه ليکم ، واقعاً چې په عمل کې د دې خلکو په خدمت کې ووا و رښتينې ورور ګلوي يې تر سره کړې او په زړه کې يې نيکې خاطرې له ځان سره وړې دي .

وروستی سړی د قدرت له انتقال څخه د مخه ووت ، هغه زه د دې کتاب ليکونکی وم او داپانې د دې شاهدي ورکوي .

# لومړی ضمیمه

## دشاهي کورنیو چوکاټ

**یادښت :** لاندې جدول هغه کورنۍ ښیې چې پر ګندهارا باندې یې حکومت کړی دی . یا یې وروسته کلونو کې افغانان او پښتانه اتباع درلودل . هغه پاچاهان یا دشوي دي چې ډېر مشهورې او تاریخي کړنې لري .

امویان او عباسیان هم له سیند څخه تېر نه شول نو ځکه په جدول کې نه دي راغلي ، او د مشابه دلایلو له کبله د دهلي افغاني کورنۍ لکه خلجي ، لودي او سوري چې له اباسین څخه غرب لوري ته نه دي تیرې شوي په جدول کې نه دي راغلي . محمدزي بارکزي کورنۍ پکې راغلي دي که څه هم پښتونو یې هیڅکله نه دي کنټرول کړي .

( داعلامه محلي پلازمېنه ښیي)

| کورنۍ | پلازمېنه | تقريبي نېټه | پاچاهان | تبصره |
|---|---|---|---|---|
| ۱- هخامنشيان (ايراني) | سوسد ، پرسيپاليس [illegible] ، پسکاپورس (پېښور) اوپيوسيلاتيس (چارسده) | ۵۵۰ ق م ۳۳۱ ق م | ۱- سيروس ۲- لوی داريوش ۳- زيرسيس ٤- داريوش کادمانوس | زياتره پاچاهان نه دي ذکر شوي . |
| ۲- مقدونيان (هيلنيک) | پيلا ، بابيلان سوسد ، پيوسلاتيس . [illegible] (چارسده) | ۳۲۷- ۳۰۵ ق م | لوی سکندر سيليوکس | سيليوکس ۲۸۰ ق م پورې ژوندی ومگرپر ۳۰۵ ق م له گندهارا شخه وايستل شو . |
| ۳- موريان (هندي) | پتالپيوترا (پټنا) | ۳۲۳- ۱۹۰ ق م | چندراگوپتا اشوکا | داشوکا مرينه اوژوند ۲٦٤-۲۲۷ ق م (دبوديزم پېرو) |
| ٤- ع . گريکوباکترين (يونان - باختري) | ټکسيلا | ۱۸۵ - ۹۷ ق م | ديمتريوس ميناندر | په باکتريا (باختر) کې کورنۍ بنسټ ۲۵٦ ق م گندهارايې پر ۱۸۵ ق م کې فتح کړه . |

| کورنۍ | پلازمېنه | تقريبي نېټه | پاچاهان | تبصره |
|---|---|---|---|---|
| ٥ - ساکا (ايراني) | ټکسيلا | ۹۷ ق م - ٥ م | ماويس، ازيرس ۱ | سايتيانی کوچيان وو چې پارتيانو سره يې خپلوي درلوده . |
| ٦ - اينډو پارتيان (ايراني) | ټکسيلا | ۷ - ۷٥ م | گوندو فارس | دارساکيد له کورنۍ څخه دي چې ۲٤۹ ق م - ۲۲٥ م څخه يې په ايران کې حکومت کاوه. |
| ۷ - کوشانيان | پروشاپورا (پېښور) | ٦۰ - ۲۲٥ م | کدفيسيس ۱ او ۲ کنيشکا، واسيشکا، هوويشکا، واسوديوا | کنيشکا دبوديزم دويم لوی پيرو، په وروستيو کلونو کې دا کورنۍ بودايي شوه . |
| ۸ - ساسانيان (ايراني) {A} | ستخر پاسکبورا (پېښور) | ۲۳۰ - ۳٦٥ م | اردشير شاپور (۲٤۰-۲۷۳) | دي کورنۍ تر ٤۰۰ کلونو زيات حکومت وکړ (۲۲٦-٦٤۲) اباسين خواته قدرت په دوو ببلودوروکې اوېدشو (۱۱ گټه) |

| کورني | پلازمېنه | تقریبي نېټه | پاچاهان | تبصره |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ۹ - کېداریان (ایراني ؟) | نامعلوم | ۳٦۵ - ٤۵۵ م | کیدارا | له باختر څخه هونیانو وایستل . |
| ۱۰ - سپین هون (یفتلیان یا هېتلیان) (ترک) | بلخ ، سکالا ، h سیالکوټ | ٤٤۵ - ۵۵۰ م | تورامینا مېهېراګولا | تر ۵٦۸ پورې په بلخ کې وو تر هغه چې ساسانیانو ماته ورکړه . |
| ۱۱ - ساسانیان ( B ) (ایراني) | ستخر کتیسیفون نامعلوم . h | ۵٦۸ - ٦٤٤ م | خسرو ۱ خسرو ۲ یزدګرد | په نهاوندکې یې پر ٦٤۲ م (۲۱ هـ) د عربو له خوا ماته وخوړه . |
| ۱۲ - (a) کابل شاهي (b) رتبیل یا زنبیل (ایراني ترک) | (a) کابل (b) نامعلوم ، احتمالا دغزني شاوخوا | ٦۵۰ - ۸۷۰ م | (a) سیلاپانی ؟ ګالار (b) رتبیل (لقب دی ، اصلي نوم نامعلوم) | احتمالا کوشاني او هېتالي ګډ اصل او هندي ریښې هم لري ، مسلمان نه وو |

| کورنۍ | پلازمېنه | تقريبي نېټه | پاچاهان | تبصره |
|---|---|---|---|---|
| ۱۳ - صفاريان (ايراني او مسلمان) | زرنج (سيستان) | ۸۶۱ - ۹۰۰م | يعقوب ليس<br>عمرو ليث | يعقوب ليث کابل له ۱۲۰ (کابل شاهان) څخه په ۸۷۰ کې ونيولو او غزني يې جوړ کړ مګر پر ګندهارا يې حکومت نه دی کړی. |
| ۱۴ - هندوشاهي (لکه ۱۲ ګڼه مګر هندوان وو) | اوهيند (هوند يا لاهورچې په ګندهارا کې د اباسين پر غاړه واقع و) | ۸۷۰ - ۱۰۲۱م | سمند - کمالو - بهيم - جيپال - انند پال | احتمالاً هماغه (۱۲a) کورنۍ ده، په سيمه کې وروستنی هندو قوت و. |
| ۱۵ - غزنويان (ترک مملوک) | غزني | ۹۶۰ - ۱۱۵۰م | سبکتګين<br>محمود<br>مسعود | لومړنی مسلمانان چې په ګندهارا کې يې حکومت کړی دی. |
| ۱۶ - غوريان (احتمالاً تاجک ايرانيان) | فيروزکوه، غزني<br>ډهلي. | ۱۱۸۱ - ۱۲۰۶م | علاوالدين جهانسوز<br>معزالدين<br>مهدي سام | په پېښور کې يې يوازې د لارې په اوږدو کې حکومت کړی دی. |

| کورنۍ | پلازمېنه | تقریبي نېټه | پاچاهان | تبصره |
|---|---|---|---|---|
| ۱۷ - خوارزم شاهان (سلجوق ترک) | اورخبنج (اورګبنج) | ۱۲۱۰-۱۲۲۰م | محمد جلال الدین | پرغزني یې کنترول درلود پېښور کې یې مطلقه حکومت درلود ، د چګیز-خان له خوا مات شول |
| ۱۸ - چنګیزخان (منګولیایي) | المالک (دایلي پرسیند) | ۱۲۲۰-۱۳۶۹م | چنګیزپر ۱۲۲۷ کال مړ شو چغتای ۱۲۴۱ کې مړ شو و روروسته دلږ بریالتیوب او کم هشهرت خاوندان | حکومت مطلقه او انارشي په پېښور او زیاتره افغان هیواد کې هندي کورنیو له خوا شخه کنترول ونه شو کړای . |
| ۱۹ - تیموریان (ترکي - ایراني منګولیایان) | سمرقند ، کابل ، کندهار هرات | ۱۳۸۰-۱۵۰۱ | ګوډ تیمور په ۱۴۰۴ کې مړ شو شاه رخ ابوسعید الغ بیګ (۱۴۶۹-۱۵۰۱) حسین بایقرا (په هرات کندهار کې | د کورنۍ زیات فعالیتونه او انارشي د افغانانو او پښتنو هیواد کې الغ بیګ د کابل حکمران و . |
| ۲۰ - مغول (ترکو - ایراني) | ډهلي اګره کابل پېښور | ۱۵۲۶-۱۷۳۹ | بابر اکبر جهانګیر شاه جهان اورنګ زیب | د کورنۍ لقب یې له (۱۹ ګنې) شخه اخیستي دی ، الغ بیګ د کابل حاکم د بابر تره و . تر ۱۵۸۱ کابل او پېښور د کوچنیو ورونو برخې وې . |

| کورنۍ | پلازمېنه | تقریبي نېټه | پاچاهان | تبصره |
|---|---|---|---|---|
| ۲۱ - افشار<br>(ترکمن) | د آس زین یې<br>پایتخت و | ۱۷۳۹-۱۷۴۷م | نادرشاه | نادرشاه دا باسین<br>شاوخوا سیمې له مغولو<br>څخه ونیوې . |
| ۲۲ - درانی<br>سدوزی<br>پوپلزی<br>(افغان) | کندهار<br>کابل<br>پېښور | ۱۷۴۷-۱۸۱۸ | احمد شاه<br>تیمورشاه<br>شاه زمان<br>شاه محمود<br>شاه شجاع | لومړنۍ افغان کورنۍ |
| ۲۳ - سک شاهي<br>(پنجاب) | لاهور | ۱۸۲۳-۱۸۴٦م | رنجیت سنگهـ په ۱۸۳۹<br>کې مړشو . | رنجیت په ۱۸۰۰ کې<br>حکومت پیل کړاو پېښور یې<br>پر ۱۸۲۳ کال ونیو . |
| ۲۴ - درانی<br>محمدزی<br>بارکزی ۱<br>(افغان) | کابل | ۱۸۲٦-۱۹۲۸م | دوست محمد خان<br>شیر علیخان<br>عبدالرحمن خان<br>امان الله خان | دوی پېښور نه ونیولی ، خو<br>همیشه دافغانانو او پښتنو له خوا<br>اداره کېده . |

| کورنی | پلازمېنه | تقریبي نېټه | پاچاهان | تبصره |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ - دراني بارکزي ۲ | کابل | ۱۹۲۹ م | نادرشاه ظاهرشاه | // |
| ۲۶ - برتانيه | کلکته ډهلي پېښور | ۱۸۴۶ - ۱۹۴۷ م | تر ۱۸۵۸ پورې ایسټ اینډیا کمپنۍ او له هغه وروسته دانګریز تاج | له سکانو څخه یې لږ څو جګړو وروسته ونیول ۰ |

۲۷ - د ۱۹۴۷ م کال داګست له ۱۵ نېټې څخه وروسته د پاکستان حکومت ۰

# دویمه ضمیمه

# د ډیورند کرښه

## لومړی - د ډیورند له تړون څخه اقتباس :

(۱۸۹۳ کال د نوامبر پر ۱۲ نیټه د امیر عبدالرحمن خان له خوا په کابل کې لاس لیک شوی دی)

۱- د امیر د سلطنت د ختیځ او جنوب سرحدات به له واخان څخه تر ایران سرحد پورې هغه کرښه وي چې په ضمیمه نقشه کې د دې تړون مطابق ښوول شوې ده.

۲- د هند حکومت به هیڅکله له دې کرښې آخوا خاوره کې د افغانستان په لورې کې مداخله ونه کړي او امیر به هیڅکله د دې کرښې د هند خوا ته مداخله نه کوي.

. . . . . . . . .

٤- د سرحد کرښه به له دې وخت څخه اعتبار لري تر کومه ځایه چې امکان ولري د افغان او انگریز حکومتونو گډ هیئت له خوا نښاني کیږي او

هدف يې دادی چې دامکان تر حد پورې به دنقشې مطابق دسرحد کرښه دا
اراضي پر مخ سمه کاږي ........

**نوټ**: په پاتې ټرون کې بېلابېل تفصيلات راغلي دي چې دېو بل په
سيمه کې پرځايونو ادعانه وي . مثلاً امير موافقه وکړه چې په سوات ، باجوړ
او چترال او همدارنګه په وزير و او داوړو کې به مداخله نه کوي او انګريزان به
په برمل کې مداخله نه کوي ، دې ټرون دامير سبسايدي ( مادي امتيازات )
زياته کړه . له دوه استثناوو پرته ، نور چيرته چې يې امکان درلود کرښه
بالکل په ځمکه کې نښاني شوه ( په شمالي غرو کې امکان نه و ) پيلرونه
نصب شول مګر نن ورځ اکثراً نه شته ، لومړی استثنا دچترال په سيمه کې
ددويم نړيوال جنګ په دوران کې سرحد نښاني شو . دويمه نقطه چې پاتې وه د
باجوړ او کونړ تر منځ په ناوه سر کې او همدارنګه په غربي پای برخه کې
دسيکارام څوکه ده چې په سپين غره کې دپيواړ پر کوتل باندې راځي .
دابرخه دمومندو په سيمه کې تيريږي او نيموي يې ، دافغانستان خواته
دخيبر او اپريديو سرحد هم په کې شامل دی . ددې يوه برخه چې ډيره کوچنۍ
وه دخيبر په غاښې کې دافغان - انګريز درېيم جنګ کې په نښه شوه . پاتې
برخه عملاً هيڅکله نښاني نه شوه ، دا دومره مهمه برخه نه ده ځکه چې
دسپين غره لوړوالی دلته دلس زرو او شپاړس زرو پورې دی اودافغانستان
او اپريديو تر منځ سرحد دی ، مګر د کابل سيند شمال ته دمومند و په سيمه
کې څه مشکلات رامنځته شول چې دا سيمه دکابل سيند په واسطه بيليږي .

ددې لپاره چې مشکلات حل شي دانګريزانو هندي حکومت امير ته
دمومندو په سيمه کې ختيځ خواته دسرحد او کرښې وړانديز وکړ او دا کرښه
(احتمالي کرښه ) نوميده او په نتيجه کې به دبوهۍ ډاګ وادي په افغانستان

پورې مربوطه وي ، مگر امیر دا وړاندیز نه ومنلی .

دویم - دانگریز - افغان د ۱۹۰۵ کال له تړون څخه اقتباس :

( د ۱۹۰۵ کال داپریل په میاشت کې دامیر حبیب الله او سر لویس ډن Sir Louis Dane له خوا لاسلیک شوی و . )

زه والاحضرت په دې توگه پر هغو تعهداتو ، پر نسیپونو او هغو موضوعاتو چې عادي دي او زما مرحوم پلار والا حضرت امیر عبدالرحمن د انگریزانو له محترم حکومت سره لا سلیک کړي دي موافقه لرم ، ما پر هغه عمل کړی دی ، عمل کوم او عمل به وکړم ، زه به په هیڅ معامله کې له هغو سره مخالفت ونه کړم .

دریم - دراولپنډۍ د ۱۹۱۹ کال له تړون څخه اقتباس :

( د ۱۹۱۹ کال داگست پر ۸ مه نیته دافغاني هیئت له خوا چې دسولې په مقصد راول پینډۍ ته استول شوی و . لاسلیک شواو په نتیجه کې د افغان- انگلیس دریم جنگ پای ته ورسید . )

..................................................

۵ - دافغان حکومت ، دهند - افغان هغه سرحد چې مرحوم امیر حبیب الله خان منلی و ، مني .

**نوټ** : په دې تړون کې دخیبر پر یوه کوچنۍ سرحدي برخه باندې د کرښو معلومولو موافقه شوې وه او کرښه په نښه شوه هغه کلمې چې دډیورند د تړون په ماده کې راغلي او پر ۱۹۰۵ کال بیا تائید شوې وې ۱۹۱۹ کې هم ومنل شوې ، په دې وخت کې دافغانستان امیر ، امان الله خان و .

څلورم - دافغان انگلیس د ۱۹۲۱ کال له تړون څخه اقتباس :

( د ۱۹۲۱ کـال دنوامـبـر پر ۲۲ مـه نیـــتـه د ډابز مـــیـشن

Missian Dobbs له خوا تر سره شوی و . )

.................................................

۲ - دواړه عالي خواوې دهند - افغان سرحد لکه څرنگه چې د ۱۹۱۹ کال داگست ۸ مې نیتې د تړون د پنځمې مادې متن ښيي په دوستانه توگه قبلوي .

.................................................

۱۱ - دواړه عاليقدره خواوې چې پر پریکړه باندې يې خپل قناعت تر لاسه کړی دی او يو بل ته نيکه اراده لري او همدارنگه د قبايلو په هکله د خير ، ښيگڼې نيت ښودل او همداراز که د سرحد په سيمو کې د ضرورت په وخت کې نظامي عمليات کيږي د نظم د ساتنې په مقصد به مقابل لوری د عملياتو له پيل څخه د مخه خبروي .

د افغانستان د باندينيو چارو وزير ته د برتانوي استازي ضميمه ليک :

څرنگه چې د دواړو حکومتونو په سرحدي قبايلو کې د تاسو حکومت علاقمندي ښيي ، تاسو ته خبر درکوم چې د برتانيې حکومت د نيکو احساساتو او ښه نيت له مخې له قبايلو سره سخاوتمندانه مرستې کوي په دې شرط چې دوی د هند د اوسيدونکو پر ضد داړې ونه کړي . هيله ده چې دا ليک به ستاسو د ډاډ سبب شي .

## پنځم - د اعليحضرت د انگلستان د پاچا د خارجه چارو وزير او په لندن کې د افغان وزير تر منځ له ليکونو څخه چې ۱۹۳۰ کال د مې پر شپږمه نيټه تبادله شوي وو ، اقتباس :

( ۱ ) موږ موافقه کړې ده چې دا به ډيره ښه وي د اعليحضرت محمد نادر شاه تخت کيناستنې سره د ۱۹۲۱ کال د نوامبر د دوه ويشتمې نيټې تړون يو ځل بيا تائيد شي . زه وياړم چې زموږ تفاهم داسې دی چې داتړونونه په خپل

قوت باقي پاتې وي :

(۱) زه په ځواب کې په احترام سره يادونه کوم چې دواړه معاهدې به په مکمل قوت او تاثير پاتې وي .

شپږم - د کامنويلت د چارو لپاره د دولت سکرتر نويل بيکر Noel Baker له هغې بيانيې څخه اقتباس چې ولسي جرګې ته يې په ۱۹۵۰ کې د جون په ديرشمه وړاندې کړې وه :

داعليحضرتې حکومت په انګلستان کې سخت تاثير ښيي چې دافغانستان او پاکستان حکومت دشمال غربي سرحد دځمکو په هکله توافق نه لري ، داد عليحضرت د حکومت نظر دی چې دبين المللي قوانينو له مخې دهندوستان د پخواني حکومت او دانګلستان دحکومت داداري په دغو سيمو کې ، هرڅه د پاکستان دحکومت کيږي او د ډيورند کرښه بين المللي سرحد دی.

اووم - ۱۹۵۶ کال د مارچ د لومړۍ نېټې د هانسرډ Hansard له ليک څخه اقتباس :

( دښاغلي ماټ راډکليف د سوال په ځواب کې )

صدراعظم : دعلياحضرتې د حکومت نظر د پخوانيو حکومتونو په شان او په دې ډول دی :

پر ۱۹۴۷ کال پاکستان ديوه آزاد ، مستقل او د کامنويليت دغړي په شان منځته راغی . ، دعليا حضرتې حکومت د پاکستان حق بولي چې په شمال غربي سرحد کې مکمل حاکميت تمرين کړي ، ځکه چې ټولو پښتنو په دې سيمه کې خپل فعاليت ښودلی دی چې له پاکستان سره پاتې کيږي . دعليا-حضرتې حکومت په بريتانيه کې د پاکستان دحکومت حاکميت د ډيورنډ

کرښې ختیځ ته تائید او ملاتړ یې کوي او دافغانستان د ډیورنډ کرښه بین المللي کرښه بولي ، دعلیا حضرتې حکومت پوره باور لري چې دافغانستان او پاکستان تر منځ داسې سوال نه شته چې په سوله ییزه توګه او قانوني شکل سره دحل وړ نه وي ، موږ همیشه دپاکستان له حکومت سره په تفاهم او مشوره یو ، او موږ قانع یو چې دپاکستان حکومت سوله ییز حل غواړي .

ماټ رادکلیف Mr.Mott- Radclyffe: اجازه ده چې له عالیقدر څخه پوښتنه وکړم کله چې پر ۱۹٤۷ کال قدرت پاکستان ته انتقال شو دسرحدي سیمو خلکو پخپله خوښه ځانونه دپاکستان برخه ونه بلل ؟ او آزاد شکله اداره یې د پاکستان له خوا ګڼله .

صدراعظم : زه دخپل عالیقدر ملګري دسوال پر وروستۍ برخه پوه نه شوم . خو ترکومه ځایه چې زه معلومات لرم ددغو سیمو په نفوسو کې داسې برخه نه شته چې دپاکستان له اوسني حکومت سره رضایت ونه لري ، واقعاً ځومره شواهد چې موږ سره شته ټول خلک له پاکستان سره خوشحاله دي .

ښاغلې ګیټ سکیل Gaitskell : آیا ښاغلی عالیقدر خبر لري چې دټولو عالیقدرو ښاغلو داغوښتنه ده . دا بیانیه چې ښاغلي عالیقدر وړاندې کړه دکارګر حکومت رسمي پالیسۍ ده ؟

صدراعظم ، زه دښاغلي عالیقدر ډیر زیات ممنون یم .

**نوټ** : پورتني اقتباسونه په ډاګه ښیي چې دافغانستان ټولو واکمنو تر نادر شاه پورې دډیورنډ کرښه منلې ده او نادر شاه پر ۱۹۲۹ کال ددغه نوې کورنۍ بنسټ کیښود . دیادونې وړ یوازینی ټکی (۱) دادی چې دمومند و په سیمه کې کرښه نه ده ایستل شوې . دکرښې دځیړنې وړاندیز شوی و .

(۱) دښه ګاونډیتوب په نامه سرحد ته نږدې که چیرې کوم نظامي عملیات

کیږي مقابل لوري ته به د عملیاتو د مخه خبر ورکوي او د قبایلو د خیر ښیګنې ښه نیت او ښه به په نظر کې وي .

۶ او ۷ اقتباسونه دانګریز د حکومت نظر یې دي چې د پاکستان د موقف په هکله یې لرې او د دوی په ارادې سره ۱۹۴۷ د کال د اګست پر پنځه لسمه نېټه پاکستان منځته راغی .

د افغان حکومت علاقمندي د ډیورند کرښې ختیځ او جنوب قبایلو په هکله د ۱۹۲۱ م کال تړون ضمیمه وي .

# دریمه ضمیمه

## دشمال غربي سرحدي صوبې رئیسان

## ۱۹۰۱-۱۹٤۷

چیف کمیشنر :

سرهیرالډډین Sir Hirald Deane له ۱۹۰۱-۱۹۰۸ پورې.

سرجورج روس کیپیل Sir George Roos keppel له ۱۹۰۸-۱۹۱۹ پورې.

سرهمیلټن ګرانټ Sir Hamelton Grant لــه ۱۹۱۹ - ۱۹۲۱ پورې.

سرجان مافي Sir John Maffey له ۱۹۲۱-۱۹۲۳ پورې.
(لارډ رګبي ( Lord Rug by)

سرنورمان بالټن Sir Norman Balton لــه ۱۹۲۳ - ۱۹۳۰ پورې.

سرستیوارت پیرز Sir Steuart Pears له ۱۹۳۰ - ۱۹۳۱ پورې .

سررالف گریفیت Sir Ralph Griffith له ۱۹۳۱ - ۱۹۳۲ پورې.

گورنر :

سررالف گریفیت Sie Ralph Griffith له ۱۹۳۲ - ۱۹۳۷ پورې .

سرجورج کنینګهم Sir George Cunningham لـه ۱۹۳۷ - ۱۹٤٦ پورې .

سراولاف کارو Sir Olaf Caroe له ۱۹٤٦-۱۹٤۷ پورې.

# څلورمه ضمیمه

## ارمون ( ارمان )

لاندینی کیسه اصلاً د ایمانویل کالیج ، کمبریج مجلې لپاره سرایولین هاویل لیکلې وه ، داکیسه دیوې پیښې په هکله ده چې د ۱۹۰۵ کال دفبروري په میاشت کې په وزیرستان کې پیښه شوې وه . د جنوبي وزیرستان په ملیشه کې د مسعود و ټولې د دې پیښې په ارتباط ړنګ شول . داکیسه د هغه وخت یوه تراژیدي ده .

د ۱۹۰٤ کال د سپتمبر په میاشت کې د جنوبي وزیرستان یوه مسعود بې له کوم روښان دلیل څخه کیپتان بورینګ Captain Bowring چې پولیټیکل ایجنټ و د جنوبي وزیرستان د سرواکې Sarwakai په کمپ کې په داسې حال کې وواژه چې په خوب ویده و . په دې وخت کې د دې ملېشې قوماندان د ګرمن ریچار د هرمن Ltlulonel Richard Harman و .

هرمن يو پوه صاحبمنصب و . ددغې مليشې د جوړښت له پيل څخه له دې خلکو سره و . ددوی په ژبه ، دود او دستور ښه بلدو ، ددغې سيمې ټول حالات ورته څرگند وو . په هغه وخت کې چې دا پيښنه شوې وه هرمن انگلستان ته په رخصتۍ تللی و ، کله چې څو اونۍ وروسته دی دې وظيفې ته راستون شو نو د پوليټيکل ايجنټ وظيفه هم په موقتي ډول دده په غاړه شوه تر هغې چې مناسب سړی پيدا او مقرر شي او د بورينگ ځای په دايمي ډول سره ونيسي ، مگر هرمن په لږه موده کې دا تجربه تر لاسه کړه چې يو سړی دواړه وظيفې نه شي اجرا کولای ، په تيره بيا مسعود او وزير بيل خلک دي او د يوه مسلکي پوليټيکل ايجنټ موجوديت بيخي ضرور دی .

د ۱۹۰۵ په جنورۍ کې دا سې پيښنه شوه چې ددې کيسې ليکونکې ايولين هاويل ته چې يو ځوان پوليټيکل افسرو ، دنده ورکړ شوه چې په موقت ډول جنوبي وزيرستان ته ولاړ شي او د پوليټيکل ايجنټ دنده پر غاړه واخلي او دا ځای له قرارگاه څخه دوه ، درې سوه ميله لرې پروت و . يوه اونۍ وروسته له خپلو کاليو او اسانو سره د وزير ستان په مدخل « مرتضی » کې و . مرتضی د گومل سيند په خوله کې پروت دی ، کالي پر اوښانو بار له نوکرانو سره د مخه واستول شول او محلي مليشه يې بدرگه و . زه له شپږو سپرو سره ترشا ورپسې ځم ، زموږ لار د وادۍ په اوږدو کې تر لسو ميلو پورې هواره تله او بيا ښۍ خوا ته مخ په لوړو ختله او سر واکۍ ته ختل هم سخت او هم پنځلس ميله نوره لار تر پوستې پورې غزيدلې وه . له گومل وادۍ څخه د غره څوکې ته ختل په ۳۰۰۰ فټه لوړالي کې هم دانسان او حيوان انرژي مصرفوي او هم ډير وخت نيسي . ماسپښين قضا و چې په لوړه څوکه وروختو او هندي صوبه دار مو

هرکلي ته راورسید چې هرمن رااستولی و او له ده سره ځو تنه مسعود او وزیر ملکان هم وو . مخونه یې دبازانو په شان او لنډې ږیرې یې درلودې . ددوی وضعیت ډیر ښه و او نرمې خبرې یې کولې ، یو بل سره پیژند ګلوي وشوه . له یاده مو وتلي نه وي ، دوه مخکیني مسعودوو چې له ماسره یې ستړي مه شي وکړه . یو یې هغه ځوان و چې ځو میاشتې مخکې یې غریب بورینګ وژلی و . په ویال تندي یې وویل ، «، مور ډیر خوشحال یو چې پولیتیکل ایجنټ راغی ، ځکه دلته چې پولیتیکل ایجنټ نه و مور لکه یتمیان داسې ښکاریدو . » په هرحال په دې لحظه کې خو دوی ټول ډیر ښه وو خپلې کینې او حساد تونه یې پټ کړي وو . په لاره مو دملګرتیا او دوستی خبرې کولې . پنځه یا شپږ میله نور مخ په ځوړ روان شو . ځمکه هواره نه وه . ځینې صحرایي بوټي لکه خسکی خجوره ، عکاسی او دبیرې ونې هلته او دلته بریښیدې ، نږدې لمر لویدو خواته دسرواکی دروازې ته راورسیدو . سرواکی دیوه لوی غره په یوه شمزی کې پرته ده . ددې غره ځوکې په سپینو واورو پټې وې ، هرمن په خپله له ښکاري ټوپک او تازي سره په دروازه کې ولاړ و او تازه د ښتي مرغیو له ښکار ځخه را ګرځیدلی و ، د پوستې له قوماندان سره یې خبرې کولې ، دپوستې قوماندان اپریدی و ، هرمن ښکلي ځواني درلوده ، زه له اس ځخه ښکته شوم ستړي مه شي مووکړه او دصاحبمنصبانو دکوټو خواته موحرکت وکړ . دصاحبمنصبانو داستوګنې کوټې داصلي ودانۍ په دویم پوړ کې وې . ښه تاوده چای ، پستې ځوکۍ او دلرګیو تاوده اور مې ستونزه له یاده وایستله ، په ضمن کې مې پوښتنې پیل کړې ، زما په فکر هغه سوالونه مې پوښتل چې منطقي او عاقلانه راته معلولیدل . په دې توګه مې غوښتل چې

دهرمن له ځوابو څخه دسیمې دسیاسي حالت په هکله پوره معلومات تر لاسه کړم . دلته زما لپاره عجیبه نړۍ وه چې فکر مې نه وریاندې خلاصیده او یوسړی دملا پوینده په نوم حکم چلوونکی و . وژنه او ژوبله دلته عادي خبره وه ، دیوه انسان ژوند له حکومتي ټوپک څخه ارزان و ، ښځه او هندو خو په نیم سړي حسابیدل ،لارې نیول او شوکه دخلکو اصلي شغل و . دزیاتو سړیو وژونکي تر ټولو تکړه بلل کیده او زیات احترام به یې کیده . انګریزانو په وانه کې ګلف کاوه ( galf = ګلف یو ه سپورتي لوبه ده ) خو بدرګه به ورسره وه او یوه ډله ملاتړ یي به په مخکې تلل چې سیمه وګوري او کوم کمین چانه وي نیولی ، دنن ورځې ملګري پروني داړه ماران او پروني ملګري نني داړه ماران وو . دلته هره ورځ ډلې جوړیدې . له نومونو او ځایونو څخه راته کرکه پیدا شوه ، ما سختن چې ډوډۍ تیاره شوه او ډوډۍ ته غږ شو زه زیات خوشحاله شوم ، چې مضمون یو څه بدل شو . ماکالي بدل کړل او ځان مې پریمینځه . کله چې سالون ته راستون شوم دډوډۍ لپاره میز جوړ شوی وا او هرمن دماښام یونیفورم اغوستی او دمخه راغلی و . ما دخپل پخواني کلب ( Lions ) نښان لرونکي کرتۍ اغوستې وه او نښان یې په پورتنۍ جیب خواته و او هرمن ژر متوجه شو . ده وویل زه له « ایمان ویل کالیج » څخه فارغ یم ، زه په خپله یووخت ( Lion ) وم ، نور ماښام نورمال تیر شو او څه موو ویل یادونه یې مهمه نه ده .

په بله ورځ دواړه وانه ته ولاړ و چې دوزیرو سیمه ده ، وانه په هواره سیمه کې پرته ده او شاوخوا یې غونډۍ پرتې دي ، دلته وانه دایجنسۍ مرکز و . دملیشې اصلي قوماندانی هم دلته وه او نورې اړونده شعبې هم دلته وې ،

دهر دفتر په هکله به څو کلمې ووایم چې هر څه ښه روښانه شي .

لومړی پولیټیکل ایجنټ راځي ، دی دحکومت دپالیسۍ دتبلیغ او عملي کولو مسوول وچې له ټولو قبایلو سره داړونده چارو په هکله هغه په پام کې ونیسي ، نوروسیمو سره هم ددوی داستازي په شکل اړیکي وساتي او دټولو جرایمو مخنیوی وکړي . همدارنګه دی مسوول و چې خپلو مشرانو ته دقبایلو دکړو وړو او نظریاتو او اعمالو په هکله راپورورکړي . په لنډه توګه د دده وظیفه وه چې هرڅوک او هر څه وپیژني ، دی باید له هرڅه خبروي ، دی باید همیشه پوه وي چې پیښو څه کوي او چیرته ځي او کله ټوپ وهي او څتګه یې له ټوپ وهلو څخه منع کړي .

ملیشه : هغه قوت اووسیله وه چې دهغې په واسطه یې خپل او امر تطبیقول . که به ضرورت پیښ شو . ملیشه ۱۷۰۰ تنه وو . ټول پښتانه وو او نږدې نیمایي یې دهمدې سیمې خلک وو چې په قبیلوي ټولیو کې تنظیم شوي وو . هر ټولي یو صوبه دار او جمادار درلود او څلور تنه یې انګریزي افسران درلودل ، تقریباً ۲/۳ برخې قوتونه په حاکمو نقطو کې ځای پر ځای شوي وو لکه سرواکۍ ، پاتې به همیشه په قرارګاه کې ترشوونې او روزنې لاندې وو ، دلته یو ډاکټر هم و چې دسیاسي خلکو ، ملیشه او دمحلي خلکو دناروغیو او صحي اړتیاوو مسوولیت یې پر غاړه درلود . ډاکټر زیاتره دټوپکو دګولیو دزخمونو پر تداوۍ بوخت و . دلته همدارنګه دسړکونو او لارو دجوړولو لپاره یو استحکامچي انجنیر هم موجود و . دملیشې یو دوه افسرانو همیشه دباندې نورو پوستو ته تګ راتګ کاوه : ډاکټر ، انجنیر او پولیټیکل ایجنټ یوازې دضرورت په وخت کې بلې خواته تلل او معمولاً

همیشه موجود وو . په وانه کې مور همیشه په کلا کې دننه او سیدو چې دوه پوړیزه چار چاپیره ودانۍ وه . د انگړ په منځ کې یو ځاه هم موجوده وه . دلته مخزن ، خزانه ، انبارې ، ډیپوگان او نور ضروریات دلوژستیکي مسوول ترامر لاندې وو چې له ټولیو ځخه په نوبت نفر دلته راتلل او دنیم ټولي په اندازه قوت به یې جوړ وه او خپل نوبت یې تیر اوه . چارپیر کوټو ته لار دکلا دشا او خوا دجگ دیوال داحاطې دننه وه . کلا برجونه لرل چې دباندې څار او پهره ور ځخه وشي . په کلا کې دننه ځینې نورې ودانۍ وې چې هلته به منصبدارو ډوډۍ خوړه او ددوی او دنورو افرادو بارکونه او استوګنځي وو . دسلاکوټ ، خزانې اود مهماتولکوټو ځخه پرته نور هر څه په کلا کې له ختیو ځخه جوړ شوي وو .

په دې وخت کې وانه ته دموټر بیولو سړک جوړ شوی و دا سړک دسرواکۍ له لارې ځخه نه و غزول شوی ، بلکې دګومل په وادۍ کې پورته تلو . ددې لارې دجوړولو لپاره یو ځانګړی انجینر خدمتي استول شوی و . خامخا دا منصبدار دخپل کار پرسر اوسیده . نو ځکه دا اړتیا موجوده وه چې دسړک په سرکې دسړک او دهغې دساتنې لپاره سل تنه ملیشه خدمتي ګمارل شوي وو . په دې توګه دقرارګاه قوت پوره کم و . په وانه کې هرمن مجبور و چې دشپې له خوا دپهرو شمیر کم کړي او په عوض کې داخلي ګزمې وپاسي ، کله چې زه وانه ته ورسیدم څو ورځې وروسته هوا سړه شوه . بنه واوره وشوه او ځمکه په واورو ډکه شوه ، لمر نه و او له غرو ځخه سوړیا دراالوت . وانه پخپله ۴۰۰۰ فټه دسمندر له سطحې ځخه لوړه ده او یوه شپه دتودوخې درجه -۱۳ وه ۴۵ یخ ولاړ و . تلګرام راغی چې چیف کمیشنر « ټانک » ته راځي او دا یو کوچنی

کلی و ، چې دوزیرستان دلوړو په لمن کې پروت دی . زه پر دې مسئله خوشحاله نه وم . ده هدایت کړی و چې زه او هرمن باید دواړه هلته ورشو او ده ته دسیاسي وضعیت او دملیشې په هکله پوره معلومات ورکړو . ځکه غیر منظم قوتونه دده تر حکم لاندې وو او منظم قوتونه ټول داعلی قوماندان ترحکم لاندې وو . هغه ساړه به زه هیڅکله هیر نه کړم ، خو مور خپله لار لنډه کړه . کله چې ټانک ته ورسیدو مور خپل راپور وړاندې کړ . ددې سیمې ټول سیاسي حالت په ملا پوینده پورې تړلي وو چې دمخه مې دهغه یادونه کړې ده . نوموړی ملا پوینده په څه حیلو او ټګیو برګیو ځان په ټولو مسعودو کې مشهور کړی او تر ټولو قوي او مهم پیژندل شوی و . ده ته خاص امتیازات مقرر وو . له یوې منبع څخه چې هغه زه نه معرفي کوم دپیسو پنډونه راتله ، هغه چا چې په ډاګه دده مخالفت کاوه یو په بل پسې ورکیدل او حالت داسې شو چې دده اپوزیسیون په ظاهره ورک شو ، ده یو ډله سړي وژونکي په ځان راټول کړي وو. دی دهغوی له اخلاقو او کرکتر څخه بې خبره نه و . هریوه به چې کوم بریالی عمل تر سره کړی و دده برخه به په کې وه . ده پخپله ددولت پر ضد په ډیر و عملیاتو کې برخه اخیستې وه او څو واره دې ته مجبور شوی و چې له وطن څخه فرار وکړي ، مګر کله به چې وریځ له سره تیره شوه بیا به را پیدا شو او سوله به یې په ژبه وه ، دده سکرتر به هم داسې خبرې کولې ځکه چې ملا په خپله بې سواده و . ده به کله کله پولیتیکل ایجنټ ته ادبي لیکونه استول او په پارسي ژبه به یې لیکلي وو او دخپل بادار هیلې او نظریې به یې په کې منعکس کړې وې . زما په عقیده دی وطن دوست سړی و او دلارډ کورزون دملیشه جوړولو پروژې لپاره غټ سرخوږی و او دخپلې قبیلې دود یزې ازادۍ لپاره به یې همیشه

لارې نیولې ، لارې یې ویجاړولې او ددهٔ تیوري همیشه ظالمانه عمل و . ده په ښکاره ملیشې ته دچا دشمولیت مخالفت نه کاوه . مګر نورو ملایانو ته به یې ویل چې دحکومت دنوکرانو جنازې ونه کړي ، په پټه به یې خپل سړي په کار اچول او ملیشه ته به یې داخلول ، بیا به یې پولیټیکل ایجنټ ته لیک استوه چې پر مسعود باندې باور ونه کړي . دبورینګ ترمړینې دمخه یې دی خبر کړی و . کله چې « بورینګ » مړ شو . ده په دې کریدت واخیست چې هرمن ته یې خبر ورکړی و . ما او هرمن څو واره پر دې باندې بحث کړی و . مسعود به چې یو ځل جذب شو نو له نورو سره به ورته په یوه سترګه کتل کیدل. دوی ته خاص امتیازات ورکول کیدای نه شول. خو سره له دې مونږ قانع نه وو او داسې پلان مو درلود چې هر مسعود چې جذبیږي دمسعودو دمشرانو له خوا باید تضمین او تائید شي ، په عین وخت کې هرمن په ملیشه کې للون پیل کړی و . هر مسعود چې سوابق یې ښه نه و او تر اشتباه لاندې به و ، یو په بل پسې به یې ایسته ، په وخت ورکولو سره دغو تدابیرو نتیجه ورکوله ، خو ملاپوینده هم پر دې پوهیده او له حالاتو سره یې سم عمل کاوه . مونږ ټول وضعیت سر هیرالدډ ین کمیشنر ته په تفصیل سره بیان کړ او ده په خوا خوږۍ سره زمونږ پلان تائید کړ او بیله بیله لار مو ونیوله . هرمن دګومل دوادۍ لاره ونیوله چې پوستې هم وګوري . زه په بله لنډه لاره راغلم چې معمولاً انګریزي منصبدار په هغه خوا نه تلل . زه دقبیلې تر ضمانت لاندې په دې لار مصئون تیر شوم ، په نتیجه کې زه له هرمن څخه یوه ورځ دمخه وانه ته ورسیدم ، زما ښه په یاد دي دجمعې ورځ وه او د ۵ ۱۹۰ کال دفبرورۍ دمیاشتې لسمه نیټه وه ، دانیټه زما په ماغزو کې ښه نښتې وه ، ځکه چې دفبرورۍ ۱۲ مه نیټه زما

دزړېدنې ورځ وه ، او ورپسې نورې پېښې هم وشوې چې دا شپې ورځې چې ښې په فکر کې پاتې دي . بله ورځ دمازيگر په وخت کې څو تنو سره ووتم چې هيلۍ وولم . چې داوبو پر غاړه به الوتې را الوتې ، اوښه مې په ياد دي چې په ډيره واوره او سختو سړو کې ما هرمن او دده ورسره بدرگه وليدل چې په درياب کې راروان وو او يخ داسانو ترېښو لاندې ماتيده او کرچ کرچ يې کاوه . که څه هم زړه مې غوښتل چې هرمن ژر ووينم خو ما بيړه ونه کړه او لاهم رڼا وه ، ما فکر وکړ چې بيگاه ته او سبا ورځ به ورسره خبرې کوم ، وخت لاشته .

په دې شپه يوازې څلور تنه ډوډۍ ته راغلو . هرمن ، زه ، پلانټ Plant دمليشه معاون او ترنر Turner انجنير ، ډاکټر هم په وانه کې ډومگر د ملاريا له کبله وختي ويده شوي وو ، درې واړه صاحبمنصبانو يونيفورم اغوستی و . زه په ملکي لباس کې وم او د (Lions) کلب جاکټ (کورتۍ) مې اغوستی و ، مور وسله نه درلوده ، دا ځکه چې دباور درلودلو دپاليسۍ له مخې د ډوډۍ خوړلو خونې ته له وسلې سره دتگ اجازه نه وه . ډوډۍ مو نورمال وخوړه ، او تو کې ټکالې موسره کولې ، خو کله چې مو دډوډۍ وروستۍ برخې دخوړلنيو په خوړلو پيل کاوه او دشنبې دشپې نورمال دعا او شکريې ته مو ځانونه برابرول چې دماتو شيشو شرنگۍ شو او له کړکۍ څخه شيشې پر ځمکه ولويدې ، زه په ميز کې داسې ځای ناست وم چې کينه اوږه مې له دروازې سره پر يوه خط واقع وه چې ملازم له پخلنځي څخه په دې دروازه ننوتلو او راوتلو او ددې په استقامت دواړو خوا وته دبهر تلو لپاره په شيشو نيول شوې دروازې وې ، ما ته مخامخ هرمن ناست و . « پلانټ » دميز په راسۍ کې و او دروازې ته مخامخ و . او « ترنر » پلانټ ته مقابل ناست و . زه د

دروازې خواته يوه آواز ته ځر ک شوم او گورم چې يو ځوان مليشه سپاهي په يونيفورم کې ولاړ دی او دبالاپوش دپاسه يې کمر بند تړلی دی ، په توپک کې يې برچه نيغه تومبلې او د توپک دميل خوله پورته خواته وه ، دی ودريده . ده ماته کتل او ما ده ته کتل ، يوې ثانيې قدر وروسته زه ودريدم . دا به حيرانوونکې ښکاري خو داحقيقت دی چې زه ددې سپاهي پر مقصد پوه نه شوم . ما ته داسې ښکاريده چې دا سپاهي دهغه چا په شان دلته دتماشا په نوم راغلی دی ، يو چا مخکې کيسه راته کړې وه چې کوم ځوان سپاهي ته چا ويلي وو چې دصاحبمنصبانو دډوډۍ خوړلو خونې ته ورشه هلته ښه سيل دی، ساعت به دې تير شي ، رشخند يې ورپورې کړی و . نو ما هم هماغسې فکر کاوه ، زه چې دميز څنگ ته ودريدم . ده د توپک ميل ښکته کړ مگر دپچيک يې اوړې ته يونه ووړ . احتمالاً دا تولې پيښې دسترگو په رپ کې وشوې ، يوه شيبه وروسته متوجه شوم چې هرمن دسړي خواته توپ کړ او پلانټ يې هم تر شا ځغاست ، په همدې شيبه کې سړی د پخلنځي خواته په شاشو او تياري ته ولاړ . هغه وخت دڅراغ ، ډيوې او شمعې زمانه وه ، هرمن او پلانټ له نږدې څخه تعقيبولو . زه او ترنر پر دې باندې ور ورغورځيدو ، دپخلنځي په تته رڼا کې مې وليد چې پلانټ له سپاهي سره لاسو گريوان دی او هڅه يې کوله چې توپک ځينې واخلي ، هرمن مقابل ديوال ته ولاړ و . موږ دواړو دپلانټ مرستې ته ورو دانگل ، پر سپاهي مووس ورسيد او ژر مو سره ونيوه او دده په خپل لنگوټي مو کلک وتړه . موږ چې پر دې کار اخته وو هرمن غږ کړ چې کوم يو خو به ژوبل شوی نه وي . ما نور و ته ورو کتل او ورته ومې ويل چې : « نه ! موږ تول جوړ يو او ته څنگه يې ډگرمن صاحب ! » ده

وویل : « گومان کوم چې تېښې یم . » ددې خبرې په ختمولو سره په زنګنو شو او پر ځمکه ولوید . په دې لحظه کې د طعامخانې یو تن ملاژم دده سر د باندنۍ دروازې په کونج کېښود . یو چا ورته وویل چې ژر ډاکتر راوله ، بیا زه او ټرنر هرمن ته ور نږدې شو او پلانټ د ټرل شوي سپاهي په ساتنه مصروف پاتې شو او حاضر باش ته یې غږ کړ چې وسله وال نفر راوبولي . بیا یې دا سړی لاندې جیلخانې ته بوته. ډاکتر هم ډېر ژر راورسید او د هرمن څنګ ته کېناست ، څنګه چې دی کېناست هرمن د وروستي ځل لپاره ووې « زه یې آخیر ګیر کړم او زه پوهېدم چې دوی به دا کار وکړي . » ما د ډاکتر مخ ته کتل او دا سې معلومیده چې ده څه نه شول کولای . مور یوه نیالۍ را وغوښته او هرمن مو خپل استوګنځي ته ننویست چې زما سره په یوه ودانۍ کې و ، ډاکتر بیا هم معاینه پیل کړه خو دده ساختلې وه ، هرمن مستقیماً په زړه کې برچه خوړلې وه او زړه یې پرې شوی و . یوازې په خپل همت او میړانه دامکان تر حد پورې ژوندی او تکړه و . ډاکترمې دلته پرېښود او دواور و ډ ک پیاده رومې ونیو او بیر ته طعامخانې ته ولاړم او پر میز باندې کېښناستم اوچیف کمیشنر ته مې د پیښې په هکله تلګرام ولیکه او خبر مې ورکړ . کله چې ما تلګرام د مخابرې لپاره د مخابرې کوټې ته لیږه پلانټ هم راغی .

ده وویل : « دا سړی مسعود دی . زه تا نه مجبور وم ځکه دا ستا مسوولیت دی ، مګر دلته د مسعودو نیم ټولی دی چې احتمالاً دا سړی هم په دوی پورې ترلی دی ، او د توقیف خانې پهره هم دوی کوي او زه فکر کوم چې دوی باید ټول بې وسلې کړای شي . »

ولې ؟ ما پوښتنه ځینې وکړه ، او ده وویل چې :

کله چې زه د توقیف خانې لویې دروازې ته ورورسیدم او پهره دار دروازه موږ ته را خلاصه کړه او څرنګه چې انګړ ته ورننوتم ، لس دولس تنه وسله وال ولاړ وو ، داسې دشپې وسله وال سپاهیان څه کوي ؟ حال دا چې دوی باید په خپلو بسترو کې ویده وي . نو هرو مرو دوی په کوم مقصد راوتلي وو . ما پردوی غږ وکړ . کله چې دوی زما غږ واورید ، دوی بارک ته ننوتل ، ما خپل بندي توقیف خانې ته ننه ایستلو او په پهره دار مې خبرداری وکړ او زه را ووتم ، بیا مې صوبه دار میجر را وغوښت او ورته ومې ویل چې ژر راشي او څومره نفر چې راوستلای شي له ځان سره دې راولي او دګزمې نفر دې راټول کړي .

« صوبه دار میجر دلته دی ؟ » ما وپوښتل .

تقریباً سملاسي را ننووت ، یوتکړه او زورو رجنګیالی ښکاریده مګر له بالاپوش او کالیو سره داسې عجیبه غوندې بریښیده چې د سړي خندا ورته راتله .

ده وویل : « کرنیل صاحب مړ دی ؟ »

« هو! کرنیل صاحب مړ دی . » ما ورته وویل . یو مسعود خو کرنیل وواژه . هغه مو ونیو او په توقیف خانه کې دی . اوس دا راته ووایه چې د توقیف خانې او ډیپوګانو په پهرې مسعودو سره څه وکړو ؟ آیا ته فکر کوې چې له هغوی څخه وسله ټوله کړو ؟ ده وویل : باید ټوله شي ، خو وسله ټولول هم جنجال لري ، حتماً باید دچیف کمیشنر اجازه تر لاسه کړې ، که دا کار دکیدو وي نو باید ډیر ژر او سملاسي وشي . ما پلانټ ته وکتل او ومې ویل . ده سملاسي زما خبره پرې کړه او ویې ویل : په توقیف خانه او ډیپوګانو کې پنځوس تنه مسعود دي او لویه دروازه دشپې له خوا دننه څخه بولټ شوې

وي. دوی کولای شي چې پهره دار ونیسي او د جیل خانې کوټې ماتې کړي ،
بندي خلاص کړي او دوسلې او مهماتو ډیپوهم تش کړي ، خزانه هم چور
کړي او هیڅوک یې مخنیوی هم نه شي کولای. په باندینۍ کلا کې د
مسعود و یو بل مکمل ټولی هم شته ، خوزه تر اوسه هم پوه نه یم چې قاتل
د کومې ډلې دی ، مګر پر دې هم پوهیږم چې نور قومونه که د هر من له مرګ
څخه خبر شي خامخا پر دوی باندې برید کوي ، ته هم پوهیږې هر سپاهي د شپې
له خوا ټوپک او سل دانې کارتوس لري .

ماولیده چې د پلانټ خبره مهمه وه او د خپل عمل او اجرا اتو پلان مو یو څه
ګړندی کړ . په دې شیبه کې صوبه دار میجر له نورو ټولیو څخه نور سپاهیان
چې مسعود نه وو راټول کړل . څو مره لاتینونه ( لانټرنونه ) مو چې تر لاسه
کولای شول تر لاسه مو کړل او توقیف خانې خواته ورغلو . زه هغه ماز یګر
داسې را یادوم چې د هغه په یخني کې مې په ځان کې څه او پر یخنۍ نه
پوهیدم ، ټرنر زاری کولې چې ده ته هم اجازه ورکړو چې له مونږ سره راشي
، مګر ما اجازه ورنه کړه ځکه چې مونږ نه پوهیدو چې په توقیف خانه کې د ننه
څه پیښیږي نو فکر مو وکړ چې همدلته پاتې شي ښه دی ، نو ما ځکه ده ده
غوښتنه ونه منله ، پهره دار دروازه راخلاصه کړه مونږ یو په بل پسې ننوتلو او
په واورو کې غلي غلي تلو چې آواز مو ډیر پورته نه شي . په انګړ کې یخني او
چوپتیا وه څوک نه بریښیدل ، په داسې حال کې چې « پلانټ » ځای پر ځای
کیده . زما مسعود ملازم « ماوی » نومیده او وروستی سړی و چې را ننووت او
زما تومانچه یې راکړه چې زما له کوټې څخه یې راوړې وه . ماوی په ملیشه
کې نه و یو عادي ملکي سړی و . په دې وخت کې مو څو تنه د مقابل بارک بام

ته خیږولي وو چې دانګړ او دمسعودو له بارک څخه لرې تر اور لاندې ونیسي ،
یو شمیر مو په انګړ کې داسې ځای پر ځای کړل چې دهغې بلې ډلې تر اور
لاندې رانه شي او وکولای شي چې دوی هم بارک تر اور لاندې ونیسي . دوی
ټوپک ډک کړي وو او اور ته تیار وو . لا تینو نه مو دښار خولې په زاویه کې
داسې ایښې وو چې رڼا یې دبارک خوا ته وه او زموږ نفر په سیوري کې وو . دا
ټول کارونه ډیر په سرعت سره تر سره شول کله چې ټول حاضر شول ، پلانټ له
ماسره دښاه په شاوخوا کې و . د دوارو ډلو داور په زاویه کې وو او غږ یې وکړ :
جمعه دار سالم !
سالم دمسعودو دنیم ټولي جمادار و خو تردې لحظې پورې راڅرګند نه شو .
هیڅ ځواب یې را نه کړ . دده کوټه مو وپلټله چې له بارک سره ځیرمه نښتې وه
او دی لږ څه ویریدلی را پاڅیده .
پلانټ ورته وویل : ژر ولاړ شه او خپلو سړیو ته ووایه چې هر څوک امر ته
اطاعت وکړي دوی ته به څه خطر متوجه نه وي . دوی ته ووایه چې ژر جمع شي
او دبارک مخ ته په انګړ کې راټول شي . که هر چا دا امر ونه منلو پر هغه به فیر
وشي .
جمادار سالم سلام وکړ او له انګړ څخه بارک ته ننووت ، دننه نري
غوریګ پورته شو او ډیر وخت تیر شو خو څوک راونه وتل ، مګر جمادار بیا
یوازې راووت ، دوی خو ماته غوږ نه نیسي که چیرې ، صاحبان په خپله ورسره
و غږیږي ښایي دوی به غوږ ونیسي .
ما فکر وکړ چې ښایې کومه توطئه وي او زه نه پوهیدم چې پلانټ څه فکر
کاوه . هیڅکله مې داسې بده خاطره نه یادیږي چې د بارک یوې دروازې ته زه

ور روان وم او بلې دروازې ته دې ور روان شو . موږ دسپوږمۍ په رڼا کې وو او شاته مو لاټینونه هم راپسې وو ، دننه تیاره او چوپتیا وه ، زه چې دروازې ته نږدې کیدم هماغه مسعود چې زما تومانچه یې راوړې وه له ما سره اوږه په اوږه ولاړو . صوبه دار میجر او یو بل پښتون افسر د پلاټ خپلې کومې خبرې چې جمعه دار سالم ته کړې وې تکرار یې کړې . بیا هم یوه اوږده وقفه په منځ کې راغله او بیا یو یو راووتل او په لین کې ودریدل . زه څه ناڅه آرام شوم او سامې وچلیده ، سملاسي خطر کم شو . ددوی خپل جمادار ددوی په ژبه قوماندې ورکولې او دوی هم اطاعت کاوه . ټول سرې په غبرګه لیکه ودریدل او خپل ټوپک یې پرواور وکیښودل ، شاګرز یې وکړ او څلور خطوې وړاندې ولاړل ( په شاشول ) ټوپک سملاسي دموظفو کسانو له خوا را ټول شول او ډیپو ته واچول شول او په ډیره چټکتیا سره هر حرکت یو په بل پسې عملي کیده ، مسعود مو بیرته بارک ته مارش کړل او تر سهاره پورې موقید کړل .
دیوه اعتباري پښتون افسر تر قوماندې لاندې دوی تر نظارت لاندې ونیول شول ، بیا مو انګړ یو ځل په ځیز سره وکوت او ډاډ مو ترلاسه کړ . په دې وخت کې صوبه دار میجر له پلاټ سره پوسپسی کاوه خو اوریدل کیده ، ده ورته وویل چې پهره دار وزیر دې باید تبدیل شي په ختیه کې وزیر او مسعود یو دی .
ده په پښتو خبر کولې او پهره دار هم واوریدې ، ټول ماښام ما چې د پلاټ کره وړه لیدل دستانې وړ وو ، خو په دې شیبه کې دده هوښیارې او زیرکې زما هیڅکله نه هیریږي ، ده پهره دار ته وکتل او ویې پیژندلو ، « وزیر ؟ » ده په حیرانوونکې لهجه تکرار کړل . تابه ویل چې څه شک ورته پیدا شو ، بیا یې ور زیاته کړه ، سمه ده چې وزیر دی او داخو « سرباز خان » دی او زه خو پر

ده باندې د هر څه اعتبار لرم او په ده پوره ډاډه یم .

پهره دار فوري ټټر پورته کړ او په کلکو قدمونو یې د ډیپو تر مخ په پهره کولو پیل وکړ تا به ویل د بکینګهم پلس تر مخ د تشریفاتي ګارډ عسکر دی ، مونږ هم داسې احساس وکړ چې دی پرېږدو او ډاډمن ستانه شو ، ټرنر او ډاکټر کوکس Cox مونږ ته په بې صبرۍ سره منتظر وو .

حتی په دې موقع هم زما په نظر وضعیت مطمین نه و . لا یو ټولی مسعود په باندینۍ قشله کې وو او څلور سوه تنه له نورو قبیلو څخه هم موجود وو چې خپله پریکړه وکړو او پوستو ته خاص او امر صادر کړو ، له یو څه مباحثې او مناقشې وروسته مو داپریکړه وکړه هر څه همداسې غلي پرېږدو او دا څه قوت مو چې راټول کړی و بیرته مو خپلو کوټو او پهرو ته واستول . دورځې په رڼا کې ټولو وسله والو کسانو خپل ټوپک د ټولي سلا کوټ ته وسپارل او دا ورځینی او روټین کارو ، دورځې به ټوپک سلا کوټ کیدل او دشپې به بیرته ور توزیع کیدل . یوازې پهره دار انو سره وسله پاتې کیده ، مونږ پریکړه وکړه چې نورمال روټین دې مراعات شي ، یوازې د مسعود په هکله مودا پریکړه وکړه چې وسلې کوټ کړي نو یو دم به دوی راټولیږي او یوه میاشت به رخصت ورکول کیږي . دا مو دنورو په هکله پریکړه وکړه ، او نیم ټولی چې په ډیپو ګانو کې وهماغسې موتر نظارت لاندې وساتل ، څه به مو ستړي کوم ، ټول مسعود مو چې قوت یې تقریباً څلرمه برخه وه بې وسلې کړل او رخصت شول .

له نیکه مرغه یوه مرمۍ هم فیر نه شوه ، ربښتیا هم وضع بد تره نه شوه ، یوازې له یوې باندینۍ پوستې څخه دوه تنه مسعود له ټوپکو سره تښتیدلي وو ، حتی دا دوه ټوپک چې څو سوه کلدارې یې قیمت درلود دیوه دوست ملک په

مرسته بیرته موږ ته تسلیم کړای شول .

البته موږ پر دې نه پوهیدو چې داسې کړکیچنه شپه په ښه شکل سره تېره شي ، او پر دې هم نه پوهیدو چې زموږ کړه وړه به پر محلي سیاسي حالت څه اغیزه وکړي ؟ نه پوهیدو چې د مسعود و غبرګون به څه ډول وي او وزیر به کوم لوری نیسي ؟ چوپه چوپتیا وه خو موږ له خپل لېږ قوت سره د قهرجنو قبایلي سړیو په منځ کې څه کولای شول او څه باید وکړو ؟ نو موفکر وکړ چې دا به ډیره پر ځای خبره وي چې یو منظم کنډک بیا وانیه ته راشي ، او د ډیره جاتو سیاره قطعه مو د حمایې لپاره چمتو وي . اوس تقریباً د سهار درې بجې وې موږ ډیر څه وکړل او پس له ډیر و ترخو لاړو تیر ولو څخه زه او پلانټ خپلو خپلو کوټو ته ولاړو چې لږ څه خوب وکړو .

دا تولې خبرې د شنبې په ماښام پیښې شوې او د دوشنبې په ورځ مو د هرمن تابوت تیار کړ او په خاص عسکري احترام سره مو د ریچارد هرمن تابوت د یره د اسمعیل خان ته بدرګه کړ . بیا مې د قاتل محاکمه پیل کړه او زه یوازیني باصلاحیته حقوق پوه وم او خو مره بې رحمانه چې ما کولای شول قاتل مې محکوم کړ . ده له هر ډول جرم څخه ډډه وکړله او اعتراف یې نه کاوه او سره له دې یې له خپل کار څخه باتې وهلې او په دې قتل یې ویاړ کاوه ، ده وویل چې درې میاشتې کیږي چې څیره شوی یم . زما یوازیني مقصد دا و چې « تول یې مړه کوم . » په کابل کې د ده په قهرماني پورې سندره هم جوړه شوې وه ( هغه چا بوړینګ مړ کړ .... ) . د « هرمن » قاتل په هماغه ورځ مازیګر له محاکمې څخه وروسته اعدام شو ، دی رښتیا هم چې یو کلک مسلمان او شعوري سرتیری و . له اعدام څخه نیم ساعت د مخه یې په بندي خانه کې

سترګې توري کړې او څنې يې ږ منځ کړئ او دجنت حورو لپاره يې ځان ښايسته جوړ کړ ، دی دملا پوينده کورنۍ ته منسوب و . په قشله کې دمسعودو په نيم ټولي پورې تړلی و ، وروسته بيخي روښانه شوه چې دلته يوه لويه توطئه په نظر کې وه او دده په مړينې سره دا توطئه شنډه شوه . ده وظيفه درلوده چې دافسرانو په طعامخانه کې به فير کوي او دافير د نورو لپاره اشاره وه چې پر ډيپوګانو حمله وکړي ، خزانه او سلاکوټونه چور کړي ، پهره دار بايد مړ کړي او انګريزي صاحبمنصبان هم ووژني .

( پر ۱۹۱۹ کال دوزير وله خوا په وانه کې داپيښې تکرار شوې ) . موږ هڅه وکړه چې ټوله قضيه وڅيړو . مګر دقانون مطابق مو دټولو په مقابل کې شواهد نه درلودل ، يو څو تنه مو دځينو نورو جرمونو په مقابل کې محاکمه کړل ، دجمادار سالم په مقابل کې هم موږ څه ثبوت نه درلود خو که څه هم پر دې پوهيدو چې دی ورسره و ، له نيکه مرغه قبيلوي پاڅون ونه شو . لارد کورزون که څه هم زموږ پر اجرا اتو پوره قانع شو او پوه شو چې دا کارونه دملاپوينده دي خو له هغه سره يې اړيکي پرې نه کړل ، ځکه دې کار مسعود لا نور هم اړدوړ ته تشويقول .

قاتل وويل کله چې دی طعامخانې ته راننووت ، ده ماشه کش کړه مګر مرمۍ فير نه شوه . زه يقيناً دا ردوم . مرمۍ ما پخپله له ټوپک څخه وايستله. پټاکۍ نه وه لګيدلې ، مګر زما په فکر څه پيښ شول هغه داسې وو چې قاتل کله چې پخلنځي ته ننوتلی و ، له ده څخه دروازه غلطه شوې وه او په دروازه چې ننوت ګوري چې هلته څوک نه شته او دا دروازه دباندې خواته وځي ، دی بيرته را ګرځي او په بله دروازه چې طعامخانې ته ځان رسوي برچه

یې په دروازه کې ښخیږي او د توپک خوله پورته خواته وي ، دی په دې وخت کې ډیر زیات احساساتي او هیجاني کیږي او دوار خطایې په صورت کې د ماشې پر ځای د ماشې پر پناه باندې زور کوي ، چې په نتیجه کې مرمۍ له فیر څخه مصئونه پاتې شوه . که چیرې داسې نه وای شوي نو واقعه به او س بل چا کوله ، دا چې ده د خپلې غلطۍ د اصلاح کولو لپاره موقع له لاسه ورکړه هغه د « هرمن » د پوهې او چالاکۍ نتیجه وه چې پرده باندې یې ورتوپ کړ او دې ته یې پرې نښود چې فیر وکړي ، هرمن ځان د نورو دژغورلو لپاره قرباني کړ .

څو ورځې وروسته صوبه دار میجر د هرمن په هکله سندره جوړه کړې وه ما او پلاټن ته یې د خبرو په ترځ کې وویله .

هی ! آرمون ! آرمون! ( ارمان ! ارمان ! ) چې څه ډول بهادر او میړنی صاحب مړ شو . حکومت خو به بل څوک هم راولیږي . خو ارمون چې هر من صیب مړ شو . هی ! هی ! ارمون ! ارمون!

ای . بي هاویل E .B . Howell

# پنځمه ضمیمه

## دخوشحال خان ختک یو شعر

(داشعر په انګریزي او لاتین ژبو ژباړل شوی دی)

ساقي راکـــــه ماله می -- یو ځـــو جامـــــه پیاپی

دا هم ظلــــــم دی که ګورې -- چــــې بې میو ځي سپرلی

هغـــــه ځای چې ګل اومل وي -- ورغ ځـــو کاندي ســــړی

ګوره څه وایي پرې غـــــوړ کړه -- چې آواز کاچنـــــګ اوني

بیا به تیر ســـاعت رانـــه شي -- آه ارمـــــان ارمـــان هی هی

ددنیا ژونـــــــدون هم ښه دی -- که تر تلـــه همــــیش وی

چې تر تله همـــــــیش نه دی -- نـــــوري وګنــــــه لاشی

ډیر مین یې وابــــــله تیر کړل -- فلک نه لـــــري زړه ســـوی .

# دپاى خبرې د روسيې په هکله

داکتاب ما هغه وخت وليکه چې مونږ له هند څخه ووتلو ، ما لېتر لږه ديرش کاله هلته د پښتنو ( پټانانو ) په منځ کې تير کړي وو . څو موده وروسته ځينو دوستانو او پښتنو ( پټان ) پيژندګلويو رابللې وم چې دوى سره وګورم او پخوانۍ درنې او ګرانې خاطرې په سرحد کې بيا را ژوندۍ کړم . ما هڅه وکړه چې د پښتنو ( پټان ) تاريخ د سکندر له زمانې څخه بيا تر هغه وخته سروې کړم چې انګريزان له نيمې وچې څخه ووتل ، په دې ټول کتاب کې دروسانو دفشارونو په هکله له تزاريانو څخه بيا تر شورويانو پورې ديادونې وړ څه نه شته . همدارنګه دهند او پاکستان له خوا د شوروي ضد دريځ په هکله په کې څه نه دي راغلي . داځکه چې زه يوازې دخلکو په هکله څه ناڅه غږېدلى يم ، پر ستراتيژيکو مسايلو باندې مې تبصره نه ده کړې . دا حقيقت بايد هم په نظر کې ونيول شي چې زمونږ په وخت کې له ۱۹۱٤ څخه تر ۱۹٤۷ پورې د لرو پښتنو ( پټان ) پرسيمه باندې دبهر له خوا څوک نه دي پورته شوي ؛ دا ځکه چې ددې تر شا سياست پوه انګريزان او نور سرحدي شخصيتونه ولاړ وو او په کابل کې هم داسې ديپلوماتان وو چې ددوى باورې

تر لاسه کړي و. دا سې څیرې لکه روس کیپیل Roos- Keppel ، همفریز Humphrys ، عبدالقیوم Abdulqayyum ، مکوناچي Maconachi ، دسوات میاګل Miangul of Swat محبوب علي Mahbub Ali ، کنینګهم Cunningham او ویلي Wylie دیادوني وړ دي . همدارنګه دوخت هر یو وایسرا لکه : هارډینګ ( هرینج) Hardinge ، چیلمزفورد Chelmsford ، ریډینګ Reading ، هالیفکس Halifax ، ویلینګډن Willingdon ، لینلیتګاو Lin Lithgous ، ویول Wavell او مانټ بټین Mount batten دیادونې وړ شخصیتونه وو . اوس هغوی ټول له دې نړۍ څخه تللي دي . مګر دوی ټول نومیالي خلک وو ، په میړانه یې کار کړی او په تاریخ کې یې نومونه پرې ایښي دي ، زه د کابل دربار ته دورتلو په اجازت سره له هاشم خان دراني سره اشناشوی وم . ده د پښتانه نوم او روحیه د ۱۹۳۳-۱۹٤٦ کلونو په موده کې ښه ساتلي وو . دده په موجودیت کې دافغانانو بیړۍ ښه اواره او ثابته روانه وه او څرخ یې په هوښیارۍ سره څرخیده .

مګر نن هر څه بدل شوي دي . دروس د پرمختګ پر ضد لازم مخنیونکی خنډ نه شته او شورویانو داسیا دغې مهمې اوستراتیژیکې سیمې ته پرمختګ کړی دی . درانیان هم لویدلي دي او تله پوره کړه شوې ده .

داوسنیو پیښو تازه او نوی تحلیل ضروري ښکاري . اوس چې پخوانۍ کلکه او نه ماتیدونکې کلا تبیدلې ده نو دافغان او پښتنو ( پټان) راتلونکې به څه ډول وي ؟ ښایي ویجاړي ؟

دې سوال ته داسې ممکن ځواب نه شته چې د ۱۹٤۷ دنیمې وچې

دبیلیدو باندینې نتیجې او دانګریزانو وتل اومحلي خلکو ته دڅاروسپارل به په کې بې تاثیره وي . دا یقیني خبره ده چې د برتانیې رول به دجنوبي اسیا په ثبات او امنیت کې لویه ونډه ولري چې د دې مطلب لپاره باید په شمال کې له هندوکش او همالیې څخه نیولې بیا د هند دسمندر تر غاړو پورې د یو والي او تفاهم فضا را منځته شي ، دنیم قارې دبیلیدو په وخت کې د اسیا په نقشه کې دغو دوو ( نن درې ) هیوادو ته ډیر سطحي نظر اچول کیده . د مفکورې یووالی د ذات البیني دښمنو ، بدګومانۍ او کرکې له کبله ټوټې ټوټې شو او په نتیجه کې جګړې منځ ته راغلې . ټولنې او سیمې سره بیلې شوې او ګډ مرام له منځه ولاړ . بدګوماني او یو پر بل نه باور دې حد ته ورسیده چې ګډ سرحدونه تر څارنې لاندې ونیول شول . د ایوب خان هغه وړاندیز چې سرحد دې دهند او پاکستان له خوا په شریکه دفاع شي دنهرو له خوا په کرکه وغندل شو . دغې ګډې مدافعې دچین او شوروي لپاره په نیمه وچه کې تت غوندې سیوري وغورځاوه . په نیمه وچه کې هند دمسکو خواته او پاکستان دپیکینګ خواته وررنګ شول . دبیل شوي پاکستان هیلې دکشمیر پر سر دبیلابیلو ادعاګانو له مخې تر سره نه شوې ، په دې وروستیو کې کله چې روس ې پر افغانستان تیری وکړ ، هند په ډاګه مخالفت ونه کړ حتی پاکستان هم مخ واړاوه او دعربو - اسرائیلو مخالفت ته یې تر دې زیاته توجه وه .

د ۱۹۷۱ کال دبنګله دیش دجنګ په وخت کې چې پاکستان له لوی بحران سره مخامخ و . هند وکولای شول چې له مسکو څخه کلکه دیپلوماتیکي حمایه تر لاسه کړي . حتی په متحده قومونو کې روس له هند څخه دفاع کوله او له هند سره یې تړون لاس لیک کړ ، په دې توګه هند برلاسی برینبیده او

پاکستان د بیلیدو خواته روان و .

پر همدې مهال په شمال غربي سرحدي صوبه ( NWFP ) کې هم غټه مسئله د « د پښتونستان » مسئله وه چې د هېواد پالو افغانانو له خوا د هغې ملاتړ کېده او د دراني امپراتورۍ تر پس منظر لاندې يې د پاکستان د کمزورۍ او بې غړو کولو لټه کوله او د ډیورنډ کرښې په اوږدو کې يې د پټان ( پښتون ) خاوره خپله بلله . هند بیا هم سرونه ښوراوه چې د دې کرښې قانونیت ده هم د پاکستار په امنیتي ضرورت و . پر دې سربیره د ډیورنډ کرښه په خپله د پاکستان لپاره هم جنجالي سیمه ده . ښايي دا به په ټوله نړۍ کې داسې دوه لورۍ سرحد وي چې د يوه ګاونډۍ دولت تر اداري کنترول لاندې به هم نه وي . په تیره بیا قبیلوي سیمه دا داري سرحد او ډیورنډ کرښې تر منځ په ډیرو برخو کې د مجرمینو د ځالې حیثیت لري ، دا ټول په وسله سمبال خلک او د آزاد فکر خاوندان دي ، دوی لویدیځ او ختیځ ، کابل او اباسین ښکته دواړو خواوته د دښمنۍ دراپارولو توان لري . دا داسې يوه پدیده ده چې د پاکستان مخالفین کولای شي دا ځاله له افغانستان او روسیې سره د مداخلو مرکز وبولي او په دې پلمې منفي تبلیغاتو ته وده ورکړي . دا هم باید هیر نه شي چې د يوه اساسي فکتور په څیر دا سیمه د افغانستان د مقاومت د تحریک لپاره دروس او افغان حکومت پر ضد د سمبالښت او جوړښت لپاره په محاسبه کې نیول کیږي .

یو بل حیاتي فکتور هم شته . هغه دا چې د کابل لپاره د پښتنو ( پټان ) قبیلو روحیه او مفکوره هم ډیره مهمه ده . ځکه چې دوی د نژاد ، دین ، مذهب او ژبې له مخې افغانان دي ، د دوی په منځ کې غښتلي قوتونه او مهم

شخصیتونه شته چې په افغانستان کې د ننه پر ماغزو او فعالیتونو باندې پوره اثر لري . تر ټولو دا حترام او قدر وړ قوت چې په افغانستان کې موثرو او دی هغه دخان صاحب کورنۍ ده . په تیره بیا پخپله خان صاحب او دده وروړ خان عبدالغفار خان د یادونې وړ دي . لومړي شخصیت یانې خان صیب ته به ، چې یو وخت زما وزیر اعظم و او له بده مرغه پر ۱۹۵۸ کال په قتل ورسیده ، وروسته راو گرځم . دویم شخصیت چې د « سرحد گاندهي » باندې هم شهرت لري او په هند کې هم ډیر درانه ورته کتل کیږي نږدې نوي کالو ته رسیدلی دی ، او لاهم پوره اکتیف او فعال دی ، دا سلام آباد له نظامي رژیمونو سره دده جوړه نه کیږي او ځکه وروستي لس کاله یې دډیر عزتمن دولتي میلمه په څیر په افغانستان کې تیر کړل او زیاتره وخت په جلال آباد کې وي . دا سې هم ویل کیږي چې دی له ببرک کارمل سره ډیر تینګ او نږدې اړیکي لري ، ببرک کارمل د پرچم ډلې مشر د روسانو د پوځي زور په مرسته د کابل واګې په لاس کې واخیستې ، مګر له روسانو سره دخان عبدالغفار خان دا ړیکو په هکله ، له مرږ سره معلومات نه شته . دا هرڅه په دې پورې تړلي دي چې په وروستیو پریکړو کې به دی کوم تصمیم ونیسي . دده زوی ولي خان ، ښو ښکلی او غښتلی پښتون شخصیت او په پښتونواله مین سړی دی چې پخپلو کړو وړو کې پوره قاطعیت لري او دخپل پلار په پرتله او سنیو سیاسي پیښو ته په جدي سترګه ګوري . ښایي ددې لویې پیچلې زبرې ( معما ) کلي به هم دده په لاس کې وي . لویدیځ ددغو چارو په هکله ډیرو دقیقو استخباراتي راپورونو او معلوماتو ته اړتیا لري . مرږ ددې په عوض چې په دې استقامت کې مو کار کړی وای ، متاسفانه په پیښور او لاهور کې مو دخپلو معلوماتو

منبع وترلي. په دې کار سره مونږ ډير قيمتي ميراث بل چا ته په وړيا له لاسه ورکړ.

که چيرې دا کتاب، په سرحد او په افغانستان کې دننه، چې د پښتنو زړه بلل کيده، هغه چا ته چې د غرونو د خوځولو طاقت لري قناعت ورنه کړي، نو هيڅ ارزښت نه لري. مونږ اوس تماس او دلچسپي دواړه له لاسه ورکړي دي، زمونږ دانا کامي ښايي په افغانستان کې د روسانو د ننوتلو لپاره يو اساسي دليل هم وي. روسان اوس ټولې جنوبي اسيا ته لوی خطر دی، خو روسانو ته نه سترې کيدونکې مقاومت اوبې له مرستې او حمايې مبارزه د افغانانو له خوا د ګريلايي جګړو په شکل محسوس کيږي. په دغه فعاليت کې کيدای شي چې ټوله نيمه وچه حتی د خليج ګاونډ يوړې له خطر سره مخامخ شي.

اوس د دې وخت دی چې د سرحد په هکله زياتو تفصيلاتو ته راوګرځو. څرنګه چې دا کتاب تر شل کلو زيات موده د مخه ليکل شوی و، نو په دې موده کې ډيرې خبرې په سرحد کې پيښې شوې دي. مګر مخکې له دې چې پر دغو پيښو وغږيږو، د سعدي صاحب (رح) يو بيت رااخلو چې مولانا ظفر علي د ۱۹٤۰ کال د مارچ پر اتمه د نوي ډهلي د دتقنيني اسامبلې په وړاندې ويلی و او له دغه شعر څخه د پيښو انځور ليدلی شو. بيت دادی:

توان به حلق فروبـــــرد استخوان درشت
ولی شکم بدرد چـــون بگيرد اندر ناف

مولانا له بيت څخه مقصد دا و چې هر طاقت چې د پښتنو (پټان) کور ته ستڼزګې سرې کړي ورغ به يې بده وي. دا شعر نن د روسانو د اشغال په هکله هم صدق کوي. دې ته ورته به زه هغه مقوله رااخلم چې د باندنيو چارو

دسکرتري ( معين ) په توگه دهغه وخت دهند حکومت ته ويله . هغه وضعيت نن دروسانو په سترگو کې ليده شي .

هغه چې شاته وو ويل به يې : « مخ په وړاندې ولاړ شئ ! »

هغه چې مخته وو ويل به يې : « لږ په شا شئ ! »

کله چې پر ۱۹۵۸ کال پټانز Pathans دلومړي ځل لپاره چاپ شو هغه وخت زه له بيليدو څخه دمخه دشمال غربي سرحد صوبې ( NWFP ) گورنر وم . ډاکټر خان صاحب زما وزير اعظم په دې موقع ( ۱۹۵۵ کال داکتوبر ۱٤ ) دمتحد غربي پاکستان وزير اعلی مقرر شو ، پاليسي هم داوه چې دا به يو اداري واحد پاتې کيږي . مگر د « ۱۹۵۸ په مې » کې دده د قتل غمجنه پيښه وشوه . دا داسې يوه درنه ځپيړه وه چې پاکستان تر نن پورې هم له هغې څخه نه دی په کرار شوی . ددې پيښې تاثيرات په سرحد کې خورا درانه وو . له افغانستان سره د پښتونستان د مسئلې پر سر مشکلات نور هم زيات شول اود سپتمبر پر ٦ مه نيټه ديپلو ماتيک اړيکي وشليدل اود « ۱۹٦۳م » پورې دااړيکي ويجاړ وو .له هغه وروسته که څه هم ديپلوماتيک اړيکي نورمال شول خو دافغانانو ادعا پر قبيلوي سيمو ، دصوبه سرحد پر ځينو برخو او همدارنگه پر بلوچستان او ځينو نورو برخو باندې چې په پاکستان کې گډې شوې وې لاژوندۍ او جدي وه. دهغه وخت د اړيکو دعادي کولو لپاره ددوی يوازينی دليل دسوداگرۍ او اقتصادي اسانتياو په خاطر و ، ځکه چې له باندينۍ نړۍ سره ددوی لار له پاکستان سره تړل شوې وه ، که څه هم پاکستان هغه وخت هم دتجارتي لارو دنه تړلو وړانديز کړی واو دروسيې اوايران له لارې هم دافغانستان دسوداگرۍ امکانات وو.

:« پښتونستان » دمسئلې دتوديدو يو دليل داو چې امريکې پاکستان ته وسلې ورکړې او نور کومکونه يې آن له ۱۹۵٤ څخه راپيل شوي وو او دويم دليل داو چې له غربي پاکستان څخه يې يو ايالت جوړ کړی و . له غربي پاکستان څخه يو ايالت جوړول خاص دختيز پاکستان ( نني بنګله ديش ) دتشنج دکموالي په مقصد و او دجمهور رئيس ايوب خان په کتاب کې دا موضوع پوره روښانه ده ديوه اداري واحد پروژه اوس مړاوې شوې ده خو نتايج او عواقب يې لا اوس هم له موږ سره شته . که چيرې خانصاحب ژوندی وای ښايي دا به همدآسې وای ، عيناً که چيرې لياقت عليخان ژوندی پاتې شوی وای پاکستان به له دومره بدبختيو او نظامي حکومتونو سره نه وای مخامخ شوی . که څه هم داخبرې دلته زموږ له موضوع څخه لرې او دبحثووړ نه دي خو بيا هم څو ټکي بايد دجيوپوليتيک له نظره وڅيړل شي او پر نتيجو يې بحث وشي . دمثال په توګه ويلای شو چې پښتانه « پټان » همېشه دژرندې ددوو پلونو تر منځ وو .

زما د ملګري اکبر - اس - احمد د « په قبيلوي سيمو کې ټولنيز او اقتصادي بدلون ، « ۱۹۷۲-۱۹۷٦ » (۱۹۷۷) کتاب په مقدمه کې دبيا جوړشوي صوبه سرحد ګورنر تورن جنرال نصير الله خان بابر ليکلي دي چې د ۱۹٤۷ او ۱۹۷۲ کالو تر منځ قبيلوي سيمې د « دوی خپل دود يز سيستم » په کړنلاره کې ازادې پرېښودل شوې وې . که څه هم داخبره په څه مبالغه ولري خو په يقين سره ټول قطعات له دغو سيمو څخه وايستل شول ، ځينې ځايونه لکه رزمک له قوتو څخه تخليه شول . نور کارونه هم دپوليتيکل ايجنټانو له لارې کيدل او قبايلو ته مادي امتيازات او ځينې نور دپخوا په شان جاري وو . پر

۱۹۷۲ کال وضعیت بدلون وموند . په پاکستان کې بوټو قدرت په لاس کې درلود او په افغانستان کې هم انکشافات روان وو . د رزمک کمپ بیا فعال شو . له نهاکي Nahakki غاښي څخه له ۱۹۳۵ څخه را په دې خوا یو ځل بیا قوت واوښت . د مومندو ایجنسۍ قرارګاه ګلاني Ghalanai ته ولېږدول شوه او په باجوړ او اورکزو کې نوې ایجنسۍ جوړې شوې ، چې یوه یې د کوهاټ او هنګو په سرحدي سیمو پورې تړلې او بله یې د ملاکنډ ایجنسۍ تر امر لاندې وه . دا وروستي بدلونونه د ۱۹۷۳ کال د دسمبر په میاشت کې رامنځته شول احمد زیاتوي چې د دې په څنګ کې اقتصادي فعالیتونه هم پیل شول او په دومره پراخه پیمانه پیل شول چې پخوا یې په قبیلوي سیمو کې ساری نه درلود . د دې دومره فعالیتونو او سازماندهیو ضرورت څه و ؟ د دې سوال ځواب ، زما په نظر دافغانستان له پېښو سره تړاو درلود .

د ۱۹۶۳ کال د ډیپلوماتیکو اړیکو له بیا فعالیدو څخه وروسته څو مهمې پېښې په هغه هیواد کې وشوې . تر ټولو د مخه مهم شی د روسانو د تسلط او مداخلاتو زیاتوالی و . له قزل قلعه څخه تر کابل پورې د سالنګ لویه لار جوړه شوه او هندوکش یې سوری کړ . له روسي ترکستان څخه د کشک له لارې تر کندهار پورې بله لویه لار روسانو جوړه کړه . دا لار له کندهار څخه تر کابل پورې د امریکایانو له خوا جوړه شوه. دویمه مهمه پېښه د اساسي قانون جوړول وو .

په خلیریشتم څپرکي کې او همدارنګه دلته پاس هم ماد هاشم خان یادونه کړې ده چې د نادر شاه ورور او وزیراعظم ( صدراعظم ) و . کله چې نادر شاه پر ۱۹۳۳ کال قتل شو ده خپل فعالیت ته دوام ورکړ او د خپل وراره ظاهر شاه

په نامه يې کار کاوه . پر ۱۹٤٦ کال دده کشر ورور شاه محمود خان دده ځای ونيوه. پر ۱۹٥۳ کال دهاشم خان او شاه محمود خان ورارہ محمد داود خان د صدر اعظم په توګه ميدان ته راګډ شو . داود خان و چې د ۱۹٦٤ اساسي قانون يې رامنځته کړ ، دغه قانون ځينې خصوصيات درلودل ، يو دا چې دلومړي ځل لپاره له نړيوالو شرايطو سره سم هر چا ته درايو ورکولو حق ورکړ شو او همدارنګه دشاهي کورنۍ غړي په دولت کې له کار کولو څخه دقانون له مخې بې برخې شول . ډاکټر محمد يوسف ( دفزيک ډاکټر ) له انتخاباتو وروسته صدر اعظم مقرر شو . ويل کيږي چې د رايو ورکولو لپاره چندان علاقه موجوده نه وه او يوازې ۱٥ ٪ خلکو رايې ورکړې . په دې وخت کې سياسي احزاب هم پوره فعال نه وو . په پارلمان ( شورا ) کې دولسي جرګې غړي زياتره عقيده من او دود يز مسلمانان دوکيلانو په توګه انتخاب شوي وو . له ۲۱٥ غړو څخه يوازې نږدې پنځلس کسه راديکال مارکسيستان يا سوسيال دموکراتان وو . په دې وخت کې و چې تره کی او کارمل په صحنه کې راګډ شول او شهرت يې پيدا کړ . يو يې دډاکټر يوسف دکابينې دځينو غړو پر ضد مبارزه کې شهرت ته ورسيد او بل يې ديوې جريدې په نشرولو شهرت وموند . دا جريده « دخلق » جريده وه چې پنځه ګنې وروسته مصادره شوه . ديوه راپور له مخې وايي چې کارمل دحکومت پر ضد تر يوه حده بريالی شو . د حکومت داعتماد درايې داخيستنې په ورځ دکارمل ډلې دپارلمان مخې ته مظاهرې وکړې . دپوهنتون درې تنه محصلان ووژل شول . ډاکټر يوسف که څه هم رايې ګټلې وې خو له دې پيښې څخه ډير غمجن شو او استعفی يې وکړه. . . . وروسته بيا د ۱۹۷۳ کال دجولای پر ۱۷ نيټه په وزارتونو کې يو څه

بې نظمي برېښیده او کابل ته د روسیې د صدر له سفر څخه درې اونۍ وروسته داود خان د خپل تره زوی ظاهر شاه په خلاف کودتا وکړه او د جمهوریت اعلان یې وکړ. (*)

د دغې کودتا په درشل کې د پاکستانۍ غاړې په سرحد کې تحریکات پیل شول. متروکه قشلې بیرته احیا او اشغال شوې. د سرحد په لوري هرې خواته د سړکونو جوړول پیل شول. احمد لیکي چې د ۱۹۷۶ کال په پای کې د یوسف خیلو او ناوګۍ ترمنځ سړک بشپړ شو. داورکزو په سیمه کې د کلایه Kalaya سړک تر کلات پورې اوږد شو او د کورمې سړک Kurram Road د اپریدیو د تیرا تر سرحد پورې ورسیده او سدې ته یوازې پنځلس نیم میله لاره پاتې وه. زړې کلاګانې لکه د «دته خیلو» «لاډا او تیارزه» Data khel Ladha and Tiarza او همدارنګه رزمک فعالې شوې.

د ۱-۱۹۷۲ او ۵-۱۹۷۶ کلو په موده کې د سړکو په جوړولو څو څو چنده پیسې مصرف شوې او د لارو د جوړولو مصارف زیات شول. هرې خواته د برېښنا مزي وغځول شول. داسې وایي چې د کرنې په برخه کې مصارف لس چنده زیات او د کرنې مځکې ۶۰٪ نورې پراخې شوې. بوټو که هرڅه غلطې درلودې خو په دې هکله او په دې خوابې د یادونې وړ خدمت کړی او په اوږده موده کې به دا مثبت ثابت شي او په راتلونکي کې به د پټان (پښتون) په ګټه

---

(*) مؤلف لیکي چې داود خان د ظاهر شاه د تره زوی او د ملکې حمیرا ورور و. حال دا چې حقیقت داسې نه دی. داود خان د ظاهر شاه د تره زوی و خو له حمیرا سره یې اړیکي نه وو. د داود خان مېرمن «زینب» د ظاهر شاه خور وه. (ژباړن)

وي . که څه هم د دې ليکنې په وخت کې د سرحد آخوا د يرې پيښې رواني دي .

د دغو پيښو بيان څه ناڅه په کار دی ، داود خان چې د کارمل د ډلې پرچميانو په مرسته جمهوريت جوړ کړ ، وارله واره د روسيانو مرستې پيل نه شوې . که څه هم د ۱۹۷٤ د جون په مياشت کې يې د « پښتونستان » د مسئلې په ارتباط د افغانستان موقف لږ نرم شان ته تائيد کړ او دا د داود خان د مسکو د سفر په موده کې برسيرنه يادونه شوې وه ، دا ځکه چې له يوې خوا روسانو پر هغه مهال د يتانت لټاوه او له بلې خوا داود خان له انقلابي شورا څخه په کرار کرار افراطيان شړل او ده ، محافظه کار جهت غوره کړی و . د ۱۹۷۷ کال په فبرورۍ کې داود خان عملاً انقلابي شورا لغوه کړه او ملکي کابينه يې جوړه کړه او نوی اساسي قانون يې اعلان کړ . مصطفی Z. Mustata په پاکستان هورايزن « Pakistan Horizon » کې په يوه مضمون کې ليکي چې : روسيه يوازينی هيواد دی چې هميشه يې د پښتونستان مسئلې ملاتړ کړی د ی او دا ملاتړ لږ ترلږه د خروسچف له زمانې څخه را په دې خوا د يادونې وړ دی.

مصطفی اشاره کوي چې تر کودتا وروسته د افغانستان په خارجي سياست کې اوچت بدلون ليدل شوی دی . روسانو د شل کالو زياتې مودې را په دې خوا د افغانستان باندينۍ مرستې په زياته پيمانه پر غاړه درلودې او د ۱۹۷۷ - ۱۹۸٤ اوه کلن پلان د تطبيق په موده کې بايد د روس مرستې د ٤٥٪ څخه ٦٦٪ ته زياتوالی کړی وای . اوس بيا هم تر ټولو لوی دونور (مرستندوی ) و . خو دا فعاليت د ايران ، متحد قومونو او لويديز المان له خوا تر نږدې ځانګې لاندې نيول شوی و . د ايران حکومت هڅه کوله چې

دافغانستان او پاکستان ترمنځ د پښتونستان پر مسئله باندې منځګړيتوب وکړي . همدارنګه داسلامي کنفرانس عمومي منشي د ۱۹۷٤ کال دجولای په مياشت کې له بوټو سره د شمال غربي سرحد صوبې NWFP او بلوچستان دوره وکړه او کابل ته يې د ددوه اړخيزو خبرو وړانديز وکړ .

د ۱۹۷۵ په لومړيو کې دواړو حکومتونو پريکړه وکړه چې دباندينيو چارو دمعينانو په سطح خبرې پيل کړي . داخبرې تر يوه وخته پورې وشوې . ترهغه چې پاکستان نشنل عوامي پارټي له فعاليت څخه بند کړه او خبرې بيا قطع شوې . ځکه چې نشنل عوامي پارټۍ (NAP) داخلي ازادي غوښته او دې خبرې د پښتونستان مسئلې ته پوره قوت ورکړ . د ايرانيانو منځګړيتوب بيا زمينه دې ته برابره کړه چې د ۱۹۷٦ جون کې بوټو کابل ته ولاړ شي . دې ملاقات د توقع خلاف ښه نتيجه ورکړه او ترمنبت ښکاره شو . دهمدې کال په اګست کې داود خان اسلام آباد ته ولاړ او دعوامي ګوند دمشرانو دخلاصون غوښتنه يې وکړه . په مقابل کې له کابل څخه دډيورنډ دکرښې پيژندنه غوښتل شوې وه . ددې پېښې رسمي لاسليک چې وروسته په کابل کې کيدونکی و ، وځنډيده . په همدې وخت کې په پاکستان کې ځينې پيښې رامنځته شوې چې زموږ له موضوع څخه دباندې خبرې دي ، او تفصيل يې ممکن نه دی . ځينې يې چې پر باندينيو اړيکو باندې موثرې دي او هغه يې له خنډ سره مخامخ کړي دي ديادونې وړ دي . نشنل دموکراتيک پارټۍ دولي خان پر نشنل عوامي پارټۍ باندې برلاسی شوه او دوی دبوټو پر ضد اکتيف وو . داود خان ټينګار کاوه چې د پښتنو او بلوڅو مشرانو سره دې دروغې جوړې په فضا کې مسايل يوې خواته شي . د ۱۹۷۷ دجون په

میاشت کې بوټو یو لنډ سفر کابل ته وکړ خو خبرې یې د نورو موضوعاتو په هکله وې .

د ۱۹۷۷ کال د جولای په میاشت کې د پاکستان حکومت نظامي او انتخاباتو وځنډېدل . د ۱۹۷۷ په اکتوبر کې ضیاالحق کابل ته راغی خو په خاص مقصد خبرې ونه شوې . د ۱۹۷۸ کال د مارچ په میاشت کې داود خان اسلام آباد ته راغی له ولي خان سره خبرې په ښه توګه پیل شوې او د NAP نشنل پارټي نور غړي هم له جیل څخه آزاد شول . ښاغلي بوټو د مرګ له هوجري څخه ولیکل او د اکارېې د تسلیمیدو علامه وبلله او پردې باندې ده همیشه ټینګار کړی و . دا مشکله ده چې له باندې څخه پړ د غسې پیښو باندې سړی قضاوت وکړي . خوپتیه دې نه وي کله چې د ۱۹۷۸ اپریل کې کودتا وشوه . د پاکستان - افغانستان اړیکې د ماتیدو په حال کې وو .

پر ۱۹۷۸ کال کودتا وشوه . دوی ورته د « ثور انقلاب » وایي ، په افغانستان کې د خلقیانو او پرچمیانو په یو ځای کیدو سره تر سره شوه . لکه څنګه چې پخوا موهم وليدل د پرچم ډلې مشر ببرک کارمل او د شپیتمې لسیزې په اوږدو کې د پرچم ډله جوړه شوې وه . د خلق ګوند د نورمحمد تره کي له خوا جوړ شوی و . نور محمد تره کی په واشنګټن کې مطبوعاتي اتشه و او د « خلق » جریده یې تاسیس کړه . په دې دوو ډلو کې پرچم ډیر زیات د مسکو پلوی و . لومړی دوی د واحد « خلق دموکراتیک ګوند » په نامه سره یو ځای شول مګر په ۱ - ۱۹۷ . کې سره بېل شول . پر ۱۹۷۷ کال دوی بیا سره یوځای شول او د « خلق دموکراتیک ګوند » یې جوړ کړ ، او دوی په اصطلاح د « ثور انقلاب » ( نور کودتا ) مسوول ګوند دی چې بې له شکه یې دروسانو

په مرسته تر سره کړه .

له غیر کمونستي هیوادو څخه هندیو یوازینی هیواد و چې دا رژیم یې په رسمیت وپیژانده . سره له دې چې دګوند مشر نور محمد تره کي له کمونیزم او مارکسستي مفکورې څخه منکر و . دکودتا یو غړی دګروال عبدالقادر دروسانو دارتباط پیژندل شوی غړی و . سره له دې چې دروسانو له تړاو څخه منکر وو . ددوومیاشتو په موده کې یې له روسیې سره داقتصادي او ټولنیزو همکاریو په هکله پنځه ویشت بیلابیل تړونونه لاسلیک کړل او دافغانستان وزارتونه له روسیي مشاورینو څخه ډک شول . هر وزارت عملاً دیره مشاور له خوا اداره کیده .

د ۱۹۷۸ کال دمې پر ۵ نیټه پاکستان دافغانستان دنوی رژیم دپیژندنې تکل وکړ او د « مې » پر ۷ مه نیټه تره کي له خان عبدالغفار خان سره ملاقات وکړ او د « مې » پر نهمه نیټه تره کي اعلان وکړ چې د « پښتنو او بلوڅو معضله به دسوله ییزو خبرو او مذاکراتو له لارې حل شي . په بل عبارت د « پښتونستان » مسئله بیا رامنځته کیدونکې وه .

داد یحث وړ خبره ده چې روسانو همیشه د « پښتونستان » مسئله حمایه کوله او دا دمسکو دباندیني سیاست یوه عمده موضوع وه . داود خان په اوبا لسیزه کې ددې مسئلې په هکله جدي و او روسانو یې ملاتړ کاوه . خو کله چې داود خان پر دې موقع باندې له پاکستان سره ددې مسئلې حل ته رسیدونکی و ، روسانو بیا مداخله وکړه . « پښتونستان » روسانو ته ځکه داهمیت وړ و چې پاکستان به کوچنی او پښتونستان به دیوه کوچني افغانستان حیثیت ولري او په دې توګه به ددوی اصلي هدف یانې تودو او بو ته درسیدو لار یو څه

لنډه او اسانه شي او بيا به روس وکولای شي چې داسيمه ډير ژر د پاکستان په شمول ترکمونيزم لاندې راولي .

مگر موږ او تاسې ته څرگنده ده چې د تره کي رژيم د باندې له خوا (ظاهراً) ناپيلې رژيم و او پاکستان هم د ناپېلتوب خواته روان و ، د ۱۹۷۸ کال د جولای په مياشت کې يې د ناپېيلو هيوادو د بلگراد په غونډه کې د ميلمه په توگه گډون وکړ . له ۱۹۷۸ څخه د مخه کارمل چې د تره کي او امين په پرتله ډير لوړ غړی درلود . (نوی صدراعظم و) په دې وخت کې له ځينو ملگرو سره د سفيرانو په نامه تبعيد شوی و او په ختيزه اروپا کې ميشته و . دوی په دې تور شړل شوي وو چې د تره کي په خلاف يې کودتا کوله ، دلته روسانو په څرگنده علاقه درلوده چې دی حمايه کړي او له دې څخه وروسته دا څرگنديږي چې تره کي په رښتينې د ناپېلتوب پاليسی تعقيبوله .

د ۱۹۷۹ د سپتمبر کودتا د تره کي پر ضد بريالي شوه . تره کی د خپل صدراعظم حفيظ الله امين له خوا ووژل شو ، چې دی تازه درې اونۍ مخکې د ناپيېلتوب غورځنگ له يوه بل کنفرانس نه له هاوانا څخه راستون شوی و .

درې مياشتې وروسته امين هم ووژل شو او روسان په هماغه ورځ يانې د ۱۹۷۹ د دسمبر پر ۲۷ نيټه له امو څخه تير شوي وو . روسانو کارمل له تبعيد څخه راواست او د قدرت پر څوکۍ يې کښيناوه .

کوم حوادث چې له ۱۹۷۹ را په دې خوا پيښ شوي دي د دغې موضوع د ليکنې پر مهال گرانه ښکاري چې د ټولو تحليل وشي او د افغانستان د پيښو روښانه انځور رسم شي ، مگر يوه خبره يقيني ده چې د روس ضد پاڅون پيل دی او پوره اوږده موده به ونيسي . روسان ډير بد معامله گر او ښه سترنج